# تسهيلات

پښتو شرح

# مشکوٰة


تاليف مولانا شاه فيصل

فاضل دار العلوم اسلاميه چارسده و امداد العلوم پشاور


د اوو ويشت (۲۷) خصوصياتو سره چې يوولس (۱۱) په کښې دا دي

1. پېښورۍ پښتو سره بين القوسين د قندهارۍ پښتو د ټکو اضافه
2. د مشکاة د عربۍ او اردو متداولو شروحاتو مجموعه
3. په ترجمه کښې بين القوسين د مرقاة المفاتيح د اضافي قيوداتو ترجمه
4. د حديث هرې جملې او د هغې ترجمې ته د آسانتيا د پاره نمبرې ورکول
5. د فقهي اختلافي مسئلو مدلل او آسان حل
6. د اوږدو احاديثو د متن او ترجمې تقسيم
7. د هر حديث د صحاح سته وغيره نه تخريج
8. د حل اللغات په عنوان مرقاة المفاتيح نه د مشکلو لغاتو حل
9. د قوله په عنوان سره د حديث د مشکلو جملو تشريح
10. د هر باب په اول کښې [illegible] خلاصه
11. د کتاب په اول کښې [illegible] مقدمه



تسهيلات

# تسهيلات

# پښتو شرح

# مشكواة

تاليف:- مولانا شاه فيصل فاضل دارالعلوم اسلاميه چارسده

پنځم جلد (۵)

د شلو (۲۰) خصوصياتو سره چې لس (۱۰) په کښې دا دی

① پيښوري پښتو سره بين القوسين د قندهاري پښتو د ګرانو ټکو اضافه

② د مشکاة د عربي او اردو متداولو ټولو شروحاتو مجموعه

③ په ترجمه کښې بين القوسين د مرقاة المفاتيح داضافي قيوداتو ترجمه

④ دحديث هرې جملې ته اود هغې ترجمې د آسانتيا دپاره نمبرې ورکول

④ په فقهي اختلافي مسئلو کښې مدلل او آسان مباحث

⑤ ذ اوږدو احاديثو د متن او ترجمې تقسيم

⑥ د هرحديث د صحاح سته وغيره څخه تخريج

⑦ د حل اللغات په عنوان سره د مرقاة المفاتيح څخه د مشکلو لغات حل

⑧ د قوله په عنوان سره دحديث د هرې مشکلې جملې تشريح

⑨ د هرباب په اول کښې د هغې د احاديثو خلاصه

⑩ د کتاب په اول کښې د علوم الحديث مفيده مقدمه

خورنکي

فيصل کتب خانه محله جنګي پيښور

موبائل ۰۳۱۵-۹۵۹۵۷۱۷

## د چاپ حقوق د ناشر سره محفوظ دي

**د کتاب نوم** تسهيلات شرح مشکواة

**شارح** مولانا پروفيسر شاه فيصل
فاضل وفاق المدارس، امدادالعلوم، جامعه اسلاميه چارسده
**معاون مترجم:**: عبدالکريم صديقي

**د ملاويدو پتې**

- جديد اسلامي کتب خانه خوست
- المصباح کتب خانه کابل
- روغانيوال کتب خانه جلال آباد
- رحيمي کتب خانه خوست
- حرم کتب خانه کابل
- دیلی کتب خانه تیمرگره
- تاج کتب خانه صوابي
- مکتبه خواجه عبدالله انصاري غزني
- مکتبه دارالاخلاص کابل
- مکتبه رحمانيه قندهار
- مکتبه رحمانيه کوټه
- الوري کتب خانه قندهار
- نعمت کتب خانه کابل
- مکتبه علميه اکوړه خټک
- حقانيه کتب خانه ګرديز
- وطن دوست کتب خانه ګرديز
- إقرأ کتب خانه جلال آباد
- مکتبه معروفيه کوټه
- مکتبه عمريه چمن
- مکتبه عباسيه تيمرګره
- مکتبه امير حمزه قندهار

# اجمالی فہرست

## د احاديثو د عنوانانو فهرست

# فهرست اختلاف مذاهب

# [۵] بَابُ الْإِنْفَاقِ وَكَرَاهِيَةِ الْإِمْسَاكِ

**د خرچ کولو او کنجوسی نه کولو بیان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة وعشرون حديثاً مشتملة على مسئلتين:**

① الترغيب في الانفاق وفضيله : ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۸، ۲۹.

② قباحة الإمساك والانفاق عند الموت: ۲، ۳، ۵، ۶، ۷، ۹، ۱۱، ۱۳، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۲۰، ۲۱، ۲۴، ۲۵، ۲۶، ۲۸، ۲۹.

قال الله تعالى ﴿وَأَنْفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَٰكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ فَيَقُولَ رَبِّ لَوْلَا أَخَّرْتَنِي إِلَىٰ أَجَلٍ قَرِيبٍ فَأَصَّدَّقَ وَأَكُن مِّنَ الصَّٰلِحِينَ﴾ [سورة منافقون الايه: ۱۰]

**په وسعت او تنګئ کښې د نورو مسلمانانو خيال ساتل:-** اسلام انسان ته اعلى اخلاق وربنائی او هر مسلمان د اوچت معيار انسان جوړول غواړی. هم د دغه اخلاق حميده نه دادی چه پوآسوده حال انسان د بل مفلوك الحال انسان سره همدردی او امداد اوکړی. او د وسعت اوراحت په وخت خپل په مصيبت کښې راګير رونړه هيرنه کړی. د اسراف نه ځان ساتلو سره په حق لار کښې د انصاف لمن د لاس نه خلاصه نه کړی نه چه داسې کنجوس جوړ شی چه خلق د هغه نه نفرت کول شروع کړی. اونه دې دومره فضول خرچه جوړ يږی چه خالق د هغه نه ناراض شی

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۸۵۹] د نبی علیه السلام مال سره عدم محبت**

۱۸۵۹ – (۱)[۱] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «لَوْ كَانَ لِي مِثْلُ أُحُدٍ ذَهَبًا ③ لَسَرَّنِي أَنْ لَا يَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ ④ وَعِنْدِي مِنْهُ شَيْءٌ إِلَّا شَيْءٌ أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ» ''، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② که ما سره د احد د غره برابر هم سره زر وي ③ نو زما به دا نه وه خوښه چې درې شپې تيرې شي ④ او هغه تول سره زر يا د هغې څه حصه علاوه بقدر د ادائيګئ قرض دې ما سره موجود وي. (بخاري)

**حل اللغات:-** ① لَسَرَّنِي: ما خوشحالوی. ② أَرْصُدُهُ: أي: أَحْفَظُهُ وَأُعِدُّهُ: چه محفوظ ئې کړم اوتيار مې ساتلې وی (د قرض اداکولو دپاره).

---

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الإجارة/باب أداء الدين (رقم-۲۳۸۹) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب تغليظ عقوبة من لا يؤدي الزكاة (رقم) ۳۱ - (۹۹۱) وابن ماجة کتاب الزهد/باب فی المکثرين(رقم-۴۱۳۲) واحمد فی المسند ۲/۲۵۶

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْ لَا يَمُرَّ عَلَيَّ ثَلَاثُ لَيَالٍ وَعِنْدِي مِنْهُ شَيْءٌ:

**د صدقې ترغیب:** -په دې حدیث پاك كښې حضرت رسول كريم ﷺ خپل امت ته د سخاوت د جذبې ترغیب وركړې دې كه دومره مال هم وي نو هغه به مې هم د دریو شپونه وړاندې وړاندې تقسیم كړې وي یعنی د صدقاتو دومره ترغیب دې

**قوله:** إِلَّا شَيْءٌ أَرْصُدُهُ لِدَيْنٍ:

**د حقوق العباد ادا كولو اهمیت:** -او په آخر د حدیث كښې ئې اوفرمائیل چې هغه څیز به مې خان سره ایښودې وې چې هغې سره قرض ادا كړې شی ددې حدیث مبارك څخه معلومه شوه چې خرج كول افضل دی او د زیات ضرورت نه علاوه مال جمع كول ښه عمل نه دې او ددې څخه معلومیږی چې دنورو حقوق ادا كول د صدقې نه افضل دی لیكن اكثر خلق صدقه او خیرات وركوی او دخپلې آسانتیا دپاره اوچت اوچت مكانات جوړوی خو دوئ باندې چې د خلقو كوم حقوق وی دهغې خیال نه ساتی دا ډیره غلطه خبره ده او هم داشان صوفیاء كرام كوم چې عارفان نه وی هغوئ هم مجاهدې كوی ریاضتونه كوی او ډیر زیات طاعات او عبادتونه كوی لیكن په دوئ باندې چې دخلقو كوم حقوق وی د هغې د ادا كولو خیال نه ساتی دا هم غلط دی (مرقاة:ج۴ص/۱۸۴)

**[۱۸۶۰] دَسخی دَپاره دَ فرښتو دعا او دَ بخیل دَپاره بددعا**

> ۱۸۶۰-(١)[٢] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَا مِنْ يَوْمٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ إِلَّا مَلَكَانِ يَنْزِلَانِ ③ فَيَقُولُ أَحَدُهُمَا: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُنْفِقًا خَلَفًا ④ وَيَقُولُ الْآخَرُ: اللَّهُمَّ أَعْطِ مُمْسِكًا تَلَفًا» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هره ورځ د سحر په وخت كې دوه فرښتې راخكته كيږي ③ او په هغې كې یوه فرښته (د سخي د پاره) دا دعا كوي چې اي الله ﷻ خرج كونكي ته بدل وركړي (یعني كوم سړي چې په جائز خاي كې خپل مال خرج كوي هغه ته ډيره زیاته بدله وركړي په دې طور چې یا خو په دنیا كې هغه ته د خرج كولو څخه ډیر زیات مال وركړي یا په آخرت كې اجر او ثواب وركړي) ④ او دويمه فرښته (د بخیل د پاره) بد دعا كوي چې اي الله ﷻ بخیل ته نقصان وركړي (یعني كوم سړي چې مال او دولت جمع كوي او په جائز خاي كې یې نه خرج كوي بلكه بې محل او بې مصرف یې خرج كوي نو د هغه مال ضایع كړي) (بخاري مسلم)

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب قول الله تعالى: {فأما من أعطى واتقى. وصدق بالحسنى. فسنيسره لليسرى. وأما من بخل واستغنى. وكذب بالحسنى. فسنيسره للعسرى} [الليل: ۶] «اللهم أعط منفق مال خلفا» (رقم-١٤٤٢) ومسلم في كتاب الزكاة/باب في المنفق والممسك (رقم)٥٧ - (١٠١٠) واحمد في المسند: ٣٠٥/٢

**حل اللغات:** - ① مُنفِقً ای من محمه فی محله يعنی په صحيح طريقه باندې ګټلو سره زانی راوړلـه او په صحيح ځـای کـښې خرچ کړل ② خَلَفًا ای عوضا فی الدنيا وبدلا فی العقبیٰ " يعنی چه په دنيا کښې هغه له دې عوض ورکړی او آخرت کښې د هغې ثواب هغوی ته ورکړی ③ مُمْسِكً: ای من خیره الغیره " يعنی هغه کنجوس وبخيل د خپلې هرې ښيګړې نه خلق محروم ساتی ④ تَلَفًا: ای هلاکا لماله حسا اومعنی " يعنی چه په ظاهری توګه باندې د هغه مال هلاك کړی يا معنوی باطنی توګه باندې هلاك کړی چه په هغې کښې څه برکت پاتې نه شی

**تسهيلات:**

**قوله: "تَلَفً"**

د دې فرښتو دعـا او بددعا ده نوهرانسان له سوچ کول پکاردی چه په ښه غوږ سره سوچ اوکړی چه هغه د کومې دعا مستحق جوړېږی په دې حديث کښې د قرآن کريم دې آيت طرف ته اشاره ده (وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُ) [سورة سبا ۳۹]

**[۱۸٦۱] د سخاوت فائده**

۱۸٦۱-( )[۳] ① وَعَنْ أَسْمَاءَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«أَنْفِقِي وَلَا تُحْصِي فَيُحْصِيَ اللهُ عَلَيْكِ ③ وَلَا تُوعِي فَيُوعِيَ اللهُ عَلَيْكِ ④ ارْضَخِي مَا اسْتَطَعْتِ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي اسماء ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② چيرته چې د مال خرچ کولو سره الله ﷻ راضي کيږي هلته ځپل مال خرچ کوه او دا شمير مه کوه چې څومره خرچ کرم او څه خرچ کړم ګينې الله ﷻ به هم ستا په باره کې شمير کوي الله ﷻ به د دې په وجه ستا په مال کې برکت ختمولو سره ستا رزق کم کړي په دې طور چې هغه به د يو معدود او محدود شي په شان کړي يا دا چې الله ﷻ به ستا د مال وزر په باره کې د قيامت په ورځ ستا سره محاسبه کوي ③ او کوم مال چې ستا د حاجت او ضرورت څخه زيات وي هغه د حاجتمندو څخه منع کولو سره مه ايږده ګينې الله ﷻ به ستا په حق کې خپل زائد ورکړه او بخشش منع کړي ④ او دا چې ستا څخه چه څه هم کيدي شي د الله ﷻ په لاز کې خرچ کوه بخاري مسلم

**حل اللغات:** - ① وَلَا تُحْصِي. يعنی د الله تعالی په رضا کښې خرچ کونی او خپل ځان سره د شمير د باره هيڅ پرينږدی ② وَلَا تُوعِي. دا د باب افعال نه دې ايعاء د محفوظ کولو په معنی کښې دې چه يو څيز په يو لوښی کښې محفوظ کولو سره کيښودې شی ③ ارْضَخِي: رضخ قليل ورکړې ته وائی يعنی څومره چه تا نه کيدې شی خرچ کونی که هغه معمولی څيز ولې نه وی

---

( ) اخرجه البخاری فی كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب هبة المرأة لغير زوجها وعتقها. إذا كان لها زوج فهو جائز. إذا لم تكن سفيهة. فإذا كانت سفيهة لم يجز (رقم-۲۵۹۱) ومسلم فی كتاب الزكاة/باب الحث على الإنفاق وكراهة الإحصاء (رقم)۸۸ - (۱۰۲۹) واحمد فی المسند:۶/۳۵٤

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَاتُحْصِي:**

**د لاتحصی په معنی کښې دوه احتمالات:** - خکه چه دې سره به الله تعالی هم د شمیر معامله شروع کوی دَدې لفظ دويم مطلب دادې چه خرچ کولو سره شمیر مه کونی چه ما دومره خرچ کړو مړې سره به تاسو خیال کونی چه ما ډیر خرچ اوکړو نودَخرچ کولو نه به رامنع شې نو الله تعالی به خپله ورکړه منع کړی دا معنی دَحدیث دواړو جملو دَپاره زیات مناسب ده

**قوله: وَلَاتُوعِي:** یو حدیث کښې "تُوکی" الفاظ راغلی دی یعنی په یوه تهیلئی کښې کیخودو سره په تسمه سره تړلوسره مه ایږدئی گنی الله تعالی به هم دغه شان اوکړی

**دوسعت بلوجود فقیر ته نه ورکولو نتیجه:** - مطلب دا چه دَ وسعت مطابق مال دَ يوفقیر نه مه منع کوئی گنی الله تعالی به په تاسو دَ نورې ورکړې دروازه بنده کړی

**[۱۸۶۲] دانفاق په بدله کښې انفاق**

۱۸۶۲-()[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«قَالَ اللَّهُ - تَعَالَى - أَنْفِقْ يَا ابْنَ آدَمَ أُنْفِقْ عَلَيْكَ» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى جل جلاله فرمايي چې اي د آدم اولاده (زما په لار کې خپل مال) خرچ کوه زه به په تا باندې خرچ کوم (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْفِقْ يَاابْنَ آدَمَ أُنْفِقْ عَلَيْكَ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** - ① د الله جل جلاله د ارشاد مطلب دادې چې اې اولاد آدم! ته په دنیا فانی مال زماپه لار کښې خرچ کړه زه به په آخرت کښې تاته اموال عالیه درکړم

② څه چې ماتاته درکړی دی په هغې کښې ته خلقو ته ورکړه چې زه په د نیا او عقبی کښې تاته ددې څخه زیات درکړم دا دې آیت کریمه طرفته اشاره ده (وَمَآ أَنفَقْتُم مِّن شَيْءٍ فَهُوَ يُخْلِفُهُۥ)

(تاسو چې څه هم د الله جل جلاله درضا دپاره خرچ کوئی نو الله جل جلاله به تاسوته ددې بدله درکوی)

**[۱۸۶۳] د ضرورت څخه د زيات مال خرچ کولو حکم**

۱۸۶۳-()[۵] [۱] وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«يَا ابْنَ آدَمَ إِنْ تَبْذُلِ الْفَضْلَ خَيْرٌ لَكَ، [۳] وَإِنْ تُمْسِكْهُ شَرٌّ لَكَ، [۴] وَلَا تُلَامُ عَلَى كَفَافٍ، [۵] وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ» "، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب النفقات/باب فضل النفقة على الأهل (رقم-۵۳۵۲) ومسلم في كتاب الزكاة/باب الحث على النفقة وتبشير المنفق بالخلف(رقم-۳۶ - (۹۹۳) واحمد في المسند ۲/۲۴۲

[۲] اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن اليد العليا خير من اليد السفلى، وأن اليد العليا هي المنفقة وأن السفلى هي الآخذة (رقم) ۹۷ - (۱۰۳۶)

**ترجمه:** [۱] ابو امامه رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] اې د آدم اولاده كوم مال چې ستا د حاجت او ضرورت څخه زيات وي هغه (د الله ﷻ د رضا د پاره) خرچ كول ستا د پاره (په دنيا او آخرت كې) بهتر دي [۳] او د هغې نه خرچ كول (د الله ﷻ په نزد هم او د بنده ګانو په نزد هم) ستا د پاره بد دي [۴] او بقدر د كفايت مال باندې څه ملامتيا نشته [۵] او كوم مال چې ستا د حاجت څخه زائد وي د هغې د خرچ كولو په سلسله كې د خپل اهل وعيال څخه شروع وكړه (مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَبْذُلَ: د إِنْفَاقَ په معنى كښې دي، خرچ كولو ته وائي ② الْفَضْلَ: اى الزِّيَادَةَ: يعنى دخپل حاجت اوضرورت نه زياتى مال ③ تُمْسِكْهُ: أَيْ تَمْنَعْهُ: يعنى كه ته منع كوې اونه ئې خرچ كوې (دا زياتى مال) ④ وَلَا تُلَامُ: څه ملامتيا نشته دي ⑤ كَفَافٍ: يعنى دَ ژوندَ بقا دَپاره په قدرِدَ حاجت په مال جمع كولوكښې څه ملامتيا نشته دي ⑥ وَابْدَأْ: او ابتداء كوه، مخكښې كوه ⑦ تَعُولُ: أَيْ: يَمُونُهُ: څوک چه ستا په كفالت كښې دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا تُلَامُ عَلَى كَفَافٍ:

**د ضرورت مطابق مال جمع كولو اجازت:** - مطلب دا چه په اندازه دَ ژوند دَبقا څه حصه دَمال جمع كول منع نه دى په دې كښې داكتل پكاردى چه دَهرسړى حالت جداوى نودَ ټولو خلقو دَخپل خپل احوال مطابق دَ ژوند دَ بقا مطابق په مال جمع كولوكښې څه بدى نشته دې

**قوله:** وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ:

**په انفاق كښې دخپل اهل وعيال څخه شروع كول:** - يعنى په خرچ كولوكښې هغه خلق مقدم ساتل پكاردى څوک چه دَ چاپه كفالت كښې وى لكه چه ښځه اوبچى دى داخبره ښه نه ده چه خپل بال بچ خو دې محتاج او فقير وى اوداسړې په بل باندې خرچه كوى

**[١٨٦٤] دَكنجوس او سخي مثال**

١٨٦٣ - (١) [٦] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ كَمَثَلِ رَجُلَيْنِ [۳] عَلَيْهِمَا جُنَّتَانِ مِنْ حَدِيدٍ [۴] قَدِ اضْطُرَّتْ أَيْدِيهِمَا إِلَى ثُدِيِّهِمَا وَتَرَاقِيهِمَا، [۵] فَجَعَلَ الْمُتَصَدِّقُ كُلَّمَا تَصَدَّقَ بِصَدَقَةٍ انْبَسَطَتْ عَنْهُ، [۶] وَجَعَلَ الْبَخِيلُ كُلَّمَا هَمَّ بِصَدَقَةٍ قَلَصَتْ [۷] وَأَخَذَتْ كُلُّ حَلْقَةٍ بِمَكَانِهَا» "، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د بخيل او د صدقي وركونكي مثال د داسې دوو سړو دي [۳] چې د هغوى په بدن د اوسپني زغري وي [۴] او د

[1] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب مثل المتصدق والبخيل (رقم-١٤٤٣) ومسلم في كتاب الزكاة/باب مثل المنفق والبخيل (رقم) ٧٥ - (١٠٢١) واحمد في المسند ٣٨٩/١

هغه زغرو د تنګیدو په وجه د هغوی دواړو لاسونه د هغوی د سینو او د غاړې د هډوکو طرف ته انختي وي [٥] هر کله چې صدقه کونکې د صدقې ورکولو قصد کوي نو د هغه زغره خلاصه شي [٦] او هر کله چې بخیل د صدقې ورکولو قصد کوي نو د هغه د زغرې حلقې نورې تنګې شي [٧] او په خپل ځای یوې بلې سره یو ځای شي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** - ① الْمُتَصَدِّقِ: صدقه ورکونکې. ② جُنَّتَانِ أي وقايتان دوه زغرې. ③ جبهه اوسپنه. ④ ثُدِيِّهِمَا: د ثدي جمع ده، سینه. ⑤ تَرَاقِيهِمَا: د ترقوة جمع ده، د غاړې نه سکته و سینې نه پورته هډوکی ته وائی ⑥ انْبَسَطَتْ: أي: توسعت: فراخه شي، خلاصه شي. ⑦ هَمَّ أي قصد چه چه اراده اوقصد کوی ⑧ قَلَصَتْ: أي: انضمت: یعنی تنګې شي او ورپورې ونخلي ⑨ حَلْقَة کړۍ و بند ته وائي

**تسهیلات:** **قوله:** مَثَلُ الْبَخِيلِ وَالْمُتَصَدِّقِ:

**د سخي سړي مثال:** - ددې حدیث مطلب دادې چه سخي سړی کله د الله تعالی د رضا د پاره مال خرچ کولو اراده کوی نو د الله تعالی توفیق او امداد هغه سره شامل حال کیږي نو ددې سړي سینه د صدقې دپاره کولاویږي نو ښه صدقه کوی لکه چه هغه د کنجوسئ د زغرې کړئ ماتې کړی او آزادیدو سره ئې صدقه اوکړه.

**د کنجوس سړي مثال:** - ددې برعکس کنجوس سړي کله د صدقې کولو اراده کوی نو چونکه د هغه په زړه کښې ربښتونې جذبه نه وی نو د صدقې اراده کولو سره د هغه سینه تنګه شي او د صدقې کولو نه ئې لاس راغونډیدولو سره منع شي په دې وجه هغه صدقه نه شي کولې لکه چه د کنجوسئ د زغرې کړئ داسې ماتې نه کړې شي بلکه هغه کړئ نورې هم د هغه بدن پورې اونخلي اودا سړي د صدقې کولو د نیکئ نه محروم پاتې شي

"جُنَّتَانِ" دا تثنیه ده ددې مفرد "جنة" ده زغرې ته وائی په جیم باندې ضمه ده

**[١٨٦٥] د بخل مذمت او ددې څخه د ځان ساتلو تاکید**

١٨٦٥ - ( ) [٤] [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «اتَّقُوا الظُّلْمَ، فَإِنَّ الظُّلْمَ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ، [٣] وَاتَّقُوا الشُّحَّ، فَإِنَّ الشُّحَّ أَهْلَكَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ، [٤] حَمَلَهُمْ عَلَى أَنْ سَفَكُوا دِمَاءَهُمْ وَاسْتَحَلُّوا مَحَارِمَهُمْ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د ظلم څخه ځان ساتئ: ځکه چې د قیامت په ورځ به ظلم د تیارو په شکل کې وي (چې په هغې کې ظالم حیران [سرګومه] ګرځي) [٣] او د بخل څخه ځان ساتئ: ځکه چې بخل هغه خلق هلاك کړي دي کوم چې ستاسو څخه مخکې تیر شوي دي [٤] د بخل په وجه هغوی خون ریزي وکړه او حرام یې حلال وګڼل (مسلم)

[١] اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب تحریم الظلم (رقم) ٥٦ - (٢٥٧٨) واحمد فی المسند : ٣٢٣/٣

**حل اللغات:** - ① الشُّحُّ: أَيِ الْبُخْلَ: بخل ته وائی ② حَمَلَهُمْ: راپورته ئې کړل. يعنی باعث شو په دوی باندې ③ سَفَكُوا: چه تونې کړی، خون ريزی اوکړی ④ اسْتَحَلُّوا: حلال ئې اوګڼړل. ⑤ مَحَارِمَهُمْ: حرام څيزونه مثلاً زنا کاری، او پردی مالونه خوړل وغيره

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِنَّ الظُّلْمَ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ:

**د ظلم تعريف:** - ظلم په لغت کښې وضع الشي في غير محله ،، ته وائی يعنی دخپل ځائې څخه بغيرېه بل محل کښې يو څيز استعمال کړې شی نودا ظلم دې

**د ظلم دير قسمونه دی:** - ① ګناه کول په خپل ځان باندې ظلم کول دې

② رشته دارانو يا قرض دارانو ته حق نه ورکول په هغوئ باندې ظلم دې

③ چا ته تکليف ورکول په هغوئ باندې ظلم دې

**د قيامت په ورځ د ظلم کيدو په مفهوم کښې دوه اقوال:** - ① دا حديث پاك د ظلم ټولو قسمونو ته شامل دی او دا حديث پاك په خپله ظاهری معنی باندې محمول دې چې ظالم دپاره به ظلم د قيامت په ورځ د تيرو په صورت کښې وی او په دې کښې به ظالم سروهلې بروهلې ګرځی او دا ظلم به تياره جوړه شی او دظالم مخې له به راشی چې ددې په وجه به ظالم ته د نجات لاړ نه ملاويږی لکه څنګه چې د مؤمنانو باره کښې دی ﴿يسعى نورهم بين أيديهم﴾

② ددې نه د قيامت د ورځې دهشت او تکليفونه مراد دی يعنی يو ظلم به د قيامت په ورځ د ډيرو دهشتونو او سختو باعث وی

**قوله:** وَاتَّقُوا الشُّحَّ أَيِ: الْبُخْلَ:

**د شح او بخل په تعريف کښې دوه اقوال:** - ① شح هم د ظلم يو قسم دې شح وائی دغير په مال کښې بخل کول او خپل مال ايسارولو ته بخل وائی

② بخل په مال کښط وی او شح په مال او غير مال کښې هم وی

**د شح ذکر کولو وجه:** - دلته صرف شح په دې وجه ذکر کړې شوې چې دا دظلم په اقسامو کښې لوئې قسم دې او ددې مفاسد هم ډير دی او ددې نتيجه ددنيا محبت دې لقوله تعالى ﴿وَمَنْ يُوقَ شُحَّ نَفْسِهِ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ﴾ (مرقاة ج/۴ ص/۱۸۷)

**[۱۸۶۶] د صدقې نه قبلولو زمانه**

۱۸۶۶ — ([1]) [۸] ① وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② تَصَدَّقُوا" «فَإِنَّهُ يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ ③ يَمْشِي الرَّجُلُ بِصَدَقَتِهِ فَلَا يَجِدُ مَنْ يَقْبَلُهَا، ④ يَقُولُ الرَّجُلُ: لَوْ جِئْتَ بِالْأَمْسِ لَقَبِلْتُهَا، ⑤ فَأَمَّا

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب الصدقة قبل الرد (رقم) ۱۴۱۱ ومسلم کتاب الزکاة/باب الترغیب فی الصدقة قبل أن لا یوجد من یقبلها (رقم) ۵۸ - (۱۰۱۱) والنسائی کتاب الزکاة/باب التحریض علی الصدقة (رقم-۲۵۵۵) واحمد فی المسند ۴/۳۰۶

الْيَوْمَ فَلَا حَاجَةَ لِي بِهَا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] حارثه ابن وهب رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د الله تعالى د رضا د پاره خپل مال خرچ کوئ ځکه چې په انساني ژوند کې به يوه داسې زمانه هم راشي [٣] هر کله چې يو سړي به د صدقې مال اخستو سره وځي خو داسې سړي به پيدا نه کړی چې د هغه صدقه قبوله کړي [٤] بلکه هر سړي به دا وايي که د صدقې دا مال تا پرون راوړي وی نو ما به قبول کړي وی [٥] نن خو ماته د دې حاجت او ضرورت نشته «بخاري مسلم»

**حل اللغات:** - ① الْأَمْسِ: أَيْ: قَبْلَ ذَلِكَ: يعنى ددې نه مخکښې تيره ورځ

**تسهيلات:**

**قوله: تصدقوا:**

**په صدقه کولو کښې د صبا انتظار نه کول:** - يعنى دَ الله تعالى شکر اداکړه چه اوس صدقه اخستونکی خلق موجود دی بهترين مستحقين موجود دی په دوی کښې ته دَ الله تعالى خوشحالی په آسانئی سره صدقه کولو کښې حاصلولې شې هغه وخت به څه کوې چه کله دَصدقې کولو کوشش کوی ليکن موقع اومحل به نه ملاويږی. په خلقو کښې به څوک سړي دا نه قبلوی ځکه چه دا ټول خلق به مالدار وی يا به ئې زړه داسې بې پرواه وی چه دَمال مينه به ئې په زړونو کښې نه وی. علماء ليکی چه دې نه دَحضرت مهدی عليه السلام دَ ظهور دَ زمانې طرف ته اشاره ده.

**[١٨٦٧] افضله صدقه**

١٨٦٧ – (¹)[٩] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللَّهِ [٢] أَيُّ الصَّدَقَةِ أَعْظَمُ أَجْرًا؟ [٣] قَالَ: "أَنْ تَصَدَّقَ وَأَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ تَخْشَى الْفَقْرَ [٤] وَتَأْمُلُ الْغِنَى [٥] وَلَا تُمْهِلُ حَتَّى إِذَا بَلَغَتِ الْحُلْقُومَ [٦] قُلْتَ لِفُلَانٍ كَذَا وَلِفُلَانٍ كَذَا وَقَدْ كَانَ لِفُلَانٍ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ [٢] د ثواب په اعتبار سره کومه صدقه لويه او افضله ده؟ [٣] حضور ﷺ وفرمايل چې «افضله صدقه هغه ده، چې ته د الله تعالى په لار کې هغه وخت خپل مال خرچ کړي هر کله چې ته تندرست او توانا يې د فقر او افلاس څخه يريږي [٤] او د مال جمع کولو حرص لري [٥] او د دولت حاصلولو اميد لري «ياد لره» د صدقه او خيرات په معامله کې، تاخير مه کوه تر دې چې ستا ساه حلق ته راشي [٦] نو بيا وايي چې دومره مال د فلاني د پاره دي او دومره د فلاني د پاره دي حالاتکه فلاني هغه وخت د هغه مال پخپله مالك «وارث» جوړشوي وي «بخاري مسلم»

¹) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب فضل صدقة الشحيح الصحيح (رقم-١٤١٩) ومسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن أفضل الصدقة صدقة الصحيح الشحيح (رقم) ٩٢ - (١٠٣٢) والنسائي كتاب الزكاة/باب أى الصدقة أفضل(رقم-٢٥٤٢)واحمد في المسند ٢٣١/٢

**حل اللغات:** - ① ضَحِیحٌ: بنه صحت، تندرست ② شَحِیحٌ: بخیل، چه مال خرج کول نه غواړي. ③ تَخْشَی: ته ویریدلې، چه مال خرج کولو سره به غریب شم دخلقو محتاج به شم. ④ تَأْمُلُ: بِاَتَطْمَعُ وَتَرْجُو: امید او طمع دې لرله. ⑤ وَلَاتُمْهِلُ: أَيْ: وَلَا تُؤَخِّرُ الصَّدَقَةَ: صدقه ورکولو کښې تاخیرمه کوه ⑥ الْحُلْقُومُ: حلق او مرۍ ته وائي. یعنې چه روح په وتلو کښې مرۍ ته راشي او مرګ راشي

**تسهیلات:**

**قوله:** وَأَنْتَ صَحِيحٌ شَحِيحٌ:

**دعمر په لحاظ سره د صدقي کولو غوره وخت:** - یعنې د ټولو نه غوره صدقه هغه ده چه ته په داسې حال کښې صدقه اوکړې چه کله ته صحت مند نې اوبنه بخیل وئې. مطلب دا چه دصحت مند سړي د اوږد عمر امید وي او د عمر د اوږدوالي امید سره سړې په مال جمع کولو ډیر بنه حرصناك کیږي په داسې حالت کښې خرچ کول د ډیر د اجر سبب وي

**قوله:** "وتخشى الفقر" یعنې شیطان هروخت سړي د فقر اوفاقه اومحتاجئي نه ویرول کوي اونفس هم وسوسه اچوي په داسې حالت کښې هم خرچ کول د ډیرلوئي اجر سبب دي دا جمله "خبربعدخبر" هم کیدې شي اوداحال هم جوړیدې شي

**قوله:** "وتأمل الغنى" میم باندې پیښ دې اي تطمع وترجو، یعنې په زړه اوځان سره مالدار جوړیدل او مالدار اوسیدل غواړې په داسې حالت کښې خرچ کول د لوئي اجر سبب دي

**قوله:** "ولاتمهل" دا په ماقبل باندې عطف دې اومستقل کلام دې چه صدقه کول داسې روستو کوئي مه چه مرګ نیزدې راشي نو بیا تاسو ته هوش راشي اوپه مرض وفات کښې وصیتونه شروع کړئې اوس خو ستا د میراث حق ستا مال سره اوتړلې شو اوس دا وئیل چه دا مال د فلانکي اوفلانکي دې حالانکه هغه خو هم د فلانکي دې

**[۱۸۶۸] دالله تعالی په لار کښې د زیات خرچ کولو کامیابي**

١٨٦٨ - (١)[١٠] ① «وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: انْتَهَيْتُ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ جَالِسٌ فِي ظِلِّ الْكَعْبَةِ، ② فَلَمَّا رَآنِي قَالَ: "هُمُ الْأَخْسَرُونَ وَرَبِّ الْكَعْبَةِ". ③ فَقُلْتُ: فِدَاكَ أَبِي وَأُمِّي، مَنْ هُمْ؟ ④ قَالَ: "هُمُ الْأَكْثَرُونَ أَمْوَالًا، إِلَّا مَنْ قَالَ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا ⑤ مِنْ بَيْنِ يَدَيْهِ وَمِنْ خَلْفِهِ وَعَنْ يَمِينِهِ وَعَنْ شِمَالِهِ، وَقَلِيلٌ مَا هُمْ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوذر رضي الله عنه فرمايي چې يو خل زه د نبي كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كي هغه وخت ورسيدم

[1] اخرجه البخاري في كتاب الأيمان والنذور/باب: كيف كانت يمين النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-٦٦٣٨) ومسلم في كتاب الزكاة/باب تغليظ عقوبة من لا يؤدي الزكاة (رقم) ٣٠ - (٩٩٠) والترمذي كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء عن رسول الله صلى الله عليه وسلم في منع الزكاة من التشديد(رقم-٦١٧) والنسائي كتاب الزكاة/باب: التغليظ في حبس الزكاة(رقم-٢٤٤٠) واحمد في المسند ١٥٢/٥

هر کله چې حضور ﷺ د کعبې شريفې په سايه (سورې) کې تشريف فرما وو[٢] د حضور ﷺ نظر مبارك چې په ما پريوتلو نو وې فرمايل چې د کعبې په رب مې دې قسم وي هغه خلق ډير تاوان کې دي [٣] ما عرض وکړو زما مور او پلار دې په تا قربان وي هغه کوم خلق دي؟ [٤] حضور ﷺ وفرمايل هغه خلق چې زيات مال جمع کوي هو (هغه خلق مستثنى دي) چې خپل اخوا، دې خوا او دې طرف[٥] يعنى خپل مخکې، خپل وروسته، خپل ښي او خپل چپ طرف ته (غرض هر شان او په هر ځاى کې د الله ﷻ د رضا د پاره) خپل مال خرچ کوي خو داسې خلق کم دي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ①الْأَخْسَرُونَ: ډير په تاوان کښې دى ②فَدَاكَ: قربان دې شى.

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا مَنْ قَالَ هٰكَذَا وَهٰكَذَا وَهٰكَذَا:**

**د صدقې په کثرت سره مالدارى عدم نقصان:** - په احاديثو کښې اود عربو په محاوره کښې "قال" لفظ د اشارې د پاره ونيلې شي يعنى کوم خلق چه ډير مال لري او لوني مالدار وى هغه په نقصان او خساره کښې دى او چه کوم مالدار خلق خپل مال ډير زيات ښي او ګس طرف ته او وړاندې روستو خرچ کوى هغه د دې خسارې نه خلاص دى د "قال" لفظ د اشارې په معنى کښې استعماليږى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[١٨٦٩] په بخيل عابد باندې د سخي جاهل فضيلت**

١٨٦٩ - (١)[١١] [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رسول الله - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "اَلسَّخِيُّ قَرِيبٌ مِنَ اللّٰهِ قَرِيبٌ مِنَ الْجَنَّةِ [٣] قَرِيبٌ مِنَ النَّاسِ بَعِيدٌ مِنَ النَّارِ [٤] وَالْبَخِيلُ بَعِيدٌ مِنَ اللّٰهِ بَعِيدٌ مِنَ الْجَنَّةِ [٥] بَعِيدٌ مِنَ النَّاسِ قَرِيبٌ مِنَ النَّارِ [٦] وَلَجَاهِلٌ سَخِيٌّ أَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ مِنْ عَابِدٍ بَخِيلٍ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره ﷺ راويت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] سخي د الله ﷻ رحمت ته نږدې دي، جنت ته نږدې دي [٣] خلقو ته نږدې دي (يعني ټول هغه دوست او عزيز ګڼي) او د اور څخه لرې دي [٤] خو بخيل (چې په خپل خان باندې د واجب حقوق هم ادائيګي نه کوي) د الله ﷻ د رحمت څخه لرې دي، د جنت څخه لرې دي [٥] د خلقو څخه لرې دي، اور ته نږدې دي [٦] بلا شبه د الله ﷻ په نزد عابد بخيل څخه جاهل سخي زيات محبوب دي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ①السَّخِيُّ: دالله د رضا دپاره مال خرچ کونکې

[١] اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في السخي(رقم-٢٠٨٨)

**تسهيلات:**

**قوله:** السَّخِيُّ قَرِيبٌ مِنَ اللهِ:

**سخي په صفات:** - دې نه مراد هغه سړې دې چه د الله تعالى د رضا د پاره خپل مال خرچ كوى په خرابو كارونو كښې سخاوت مقصود نه دې

**قوله:** قَرِيبٌ مِنَ اللهِ: يعنى د الله تعالى د رحمت سره نيژدې وى "قريب من الناس" ځكه چه هغه په فقيرانو وغيره باندې خرچ كوى نو هغه خلق د اخوښوى يا هسې سخى سړې خلقو ته نيژدې او محبوب وى كه هغه په دوى باندې خرچ هم نه وى كړې

**قوله:** وَالْبَخِيلُ بَعِيدٌ مِنَ اللهِ:

**د كنجوس بدصفات:** -دې بخيل نه هغه سړې مراددې چه واجب حق هم نه اداكوى اونه زكوة وركوى

**قوله:** وَلَجَاهِلٌ سَخِيٌّ: دلته د جاهل عالم په مقابله كښې نه بلكه د جاهل سخى نه مراد هغه سړې دې چه فرائض خو اداكوى ليكن زيات نوافل نه كوى دغه شان د عابد بخيل نه هغه سړې مراد دې چه فرائض نه علاوه په كثرت سره نوافل هم اداكوى ليكن كنجوس وى نو د دغه ډير نفل كونكې عابد نه هغه نفل پريخودونكې سخى افضل او بهتر دې ځوك چه مسلسل سخاوت كوى

**[١٨٧٠] د صحت په وخت د صدقې افضليت**

١٨٧٠-() [١٣] ⓵ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ "«لَأَنْ يَتَصَدَّقَ الْمَرْءُ فِي حَيَاتِهِ بِدِرْهَمٍ ⓷ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِائَةٍ عِنْدَ مَوْتِهِ»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ⓵ ابو سعيد خدري ﷛ راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⓶ د يو سړي د خپلې تندرستي په حالت كې يو درهم د الله ﷻ په لار كې خرچ كول ⓷ د خپل مرگ په وخت د الله ﷻ په لار كې د سل درهمو خرچ كولو څخه زيات بهتر دي (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله:** خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِمِائَةٍ عِنْدَ مَوْتِهِ:

**په صحت كښې د خيرات كولو د فضيلت وجه:** -د ژوند څخه مراد صحت مند ژوند دې او د مرگ څخه مراد مرض الموت دې يعنى په صحت كښې لږ مال د الله ﷻ په لار كښې خرچ كول د مرگ په وخت كښې د زيات مال خرچ كولو څخه زيات افضل دى ځكه چې په روغ صحت كښې خيرات كول د نفس سره جهاد دې او په مرض الموت كښې خيرات كولو كښې خپل نقصان نشته دې بلكه وارثانو ته نقصان رسول دى په دې جه نې اوفرمائيل چې پنځه څيزونه په پنځو باندې غنيمت اوگڼئ . قوله: عند موته امام طيبى ﷫ فرمائى چې خپل

() اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الصيد/باب ما جاء فى كراهية الإضرار فى الوصية (رقم-٢٨٦٦)

زوند کښې مال خرچ کول بهتر دی اګر چې لږ ولې نه وی د مرګ په وخت کښې د صدقه کولو نه اګر چې زیات ولې نه وی

**[۱۸۷۱] د مرګ په وخت د خیرات کولو مثال**

۱۸۷۱-)[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «مَثَلُ الَّذِي يَتَصَدَّقُ عِنْدَ مَوْتِهِ أَوْ يُعْتِقُ ③ كَالَّذِي يُهْدِي إِذَا شَبِعَ». ④ رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالتِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** ① ابو درداء رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د هغه سړي مثال چې د خپل مرګ په وخت خیرات کوي یا غلام آزادوي ③ د هغه سړي په شان دي چې چاته د اسې وخت تحفه یعنې طعام لیږي هر کله چې د هغه نس خیټه ډکه شوي وي. ④ ترمذي. نسایي، دارمي، امام ترمذي رحمه الله دا حدیث صحیح ګرځولي دي

**حل اللغات:-** ① يُهْدِي: چاته هدیه او خیرات ورکول، ② شَبِعَ: چه کله موړ شي

**تسهیلات:**

**قوله: كَالَّذِي يُهْدِي إِذَا شَبِعَ:**

**د مرګ په وخت کښې د صدقې کولو تشبیه:-** ددې ارشاد مبارك مطلب دادې چې د مرګ په وخت کښې د الله ﷻ په لار کښې خپل مال خرچ کول یا غلام آزادول په دې باندې کم ثواب ملاویږی لکه څنګه یو ضرورت مند ته په داسې وخت کښې د خوراك ورکولو ثواب کم ملاویږی کله چې هغه موړ وی لهذا چا ته د هغه د اولړې په وخت کښې خوراك ورکول یا هغه سره سخاوت کول زیات افضل او د زیات ثواب باعث دی داشان د صحت په حالت کښې د الله تعالی د رضا د پاره خپل مال خرچ کول یا غلام آزادول په دې باندې زیات اجر او ثواب ملاویږی

**[۱۸۷۲] په مؤمن کښې د دوو بدو خصلتونو عدم اجتماع**

۱۸۷۲-)[۱۴] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «خَصْلَتَانِ لَا يَجْتَمِعَانِ فِي مُؤْمِنٍ: ③ الْبُخْلُ وَسُوءُ الْخُلُقِ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو سعید رضي الله عنه راویت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② په مومن کې دوه خصلتونه نه جمع کیږي ③ ① بخل ② او دویم بد خلقي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① خَصْلَتَانِ: دوه صفات او خویونه

---

[۱] اخرجه ابوداود في السنن كتاب العتق/باب في فضل العتق في الصحة(رقم-۳۹۶۸) والترمذى كتاب الوصايا عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرجل يتصدق أو يعتق عند الموت(رقم-۲۱۲۳) واحمد في المسند ۱۹۷/۵

[۲] اخرجه الترمذى في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في البخيل(رقم-۱۹۶۲)

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يَجْتَمِعَانِ:** يعنى بداخلاقى او كنجوسى دا دواړه خراب خصلتونه په يو مؤمن كښې جمع كيدې نه شى

**اعتراض:-** دلته سوال دادې چه په ډيرو زياتو مسلمانانو كښې دا دواړه خصلتونه يو په دې كښې يوخصلت موجود وى بيا ولې هغه مؤمن پاتې نه شو؟

**جوابونه:-**

① دَمؤمن نه كامل مؤمن مراد دې دَدې خصلتونو والا سړې كامل مؤمن نه شى كيدې

② دَ دې خصلتونو په موجودګئى كښې مطلب دادې چه داخصلتونه دَ هغه مؤمن طبيعت ثانيه جوړشوې وى كه دَ بشريت په تقاضا په يومؤمن كښې دا خصلتونه راشى اويا وخى اوهغه خپيمانه شى نوداد كمال ايمان منافى نه دى دَخلقو دَ حسن نه مراد هغه امور دى دكوم چه شريعت تعليم وركړې دې اودَ بداخلاقئى نه مراد دادې چه دَ هغه امورو خلاف ورزى اوكړې شى دكوم چه اسلام تعليم وركړې دې

**مثال:-** بهرحال دَ نفاق باب كښې مخكښې خودلې شوى دى چه دَ نفاق والا اخلاق په يو مؤمن كښې كيدل هغه هله منافق جوړولې شى چه كله دا اخلاق په هغه كښې دَ طبيعت په توګه موجود وى صرف موندلې كيدل كافى نه دى. دا داسې دى چه دَ باب فتح دَپاره حرف حلقى كيدل ضرورى دى ليكن كه حرف حلقى په يوباب كښې موندلې شى نودَدې مطلب دا نه دې چه هغه باب فتح جوړشو

**[۱۸۷۳] دَ بخيل دَپاره سخت وعيد**

---

(۱۵) [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ خَبٌّ وَلَا بَخِيلٌ [۳] وَلَا مَنَّانٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

**ترجمه:** [۱] امير المؤمنين حضرت ابوبكر صديق ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په جنت كې به نه مكار داخليږي. نه بخيل [۳] او نه د الله ﷻ په لار كې چاته مال وركولو سره په هغه احسان ضباتونكي (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① خَبٌّ: أي: خَدَّاعٌ: په فتحه دَ خاء اوتشديد دَ باء. سخت دهوكه باز اومكار. عيار او شطار ته وئيلى شى ② مَنَّانٌ: أي: يَمُنُّ عَلَى الْفُقَرَاءِ بَعْدَ الْعَطَاءِ: خوك چه غريب ته څه وركړى بيا پرې احسان زباتنه كوى

---

) اخرجه الترمذى فى السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى البخيل(رقم - ۱۹۶۴) واحمد فى المسند ۷/۱

**تسهیلات:**

**قوله: لَايَدْخُلُ الْجَنَّةَ:**

**د عدم دخول څخه مراد:** - لايدخل الجنة: دَ دخول نه مراد دخول اول دې چه بغيرد سزا نه به جنت کښې نه داخلیږی

**قوله: بَخِيلٌ:**

**د بخيل مصداق:** - دَبخيل نه مراد هغه دې چه حق واجب ادا کولو کښې بخل کوی منان احسان ضباتونکی ته وائی اودویمه معنی داده چه صله رحمی ماتونکې وی دلته هم دَ جنت دَ داخلیدو نه اول دخول مراد دې

**[۱۸۷۴] دوه بدترین خصلتونه**

۱۸۷۴ـ( )[۱۲] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «شَرُّ مَا فِي الرَّجُلِ شُحٌّ هَالِعٌ ③ وَجُبْنٌ خَالِعٌ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ ④ وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ أَبِي هُرَيْرَةَ " «لَا يَجْتَمِعُ الشُّحُّ وَالْإِيمَانُ» " فِي كِتَابِ الْجِهَادِ إِنْ شَاءَ اللَّهُ - تَعَالَى -.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه راویت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② په انسان کې چې کوم خصلتونه دي په هغې کې دوه خصلتونه د ټولو څخه بدتر دي ① یو خو د انتهایي درجې بخل ③ ② او دویم د انتهايي درجې نامردي. (ابوداؤد) ④ او زر ده چې اا و د ابو هریره رضي الله عنه حدیث [لایجتمع الشح و الایمان] به په کتاب الجهاد کښې ذکر کړو ان شاء الله

**حل اللغات:** - ① شُحٌّ: بخل ته وائی چه واجب حق کښې هم نه خرچ کوی ② هَالِعٌ: أَيْ: جَازِعٌ: انتهائی درجې بخل چه څه مال ترې خرچ شی په هغې پسې هم خفه وی ③ جُبْنٌ: بزدلی. ④ خَالِعٌ: أَيْ: شَدِيدٌ: ډیره زیاته (بزدلی)

**تسهیلات:**

**قوله: وَجُبْنٌ خَالِعٌ:**

**دجبن هالع تعریف:** - ډیرې زیاتې بزدلۍ ته جبن هالع وائی یعنی د ویرې د وجې ګویا چې دده زړه خالی شو او د کافرانو سره جنګ نشی کولې تر دې چې کومو څیزونو څخه ویریدل نه دی پکار د هغې څخه ویریږی او داشان جبن دې د نیکو عملونو کولو څخه منع کوی د سړی قید ئې په دې وجه اولګولو چې سړې د سخاوت او بهادری دپاره پیدا کړې شوې دې

---

( ) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الجهاد/باب فی الجرأة والجبن(رقم-۲۵۱۱) واحمد فی المسند ۳۰۲/۲

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[١٨٧٥] د الله ﷻ په لار کښې د خرچ کولو فضيلت**

١٨٧٥ – ( )[١٤] [١] «عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ بَعْضَ أَزْوَاجِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قُلْنَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] أَيُّنَا أَسْرَعُ بِكَ لُحُوقًا؟ [٣] قَالَ: "أَطْوَلُكُنَّ يَدًا". [٤] فَأَخَذُوا قَصَبَةً يَذْرَعُونَهَا، [٥] وَكَانَتْ سَوْدَةُ أَطْوَلَهُنَّ يَدًا، [٦] فَعَلِمْنَا بَعْدُ أَنَّمَا كَانَ طُولُ يَدِهَا الصَّدَقَةَ، [٧] وَكَانَتْ أَسْرَعَنَا لُحُوقًا بِهِ زَيْنَبُ، [٨] وَكَانَتْ تُحِبُّ الصَّدَقَةَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ. [٩] وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [١٠] "«أَسْرَعُكُنَّ لُحُوقًا بِي أَطْوَلُكُنَّ يَدًا". [١١] قَالَتْ: وَكَانَتْ يَتَطَاوَلْنَ أَيَّتُهُنَّ أَطْوَلُ يَدًا؟ [١٢] قَالَتْ: فَكَانَتْ أَطْوَلَنَا يَدًا زَيْنَبُ; [١٣] لِأَنَّهَا كَانَتْ تَعْمَلُ بِيَدِهَا وَتَتَصَدَّقُ».

**ترجمه:** [١] د مومنانو مور بي بي عایشه ﷺ فرمايي چې د نبي کريم ﷺ په بيبيانو مبارکو کې بعضو حضور ﷺ ته اوويل [٢] چې په مونږ کې به کومه بي بي ستا سره زر ملاقات کوي؟ (يعني ستا د وفات څخه روسته به په مونږ کې کومه بي بي مخکې وفات کيږي؟) [٣] حضور ﷺ وفرمايل چې د چا لاس د ټولو څخه اوږده وي [٤] (بي بي عايشه ﷺ فرمايي چې د حضور ﷺ دا ارشاد اوريدو سره) د حضور ﷺ بيبيانو يو لرګي راواخستلو او په هغې سره بي به خپلو کې خپل لاسونه ناپ کول شروع کړل [٥] په هغه ټولو کې د بي بي سوده ﷺ لاس اچې د حضور ﷺ يوه بي بي وه) د ټولو څخه اوږده وو [٦] بيا وروسته مونږ ته معلومه شوه چې د لاس د اوږدوالي څخه مراد صدقه وه [٧] او په مونږ کې د ټولو څخه مخکې چې کومې بي بي د حضور ﷺ سره ملاقات اوکړو هغه بي بي زينب ﷺ وه [٨] او هغې به صدقه او خيرات ډير خوښول (بخاري) [٩] او د مسلم په يو روايت کې د بي بي عايشه ﷺ څخه منقول دي چې حضور ﷺ د بيبيانو مبارکو د سوال په جواب کې وفرمايل [١٠] چې په تاسو کې ما سره زر يو ځاي کيدونکې به هغه بي بي وي چې د هغې لاس اوږدوي [١١] بي بي عايشه ﷺ فرمايي چې د دې اوريدو سره د حضور ﷺ بيبيانو مبارکو خپل لاسونه ناپ کول شروع کړل چې په هغوئ کې کومه بي بي د اوږدو لاسونو والاده [١٢] نو په مونږ کې د ټولو څخه د اوږدو لاسونو والا بي بي زينبه ﷺ وه [١٣] ځکه چې هغې به په خپل لاس سره ټول کار کولو او صدقه او خيرات به يې کولو

**حل اللغات:** - ① لُحُوقًا: يو ځاي کيدونکې (په مرګ سره)، ② قَصَبَةً: لرګي، ③ تَعْمَلُ: په لاس به نې مزدوري کوله

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب فضل صدقة الشحيح الصحيح (رقم-١٤٢٠) ومسلم في كتاب فضائل الصحابة رضي الله تعالى عنهم/باب من فضائل زينب أم المؤمنين، رضي الله عنها (رقم) ١٠١ - (٢٤٥٢) والنسائي كتاب الزكاة/باب فضل الصدقة(رقم-٢٥٤١) واحمد في المسند ١٠٦/٢

**تسهیلات:**

**قوله: أَطْوَلُكُنَّ يَدًا:**

**په شرعی احکامو کښې صرف په لغت عدم اعتماد:** - د دې حديث نه دا معلومه شوه چه د ژبان والا هم په قرآن او حديث کښې بعضې وخت د کلام اصل حقيقت ته نه شي رسيدلې د دې دپاره ضروری دی چه شرعی اصطلاحات او د دې اطلاقات د يو ماهر استاذ نه زده کړي صرف د لغت د پوهيدلو په طاقت باندې اعتبار نه دی کول پکار ګورئ دلته طول امهات المؤمنين په ظاهری معنی باندې حمل کولو سره د اندامونو ناپ کول شروع کړه حالانکه شارع عليه السلام د دې نه د سخاوت اراده کړې وه

**د حضرت زينب په ام المساکين ملقب کيدو وجه:** -

حضرت زينب رضي الله عنها به د ام المساکين په لقب سره ياديدله ځکه چه ډيره سخي وه په لاسونو به ئې د څرمنې د رنګ کولو کار کولو او بيا به ئې دغه څرمنې خرڅولې او دغه رقم به ئې د الله تعالی په لار کښې خيرات کولو "فأخذوقصبة" يعنی ازواج مطهرات بانړس واخستلو او په هغې سره ئې خپل لاسونه ناپ کول شروع کړه

**يو اشکال او د هغې جواب:** - دلته د "اخذن" صيغه کيدل پکار وو ځکه چه د مؤنث صيغه ده مګر د تعظيم او اکرام په توګه د مذکر صيغه راوړلې شوه او داسې کيږی لکه چه په زملونی کښې دي

**[١٨٧٦] زکات ادا کولو کښې د بنی اسرائيلو د يو سړي قصه**

١٨٠٦-(١)[١٨] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] "«قَالَ رَجُلٌ: لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ، [٣] فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ سَارِقٍ، [٤] فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى سَارِقٍ، [٥] فَقَالَ: اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ، لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ، [٦] فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ زَانِيَةٍ، [٧] فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى زَانِيَةٍ،

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه راويت کوي چې حضور صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] چې ايو خل په بنې اسرائيلو کې! يو سړي (په خپل زړه کې يا خپل يو دوست ته) اوويل چې زه به نن شپه د الله جل جلاله په لار کې څه مال خرچ کوم [٣] نو هغه (د دې قصد او ارادې مطابق) څه مال وخکلو (چې يو مستحق ته يې ورکړي) نو هغه مال يې يو غل ته ورکړه (هغه ته دا معلومه نه وه چې دا غل دي او د خيرات د مال مستحق نه دي) [٤] کوم وخت چې سحر شو او خلقو ته د الهام

(١) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب إذا تصدق على غني وهو لا يعلم (رقم-١٤٢١) ومسلم كتاب الزكاة/باب ثبوت أجر المتصدق، وإن وقعت الصدقة في يد غير أهلها (رقم-٧٨ - (١٠٢٢)) والنسائي كتاب الزكاة/باب إذا أعطاها غنيا وهو لا يشعر(رقم-٢٥٢٣) واحمد في المسند ٢/٣٢٢

خداوندي په سبب يا خپله د هغه غل زباني معلومه شوه نو په طريقه د تعجب خلقو خبري شروع كړي چې نن شپه يو غل ته د صدقې مال وركړې شوي دي [۵] هر كله چې صدقه وركونكي ته هم صورت حال معلوم شو، نو هغه اوويل چې اي الله ﷻ تالره تعريف دي باوجود د دې، چې د صدقې مال يو غل ته په لاس ورغلي بيا بې اوويل چې نن شپه به زه بيا صدقه وركوم ،چې مستحق ته حاصله شي، [۶] نو هغه د صدقې په نيت سره بيا څه مال وخكلو او ،دا خل هم په غلط فهمۍ كې، هغه مال بې يوې زنا كاري ښځې ته په لاس كې وركړو [۷] كوم وخت چې سحر شو نو بيا خلقو خبري شروع كړي چې نن شپه يوې زانيه د صدقې مال تر گوتو شوي دي

[۱] فَقَالَ: اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى زَانِيَةٍ، لَأَتَصَدَّقَنَّ بِصَدَقَةٍ [۲] فَخَرَجَ بِصَدَقَتِهِ فَوَضَعَهَا فِي يَدِ غَنِيٍّ [۳] فَأَصْبَحُوا يَتَحَدَّثُونَ تُصُدِّقَ اللَّيْلَةَ عَلَى غَنِيٍّ [۴] فَقَالَ: اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ وَزَانِيَةٍ وَغَنِيٍّ [۵] فَأُتِيَ فَقِيلَ لَهُ: أَمَّا صَدَقَتُكَ عَلَى سَارِقٍ فَلَعَلَّهُ أَنْ يَسْتَعِفَّ عَنْ سَرِقَتِهِ [۶] وَأَمَّا الزَّانِيَةُ فَلَعَلَّهَا أَنْ تَسْتَعِفَّ عَنْ زِنَاهَا [۷] وَأَمَّا الْغَنِيُّ فَلَعَلَّهُ يَعْتَبِرُ فَيُنْفِقُ مِمَّا أَعْطَاهُ اللَّهُ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَلَفْظُهُ لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** [۱] نو هغه سړي اوويل چې اي الله ﷻ تالره تعريف دي ،اگر چې دا خل، د صدقې مال يوې زانيه ته په لاس ورغلى دې خو نن شپه به بيا صدقه وكړم اچه مستحق ته ملاو شي! [۲] نو هغه بيا څه مال د صدقې په نيت وښكلو او ،دا خل بيا په غلط فهمۍ كې يې، د يو غني په لاس كې وركړو [۳] كوم وخت چې سحر شو نو بيا خلقو خبري شروع كړي چې نن شپه يو دولت مند ته د صدقې مال وركړل شو [۴] نو هغه سړي اوويل چې اي الله ﷻ تالره تعريف دي اگر كه د صدقې مال غل وزانيه او دولتمند حاصل كړو [۵] نو [كوم وخت چې هغه سړي اوده شو نو په خوب كې] هغه ته اوويل شو اچې تا څومره صدقې وركړي دي تولې قبولې شوي دي! خكه چې د صدقې كوم مال غل ته وركړې شوي دي ،هغه بې فايدې او د ثواب څخه خالي نه دي، ممكنه ده چې هغه د دې په وجه د غلا څخه منع شي [۶] او د صدقې كوم مال چې زانيه ،زناكاري ښځې، ته وركول شوي دي ممكنه ده چې هغه د دې په وجه د زنا څخه منع شي [۷] او د صدقې كوم مال چې دولت مند ته وركړل شوي دي ممكنه ده چې هغه د دې په وجه عبرت حاصل كړي او الله ﷻ چې هغه ته څه وركړي دي هغه خرج كړي بخاري مسلم. الفاظ د بخاري دي

**حل اللغات:** - ① سَارِقٍ: غل. ② يَسْتَعِفَّ: منع شي ③ يَعْتَبِرُ: أَيْ يَتَّعِظُ وَيَتَذَكَّرُ: چه څه عبرت او نصيحت ترې واخلي

**تسهيلات:**

**قوله: اللَّهُمَّ لَكَ الْحَمْدُ عَلَى سَارِقٍ؟:**

**د صدقې د فائدې څخه نه خالي كيدل:** - دَ دغه سړي په حق كښې خلقو تبصرې شروع كړې

اوونيل به نې ګوره روره يوصدقه کونکې څومره ښه صدقه اوکړه چه غل ته نې ورکړه په دې باندې دغه سړی پخپله هم حيرانتيا اوکړه مګر اول نې د الله تعالى تعريف ورسره اولګولو دې دپاره چه شکر هم اداشي او بيانې اوفرمائيل چه ښه د غل په لاس کښې صدقه اولګيدله؟ زه تيک ده زه به نې بيا ورکړم اودغه شان نې هرځل ونيل

**قوله: فَأُتِيَ**:

**د فرشتې په خوب ليدل**:- په خوب کښې ده ته يوې فرښتې وغيره اوونيل چه تا کومې صدقې ورکړې وې هغه بيکاره لاړلې سره ددې چه زکوة ادا نه شو هغه به بيا اداکړې ليکن چه کومو خلقوته دې ورکړې دې دهغې په هرصورت کښې څه ناڅه فائده شته

**[۱۸۷۷] زکات په مال کښې د برکت سبب**

۱۸۷۷-( )[۱۹] [۱] وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«بَيْنَا رَجُلٌ بِفَلَاةٍ مِنَ الْأَرْضِ فَسَمِعَ صَوْتًا فِي سَحَابَةٍ: [۳] اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ، [۴] فَتَنَحَّى ذَلِكَ السَّحَابُ فَأَفْرَغَ مَاءَهُ فِي حَرَّةٍ، [۵] فَإِذَا شَرْجَةٌ مِنْ تِلْكَ الشِّرَاجِ [۶] قَدِ اسْتَوْعَبَتْ ذَلِكَ الْمَاءَ كُلَّهُ، [۷] فَتَتَبَّعَ الْمَاءَ فَإِذَا رَجُلٌ قَائِمٌ فِي حَدِيقَتِهِ [۸] يُحَوِّلُ الْمَاءَ بِمِسْحَاتِهِ، [۹] فَقَالَ لَهُ: يَا عَبْدَ اللَّهِ مَا اسْمُكَ؟ [۱۰] قَالَ: فُلَانٌ، الِاسْمُ الَّذِي سَمِعَ فِي السَّحَابَةِ [۱۱] فَقَالَ: يَا عَبْدَ اللَّهِ لِمَ تَسْأَلُنِي عَنِ اسْمِي؟ [۱۲] فَقَالَ: إِنِّي سَمِعْتُ صَوْتًا فِي السَّحَابِ الَّذِي هَذَا مَاؤُهُ يَقُولُ: [۱۳] اسْقِ حَدِيقَةَ فُلَانٍ لِاسْمِكَ فَمَا تَصْنَعُ فِيهَا؟ [۱۴] قَالَ: أَمَّا إِذْ قُلْتَ هَذَا فَإِنِّي أَنْظُرُ إِلَى مَا يَخْرُجُ مِنْهَا [۱۵] فَأَتَصَدَّقُ بِثُلُثِهِ وَآكُلُ أَنَا وَعِيَالِي ثُلُثًا [۱۶] وَأَرُدُّ فِيهَا ثُلُثَهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] ابوهريره ﷺ د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي چې حضور ﷺ وفرمايل [۲] يو سړي د زمکي په يوه حصه ځنګل کې ولاړ وو چې هغه د وريځې څخه يو آواز واوريدو [۳] يو ويونکي وايي چې د فلاني سړي باغ اوبه کړه [۴] بيا هغه وريخ يو طرف ته لاړه او په يو ځاي کې يي په کاڼريزه زمکه باندې اوبه ووروليې [۵] او هغه ټولې اوبه د هغه ولو څخه (چې هغه په زمکې کې وي) په يو نالي کې جمع کيدل شروع شو [۶] بيا هغه اوبه د هغه نالي په ذريعه يو طرف ته او بهيدلي [۷] نو هغه سړي هم په اوبو پسې روان شو اچې وګوري چې د کوم سړي باغ ته دا اوبه ځي هغه څوك دي) ناساپه هغه سړي يو سړي وليدلو چې په خپل پټي (کيتي) کې ولاړ دي [۸] د بيلچې په ذريعه هغه اوبه يي د باغ په و نو کې خوروليې [۹] هغه سړي د باغ والا څخه پوښتنه وکړه چې اي د الله بنده ستا نوم څه دي؟ [۱۰] هغه اوويل چې زما نوم فلاني دي او هغه هغه نوم وښودلو چې هغه د وريخ څخه اوريدلي وو [۱۱] بيا د باغ والا د هغه سړي څخه پوښتنه وکړه چې اي د الله ﷻ بنده ته زما د نوم پوښتنه ولي کوي؟ [۱۲] هغه سړي اوويل چې زه څکه پوښتنه کوم چې د کومې وريځې دا اوبه دی د هغې وريځې څخه ما يو آواز

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الزهد والرقائق/باب الصدقة فى المساكين (رقم) ۴۵ - (۲۹۸۴) واحمد فى المسند :۲/۲۹۶ واحمد فى ا لمسند ۲/۲۹۶

و ورېدو چه خوک وانې ۳] چې د فلاني باغ اوبه کړه هغه نوم سنا وو اوس مانه دا اووايه چې ته به دې باغ کې د څير څه کار کوي؟ اچې د هغې په وجه نه پدې فضيلت او برزګې سره عزتمند شوي ا؟] باغ والا اووېل چې دا وخت ته پوښتنه کوي نو څکه زه بې هم تا ته ښايم چې د دې باغ کوم پيداوار کيږي مخکې زه هغه ګورم [۵] بيا په هغې کې دريمه حصه خو د الله ﷺ په لار کې خرچ کوم او دريمه حصه زه او زما اهل وعيال خوري [۶] او دريمه حصه زه په دې باغ لګوم (مسلم)

**حل اللغات:** - ① بِفَلَاةٍ: صحرا او دښتې ته وانې ② سَحَابَةٍ: اوريخ. ③ اسْقِ: اوبه ورکړه، خړوب کړه. ④ فَتَنَحَّى: أَيْ تَبَعَّدَ: يو طرف ته لرې لاړه. ⑤ فَأَفْرَغَ: اوبه ئې راو وروليې ⑥ حَرَّةٍ: وَهِيَ أَرْضٌ ذَاتُ حِجَارَةٍ: کړېږنه زمکه ⑦ شَرْجَةٌ: مَسِيلُ الْمَاءِ: د اوبو بهيدلو وله، نالې. ⑧ اسْتَوْعَبَتْ: راجمع شوې تولې اوبه. ⑨ فَتَتَبَّعَ: بيا بهيدل شروع شو، اوبه رواني شوې. ⑩ يُحَوِّلُ: خوروليې ئې، د يوځاې نه ئې بل ځاې ته کولې. ⑪ بِمِسْحَاتِهِ: وَهِيَ الْمِجْرَفَةُ مِنَ الْحَدِيدِ أَوْ غَيْرِهِ: د اوسپنې يا د بل څه بيلچه.

**تسهيلات: قوله: "فُلَانٍ"**

د اوريخونه ددغه سړي نوم خودلې شوې وو مګر حضورپاک نوم وانخستلو اود فلانکي په لفظ سره ئې آواز اوکړو دغه شان د اوريخ نه آواز اوريدونکي سړي هم د دغه سړي نوم نه وو اوريدلې ليکن هغه د باغ والانوم هم د ده نه دوباره پوښتنه اوکړه دې دپاره چه يقين اوتسلي اوشي

**قوله: لِاسْمِكَ:** يعنی د اوريخ نه ئې ستانوم اخستې وو دې نه معلومه شوه چه دې سړی خپل نوم دغه تپوس کونکي ته خودلې وو

**قوله: إِذَا قُلْتَ هٰذَا:**

**دصدقې د برکت راز ښکاره کول:** - يعنی دا د راز خبره وه خوچه کله تاته دا راز ښکاره شو نواوس درته زه حقيقت ښايم

خلاصه دا چه هاتف غيبي د باغ والانوم په صراحت سره اخستې وو اوريدونکي اوريدلې وو ليکن د باغ والاپه مخکښې ئې پټ کړو دې دپاره چه يقين حاصل کړی بيا حضورپاک هم په دغه طريقه سره د فلانکي په لفظ سره د دغه سړی تذکره اوکړه

**تقطيع [۱۸۷۸] د دوو ناشکرو او يو شکر ګذار واقعه**

۱۸۷۸ ــ ( ) [۲۰] [۱] وَعَنْهُ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] " «إِنَّ ثَلَاثَةً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ أَبْرَصَ وَأَقْرَعَ وَأَعْمَى [۳] فَأَرَادَ اللّٰهُ أَنْ يَبْتَلِيَهُمْ فَبَعَثَ إِلَيْهِمْ مَلَكًا [۴] فَأَتَى الْأَبْرَصَ فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ [۵] قَالَ: لَوْنٌ حَسَنٌ وَجِلْدٌ حَسَنٌ [۶] وَيَذْهَبُ عَنِّي الَّذِي قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ " [۷] قَالَ: " فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ عَنْهُ قَذَرُهُ

( ) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الانبياء/باب حديث أبرص، وأعمى، وأقرع في بني إسرائيل(رقم ۳۴۶۴) ومسلم في كتاب الزهد والرقائق (رقم) ۱۰ - (۲۹۶۴)

[۸] وَأُعْطِيَ لَوْنًا حَسَنًا وَجِلْدًا حَسَنًا [۹] قَالَ: فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ [۱۰] قَالَ: الإِبِلُ أَوْ قَالَ الْبَقَرُ" - شَكَّ إِسْحَاقُ - [۱۱] إِلَّا أَنَّ الأَبْرَصَ أَوِ الأَقْرَعَ [۱۲] قَالَ أَحَدُهُمَا: الإِبِلُ وَقَالَ الآخَرُ: الْبَقَرُ، [۱۳] قَالَ: "فَأُعْطِيَ نَاقَةً عُشَرَاءَ، فَقَالَ: بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِيهَا"، [۱۴] قَالَ: "فَأَتَى الأَقْرَعَ فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ [۱۵] قَالَ: شَعَرٌ حَسَنٌ وَيَذْهَبُ عَنِّي هَذَا الَّذِي قَدْ قَذِرَنِي النَّاسُ"، [۱۶] قَالَ: "فَمَسَحَهُ فَذَهَبَ عَنْهُ"، [۱۷] قَالَ: "وَأُعْطِيَ شَعَرًا حَسَنًا، [۱۸] قَالَ: فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: الْبَقَرُ، [۱۹] فَأُعْطِيَ بَقَرَةً حَامِلًا، قَالَ: بَارَكَ اللَّهُ لَكَ فِيهَا"،

**ترجمه:** [۱] د ابوهريره رضي الله عنه په باره کې روايت دي چې هغه د حضور ﷺ څخه واوريدل [۲] چې په بني اسرائيلو کې درې سړي وو په هغوئ کې يو خو جزامي وو، دويم گنجې (پک) وو او دريم ړوند وو [۳] الله ﷻ هغوئ آزمائيل وغوښتل (چې دوي د نعمت الهي شکر ادا کوي يا نه) نو الله ﷻ هغوئ ته يوه فرشته (د يو مسکين او فقير په صورت کې) را اوليږله [۴] هغه فرشته اول هغه جزامي ته راغله د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چه ستا د ټولو څخه کوم شي زيات خوښ دي؟ [۵] جزامي اوويل چې ښه رنګ او د جسم بهترين څمړه [۶] او دا چې زه د دې جزام څخه نجات (دخلاصي لار) بيا مومم چې د دې په وجه خلق زما څخه نفرت کوي [۷] حضور ﷺ وفرمايل چې د دې په اوريدو سره فرشتي د هغه جزامي په بدن لاس راتير کړو نو د هغه جزام ختم شو [۸] هغه ته بهترين رنګ او څمړه ورکړل شوه [۹] بيا فرشتي ځني پوښتنه وکړه اوس ستا کوم مال د ټولو څخه زيات خوښ دي؟ [۱۰] هغه سړي اوويل چې اوښان يا غواګانې (د حديث يوراوي) اسحق رحمه الله ته شک دي [۱۱] چې د غواګانو د پاره جزامي ويلي وو او يا پک ويلي وو [۱۲] بهرحال په هغوئ کې يو خو د اوښ د پاره ويلي وو او دويم د غواګانو د پاره ويلي وو [۱۳] حضور ﷺ وفرمايل چې هغه سړي ته بلاربې اوښې ورکړې شوې بيا ورته فرشتي دعا وکړه چې الله ﷻ دې ستا په دې مال کې برکت واچوي [۱۴] حضور ﷺ وفرمايل چې بيا فرشته پک ته راغله پوښتنه يې ځني وکړه چې ستا کوم شي د ټولو څخه زيات خوښ دي؟ [۱۵] پک اوويل چې بهترين قسم ويښتان او دا چې د دې پک توب څخه خلاص شم چې د دې په وجه خلق زما څخه کرکه کوي [۱۶] حضور ﷺ وفرمايل چې فرشتي د هغه په سر لاس راتير کې او د هغه پک توب ختم شو [۱۷] او هغه ته بهترين قسم ويښتان ورکړې شول [۱۸] بيا فرشتي ځني پوښتنه وکړه چې اوس ستا کوم مال د ټولو څخه زيات خوښ دي؟ هغه سړي اوويل غواګانې [۱۹] نو هغه ته حامله (بلاربې) غواګانې ورکړې شوې او فرشتي هغه ته هم دعا وکړله چې الله ﷻ دي ستا په دې مال کې برکت واچوي

[۱] قَالَ: "فَأَتَى الأَعْمَى فَقَالَ: أَيُّ شَيْءٍ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ [۲] قَالَ: أَنْ يَرُدَّ اللَّهُ إِلَيَّ بَصَرِي فَأُبْصِرَ بِهِ النَّاسَ"، [۳] قَالَ: "فَمَسَحَهُ فَرَدَّ اللَّهُ إِلَيْهِ بَصَرَهُ، [۴] قَالَ: فَأَيُّ الْمَالِ أَحَبُّ إِلَيْكَ؟ قَالَ: الْغَنَمُ، [۵] فَأُعْطِيَ شَاةً وَالِدًا، فَأُنْتِجَ هَذَانِ وَوَلَّدَ هَذَا، [۶] فَكَانَ لِهَذَا وَادٍ مِنَ الإِبِلِ [۷] وَلِهَذَا وَادٍ مِنَ الْبَقَرِ [۸] وَلِهَذَا وَادٍ مِنَ الْغَنَمِ"،

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ فرمايي چې بيا هغه فرشته هغه ړوند ته راغله او د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چې کوم شي ستا د ټولو څخه زيات خوښ دي؟ [۲] ړوند ورته اوويل چې خداي ﷻ ماته بينايي راکړي چې زه د هغې په ذريعه خلق وينم [۳] حضور ﷺ وفرمايل چې فرشتې په هغه لاس راتير کړو او الله ﷻ هغه ته بينايي ورکړه [۴] بيا خپلې فرشتې پوښتنه وکړه اوس ستا کوم مال د ټولو څخه زيات خوښ دي؟ هغه اوويل بزې (چيلۍ) [۵] نو هغه ته بچې ورکونکې بزې (چيلۍ) ورکړې شوې په څه موده کې جزامي او ګنجي د اوښانو او د غواګانو په ذريعه او ړوند د بزو په ذريعه بچيان حاصل کړل (لکه چې الله ﷻ د دريواړو په مال کې بې انتهاء برکت واچولو) [۶] تر دې چې د جزامي د اوښانو څخه ځنګل ډک شو [۷] د يک د غواګانو څخه يو ځنګل ډک شو [۸] او د ړوند د بزو څخه يو ځنګل ډک شو

[۱] قَالَ: "ثُمَّ إِنَّهُ أَتَى الْأَبْرَصَ فِي صُورَتِهِ وَهَيْئَتِهِ [۲] فَقَالَ: رَجُلٌ مِسْكِينٌ قَدِ انْقَطَعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي [۳] فَلَا بَلَاغَ لِيَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللَّهِ [۴] ثُمَّ بِكَ أَسْأَلُكَ بِالَّذِي أَعْطَاكَ اللَّوْنَ الْحَسَنَ وَالْجِلْدَ الْحَسَنَ [۵] وَالْمَالَ بَعِيرًا أَتَبَلَّغُ بِهِ فِي سَفَرِي [۶] فَقَالَ: الْحُقُوقُ كَثِيرَةٌ [۷] فَقَالَ: إِنَّهُ كَأَنِّي أَعْرِفُكَ [۸] أَلَمْ تَكُنْ أَبْرَصَ يَقْذَرُكَ النَّاسُ فَقِيرًا فَأَعْطَاكَ اللَّهُ مَالًا؟ [۹] فَقَالَ: إِنَّمَا وَرِثْتُ هَذَا الْمَالَ كَابِرًا عَنْ كَابِرٍ [۱۰] فَقَالَ: إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللَّهُ إِلَى مَا كُنْتَ" [۱۱] قَالَ: "وَأَتَى الْأَقْرَعَ فِي صُورَتِهِ فَقَالَ لَهُ مِثْلَ مَا قَالَ لِهَذَا [۱۲] وَرَدَّ عَلَيْهِ مِثْلَ مَا رَدَّ عَلَى هَذَا [۱۳] فَقَالَ: إِنْ كُنْتَ كَاذِبًا فَصَيَّرَكَ اللَّهُ إِلَى مَا كُنْتَ

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ وفرمايل چې د دې څخه روسته فرشته بيا هغه جزامي ته په خپل مخکنې شکل او صورت کې راغله [۲] ورته وې اوويل چې زه يو مسکين سړې يم زما ټول مال د سفر په دوران کې ضايع [ختم] شو [۳] څکه نن منزل مقصود ته زما رسيدل ممکن نه دي خو که د الله ﷻ مهرباني وشي او د هغه څخه روسته ته ذريعه جوړه شې نو زما دا مشکل به آسانه شي [۴] نو زه تانه د هغه ذات واسطه درکولو سره چې هغه تاته ښه رنګ بهترين چمړه درکړې ده [۵] او مال يې عطاء کړې دې يو اوښ غوارم چې د هغې په ذريعه زما سفر پوره شي او زه خپل منزل مقصود ته ورسيږم [۶] هغه جزامي ورته اوويل چې په ما حقونه ډير زيات دي (يعنې هغه فرشتې ته يې دروغ اوويل چې زما د دې مال حقداران ډير زيات دي څکه تاته اوښ نشم درکولې) [۷] فرشتې ورته اوويل چې زه تا پيژنم [۸] ته هغه جزامي نه يې چې خلقو به ستا څخه نفرت کولو او ته محتاج وې خو الله ﷻ (بهترين رنګ او صحت او) مال درکړو [۹] جزامي اوويل چې دا خبره نه ده بلکه دا مال خو ماته د پلار او نيکه څخه په وراثت کې حاصل شوې دې [۱۰] فرشتې ورته اوويل چې که ته دروغ وايې نو الله ﷻ دې تا بيا د هغه حالت طرف ته وګرځوي کوم کې چې ته مخکې مبتلاء وې (يعنې تا دې بيا جزامي او مفلس کړي) [۱۱] حضور ﷺ فرمايي چې بيا هغه فرشته يک ته په خپل مخکنې شکل کې راغله او ورته يې هغه اوويل چې څه يې جزامي ته ويلي وو [۱۲] يک هم د

جزامي په شان جواب ورکړو نو فرښتې پک ته هم اوويل چې که ته دروغجن يې نو الله ﷻ دې تا هغه شان کړي څرنګه چې مخکې ته ‹پک او محتاج› وې

[۱] قَالَ: "وَأَتَى الْأَعْمَى فِي صُورَتِهِ وَهَيْئَتِهِ [۲] فَقَالَ: رَجُلٌ مِسْكِينٌ وَابْنُ سَبِيلٍ انْقَطَعَتْ بِيَ الْحِبَالُ فِي سَفَرِي [۳] فَلَا بَلَاغَ لِيَ الْيَوْمَ إِلَّا بِاللَّهِ ثُمَّ بِكَ [۴] أَسْأَلُكَ بِالَّذِي رَدَّ عَلَيْكَ بَصَرَكَ شَاةً أَتَبَلَّغُ بِهَا فِي سَفَرِي [۵] فَقَالَ: قَدْ كُنْتُ أَعْمَى فَرَدَّ اللَّهُ إِلَيَّ بَصَرِي [۶] فَخُذْ مَا شِئْتَ وَدَعْ مَا شِئْتَ [۷] فَوَاللَّهِ لَا أَجْهَدُكَ الْيَوْمَ بِشَيْءٍ أَخَذْتَهُ لِلَّهِ [۸] فَقَالَ: أَمْسِكْ مَالَكَ فَإِنَّمَا ابْتُلِيتُمْ [۹] فَقَدْ رَضِيَ عَنْكَ وَسَخِطَ عَلَى صَاحِبَيْكَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضور ﷺ فرمايي چې د دې څخه روسته فرښته هغه ړانده ته په خپل مخکني شکل او صورت کې راغله [۲] هغه ته يې هم داسې اوويل چې زه يو مسکين يم او مسافر انسان يم زما ټول سامان په سفر کې ختم شو [۳] خکه نن منزل مقصود ته رسيدل زما د پاره ممکن نه دي خو که د الله ﷻ مهرباني شامل حال شي او ته د هغې ذريعه جوړه شې [۴] نو زه د هغه ذات واسطه درکولو سره چې هغه تاته بينايي عطاء کړله ستا څخه يوه بزه غواړم چې د هغې په ذريعه خپل سفر پوره کړم [۵] ړانده په ډير خنده پيشاني سره ورته اوويل چې بيشکه مخکې زه يو ړوند وم الله ﷻ راته بينايي راکړله نو زما ټولې بزې ‹چيلۍ› حاضرې دي [۶] په دې کې چې کومې غواړې هغه واخله او کومې چې دې خوښې نه وي هغه پريږده [۷] ته چې نن د الله د پاره څه اخلې قسم په خداي د هغې د واپس کولو تکليف به نه درکوم [۸] ‹د دې په اوريدو سره› فرښتې ورته اوويل چې ستا مال دې تاته مبارک وي ته خپل مال د خان سره وساته ‹ماته ستا د مال قطعاً ضرورت نشته› دا وخت خو ته يواځې په آزمينت ‹آزمايش› کې مبتلاء شوې وې [يعنې الله ﷻ ستا امتحان اخستو چې آيا تاته خپل پخواني حال ياد هم دي او که نه او ته د الله د نعمتونو شکر هم ادا کوې که نه؟ ‹نو ته په آزمايش کې پوره وختې!› [۹] الله ﷻ ستا څخه راضي او خوشحاله شو او ستا هغه دوه بدبخته ملګري يعنې جزامي او پک ناشکره ثابت شو خکه هغوئ د الله ﷻ په نزد مبغوض ‹غضب وهلي› وګرخول شو ‹بخاري مسلم›

**حل اللغات:** - ① أَبْرَصَ: برګي مرض والا. پمن. ② أَقْرَعَ: أَيِ الَّذِي لَا شَعْرَ عَلَى رَأْسِهِ: يعنې ګنجي. ③ قَذِرَنِي: أَيْ: كَرِهُوا افْتَالِطَنِي: يعنې خلق زما نه کرکه کوي ④ لَوْنًا: رنګ. خانسته شکل. ⑤ نَاقَةً عُشَرَاءَ: د لسو مياشتو بلاربې اوښې ته وائي ⑥ فَأُنْتِجَ: بچي ني راوړل ⑦ وَادٍ: وادي. کنداو. ⑧ الْحِبَالُ: حبل رسۍ ته وائي. يعنې د سفر ټول اسباب او ذرائع کټ شوي ⑨ بَلَاغَ: يعنې د کفايت او رسيدو څه ذريعه نشته ⑩ بَعِيرًا: اوښ. ⑪ كَابِرًا عَنْ كَابِرٍ: يعنې يو مشر د بل مشر نه حاصل کړې يعنې ميراث کښې ملاو شوې دي ⑫ فَصَيَّرَكَ: أَيْ: جَعَلَكَ حَقِيرًا فَقِيرًا: يعنې الله دې تا خپل زوړ حالت د فقيرئ او ذلت ته واپس اوګرخوي ⑬ ابْنُ سَبِيلٍ: أَيْ: مُسَافِرٌ: مسافر ⑭ دَعْ: پريږده ⑮ لَا أَجْهَدُكَ: تکليف به نه درکوم. ⑯ سَخِطَ: خفه شو.

**تسهیلات:**

**قوله: "وَأَقْرَعَ"**

**د ګنجې کیدو بیماری:** -دَدې ترجمه په پښتو کښې ګنجی سره کولې شی لیکن دَدې حقیقت دَ بناریې خلق نه پیژنی په کلو کښې به اول دا مرض وو چه دَهلکانو په سرونو کښې به دَننکو او دانو بیماری وه اودَ سر نه به ئې تول ویښته وتل او ځرمن به ئې هم وتله او زخم به پاتې کیدو دکوم نه چه به بدبوئی اوچتیدله اوکله به بالغ کیدو پورې دا بیماری وه او خلق به دَ هغه نه لرې تختیدل اودَ هغه نه به ئې نفرت کولو او هغه به ئې دَ ګنجی په نوم سره یادولو نن صبا دَ انګریزیت دور دې کوم خلق چه سر خروی هغه پورې توقې کوی اوهغه ته ګنجا پتیل وائی دا ګنجی کیدل نور دی او هغه ګنجی کیدل نور

**قوله: مَلَكًا:**

**انسانی شکل کښې د فرشتې راتلل:** - یعنی انسانی شکل کښې هغوی له فرښته راغله پخوانو امتونو کښې به داسې کیدل اوعام وو په دې امت کښې دا سلسله نه ده.

**قوله: "ثُمَّ بِكَ"**

**د ثم کلمې راوړلو وجه:** -یا بیا دَ سبب په توګه ستادَ امداد په ذریعه سره، دلته دَ ثم راوړلو سره دَ ادب ښه خیال ساتلې شوې دې ځکه چه ثم دَ تراخی دَپاره دې په کوم سره چه کلام جدا شو که چرې "وبك" وې نو په هغې کښې دَ فعل شریکدو شك راتلې شو په کوم کښې چه دَ بې ادبئی خطره وه

**[۱۸۷۹] حقیقی محتاج ته ضرور څه ورکول**

۱۸۷۹-()[۲۱]۩«وَعَنْ أُمِّ بُجَيْدٍ قَالَتْ: قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ۩ إِنَّ الْمِسْكِينَ لَيَقِفُ عَلَى بَابِي حَتَّى أَسْتَحْيِيَ۩ فَلَا أَجِدُ فِي بَيْتِي مَا أَدْفَعُ فِي يَدِهِ،۩ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "ادْفَعِي فِي يَدِهِ وَلَوْ ظِلْفًا مُحْرَقًا»". ۩رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه:** ۩ بی بی ام بجید رضی الله عنها وایې چې ماعرض وکړو یا رسول الله! ﷺ ۩ هر کله چې یو سوالګر زما په دروازه اودریږي (او زما څخه څه غواړي) نو ماته ډیر شرم محسوسیږي ۩ ځکه چې زه په خپل کور کې څه داسې شي نه بیاموم چې د هغه په لاس کې یي ورکړم ۩ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل چې د هغه په لاس کې څه نا څه ورکړه خواه که هغه سوزیدلي نوک وي. ۩ احمد، ابوداؤد، ترمذي، او امام ترمذي رحمه الله فرمایلي دي چې دا حدیث حسن صحیح دي.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب حق السائل(رقم-۱۶۶۷) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی حق السائل(رقم-۶۶۵) والنسائی کتاب الزکاة/باب شاذ بزیادة اقرؤوا(رقم-۲۵۷٤) واحمد فی المسند ۳۸۳/۶

**حل اللغات:** - ① أَسْتَحِيَ: حيار راخي، شرم محسوسوم ② ظِلْفًا: نوک مراد ترې معمولی څيز دې ③ مُحْرَقًا: سوزيدلې (دا د مبالغې په طور دی)

**تسهيلات:**

**قوله: اذْفَعِي فِي يَدِهِ وَلَوْ ظِلْفًا مُحْرَقًا**

**سائل ته خامخا د ورکولو محمل:** - رسول کريم ﷺ د صدقې خيرات باره کښې دا حکم د مبالغې په طور فرمائيلې دې چې سائل خالی لاس ليږلو نه دا بهتر دی چې هغه ته په لاس کښې څه ضرور ورکړې شی اګر چې هغه څيز کم تر او حقير ولې وی

**[١٨٨٠] سائل ته د نه ورکولو عبرتناکه واقعه**

١٨٨٠ - ( )[٢٢] ①«وَعَنْ مَوْلًى لِعُثْمَانَ قَالَ: أُهْدِيَ لِأُمِّ سَلَمَةَ بُضْعَةٌ مِنْ لَحْمٍ، ② وَكَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُعْجِبُهُ اللَّحْمُ ③ فَقَالَتْ لِلْخَادِمِ: ضَعِيهِ فِي الْبَيْتِ لَعَلَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْكُلُهُ، ④ فَوَضَعَتْهُ فِي كُوَّةِ الْبَيْتِ، ⑤ وَجَاءَ سَائِلٌ فَقَامَ عَلَى الْبَابِ فَقَالَ: تَصَدَّقُوا بَارَكَ اللَّهُ فِيكُمْ، ⑥ فَقَالُوا: بَارَكَ اللَّهُ فِيكَ، فَذَهَبَ السَّائِلُ، ⑦ فَدَخَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "يَا أُمَّ سَلَمَةَ هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ أَطْعَمُهُ" ⑧ فَقَالَتْ: نَعَمْ، قَالَتْ لِلْخَادِمِ: اذْهَبِي فَأْتِي رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِذَلِكَ اللَّحْمِ، ⑨ فَذَهَبَتْ فَلَمْ تَجِدْ فِي الْكُوَّةِ إِلَّا قِطْعَةَ مَرْوَةٍ، ⑩ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "فَإِنَّ ذَلِكَ اللَّحْمَ عَادَ مَرْوَةً لِمَا لَمْ تُعْطُوهُ السَّائِلَ" رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي دَلَائِلِ النُّبُوَّةِ».

**ترجمه:** ① د حضرت عثمان رضي الله عنه آزاد کړی غلام وايي چې يو ځل د بي بي ام سلمه رضي الله عنها په خدمت کې (پوخ کړې) د غوښې يونوکې [ټکړه] د تحفې په طور راغله ② د رسول الله ﷺ غوښه ډيره خوښه وه ③ څکه ام سلمه رضي الله عنها خپلې وينځې ته وفرمايل چې دا غوښه په کور کښې په حفاظت سره کيږده شايد رسول الله ﷺ دا اوخوری ④ وينځې هغه غوښه په يو طاق کې کيخودله ⑤ اتفاقاً هغه وخت يو سائل په دروازه ودريدو سره په اوچت آواز سره يې اوويل چې اې کور والو د الله تعالی ﷻ په لار کې څه مهرباني اوکړئ الله ﷻ دې تاسو ته برکت درکړي ⑥ کور والا ورته اوويل چې الله تعالی ﷻ دې تاته برکت درکړي (يعني سائل ته يې داسې جواب ورکړو څرنګه چې زمونږ سره سائل ته د ورکولو د پاره څه نه وي نو ورته وايو چې بابا معاف کړه) سائل واپس لاړو ⑦ کوم وخت چې رسول الله ﷺ کور ته تشريف راوړو نو وي فرمايل چې اې ام سلمه رضي الله عنها ستا سره د خوراک د پاره څه شې شته چه زه يې اوخورم ⑧ ام سلمه رضي الله عنها اوويل چې هو بيا هغې هغه وينځې ته اوويل چې ورشه او د رسول الله ﷺ د پاره هغه غوښه راواخله ⑨ مينځه د غوښې راوړلو د پاره لاړه خو طاق ته رسيدو سره هغه حيرانه شوه هرکله چې هغه وليدل چې د غوښې نوم او نښان هم هلته نه وو

---

[١] اخرجه البيهقي في دلائل النبوة

بلکه د غوښې په ځای د سپین کاڼي یوه ټکره پرته وه [١٠] حضور ﷺ د دې په لیدو سره وفرمایل چې تاسو سائل ته هیڅ ورنه کړل او هغه مو خالي لاس واپس کړو خکه هغه غوښې د سپین کاڼي شکل اختیار کړو. بیهقي رحمه الله دا روایت په دلایل النبوت کې نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① بُضْعَةٌ أَيْ: قِطْعَةٌ: یوه ټکره، ② كُوَّةٌ اى طَاق: طاخ ته وائی ③ مَرْوَةٌ أَيْ: حَجَرٌ أَبْيَض: د مرمر سپین کاڼي

**تسهیلات:**

**قوله:** بَارَكَ اللهُ:

دا په اصل کښې د سوال کونکی د سوال جواب دې چه الله تعالی دې په تاباندې برکت اوفرمائی د ورکړې دپاره هیڅ نشته دې مونږ معاف کړه

**[١٨٨١] دالله په نوم د سوال په کولو کښې وعید**

١٨٨١ - (١) [٢٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِشَرِّ النَّاسِ مَنْزِلًا؟" قِيلَ: نَعَمْ، [٣] قَالَ: "الَّذِي يُسْأَلُ بِاللهِ وَلَا يُعْطِي بِهِ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] آیا زه تاسو ته ونه ښایم چې د الله تعالی په نزد په اعتبار د مرتبې بدترین سړي څوك دي؟ صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض وکړو چې هو یا رسول الله ضرور یې وښایه [٣] حضور ﷺ وفرمایل چې هغه سړي چې د هغه څخه د الله تعالی په نامه سوال وشي او هغه هغه سوال پوره نه کړي (احمد)

**حل اللغات:** - ① مَنْزِلًا: أَيْ: مَرْتَبَةً: د مرتبې په لحاظ

**تسهیلات:**

**قوله:** يُسْأَلُ بِاللهِ:

د دې جملې مفهوم دادې چه د کوم سړی نه د الله تعالی په نوم سوال اوکړې شي او هغه د دې د پوره کولو طاقت لري اوپوره نې نه کړی هغه ډیر خراب سړې دې بهرحال يُعْطِي د معروف صیغه ده او يُسْئَل د مجهول صیغه ده

**[١٨٨٢] د مال په راجمع کولو کښې د حضرت ابوذرغفاری رضي الله عنه مسلك**

١٨٨٢ - (٢) [٢٤] [١] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّهُ اسْتَأْذَنَ عَلَى عُثْمَانَ [٢] فَأَذِنَ لَهُ وَبِيَدِهِ عَصَاهُ [٣] فَقَالَ عُثْمَانُ: يَا كَعْبُ إِنَّ عَبْدَ الرَّحْمَنِ تُوُفِّيَ وَتَرَكَ مَالًا فَمَا تَرَى فِيهِ؟ [٤] فَقَالَ: إِنْ كَانَ يَصِلُ فِيهِ حَقَّ اللهِ فَلَا بَأْسَ عَلَيْهِ، [٥] فَرَفَعَ أَبُو ذَرٍّ عَصَاهُ فَضَرَبَ كَعْبًا وَقَالَ: [٦] سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٧] "«مَا أُحِبُّ لَوْ أَنَّ لِي هَذَا الْجَبَلَ

(١) اخرجه النسائی فی السنن کتاب الزکاة/باب من يسأل بالله عز وجل ولا يعطی به (رقم-٢٥٦٩)

(٢) اخرجه احمد فی المسند: ١/٦٣

ذهبا أنفقه (۸) وتعمل مني أذر خلفي منه ست أواقي» (۹) أنشدك بالله يا عثمان أسمعته؟ ثلاث مرات، قال: نعم. رواه أحمد

**ترجمه:** [۱] د حضرت ابوذر غفاري ﷺ په باره كې روايت دې چې يو ځل هغه د حضرت عثمان غني ﷺ ځخه د حاضرۍ اجازت وغوښتلو [۲] نو عثمان غني ﷺ هغه ته اجازت ورکړو کوم وخت چې هغه حاضر شو نو هغه وخت د هغه په لاس کې عصا لګېده وه [۳] په دې موقع حضرت عثمان ﷺ د حضرت كعب ﷺ نه (چې هغه وخت موجود وو) وفرمايل چې اې كعب! عبد الرحمن بن عوف ﷺ وفات شو او ډير مال يې په خان پسې پرېښې دې ته په دې باره کې څه وايې؟ آيا د هغه د مال بې انتها کثرت او زياتوالي د هغه د کمال ايمان د باره مضر وو يا نه؟ [۴] حضرت کعب ﷺ اوويل چې که عبد الرحمن ﷺ په دې مال کې د الله ﷻ حق (يعني زکوة صدقات وغيره) ادا کول نو د هغه په باره کې د هيڅ خوف ګنجايش نشته [۵] د دې په اوريدو سره حضرت ابوذر ﷺ خپله امسا پورته کړه کعب ﷺ يې ورباندې ووهلو او بيا يې اوويل [۶] چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [۷] که ما سره دا غر (احد) د سروزرو وي او زه يې د الله ﷻ په لار کې خرچ کړم [۸] نو با وجود د دې چې هغه مقبول هم شي زه دا نه خوښوم چې زه په هغې کې شپږ اوقيه (يعني دوه سوه څلويښت درهم) هم په خان پسې ورروسته پرېږدم [۹] بيا ابوذر ﷺ حضرت عثمان ﷺ مخاطب کولو سره ورته وفرمايل چې اې عثمان! زه تاته د الله په نوم قسم درکولو سره پوښتنه درڅخه کوم چې تا د حضور ﷺ دا ارشاد گرامي نه دې اوريدلې؟ حضرت ابوذر ﷺ دا درې ځله وفرمايل حضرت عثمان ﷺ اوويل چې هو ما هم دا ارشاد گرامي اوريدلي دي (احمد)

**حل اللغات:** - ① عَصَاهُ: همسا، کونتی ② نعمل: پوره کول نې، اداکول نې ③ أذرُ: أي أن أترك: چه زه پريږدم ④ أواقي: د اوقيه جمع ده، دچاندۍ روپۍ ده يو اوقيه د څلويښت درهمو برابر وی نو شپږ اوقيه دوه سوه او څلويښت درهمه شو ⑤ انشدك: زه تاته د الله تعالى قسم درکوم

**تسهيلات:**

**قوله: فضرب كعبا:**

**د كعب څخه مراد:** - دلته د كعب نه مراد كعب احبار دي چه صحابى نه دي بلكه تابعى دي

**د ابوذر غفاري زهد:** - عبدالرحمن بن عوف ﷺ خويود لونى شان والاصحابى دي كوم چه په عشره مبشره کښې هم دې روستو بيا ډير مالدارشوې وو حضرت ابوذرغفارى ﷺ په دې امت کښې يومثالى زاهدوو که چرې داسې اوونيلې شى نوبې خايه به نه وى چه هغه په پرهيزګارۍ کښې دحضرت عيسى ﷺ سره يوقسم مشابهت لرلو دهغوى مسلك وو چه کوم سړې چه سحر خوراك اوخورى او د ماښام دپاره نې ذخيره کړى نوهغه د ګناه ارتکاب اوکړو

**د مديني څخه د جلاوطنۍ سبب:** - د صحابه کرامو په دور کښې به خلقو د هغوی ﷺ قدر کولو او هره خبره به ئې قبلوله خوچه کله تابعين پيداشو نو خلقو به د هغوی خبره زياته نه برداشت کوله نو هره ورځ به څه نا څه جګړه جوړيدله په دې وجه حضرت عثمان بن عفان ﷺ هغه د مديني نه اوويستلو او مديني سره نيزدې د ربذه په مقام کښې اوساتلو هغه هم هلته پروت وو او د حضور پاك د پشنګوئي مطابق هم هلته وفات شو او هم هلته دفن شو

**[۱۸۸۲] د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مال جمع کولو څخه نفرت**

۱۸۸۲- ( ) [۲۵] [۱] «وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ الْحَارِثِ قَالَ: صَلَّيْتُ وَرَاءَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْمَدِينَةِ الْعَصْرَ، [۲] فَسَلَّمَ ثُمَّ قَامَ مُسْرِعًا فَتَخَطَّى رِقَابَ النَّاسِ إِلَى بَعْضِ حُجَرِ نِسَائِهِ، [۳] فَفَزِعَ النَّاسُ مِنْ سُرْعَتِهِ، فَخَرَجَ عَلَيْهِمْ، [۴] فَرَأَى أَنَّهُمْ قَدْ عَجِبُوا مِنْ سُرْعَتِهِ، [۵] قَالَ: "ذَكَرْتُ شَيْئًا مِنْ تِبْرٍ عِنْدَنَا [۶] فَكَرِهْتُ أَنْ يَحْبِسَنِي فَأَمَرْتُ بِقِسْمَتِهِ»" رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ، [۷] وَفِي رِوَايَةٍ لَهُ قَالَ: "«كُنْتُ خَلَّفْتُ فِي الْبَيْتِ تِبْرًا مِنَ الصَّدَقَةِ [۸] فَكَرِهْتُ أَنْ أُبَيِّتَهُ»".

**ترجمه:** [۱] حضرت عقبه ابن حارث ﷺ بيان کوي چې يوه ورځ ما په مدينه کې په رسول الله ﷺ پسې د مازيګر لمونځ اوکړو [۲] کوم وخت چې حضور ﷺ سلام وګرځولو نو حضور ﷺ په ډيره تيزۍ سره ودريدلو او د خلقو په څټونو قدم اوچتولو سره د خپلو بيبيانو بعضو حجرو طرفته لاړلو [۳] صحابه ﷺ د حضور ﷺ په دې تيزي اوبريدل کوم وخت چې حضور ﷺ د حجرې څخه بهر تشريف راوړو [۴] او صحابه ﷺ يې په خپلې تيزي حيران وليدل نو وي فرمايل [۵] چې اچانك ماته راياد شو چې زمونږ سره د سرو زرو يو شې موجود دې [۶] او ما دا خبره خوښه نه کړه چې هغه ما (د مقام قرب څخه) منع کړو نو سمدستي تلو سره اهل بيت ته مې حکم ورکړو چې د سروزرو هغه څيز دې تقسيم کړل شي. بخاري. [۷] او د بخاري د يو دويم روايت دا الفاظ دي چې حضور ﷺ وفرمايل ما په زکوٰة کې راغلي د سروزرو يوه ټکړه په کور کې پريښې وه، چې د تقسيمولو څخه روسته بچ شوي وه، [۸] نو ما دا خوښه نه کړه چې زه يې د خان سره د يوې شپې د پاره هم پريږدم

**حل اللغات:** - ① تَخَطَّى: قدم اوچتولو سره لاړو ② رِقَاب: د رقبة جمع ده، څټ ته وائي ③ فَفَزِعَ: اوبريدل خلق. ④ تِبْر: د سرو زرو خښتې ته وائي ⑤ يَحْبِسَنِي: مطلب دا دې چه ما چرته دا سره زر د مقام قرب نه منع نه کړي دا د اهل الله خاص شان دې

**د راوي مختصر تعارف:** د حديث د راوي حضرت عقبه بن حارث مختصر حالات دا دي چه د دوی نوم عقبه، کنيت ابوسروعه، د پلار نوم ئې حارث دې علامه نووی د دوی کنيت ابوسروعه خودلې دې او نور اسماء الرجال فرمائي چه ابوسروعه د دوی د ورور نوم دې د مکې د فتحې په موقع مسلمان شوې وو د دوی نه په بخاری کې درې روايتونه منقول دي [۲]

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الزکاة/باب من أحب تعجيل الصدقة من يومها (رقم-۱۴۳۰) والنسائی کتاب السهو/باب الرخصة للإمام فی تخطی رقاب الناس (رقم-۱۳۶۵) واحمد فی المسند ۷/۴

**تسهيلات:**

**قوله: "أَبَيْتَهُ"**

يعنې چه هغه سره زر زما په کورکښې شپه تيره کړې اوزه هغه په خپل کور کښې د شپې تيرولو د پاره کيږدم

**[۱۸۸۳-] د پيغمبر مال نه جمع کول**

۱۸۸۳-(۱)[۲۶] ①«وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّهَا قَالَتْ: ②كَانَ لِرَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عِنْدِي فِي مَرَضِهِ سِتَّةُ دَنَانِيرَ أَوْ سَبْعَةٌ ③فَأَمَرَنِي رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنْ أُفَرِّقَهَا ④فَشَغَلَنِي وَجَعُ نَبِيِّ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⑤ثُمَّ سَأَلَنِي عَنْهَا مَا فَعَلَتِ السِّتَّةُ أَوِ السَّبْعَةُ؟ ⑥قُلْتُ: لَا وَاللّٰهِ لَقَدْ شَغَلَنِي وَجَعُكَ ⑦فَدَعَا بِهَا ثُمَّ وَضَعَهَا فِي كَفِّهِ فَقَالَ: ⑧"مَا ظَنُّ نَبِيِّ اللّٰهِ لَوْ لَقِيَ اللّٰهَ -عَزَّ وَجَلَّ- وَهَذِهِ عِنْدَهُ"». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① د مؤمنانو مور بي بي عايشه ﷺ فرمايي ② چې د رسول الله ﷺ د مريضى په دوران کې ما سره د رسول الله ﷺ (په عربو کې د هغه وخت رائج) شپږ يا اووه اشرفي وې ③ حضور ﷺ ماته حکم اوکړو چې زه يې تقسيم کړم ④ ليکن د حضور ﷺ مريضى د هغې د تقسيمولو څخه زه منع کړم (يعني د حضور ﷺ د مريضى په وجه ماته د هغې د تقسيمولو مهلت ملاو نه شو) ⑤ نو زما څخه بيا حضور ﷺ پوښتنه وکړه چې د هغه شپږ يا اووه اشرفو څه وشو؟ ⑥ بي بي عايشه ﷺ وايي چې ما عرض وکړو ما لا هغه نه دي تقسيم کړي قسم په خداي ستا بيمارۍ [د هغې د تقسيمولو څخه] زه منع کړي يم ⑦ (د دې په اوريدو سره) حضور ﷺ هغه اشرفي را وغوښتلې هغه يې په خپلو لاسونو مبارکو باندې اېښودلو سره وفرمايل ⑧ چې د الله د نبي به څه ګمان وي چې هغه د الله ﷻ سره په داسې حال کې ملاقات وکړي چې دا اشرفي د هغه سره وي (احمد)

**حل اللغات:** - ① أُفَرِّقَهَا: چه زه دا دنانير اشرفۍ تقسيم کړم ② فَشَغَلَنِي. مشغوله ئې کړم زه. ③ وَجَعُ: درد او تکليف

**تسهيلات:**

**قوله: مَا ظَنُّ نَبِيِّ اللّٰهِ لَوْ لَقِيَ اللّٰهَ -عَزَّ وَجَلَّ- وَهَذِهِ عِنْدَهُ:**

**د نبي عليه السلام په مرض الوفات کښې اشرفۍ صدقه کول:** - د نبی کريم ﷺ د مرګ په وخت کښې شپږ يا اووه اشرفی د نبی کريم ﷺ د ملکيت په طور حضرت عائشه رضی الله عنها سره وې نو حضرت رسول کريم ﷺ دا هم د مرض په حالت کښې تقسيم کړل چې زما الله ﷻ سره ملاقات وی نو چې په داسې حال کښې وی چې ما ● سره هيڅ مال نه وی ځکه چې د مال او دولت جمع کيدل د انبياء کرامو د شان خلاف دی د انبياء کرامو ميراث علم وی درهم او دينار نه وی

(۱) اخرجه احمد في المسند: ۶/۱۰۴

**[۱۸۸۵] د ذخيره کولو په ځای د توکل على الله تعليم**

۱۸۸۵-( ) [۲۷] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - دَخَلَ عَلَى بِلَالٍ [۲] وَعِنْدَهُ صُبْرَةٌ مِنْ تَمْرٍ فَقَالَ: "مَا هَذَا يَا بِلَالُ؟ [۳]" قَالَ: شَيْءٌ ادَّخَرْتُهُ لِغَدٍ، [۴] فَقَالَ: "أَمَا تَخْشَى أَنْ تَرَى لَهُ غَدًا بُخَارًا فِي جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟ [۵] أَنْفِقْ بِلَالُ وَلَا تَخْشَ مِنْ ذِي الْعَرْشِ إِقْلَالًا»".

**ترجمه:** [۱] ابو هريره رضي الله عنه فرمايي چې يوه ورځ نبي كريم ﷺ د حضرت بلال رضي الله عنه خواته تشريف راوړلو [۲] او وي ليدل چې د هغه سره د خرما يو کوټه (ډيرئ) پرته ده حضور ﷺ تري پوښتنه وکړه چې اې بلاله! دا څه دي؟ [۳] بلال رضي الله عنه عرض وکړو دا هغه څيز دي چې ما صبا (يعني آينده پيښيدونکي ضرورت) د پاره جمع کړې دی [۴] حضور ﷺ ورته وفرمايل چې آيا ته د دې خبرې څخه نه يريږې چې صبا ته د قيامت په ورځ باندې د دوزخ په اور کې د دې بخار ووينې [۵] (بيا يې وفرمايل چه) اې بلال رضي الله عنه دا ذخيره د الله ﷻ په لار کې خرج کړه او د صاحب عرش څخه د فقر او د افلاس خوف مه کوه

**حل اللغات:-** ① صُبْرَةٌ: أَيْ: كُوْمَةٌ: توکرئ ② اِدَّخَرْتُهُ: جمع کړې او ذخيره کړې مې ده ③ لِغَدٍ: د آئنده وخت د پاره. ④ بُخَارًا: گرموالې، د اور نزديکت ترې مراد دې ⑤ ذِي الْعَرْشِ: د عرش مالک. ⑥ إِقْلَالًا: دکموالی نه، د فقر او محتاجئ نه

**تسهيلات:**

**قوله: أَمَا تَخْشَى أَنْ تَرَى لَهُ غَدًا:**

**د غد څخه مراد:-** په دې کښې د غدا (صبا) څخه مراد د قيامت ورځ ده نو داسې به ونيلې شي چې په دې جمله کښې د يوم القيامة الفاظ د غد د پاره د تاکيد په طور استعمال شوی دی

**قوله: بُخَارًا فِي جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟:**

**د بخار څخه مراد:-** د بخار څخه مراد د تبې اثر دې مطلب دادې چې آيا ته داغواړې چې د قيامت په ورځ د دې په سبب د دوزخ د اور اثر تاته اورسې داددې خبرې څخه کنايه ده چې ذخيره جوړول دوزخ سره نزدې دی او د دې حاصل دادې چې که ته په الله ﷻ باندې توکل نه کوې او د فقر او افلاس په وجه ذخيره اندوزی کوې نو د دې په وجه به دوزخ ته نزدې شې

**قوله: وَلَا تَخْشَ مِنْ ذِي الْعَرْشِ إِقْلَالًا:**

**د مذکوره جملې مطلب:-** د حديث پاك د آخرى الفاظو مطلب دادې چې ذخيره اندوزی مه کوه بلکه څه چې درسره جمع دی هغه د الله ﷻ په لار کښې خرج کړه د فقر او افلاس فکر مه کوه بلکه په الله ﷻ باندې اعتماد او بهروسه اوساته کوم عظيم ذات چې عرش عظيم پيدا کړې دې او ستا تخليق ئې اوکړو نو هغه به تاته روزی هم رسوی

[۱] اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم-۱۳۴۶)

**ځان سره د مال ساتلو جواز:** - يعني حضرت رسول كريم ﷺ حضرت بلال رضی الله عنه ته دا حكم د تعليم په طور وركړو چې مقام كمال حاصل كړه كوم چې توكل او ذات حق بندې كامل اعتماد دې كنې تركومې چې د مسئلې تعلق دې نو علماء كرام فرمائي چې د خپل او د خپل اهل وعيال د ضرورت مطابق ذخيره كول جائز دي

**[١٨٨٦] د سخاوت فضيلت**

١٨٨٦-( )[٢٨] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «السَّخَاءُ شَجَرَةٌ فِي الْجَنَّةِ [٣] فَمَنْ كَانَ سَخِيًّا أَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْهَا [٤] فَلَمْ يَتْرُكْهُ الْغُصْنُ حَتَّى يُدْخِلَهُ الْجَنَّةَ [٥] وَالشُّحُّ شَجَرَةٌ فِي النَّارِ [٦] فَمَنْ كَانَ شَحِيحًا أَخَذَ بِغُصْنٍ مِنْهَا [٧] فَلَمْ يَتْرُكْهُ الْغُصْنُ حَتَّى يُدْخِلَهُ النَّارَ» "رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [١] ابو هريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] سخاوت په جنت كې يوه ونه ده [٣] كوم سړي چې سخي وي هغه به د هغه ونې څانګه ونيسي [٤] نو هغه څانګه به هغه نه پريږدي تر څو پورې چې هغه په جنت كې داخل نه كړي [٥] دغه شان بخل د دوزخ يوه ونه ده [٦] كوم سړي چې بخيل وي هغه به د هغه ونې څانګه ونيسي [٧] نو هغه څانګه به هغه نه پريږدي تر څو پورې چې هغه په دوزخ كې داخل نه كړي. دا دواړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان كې نقل كړي دي

**حل اللغات:** - ① السَّخَاءُ: سخاوت. ② بِغُصْنٍ: بناخ. څانګه. ③ الشُّحُّ: أي: الْبُخْلُ: كنجوسي. بخيل توب ④ شَحِيحًا: بخيل

**تسهيلات:**

**قوله: السَّخَاءُ شَجَرَةٌ فِي الْجَنَّةِ:**

**د سخاوت جنتي ونې سره د تشبيه وركولو وجوهات:** -

① په لوې والى كښې تشبيه ده چې څنګه ونه لويه وى داشان د سخاوت درجه هم لويه وى

② د ونې ډير زيات بناخونه وى په دې بناء دې سره تشبيه وركړې شوې ده چې څنګه دونې مختلف بناخونه وى داشان د سخاوت هم ډيرې زياتې شعبې دى او د سخاوت مثال د يوې ونې پشان دې چې جرړې ئې په جنت كښې دى او بناخونه ئې په دنيا كښې دى لهذا كوم كس چې په دنيا كښې سخاوت اوكړو او په دنيا كښې ئې ددې ونې يو بناخ اونيولو نو دا بناخ به دې جنت ته داخل كړى چا چې بخل اوكړو نو هغه داسې بناخ اونيولو چې هغه به دې جهنم ته داخل كړى (مرقاة ص ١٥٥)

[١] اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم ١٠٨٧٦)

**د سخاوت درجات:-**

① د سخاوت ادنی درجه په شریعت کښې دا ده چې انسان صدقه واجبه ادا کړی

② په طریقت کښې د سخاوت ادنی درجه داده چې صدقه واجبه باندې قناعت اونه کړی بلکه نوافل صدقې هم ورکړی

③ داهل معرفت په نزد د سخاوت ادنی درجه داده چې پخپلو ضرورتونو باندې د نورو ضرورتو لره ترجیح ورکړی ﴿وَيُؤْثِرُونَ عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ وَلَوْ كَانَ بِهِمْ خَصَاصَةٌ﴾[1]

**[۱۸۸۷] په صدقې سره د مصیبتو نو لرې کیدل**

۱۸۸۷-( )[۲۹][۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «بَادِرُوا بِالصَّدَقَةِ [۳] فَإِنَّ الْبَلَاءَ لَا يَتَخَطَّاهَا» " رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علي رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] د الله ﷻ په لار کې په خرچ کولو کې تلوار کوئ (یعني د مرګ یا مریضی څخه مخکې صدقه ورکوئ) [۳] ځکه چې صدقه ورکولو نه بلا نه اوړی (یعني د الله ﷻ په لار کې خرچ کولو سره بلا و مصیبت ختمیږي) (رزین)

**حل اللغات:-** ①بَادِرُوا: جلتی او تلوار اوکړئ ②الْبَلَاءَ: مصیبتونه، ازمانښونه، ③لَا يَتَخَطَّاهَا: أي: لَا يَتَجَاوَزُهَا نه شي مخکښې کیدې، پامال کولې ئې نه شي

**تسهیلات:**

**قوله:** بَادِرُوا بِالصَّدَقَةِ فَإِنَّ الْبَلَاءَ لَا يَتَخَطَّاهَا:

**صدقه د مصیبتونه څخه حفاظت:-** صدقاتو سره مصیبتونه او آفتونه لرې کیږی راغلی مصیبتونه نه زیاتیږی بلکه واپس کیږی لکه څنګه چې یو حدیث مبارك کښې دی چې صدقه د الله ﷻ د غضب اوور او دنیاوی مصیبتونه او پریشانی او بیماری لرې کوی په دې وجه په صدقه ورکولو کښې تیزی پکار ده

[1] اخرجه البيهقي في شعب الايمان بلفظ باكروا (رقم ۳۴۶)

# | ۲ | بَابُ فَضْلِ الصَّدَقَةِ |

## د صدقې فضيلت

**د صدقې تعريف:** - ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کښې ليکلي دي چه صدقه هر هغه څيز ته وائي چه يوانسان ئې دخپل مال نه د الله تعالى د قرب حاصلولو دپاره اوباسي که دا صدقه فرض وي که واجب وي يا نفل وي دې ته صدقه خکه وائي چه د صدقې ورکونکي په صدق د ايمان باندې دلالت کوي يا د جنت د نعمتونود رښتياو په رغبت باندې دلالت کوي

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### |۱۸۸۸| په صدقې سره د مال زيادت

۱۸۸۸ — (۱)[۱] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَنْ تَصَدَّقَ بِعَدْلِ تَمْرَةٍ مِنْ كَسْبٍ طَيِّبٍ ۳ - وَلَا يَقْبَلُ اللهُ إِلَّا الطَّيِّبَ - ۴ فَإِنَّ اللهَ يَتَقَبَّلُهَا بِيَمِينِهِ ۵ ثُمَّ يُرَبِّيهَا لِصَاحِبِهَا ۶ كَمَا يُرَبِّي أَحَدُكُمْ فَلُوَّهُ ۷ حَتَّى تَكُونَ مِثْلَ الْجَبَلِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ حضرت ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ۲ کوم سړي چې د کجوري برابر (که په صورت کې وي يا په قيمت کې) په حلاله ګټه کې خرچ کوي ۳ او په دې پوهه شه، چې الله جل جلاله صرف حلال مال قبلوي ۴ نو الله جل جلاله هغه پخپل ښي لاس قبلوي ۵ او بيا هغه صدقه د صدقه ورکونکي د پاره داسې پالي ۶ څرنګه چې په تاسو کې يو سړي دخپل اس بچي پالي ۷ تر دې چې هغې (صدقه يا د هغې ثواب) د غره په شان شي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① بِيَمِينِهِ: په ښي لاس. په احسن طريقه قبوليت طرف ته اشاره ده ② يُرَبِّيهَا أَيْ: يُنَمِّيهَا بالل ئې کوي دتربية نه دې د زياتولو په معنى کښې دي ③ فَلُوَّهُ: أَيْ: الْمُهْرُ وَهُوَ وَلَدُ الْفَرَسِ. بيانزه يعنى د اس بچې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا يَقْبَلُ اللهُ إِلَّا الطَّيِّبَ:

**د صدقې د قبوليت شرط:** - يعنى الله تعالى دحلال مال نه علاوه د يوحرام مال صدقه نه قبلوي شاعر وائي

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب الصدقة من كسب طيب لقوله: {ويربي الصدقات. والله لا يحب كل كفار أثيم. إن الذين آمنوا وعملوا الصالحات وأقاموا الصلاة وآتوا الزكاة، لهم أجرهم عند ربهم ولا خوف عليهم ولا هم يحزنون} [البقرة: ۲۷۷] (رقم ۱۴۱۰) ومسلم في كتاب الزكاة/باب قبول الصدقة من الكسب الطيب وتربيتها (رقم) ۶۳ (۱۰۱۴) والترمذي في السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل الصدقة(رقم ۶۶۱) والنسائي كتاب الزكاة/باب الصدقة من غلول(رقم ۲۵۲۵) وابن ماجة كتاب الصدقات/باب من تصدق بصدقة لم ورثها(رقم ۲۳۹۴) ومالك في الموطا كتاب الصّدقة /باب الترغيب في الصدقة (رقم ۱) واحمد في المسند ۳۳۱/۲

ما يفعل الله الاكل طيبة ماكل من حجر بيت الله معرور
والمعل بعجون بالمال الذي يحمويه حراما الى البيت العتيق المحرم

**د حرام مال په صدقه کولو کښې د ثواب نیت کولو حکم:** - فقهاؤ لیکلی دی چه کوم سړې د حرام مال صدقه د ثواب حاصلولو په نیت سره کوی نو دهغه د کافر کیدو خطره ده فقهاء لیکی که څه حرام مال چا سره وی او هغه سړې دا یوغریب فقیر ته ورکول غواړی نود ثواب نیت دې نه کوی بلکه د ذمې د فارغیدو نیت سره دې ورکوی

**[۱۸۸۹] په صدقې سره د مال نه کمیدل**

۱۸۸۹-(۱)[۲][۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ، [۳] وَمَا زَادَ اللّٰهُ عَبْدًا بِعَفْوٍ إِلَّا عِزًّا، [۴] وَمَا تَوَاضَعَ أَحَدٌ لِلّٰهِ إِلَّا رَفَعَهُ اللّٰهُ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] صدقه ورکول په مال کې کمې نه کوي [۳] او کوم سړي چې د چا خطا معاف کوي نو الله تعالی د هغه په عزت کې اضافه کوي [۴] او کوم سړي چې خاص د الله تعالی د پاره تواضع او عاجزي اختیاروي نو الله تعالی د هغه مرتبه اوچتوي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① عفو: معاف کول ② عزًا: عزت او شرافت

**تسهیلات:**

**قوله: مَا نَقَصَتْ صَدَقَةٌ مِنْ مَالٍ:**

**په صدقه د مال نه کمیدل:** - په دې حدیث کښې د دریو څیزونو ذکر دې او حضور پاك د ضمانت په توګه دا ارشاد فرمائیلې دې اول دا چه په صدقه سره مال کمیږی نه حالانکه خلق په عام توګه باندې هم داګڼری چه مال کمیږی دویم دا چه د یومجرم په معاف کولو سره د معاف کونکی عزت زیاتیږی حالانکه خلق ګڼری چه عزت ئې کمیږی دریم دا چه تواضع کولو سره الله تعالی عاجزی کونکې سړې اوچتوی حالانکه په ظاهره هغه خپله درجه ښکته غورزولې وی

**[۱۸۹۰] داعمالو په اعتبار سره د جنت دروازې**

۱۸۹۰-(۲)[۳][۱] وَعَنْهُ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ [۲] مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ مِنْ شَيْءٍ مِنَ الْأَشْيَاءِ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ [۳] دُعِيَ مِنْ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ وَلِلْجَنَّةِ أَبْوَابٌ [۴] فَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّلَاةِ دُعِيَ

---

[۱] اخرجه مسلم في كتاب البر والصلة والآداب باب استحباب العفو والتواضع (رقم) ۶۹ - (۲۵۸۸) والترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في التواضع(رقم-۲۰۲۹) والدارمي من كتاب الزكاة باب في فضل الصدقة (رقم ۱۷۱۸) ومالك في الموطا كتاب الصدقة /باب ما جاء في التعفف عن المسألة(رقم-۱۲) و احمد في المسند ۲/۲۳۵

[۲] اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب الريان للصائمين (رقم) -۱۸۹۷ ومسلم كتاب الزكاة/باب من جمع الصدقة واعمال البر (رقم) ۸۵ (۱۰۲۷) والنسائي كتاب الزكاة/باب وجوب الزكاة(رقم-۲۴۳۹) والدارمي باب من أنفق زوجين من ماله في سبيل الله عز وجل(رقم ۲۴۴۷) ومالك في الموطا كتاب الجهاد/باب ما جاء في الخيل والمسابقة بينها والنفقة في الغزو(رقم ۴۹) واحمد في المسند ۲/۳۶۶

مِنْ بَابِ الصَّلَاةِ [۵] وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الْجِهَادِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الْجِهَادِ [۶] وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصَّدَقَةِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الصَّدَقَةِ [۷] وَمَنْ كَانَ مِنْ أَهْلِ الصِّيَامِ دُعِيَ مِنْ بَابِ الرَّيَّانِ [۸] فَقَالَ أَبُو بَكْرٍ مَا عَلَى مَنْ دُعِيَ مِنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ مِنْ ضَرُورَةٍ [۹] فَهَلْ يُدْعَى أَحَدٌ مِنْ تِلْكَ الْأَبْوَابِ كُلِّهَا قَالَ نَعَمْ [۱۰] وَأَرْجُو أَنْ تَكُونَ مِنْهُمْ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې خپل څیزونو کې جوړه (دوګنې) شي د الله ﷻ په لار کې (یعني د هغه د رضاء او خوښې د خاطره) خرچ کړي [۳] نو هغه به د جنت د دروازو څخه بلل کیږي او د جنت څو (یعني اته) دروازې دي [۴] کوم سړي چې ډیر زیات مونځ ګزار وي هغه به د جنت باب الصلوة (د مانځه د دروازې) څخه بلل کیږي (چې مونځ ګزار د پاره به مخصوص وي او هغه ته به او ویل شي چې اې بنده په دې دروازه جنت ته داخل شه) [۵] او کوم سړي چې جهاد کونکي (یعني د الله په لار کې ډیر زیات جنګجو) وي هغه به د باب الجهاد (د جهاد دروازې) څخه بلل کیږي [۶] او کوم سړي چې صدقه ورکونکي وي هغه به دباب الصدقه (یعني د صدقې د دروازې) څخه بلل کیږي [۷] او کوم سړي چې ډیرې زیاتې روژې نیسي هغه به د باب الریان (یعني د باب الصیام څخه چې په جنت کې د روژې د دروازې دا نوم دي) بلل کیږي [۸] (د دې په اوریدو سره) حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه عرض وکړو چې کوم سړي چې د دې دروازو څخه د یوې دروازې څخه هم وبلل شي هغه ته د ټولو دروازو څخه د بللو ضرورت نشته (ځکه چې د یوې دروازې څخه بلل هم کافي دي په دې طور چې مقصد خو په جنت کې داخلیدل دي او دا د یوې دروازې سره هم حاصلیږي بیا هم زه صرف د علم د خاطره خان پوهه کول غواړم) چې آیا څوک داسې (خوش نصیبه او باسعادت) سړي به هم وي چې هغه به دې ټولو دروازو څخه بلل کیږي؟ [۱۰] حضور ﷺ ورته وفرمايل هو او زه امید کوم چې ته به د هغه خلقو څخه یې چې د ټولو دروازو به څخه بلل کیږي (بخاري و مسلم)

**حل اللغات:-** ① زَوْجَيْنِ: أَيْ: شَفْعًا مِنْ جِنْسٍ: زوجین جوړې ته وائی یعنی د یو جنس دوه څیزونه. دوچند. ② الرَّيَّانِ: أَيْ: بَابُ الصِّيَامِ: د روژې دروازه، دې ته د عطشان په ضد سره ریان اوونیلې شو د دې دروازې نه به روژه دارو ته شراب څکولې کیږی

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ أَنْفَقَ زَوْجَيْنِ مِنْ شَيْءٍ:**

**د من الشئ په تفسیر کښې دوه اقوال:-** ① دې نه مراد دادې چه د یو جنس نه نی دوه څیزونه ورکړل مثلاً دوه درهم نی ورکړل یا دوه دینار نی ورکړل یا دوه سیر غنم نی ورکړل یا دوه غلامان یا دوه کپړې یا دوه اوښان نی ورکړل جدا جدا قسم مراد نه دې.

② ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه زوجین د مسلسل صدقې کولو نه تعبیر دې چه یو ځل صدقه کولو نه پس نی بیا ورکړه

**قوله**: بَابُ الرَّيَّانِ: چونکه په روژه سره سړی ته تنده لګی او خړوب کیدل ډیر په شوق سره غواړی په دې وجه په دې کښې د داخلیدونکې دروازې نوم ریان کیخودې شو کوم چه د خړوب کولو په معنی کښې دې

**قوله**: مِنْ ضَرُورَةٍ:

**د حضرت ابوبکر رضی الله خصوصی فضیلت**: - د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سوال دا وو چه جنت کښې داخلیدل مقصود دی که په یوه دروازه باندې سړې داخل شی د ټولو دروازونه راغوښتل او داخلیدل څه ضروری نه دی لیکن یارسول الله آیا داسې کیدې شی چه یو سړې د هغې د ټولو دروازو نه راؤغوښتې شی؟ حضورپاك اوفرمائیل چه او داسې کیدې شی اوزما امید دې چه ته هم د هغه خلقو نه ئې

**[۱۸۹۱] حضرت ابوبکر رضی الله عنه اود کمالاتو مجموعه**

(۴) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ صَائِمًا؟" قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا، [۳] قَالَ: "فَمَنْ تَبِعَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ جِنَازَةً؟" قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا، [۴] قَالَ: "فَمَنْ أَطْعَمَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مِسْكِينًا؟" قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا، [۵] قَالَ: "فَمَنْ عَادَ مِنْكُمُ الْيَوْمَ مَرِيضًا؟" قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا، [٦] فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَا اجْتَمَعْنَ فِي امْرِئٍ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دې چې (یوه ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم (صحابه رضی الله عنهم مخاطب کولو سره) وفرمایل [۲] چې نن په تاسو کې د کوم سړي روژه ده؟ حضرت ابوبکر رضی الله عنه وفرمایل زما روژه ده [۳] بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل نن په تاسو کې کوم سړي د جنازې سره د جنازې د مانځه د پاره یا قبرستان ته تللې دې؟ حضرت ابو بکر رضی الله عنه وفرمایل چې زه [۴] بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې نن په تاسو کې کوم سړي په یو مسکین باندې طعام خوړلې دې؟ حضرت ابوبکر رضی الله عنه وفرمایل چې ما [۵] بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې نن په تاسو کې کوم سړي د مریض پوښتنه کړې ده؟ حضرت ابو بکر صدیق رضی الله عنه وفرمایل چې ما [٦] بیا حضور صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې (واوره) په کوم سړي کې چې دا ټولې خبرې جمع شی هغه به په جنت کې داخلیږي (مسلم)

**تسهیلات**: **قوله**: قَالَ أَبُو بَكْرٍ: أَنَا:

**د چا په تپوس د خپلو پټو اعمالو ښودلو حکم**: - یعنی ما داسې کړی دی د چا په پوښتنه باندې د خپل پټو اعمالو تذکره کول جائز دی مګر په اندازه د سوال او جواب وی. دلته صدیق اکبر رضی الله عنه خلور کارونه خودلی دی لیکن د هرې خبرې متعلق د حضورپاك د طرف نه سوال شوې دې د خان نه ئې نه دی خودلی داعجیبه نسخه ده که څوک نن هم چاته د دې خبرې

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الزکاة/باب من جمع الصدقة. وأعمال البر (رقم) ۸۷ - (۱۰۲۸)

توفیق اوشي نو نن هم د جنت وعده ده دا ټول څه ګرانه خبره نه ده په حرمین شریفین کښې د رمضان روژه وی جنازه خو حامخا راځي مګر دې کښې غریبانو وی او د بیمارانو هم کمې نه وی عجیبه دولت دې چه د کم خرج بالاتشین په انداز کښې ملاو برې

**[۱۸۹۲] ګاونډیانو ته د تحفې لیږل**

| |
|---|
| ۱۸۹۲-( )[۵] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«يَا نِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا [۳] وَلَوْ فِرْسِنَ شَاةٍ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** [۱] ابو هریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] اې مسلمانانو ښځو هیڅ ګاونډی دې خپلې ګاونډۍ [ته تحفه لیږل یا صدقه ورکول] حقیره نه ګڼي [۳] اګر چې هغه د بزې (چیلۍ) نوک ولې نه وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① لَا تَحْقِرَنَّ: سپک مه ګڼئ (خپله هدیه او صدقه) ② جَارَةٌ: ګاونډۍ. ③ فِرْسِنَ د چیلۍ نوک. د چیلۍ د نوکو په مینځ کښې یو بیکاره د غرمن په شان غوښه وی هم هغې ته فرسن ونیلې شوې دې (یعنی معمولی څیز ترې مراد دې)

**تسهیلات:**

**قوله: يَا نِسَاءَ الْمُسْلِمَاتِ لَا تَحْقِرَنَّ جَارَةٌ لِجَارَتِهَا:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① یوې ګاونډۍ سره چه څه هم وی که هغه څیز د حقیر نه حقیر ولې نه وی هغه د دویمې ګاونډۍ د پاره تحفه لیږل پکار دی دغه شان په دې کلام کښې ورکړه کونکو ښځو ته خطاب دې

② یوې ګاونډۍ بلې ګاونډۍ ته څه حقیر تحفه اولیګله نو هغه دې دا سپکه ګڼړلو سره د قبلولو نه انکار نه کوی بلکه د حقیر نه حقیر څیز هم قبلول پکار دی دغه په دې کلام کښې هغه ښځو ته خطاب د چا طرف ته چه عطیه لیګلې شوی وی او د ښځو په مزاج کښې چونکه د لږ څیز د قبلولو جرأت او برداشت کم وی په دې وجه هغوی ته خطاب کړې شوې دې

**[۱۸۹۳] هره نیکي صدقه**

| |
|---|
| ۱۸۹۳-( )[۶] [۱] وَعَنْ جَابِرٍ وَحُذَيْفَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

---

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الأدب/باب: لا تحقرن جارة لجارتها (رقم ۶۰۱۷) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب الحث علی الصدقة، ولو بالقلیل ولا تمتنع من القلیل لاحتقاره (رقم) ۹۰ - (۱۰۳۰) والدارمی من کتاب الزکاة/باب کراهیة رد السائل بغیر شیء (رقم - ۱۷۱۴) واحمد فی المسند ۴۳۵/۶

[۲] اخرجه البخاري فی کتاب الأدب/باب. کل معروف صدقة (رقم - ۶۰۲۱) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب بیان أن اسم الصدقة یقع علی کل نوع من المعروف (رقم) ۵۲ - (۱۰۰۵) وابوداود فی السنن کتاب الأدب/باب فی المعونة للمسلم (رقم - ۴۹۴۷) والترمذي کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی طلاقة الوجه وحسن البشر (رقم - ۱۹۷۰) واحمد فی المسند ۳۴۴/۳

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر او حضرت حذیفه رضي الله عنهما نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هره نیکي صدقه ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَعْرُوف: هر قسمه نیکی ترې مراد ده

**تسهیلات:**

**قوله: كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ:**

**د صدقې د مال سره عدم تخصیص:** - هره نیکي صدقه ده که دهغې تعلق د ژبې سره وی اوکه د افعالو سره ددې څخه معلومه شوه چې صدقه صرف دمال نه وی بلکه معمولی نیکی که اخلاص سره اوکړې شی نو په دې باندې هم دصدقې ثواب ملاوېږی تر دې چې خپل مسلمان رور سره نرمې خبرې کول هم صدقه دی .

**[۱۸۹٤] هیڅ نیک عمل کمتر نه ګڼړل**

۱۸۹٤-(۷)[۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا [۳] وَلَوْ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلِيقٍ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] حضرت ابو ذر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو هیڅ کله هم یو نیك کار حقیر (کمتر) مه ګڼئ [۳] اګر چې ته د خپل یو مسلمان ورور سره په روڼ تندي سره ملاقات اوکړې (مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَا تَحْقِرَنَّ: سپک مه ګڼرئ (نیکی) ② جَارَةٌ: ګاوندی، ③ الْمَعْرُوف: هر قسمه نیکی ترې مراد ده ④ أَخَاكَ: ورور، (عام مسلمان مراد دي) ⑤ بِوَجْهٍ طَلِيقٍ: اى الْبَشَاشَةُ وَالسُّرُورُ: یعنی په روڼ تندی او په خوشحالۍ سره

**تسهیلات:**

**قوله: لَا تَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ شَيْئًا:**

**نیکی او ګناه حقیره نه ګڼړل:** - المعروف دا اسم جمع دی هر هغه کار چې د الله ﷻ د رضا او فرمانبرداری دپاره اوشی او خلقو سره احسان کول هم په طاعات معروفه کښې شامل دی او داشان په خوش اخلاقۍ د خلقو سره ملاویدل هم په نیکۍ کښې شامل دی بلکه دا بهترینه نیکی ده د چا زړه خوشحالول هم نیکی ده په دې وجه هیڅ یوه نیکی حقیره نه دی ګڼړل پکار کله کله یو ګوټ اوبه هم د ځان د خلاصۍ ذریعه جوړیږی او داشان هیڅ یوه ګناه حقیره نه دی ګڼړل پکار کله کله یوه سکروټه ټول کور سیزی

[1]) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب استحباب طلاقة الوجه عند اللقاء (رقم) ۱٤٤ - (۲۶۲۶) واحمد فی المسند:۵/۱۷۳

[۱۸۹۵] د نيکئ کولو مختلف مراتب

۱۸۹۵-(۱)[۸] ① وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«عَلَى كُلِّ مُسْلِمٍ صَدَقَةٌ" قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَجِدْ؟ ③ قَالَ: "فَلْيَعْمَلْ بِيَدَيْهِ فَيَنْفَعُ نَفْسَهُ وَيَتَصَدَّقُ ④" قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ أَوْ لَمْ يَفْعَلْ؟ ⑤ قَالَ: "يُعِينُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوفَ ⑥" قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْهُ؟ ⑦ قَالَ: "فَيَأْمُرُ بِالْخَيْرِ" ⑧ قَالُوا: فَإِنْ لَمْ يَفْعَلْ؟ ⑨ قَالَ: "فَيُمْسِكُ عَنِ الشَّرِّ فَإِنَّهُ صَدَقَةٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو موسى اشعري ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② (د نعمت الهي پيش نظر) په هر مسلمان باندې صدقه لازمه ده صحابه ؤ ﷺ (دا اوريدو سره) عرض وکړو چې که د چا سره د صدقې ورکولو د پاره هيڅ هم نه وي (نو هغه څه وکړي؟) ③ حضور ﷺ ورته وفرمايل چې داسې سړي ته پکار دي چې هغه د خپلو لاسونو په ذريعه مال وزر وګټي او (دغه شان) خپل ذات ته هم فايده ورسوي او صدقه او خيرات هم اوکړي ④ صحابه ؤ اوويل چې که هغه د دې هم طاقت نه لري (چې په محنت او مزدوري سره يې وګټي يا يې اونيل که هغه دا هم نه شي کولي؟) ⑤ حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ته پکار دي چې هر ځرنګه چې وي د غمجن او حاجتمند مدد دې وکړي ⑥ صحابه ؤ عرض وکړو چې که هغه دا هم نشي کولي؟ ⑦ حضور ﷺ وفرمايل چې هغه ته پکار دي چې هغه نورو ته د نيکي او خير ښيګړي هدايت وکړي ⑧ صحابه ؤ عرض وکړو چې که هغه دا هم نشي کولي؟ ⑨ حضور ﷺ وفرمايل چې بيا هغه ته پکار دي چې خپل ځان يا نور خلق د تکليف رسولو څخه منع کړي دا د هغه د پاره صدقه ده (يعني هغه ته به د صدقې ثواب حاصليږي) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَلْيَعْمَلْ: أَيْ: فَلْيَكْتَسِبْ: اودې کړي څه کار ② يُعِينُ: مدد او اعانت دې اوکړي. ③ ذَا الْحَاجَةِ: حاجت مند ④ الْمَلْهُوفَ: فرياد کونکي.

**تسهيلات:**

**قوله: يُعِينُ ذَا الْحَاجَةِ الْمَلْهُوفَ**

**د صدقې ماليه ترغيب:** - هر مسلمان ته پکار دی چې صدقه ماليه ورکړی که مال وغيره ورته ملاؤ نشي نو بيا دې دنوحاجت د نومسلمان په بنياد بدني تعاون اوکړی

**قوله: ذا الحاجة الملهوف** غمګين او حاجت مند ته وائي يا ددې نه ضعيف يا مظلوم مستغيث مراد دې بيا په دې کښې دا هم احتمال دې چې اعانت په مال سره يا بالفعل اوکړې شي يا نصيحت او دعوت او دلالت سره اوکړې شي

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب: كل معروف صدقة (رقم-۶۰۲۲) ومسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن اسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف (رقم) ۵۵ - (۱۰۰۸) والنسائي كتاب الزكاة/باب صدقة العبد(رقم -۲۵۳۸) واحمد في المسند ۳۹۵/۴

**[۱۸۹۶] د صدقې په صورت کښې د خپل بدن د جوړونو صدقه ورکول**

۱۸۹۶-(۹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«كُلُّ سُلَامَى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ، كُلَّ يَوْمٍ تَطْلُعُ فِيهِ الشَّمْسُ [۳] يَعْدِلُ بَيْنَ الِاثْنَيْنِ صَدَقَةٌ، [۴] وَيُعِينُ الرَّجُلَ عَلَى دَابَّتِهِ فَيَحْمِلُ عَلَيْهَا [۵] أَوْ يَرْفَعُ عَلَيْهَا مَتَاعَهُ صَدَقَةٌ [۶] وَالْكَلِمَةُ الطَّيِّبَةُ صَدَقَةٌ، [۷] وَكُلُّ خَطْوَةٍ يَخْطُوهَا إِلَى الصَّلَاةِ صَدَقَةٌ، [۸] وَيُمِيطُ الْأَذَى عَنِ الطَّرِيقِ صَدَقَةٌ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د انسان په بدن کې چې کوم مفاصل (جوړونه) دي په هغه د هغې د طرف څخه هره ورځ صدقه لازمه ده [۳] او د دوو سړو په منځ کې عدل کول هم صدقه ده [۴] د يو انسان په دې طور مدد کول چې هغه په څاروي (اس يا خر يا اوښ) سور کړل شي [۵] يا د هغه مال اسباب کېخودل شي هم دا صدقه ده [۶] ښه خبره کول هم صدقه ده [۷] هر هغه قدم چې د مانځه د پاره ايښودل کيږي هغه هم صدقه ده [۸] او د لارې څخه تکليف ورکونکې شي لرې کول هم صدقه ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① سُلَامَى: (وَهُوَعَظْمُ الْإِصْبَعِ: د بدن جوړونه، مفاصل ② يَحْمِلُ: أَيْ: نَفْسَهُ أَوْمَتَاعَهُ: په سورلۍ باندې ئې سور کړی ③ مَتَاعَهُ: سامان، اسباب، ④ خَطْوَةٍ: مَابَيْنَ الْقَدَمَيْنِ: قدمونه، ⑤ يُمِيطُ: أَيْ: يُزِيلُهُ. چه يوځيز د لارې نه لرې کړی

**تسهيلات:**

**قوله: كُلُّ سُلَامَى مِنَ النَّاسِ عَلَيْهِ صَدَقَةٌ:**

**د سلامی د لفظ لغوی تحقيق:** - علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه سلامی جمع ده د دې مفرد سُلامية دې کوم چه د ګوتو په بندونو باندې ونيلي شی ليکن بعضې علماؤ فرمائيلی دی چه د دې لفظ مفرد اوجمع يوشان ده يعنی سُلامی مفرد هم دې اوجمع هم او سُلاميات هم جمع راځی ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "وهوعظم الاصبع" يعنی دګوتې جوړ او هډوکی ته سُلامی وائی ليکن دلته دانسان د بدن ټول جوړونه مراد دی اوبدن چونکه په جوړولو باندې ګرځی راګرځی په دې وجه په جوړونو باندې د صدقې ذکر اوکړې شو په اصل کښې په انسان باندې د شکريه په توګه صدقه واجب کړې شوې ده چه صدقه صرف د دې نوم نه دې چه د الله تعالی په لارکښې څه مال خرچ کړې شی بلکه د دوو کسانو په مينځ کښې په عدل او انصاف سره فيصله (الکاشف ۱۱۸/۲) کول هم صدقه ده

**قوله: وَكُلُّ خَطْوَةٍ يَخْطُوهَا إِلَى الصَّلَاةِ صَدَقَةٌ:**

**د هرنيک عمل دپاره د قدم اوچتولو فضيلت:** - د قدم اوچتولونه صرف هغه قدم مراد نه دې کوم چه د مونځ دپاره اوچت کړې شی بلکه د هر نيک کار د پاره اوچتيدونکې قدم هم په دې

---

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير/باب من أخذ بالرکاب ونحوه (رقم-۲۹۸۹) ومسلم فی کتاب الزکاة/باب بيان أن اسم الصدقة يقع علی کل نوع من المعروف (رقم) ۵۶ - (۱۰۰۹)واحمد فی المسند:۳۲۹/۲

کښې شامل دي مثلاً طواف دپاره يا دبيمار د تپوس دپاره يا په جنازه کښې د شرکت دپاره کوم قدم اوچت کړې شي هغه مصدقه ده په کوم سره چه په جوړونو باندې واجب صدقې حق ادا کيږي

**[۱۸۹۷] په انساني بدن کښې درې سوه شپيته جوړونه**

۱۸۹۷—( )[۱۰] ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«خُلِقَ كُلُّ إِنْسَانٍ مِنْ بَنِي آدَمَ عَلَى سِتِّينَ وَثَلَاثِمِائَةِ مَفْصِلٍ، ③ فَمَنْ كَبَّرَ اللهَ وَحَمِدَ اللهَ وَهَلَّلَ اللهَ وَسَبَّحَ اللهَ وَاسْتَغْفَرَ اللهَ ④ وَعَزَلَ حَجَرًا عَنْ طَرِيقِ النَّاسِ ⑤ أَوْ شَوْكَةً أَوْ عَظْمًا ⑥ أَوْ أَمَرَ بِمَعْرُوفٍ أَوْ نَهَى عَنْ مُنْكَرٍ ⑦ عَدَدَ تِلْكَ السِّتِّينَ وَالثَّلَاثِمِائَةِ. ⑧ فَإِنَّهُ يَمْشِي يَوْمَئِذٍ وَقَدْ زَحْزَحَ نَفْسَهُ عَنِ النَّارِ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① بي بي عايشه رضي الله عنها راويه ده چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په اولاد د آدم کې هر انسان ۳۶۰ جوړونو سره پيدا شوي دي ③ څوک چې الله اکبر، الحمد لله، لا اله الا الله او سبحان الله اووائي او د الله نه بخښنه اوغواړي (أستغفر الله اووائي) ④ او د خلقو د لارې څخه کاڼې لرې کړي ⑤ يا ازغي او هډوکي (يعني تکليف رسونکي شي لرې کړي) ⑥ يا د نيک کار کولو حکم اوکړي يا د بد افعال او اقوال څخه منع اوکړي ⑦ او دا (تول يا بعضې اقوال او افعال) د جوړونو د ۳۶۰ تعداد مطابق وکړي ⑧ نو هغه به په هغه ورځ په داسې حالت کې ګرځي لکه چې هغه خپل ځان د دوزخ څخه ساتلي دي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَفْصِل: مُلْتَقَى الْعَظْمَيْنِ فِي الْبَدَنِ: دبدن دهډوکو جوړونو ته وائي ② عَزَلَ: أَيْ: بَعَّدَ وَنَحَّى: لرې ني کړو اوني غورزولو ③ شَوْكَةً: ازغي، ④ عَظْمًا: هډوکي، ⑤ زَحْزَحَ: أَيْ: أَبْعَدَهَا وَنَحَّاهَا: لرې کړي او ساتلي ني دي

**تسهيلات:** قوله: وَقَدْ زَحْزَحَ نَفْسَهُ عَنِ النَّارِ:

**د جهنم څخه د بدن د حفاظت وظيفه:** - مطلب دادي چې دا مذکوره افعال کول او دخپل بدن د جوړونو په شمار د مذکوره کلماتو ورد په حقيقت کښې خپل بدن او د خپل جوړونه د دوزخ د اوور څخه بچ کول دی

يومئذ (په هغه ورځ) دې لفظ کښې دې طرفته اشاره ده چې په دې خبرو باندې عمل او ددې کلماتو روزانه ورد پکار دي چې ددې دګناهونو کفاره ادا شي

**[۱۸۹۸] په مختلفو اعمالو د صدقې اطلاق**

۱۸۹۸—( )[۱۱] ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«إِنَّ بِكُلِّ تَسْبِيحَةٍ صَدَقَةً، ③ وَكُلِّ تَكْبِيرَةٍ صَدَقَةً، ④ وَكُلِّ تَحْمِيدَةٍ صَدَقَةً، ⑤ وَكُلِّ تَهْلِيلَةٍ صَدَقَةً، ⑥ وَأَمْرٍ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةً ⑦ وَنَهْيٍ عَنِ

[1] اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن اسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف (رقم) ۵۴ - (۱۰۰۷)

[2] اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن اسم الصدقة يقع على كل نوع من المعروف (رقم) ۵۳ - (۱۰۰۶) و احمد في المسند ۱۶۷/۵

الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ ۸ وَفِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ ۹ " قَالُوا " يَا رَسُولَ اللهِ أَيَأْتِي أَحَدُنَا شَهْوَتَهُ وَيَكُونُ لَهُ فِيهَا أَجْرٌ ؟ ۱۰ قَالَ: " أَرَأَيْتُمْ لَوْ وَضَعَهَا فِي حَرَامٍ أَكَانَ عَلَيْهِ فِيهِ وِزْرٌ ؟ ۱۱ فَكَذٰلِكَ إِذَا وَضَعَهَا فِي الْحَلَالِ كَانَ لَهُ أَجْرٌ » " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابوذر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ هر تسبيح يعنى سبحان الله ويل صدقه ده ۳ هر تكبير يعنى الله اكبر ويل صدقه ده ۴ هر تحميد يعنى الحمد الله ويل صدقه ده ۵ هر تهليل يعنى لااله الاالله وئيل صدقه ده ۶ د نيكۍ حكم كول صدقه ده ۷ د هري بدۍ څخه منع كول هم صدقه ده ۸ او د خپلې ښځې يا وينځې سره صحبت كول هم صدقه ده ۹ صحابه ؤ رضي الله عنهم عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ په مونږ كې څوك خپل شهوت پوره كوي او هغې ته په هغه كې ثواب حاصليږي؟ ۱۰ حضور ﷺ وفرمايل چې ماته اووائى كه يو سړي د حرام ذريعې (يعني زنا) سره خپل شهوت پوره كړي نو آيا هغه به ګنهګار وي يا نه؟ (ظاهره ده چې يقينًا هغه به ګنهګار وي) ۱۱ دغه شان چې هغه حلالې ذريعې يعني خپلې ښځې او وينځې) سره شهوت پوره كړي نو هغه ته به ثواب حاصليږي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَسْبِيحَةٍ: سبحان الله وئيل، ② تَكْبِيرَةٍ: الله اكبر وئيل، ③ تَحْمِيدَةٍ: الحمد الله وئيل، ④ تَهْلِيلَةٍ: لااله الاالله وئيل ⑤ بُضْعِ: أَيْ: فِي مُجَامَعَةِ: بضع فرج ته وائى مراد ترې حلاله جماع كول دى ⑨ وِزْرٌ: بوج، ګناه

**تسهيلات:**

**قوله: وَفِي بُضْعِ أَحَدِكُمْ صَدَقَةٌ:**

**ښځې سره په جماع كولو د صدقې اطلاق:** - د باء په ضمې سره بمعنى الفرج يعنى تاسو كښې چې څوك حلال مقام كښې جماع كوى هغه دده دپاره صدقه ده امام طيبى رحمه الله فرمائى چې البضع څخه مراد جماع ده بيا به مطلب دا شى چې كوم كس حلال جماع كوى يعنى خپلې بى بى يا وينځې سره نو هغه حلال دى او دصدقې ثواب دي

**[۱۸۹۹] بهترين صدقه**

۱۸۹۹ - (۱) [۱۲] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ " «نِعْمَ الصَّدَقَةُ اللِّقْحَةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً ۳ وَالشَّاةُ الصَّفِيُّ مِنْحَةً ۴ تَغْدُو بِإِنَاءٍ وَتَرُوحُ بِآخَرَ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ دير شيدي (پى) وركونكې اوښه چا ته د پيو څكلو د پاره عارية وركول بهترينه صدقه ده ۳ دير شيدي (پى) وركونكې بزه چا ته د پيو څكلو د پاره عارية وركول بهترينه صدقه ده ۴ چې هغه سحر ډك لوښى شيدي (پى) وركوي او په مانښام كې ډك لوښى شيدي (پى) وركوي (بخاري مسلم)

[1] اخرجه البخاري فى كتاب الأشربة/باب شرب اللبن (رقم-۵۶۰۸) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب فضل المنيحة (رقم) ۷۴ - (۱۰۲۰)

**حل اللغات:** - ① اللِّقْحَةُ: أي: النَّاقَةُ ذاتُ اللَّبَن: پئ ورکونکي اوښه. چه تازه لنګه شوي وی ② الصَّفِيُّ: دا د لقحة صفت دی، أي: الغَزِيرَةُ اللَّبَن: ډیر پئ ورکونکي اوښه. ③ مِنْحَةً: أي: عَطِيَّةً: عاريتا ئې ورکړی ④ تَغْدُو: د سحر وخت کښې تلل. ⑤ إِنَاءٍ: لوښي. ⑥ تَرُوحُ: دماښام وخت کښې راتلل

**تسهيلات: قوله: مِنْحَةً:**

د "مِنْحَةً" لفظ په عربو کښې ډیر مشهور اومعروف وو ځکه چه په دې باندې په عرب معاشره کښې عام عمل کيدلو طريقه داوه چه يوسړی سره به د پئيو والااوښه يا غوا يا چيلۍ وه نو هغه به دا د عاريت په توګه دځپل خاندان وغيره يو داسې سړی ته ورکوله چاسره چه به د پئيو انتظام نه وو، دې دپاره چه هغه د دې د پئيونه فائده واخلی او بيائی واپس کړی

**قوله:** "تَغْدُو بِإِنَاءٍ": دا جمله دَمنحة دپاره صفت د بنه والی اود صفت کاشفه دې يعنی دَدغه سړی دَدې کار حضور پاك تعريف اوتحسين اوفرمائيلو چه داسې منحه ده چه دَهغې نه سحرماښام لوښی ډك ډك حاصلولی شی.

**[١٩٠٠] په پټی کښې دَ فصل کرلو ثواب**

١٩٠٠-(١)[١٣] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَغْرِسُ غَرْسًا ③ أَوْيَزْرَعُ زَرْعًا ④ فَيَأْكُلُ مِنْهُ إِنْسَانٌ أَوْطَيْرٌ أَوْبَهِيمَةٌ ⑤ إِلَّا كَانَتْ لَهُ صَدَقَةٌ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم مسلمان چې يوه ونه لګوي ③ يا فصل کري ④ او بيا انسان يا مارغان يا خناور (د مالک د رضا څخه بغير) د هغې څخه څه خوري ⑤ نو (دا نقصان) د مالك د پاره صدقه کيږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَغْرِسُ: أي: يَغْرِزُ: اوکری، ② غَرْسًا: ونه، ③ يَزْرَعُ: زرغون کړی، ④ زَرْعًا: فصل، ⑤ بَهِيمَةٌ: خناور يعنی مارغان، څاروی وغيره

**تسهيلات:**

**قوله: فَيَأْكُلُ مِنْهُ إِنْسَانٌ أَوْطَيْرٌ أَوْبَهِيمَةٌ:**

**د زميندارۍ فضيلت او فائدې:** - يعنی زمينداری کونکی چه کله فصل اوکرلو اود هغې نه يو څيز، خناور يا مرغنی وغيره اوخوړلو اويا يو انسان پټ کړو دا ټول دَ زميندار او فصل کرونکی په حق کښې صدقه ده دَدې نه دَ زميندار عام فضيلت ښه اندازه اوشوه دَ فصل عام فائده داهم ده چه يوطرف ته غله ده دکوم نه چه انسان فائده اوچتوی نوبل طرف ته

[١] اخرجه البخاري في كتاب الإجارة /باب فضل الزرع والغرس إذا أكل منه (رقم-٢٣٢٠) ومسلم في كتاب المساقاة /باب فضل الغرس والزرع (رقم) ١٢ - (١٥٥٣) والترمذي كتاب الأحكام عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في فضل الغرس (رقم-١٣٨٢) والدارمي ومن كتاب البيوع /باب: في فضل الغرس (رقم-٢٦٥٢)

بهوس دي د کوم نه چه څناور فائده اوچتوی بل د فصل د زیاتی ځیزونو نه د خشاك کار هم اخستې شی بهر حال د فصل او زمیندارئی ډیر زیاتې فائدې دی "اوبزرع" کښې او د تنویع ډیاره دی

**اعتراض:** - مرغئی او څاروی اود غل په غلا کولو سره به مالك ته څنګه ثواب ملاویږی حالانکه هغه په زمکه کښې د کر په وخت د دې نیت نه وو کړی بغیرد نیت نه به ثواب څنګه ملاویږی؟

**جواب:** - حضرت شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمائی چه د فصل مقصود اصلی مطلقاً نوع انسانی او حیوانی بقاء ده دا اجمالی نیت دې کوم چه زمیندار په زړه او دماغوکښې وی اوس که یو څناور د دې فصل نه خوراك اوکړو یا یو انسان اوخوړلو که هغه په جائز طریقه سره وی اوکه په ناجائز طریقه سره وی د دغه اجمالی نیت دې سره تعلق کیږی په دې وجه ثواب حاصلیږی د امام بخاری رحمه الله او نورو بعضې علماؤ رائې داده چه دلته ده ته د نیت نه بغیر ثواب حاصلیږی دا رائې زیاته واضحه ده.

١٩٠١-(٥)[٣] ١ وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ جَابِرٍ "٢ «وَمَا سُرِقَ لَهُ صَدَقَةٌ»".

**ترجمه:** ١ او د مسلم په یو روایت کې چې د حضرت جابر رضي الله عنه څخه منقول دې دا الفاظ هم دي ٢ چې د هغې څخه څه غلا هم وشي نو هغه د مالك د پاره صدقه ده

**[١٩٠٢] په سپی باندې د رحم کولو په وجه د زناکارې ښځې مغفرت**

١٩٠٢-(٦)[٤] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ "«غُفِرَ لِامْرَأَةٍ مُومِسَةٍ ٣ مَرَّتْ بِكَلْبٍ عَلَى رَأْسِ رَكِيٍّ ٤ يَلْهَثُ كَادَ يَقْتُلُهُ الْعَطَشُ ٥ فَنَزَعَتْ خُفَّهَا فَأَوْثَقَتْهُ بِخِمَارِهَا ٦ فَنَزَعَتْ لَهُ مِنَ الْمَاءِ فَغُفِرَ لَهَا" ٧ بِذَلِكَ قِيلَ: إِنَّ لَنَا فِي الْبَهَائِمِ أَجْرًا؟ ٨ قَالَ: "فِي كُلِّ ذَاتِ كَبِدٍ رَطْبَةٍ أَجْرٌ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ١ ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم (یوه ورځ) وفرمایل ٢ یوه بدکاره ښځه وبخښل شوه ٣ څکه چې هغه یو خل د یو داسې سپي سره تیره شوه چې د کوهی په غاړه ولاړ وو ٤ چه د تندې د وجې څخه یې ژبه راخکلې وه چې د تندې شدت به یې هلاك کړي ٥ هغه ښځې خپله د څرمې موزه راخکلو سره د خپل پړونې سره وتړله ٦ او د هغې په ذریعه یې د سپي د پاره اوبه راوخکلې او په هغه یې وڅکلې د هغې د دې فعل په بناء هغه وبخښل شوه ٧ صحابه ؤ رضي الله عنهم (د دې په اوریدو سره) عرض وکړو چې آیا د څاروو سره په حسن سلوك کولو کې هم زمونږ د پاره ثواب دي؟ ٨ حضور صلى الله عليه وسلم ورته وفرمایل چې هو د هر جاندار (ساه لرونکی) سره په حسن سلوك کولو کې ثواب دي (هغه که انسان وي او که څاروی وي) (بخاري مسلم)

[١] اخرجه مسلم كتاب المساقاة/باب فضل الغرس والزرع (رقم) ٧ - (١٥٥٢)

[٢] اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق/باب إذا وقع الذباب في شراب أحدكم فليغمسه، فإن في إحدى جناحيه داء وفي الأخرى شفاء (رقم) ٣٣٢١ ومسلم في كتاب السلام/باب فضل ساقي البهائم المحترمة وإطعامها (رقم ١٥) - (٢٢٤٥)

**حل اللغات:** - ① مُومِسَةٍ: أَيِ: الْفَاجِرَةُ: بدکاره ، فاسقه ښځه ② رَكِيّ: داهغې کوهی ته وائی دکوم غاړې چه نه وی جوړې شوې دَدې جمع "رکایا" راځی ③ يَلْهَثُ: دَ تندې او ستومانتیا دوجې نه چه کله دَ سپی ژبه راوځی دغه کیفیت ته "لهث" وائی ④ الْعَطَشِ: تنده. ⑤ فَأَوْثَقَتْهُ: أَيْ: شَدَّتْهُ: اوني ترلو. مضبوط ئې کړو ⑥ بِخِمَارِ: لوپټې ته خمار وائی خکه رسئ وغیره نه وه نو لوپټې سره ئې اوترلو ⑦ الْبَهَائِمِ: د بهیمة جمع ده، څناور ⑧ ذَاتِ كَبِدٍ: کبد ځیګر ته وائی یعنی ځیګر لرونکي حیوان. ⑨ رَطْبَةٍ: تروتازه په معنی کښې دې خکه چه په کوم ځیزکښې ځیګر وی هغه حیوان وی او ترکومې چه ځیګر تازه وی هغه ژوندې وی ګنی مړ کیږی.

**تسهیلات: قوله: مُومِسَةٍ:**

اول میم باندې پیښ دې او په دویم میم باندې فتحه او کسره دواړه جائز دی فاسقه فاجره ښځې ته وائی علامه طیبی رحمه الله لیکلی دی چه کیدې شی دَدې لفظ ماده مس وی کوم چه دَ خارښ په معنی کښې دې. [الکاشف. ۱۲۳/۴.]

**[۱۹۰۲] په پشو ظلم کولو په وجه جهنم ته تلل**

(۱۵) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «عُذِّبَتِ امْرَأَةٌ فِي هِرَّةٍ أَمْسَكَتْهَا [۳] حَتَّى مَاتَتْ مِنَ الْجُوعِ، [۴] فَلَمْ تَكُنْ تُطْعِمُهَا [۵] وَلَا تُرْسِلُهَا فَتَأْكُلَ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [۱] ابن عمر او ابوهریره رضي الله عنهما راویان دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] یوه ښځه محض په دي وجه په عذاب کې مبتلا شوه چې هغې یوه پیشو ترلې وه [۳] تر دي چې هغه د لوږي څخه مړه شوه [۴] هغه ښځي نه څه پرې خوړل [۵] او نه یي پریښودله چې د زمکي د خاارو (یعني مږه او منږک وغیره) څخه یي څه خوړلي وی. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① عُذِّبَتْ: عذاب ورکړې شو ، ② هِرَّةٍ: پیشو ، ③ أَمْسَكَتْهَا: أَيْ: رَبَطَتْهَا: ترلې ئې وه ، ④ الْجُوعِ: لوږه ، ⑤ لَاتُرْسِلُهَا: نه ئې پریخودله ، ⑥ خَشَاشِ الْأَرْضِ: أَيْ: هَوَامِّهَا وَحَشَرَاتِهَا: دزمکې چینجی وغیره

**تسهیلات:**

**قوله: فِي هِرَّةٍ:** دلته فی کلمه تعلیل او علت دَ بیانولودپاره دې یعنی دَ پیشو دَ وجې نه یوه ښځه دوزخ ته لاړه

"خشاش" په پیښ دَ خاء او کسره دَ هاء، زنده سر ته وائی یعنی هغه پیشو دغه ښځې پرینخوده چه هغه زمکې ته لاړه شی او چینجی وغیره خپل خوراك کولو سره ګذاره اوکړی دَدې حدیث نه معلومه شوه چه په صغیره ګناه باندې هم راګیریدل کیدې شی. څکه چه

[1] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب: خمس من الدواب فواسق، یقتلن فی الحرم (رقم-۳۳۱۸) ومسلم فی کتاب السلام /باب تحریم قتل الهرة (رقم) ۱۵۱ - (۲۲۴۲) وابن ماجة کتاب الزهد/باب ذکر التوبة (رقم-۴۲۵۶) واحمد فی المسند ۵۰۷/۲

دَ دغه ښځې دا کار په ظاهره صغيره ګناه وه ليکن بعضې علماؤ ونيلي دي په داسې ګناه باندې اصرار کولوسره دا کبيره جوړه شوه.

**ه بې ضروره ځناور قتلولو حرمت:-** بهرحال دَ حديث نه چه دَدې ګناه کوم پس منظر معلوميږي هغه يقيناً دکبيره ګناه طرف ته اشاره کوي ځکه که پيشو چرته ضرر رسوي يا في الحال هغې څه نقصان رسولي وي نودَ موذي قتل جائز دې ليکن بې ګناه پيشو قتل کول او قتل هم په داسې انداز سره دکومې تصور کولوسره چه غونې زيږ شي دې ته صغيره ونيل دَ تعجب سبب دې لهذا په زير بحث حديث کښې دَ دغه ښځې دا فعل کبيره ګناه وه په دې وجه دوزخ ته لاړه

**[۱۹۰٤] دمسلمانانو لاره د تکليف څخه د بچ کولو په کوشش جنت ته داخيدل**

۱۹۰۴-( )[۱۶][۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «مَرَّ رَجُلٌ بِغُصْنِ شَجَرَةٍ عَلَى ظَهْرِ طَرِيقٍ [۳] فَقَالَ: لَأُنَحِّيَنَّ هَذَا عَنْ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ [۴] لَا يُؤْذِيهِمْ فَأُدْخِلَ بِهِ الْجَنَّةَ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يو سړي د يوې ونې په يوه څانګه تير شو چې په لار کې پرته وه (چې په لار تلونکو ته يې تکليف ورکوو) [۳] هغه سړي په خپل زړه کې اوويل چې زه به دا څانګه د مسلمانانو د لارې څخه لرې کړم [۴] چې هغوئ ته تکليف ونه رسوي نو هغه په دې سره په جنت کې داخل شو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① بِغُصْنٍ: ښاخ، څانګه، ② ظَهْرِ طَرِيقٍ: په لار کښې، ③ لَأُنَحِّيَنَّ: أَيْ لَأُبْعِدَنَّ: زه به دا خامخا لرې کوم

**تسهيلات: قوله: بِغُصْنِ شَجَرَةٍ:**

**دشاخ لرې کولو وجوهات:-** ① هغه شاخ خو يا ازغن وو

② دا ويره وه چې خلقو کښې به ازغی لاړ شي

③ په دې کښې به ازغی نه وو خو دومره غټ به وو چې دې سره په لاره تيريدونکو ته تکيف وو

**قوله: عَنْ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ:**

**ه نيکۍ په اراده هم ثواب ملاويدل:-** ددې حديث پاك څخه اشارة معلومه شوه چې کله يو کس د لارې څخه تکليف والا څيز لرې کوي نو په کښې نيت د مسلمانانو د خدمت پکار دې دکافرانو نه. ددې حديث څخه په ظاهره دا معلوميږي چې هغه دلرې کولو نيت کړې وو په دې نيت باندې هغه ته بخښنه اوشوه ځکه چې د نيکۍ اراده هم نيکي ده که نيکي اوکړي نو بيا خو نور على نور دي

[1] اخرجه البخاري في كتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب فضل التهجير إلى الظهر(رقم-۶۵۲) ولابن ماجة كتاب الأدب/باب إماطة الأذى عن الطريق (رقم-۳۶۸۲) واحمد في المسند ۲/ ۳۰٤

[۱۹۰۵] د لارې څخه ضروري څيز لرې کولو صله

۱۹۰۵—( )[۱۷]۞وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:۞ «لَقَدْ رَأَيْتُ رَجُلًا يَتَقَلَّبُ فِي الْجَنَّةِ۞ فِي شَجَرَةٍ قَطَعَهَا مِنْ ظَهْرِ الطَّرِيقِ۞ كَانَتْ تُؤْذِي النَّاسَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۞ ابوهريره ؓ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ ما يو سړي وليدلو چې په جنت کې ګرځيدو ۞ خکه چې هغه يوه داسې ونه پرې کړې وه چې په لاره کې وه ۞ او خلقو ته يې تکليف رسولو (مسلم)

**حل اللغات**: - ①يَتَقَلَّبُ: أَيْ يَمْشِي: ګرځيدو راګرځيدو ②قَطَعَهَا: پريکړې نې وه، ③ظَهْرِ الطَّرِيقِ: د لارې نه

**تسهيلات**: **قوله**: قَطَعَهَا مِنْ ظَهْرِ الطَّرِيقِ

**د ضروري څيزه مالک دا اجازت څخه بغير د ختلو جواز**: - ونه خو به يا د هغه په ملکيت کښې وه يا به پخپله زرغونيدونکې وه نو په دې صورت ونه پريکول او کور ته اوړلو کښې هيڅ اشکال نشته دې که د غير ملکيت وی نو بيا د تکليف لرې کولو دپاره به نې دا پريکړې وی لرګې به نې نه وی قبضه کړې ددې حديث مبارك نه د امسئله مستنبط شوه چې موذي څيز ختمول جائز دی اګر چې د غير ملکيت وی لهذا ليوني سپې يا پاړوګانو پرينبودلې شوې مار وژل جائز دی د مالك اجازت ضروري نه دې

[۱۹۰۶] د لارې څخه ضروري څيز لرې کول

۱۹۰۶—( )[۱۸]۞وَعَنْ أَبِي بَرْزَةَ قَالَ: قُلْتُ:۞«يَا نَبِيَّ اللَّهِ عَلِّمْنِي شَيْئًا أَنْتَفِعْ بِهِ۞ قَالَ: اعْزِلِ الْأَذَى عَنْ طَرِيقِ الْمُسْلِمِينَ» "۞ رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ عَدِيِّ بْنِ حَاتِمٍ «اتَّقُوا النَّارَ» فِي بَابِ عَلَامَاتِ النُّبُوَّةِ، إِنْ شَاءَ اللَّهُ-تَعَالَى-.

**ترجمه**: ۞ ابو برزه ؓ وايي چې ۞ (يوه ورځ) ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې يا رسول الله، ﷺ ماته څه داسې شي وښايه چې د هغې په وجه زه (په آخرت کې) فائده حاصله کړم ۞ حضور ﷺ وفرمايل چې د مسلمانانو د لارې څخه تکليف ورکونکې شې لرې کوه، ۞ بخاري مسلم، او د عدي بن حاتم روايت اتقو النار الخ به ان شاء الله تعالى مونږ په باب علامات النبوت کې نقل کړو

**حل اللغات**: - ①اعزل: لرې کوه، ②الأذي: ضرر، تکليف

**تسهيلات**:

**نوټ**: - ددې حديث شرح په د بل حديث په تسهيل کښې ذکر ده

[1] اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل إزالة الأذى عن الطريق (رقم) ۱۲۹ - (۱۹۱٤) واحمد فى المسند: ۱٥٤/۳

[2] اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل إزالة الأذى عن الطريق (رقم) ۱۲۹ - (۱۹۱٤) واحمد فى المسند: ۱٥٤/۳

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۹۰۷] د رشته دارو سره د حسن سلوک حکم**

۱۹۰۷-(۱) [۱۹] [۱] عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ ابْنِ سَلَامٍ رَضِيَ اللّٰهُ تَعَالٰى عَنْهُ قَالَ [۲] لَمَّا قَدِمَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَاٰلِهٖ وَسَلَّمَ الْمَدِيْنَةَ جِئْتُ [۳] فَلَمَّا تَبَيَّنْتُ وَجْهَهُ [۴] عَرَفْتُ أَنَّ وَجْهَهُ لَيْسَ بِوَجْهِ كَذَّابٍ [۵] فَكَانَ أَوَّلَ مَا قَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ [۶] أَفْشُوا السَّلَامَ وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ [۷] وَصِلُوا الْأَرْحَامَ وَصَلُّوْا بِاللَّيْلِ وَالنَّاسُ نِيَامٌ [۸] تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [۱] عبدالله بن سلام رضی الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې مديني ته تشريف راوړو نو زه د حضور ﷺ په خدمت کې حاضر شوم [۳] ما چې د حضور ﷺ منور مخ مبارک وليدلو [۴] نو زما يقين شو چې د حضور ﷺ دا مخ مبارک د يو دروغجن مخ نشي کيدي [۵] بيا د حضور ﷺ ارشاد چې د ټولو څخه مخکې حضور ﷺ وفرمايلو دا وو چې اې خلقو [۶] سلام ظاهر کړئ [يعني السلام عليکم په اوچت آواز وايې چې چا ته سلام کيږي هغه يې واوري او هر چا ته سلام کوئ خواه که هغه اشنا وي يا نا اشنا] او په اوړي باندي طعام خورئ [۷] او د خپلوانو (رشته دارانو) سره حسن سلوک کوي او په شپه کې هغه وخت (د تهجد) مونځ کوئ کله چې خلق اوده وي [۸] (که داسې کوئ) نو په جنت کې به په سلامتئ سره (يعني بغير د عذاب څخه) داخل شئ (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات**: - ① تَبَيَّنْتُ: أَيْ: أَبْصَرْتُ وَجْهَهُ: دهغه مخ مې اوليدلو. يعني په ژور نظر سره مې ورته اوکتل. ② أَفْشُوا: أَيْ: أَظْهِرُوهُ وَأَكْثِرُوهُ: يعنی په اوچت آواز سره سلام اچوئ. اوپه هرچا نې اچوئ چه خورشي ③ صِلُوا: صله رحمی يعنی ښه تعلق ساتئ. ④ الْأَرْحَامَ: خپلوان. رشته داران. ⑤ بِسَلَامٍ: په سلامتيا سره (دهر قسم تکليف اومشقت نه).

**تسهيلات**:

**قوله: فَلَمَّا تَبَيَّنْتُ وَجْهَهُ**:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال**: - ① په غور سره د کتلو مطلب دادې چې ما د نبی آخرالزمان هغه علامات (کوم چې په تورات کښې مذکور وو) د نبی کريم ﷺ مخ مبارک سره اوکتل نوبيخی يو شان وو لږ فرق هم په کښې نه وو نو بيا ما دا اومنل چې د نبی کريم ﷺ د نبوت دعوی بر حق ده او داسې مخ مبارک ديو دروغژن کس نشی کيدلې

② خينې علماء کرامو ليکلی دی چې ددې مطلب دادې چې چونکه د زړه کيفيات په مخ باندې رابرسيره کيږی نو په دې وجه ما د خپل فراست څخه معلومه کړله چې د دروغژن

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب(رقم-۲۴۸۵) وابن ماجة کتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فی قيام الليل(رقم-۱۳۳۴) و احمد فی المسند ۴۵۱/۵

کس داسې نوراني مخ مبارك نشي کيدې بهرحال چا چې به نبی کريم ﷺ اوليدو نو هم د حضرت رسول کريم ﷺ به شو

**قوله** : أَفْشُوا السَّلَامَ:

**د سلام دعام کولو حکم**:-يعنی سلام لره ډير زيات عام کړئ چې چاسره مونعلق شته نو په هغوی هم سلام اچوئ او په هغه خلقو هم چې چا سره مو تعلق نشته

**قوله** : وَصِلُوا الْأَرْحَامَ:

يعنی صله رحمي ساتئ اگر چې سلام سره دې ولې نه وی ددې څخه علاوه هم دصله رحمی ډير صورتونه دی

**قوله** : وَصَلُّوا بِاللَّيْلِ :

يعنی د شپې په شروع کښې او ددې په آخر کښې مونځ کوئی څکه چې دا وخت د غفلت وی غافل خلق اوده وی په دې وخت کښې ثواب زيات ملاويږی او د شپې عبادت رياء وغيره څخه هم پاك وی

**قوله** : تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ:

**د سلام په مفهوم کښې درې اقوال**:- ① يعنی جنت ته به داخل شئ د الله ﷻ د طرفه سلامتيا سره ② د فرښتو د طرفه په سلامتيا سره

③ جنت ته به داخل شئ د ستړی والی او مشقت څخه په سلامتيا سره

**[۱۹۰۸] په غريبانو باندې د طعام (روټی وغيره) خورلو حکم**

۱۹۰۸-(<sup></sup>)[۲۰] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «اعْبُدُوا الرَّحْمَنَ، وَأَطْعِمُوا الطَّعَامَ [۳] وَأَفْشُوا السَّلَامَ [۴] تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ بِسَلَامٍ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه**: [۱] عبد الله بن عمرو رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د الله رب العزت بندګي کوئ (په غريبانو باندې) طعام خورئ [۳] او سلام ظاهروئ [۴] نو په جنت کې به په سلامتي سره داخل شئ (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات**:- ① أَفْشُوا: أَيْ: أَظْهِرُوهُ وَأَكْثِرُوهُ: يعنی په اوچت آواز سره سلام اچوئ. اوپه هرچا ني اچوئ چه خورشی

**تسهيلات**:

**نوټ**: د دې حديث تشريح په حديث نمبر ۱۸۷۸ کښې تيره شوې ده

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الأطعمة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل إطعام الطعام (رقم-۱۸۵۵) وابن ماجة کتاب الأدب/باب إفشاء السلام (رقم-۳۶۹۴)

**[۱۹۰۹] صدقه کول د سوئ خاتمې څخه حفاظت**

۱۹۰۹-( )[۲۱][۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲]" «إِنَّ الصَّدَقَةَ لَتُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ[۳] وَتَدْفَعُ مِيتَةَ السُّوءِ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه**:[۱] حضرت انس رضی الله عنه راوي دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] صدقه کول د الله جل جلاله غضب ختموي [۳] او د خراب مرګ څخه حفاظت کوي (ترمذي)

**حل اللغات**:- ① لَتُطْفِئُ. أَيْ لَتَمْنَعُ: منع کوی او ختموی. ② تَدْفَعُ: دفع کوی یعنی حفاظت کوی. ③ مِيتَةَ: مرګ. ④ السُّوءِ: بد. خراب

**تسهیلات**:

**قوله لَتُطْفِئُ غَضَبَ الرَّبِّ**:

**په سخی باندې د مصیبت نه راتلل**:- ددې مطلب دا دې چې کوم کس د الله جل جلاله په لار کښې خپل مال خرچ کوی نو هغه لره الله جل جلاله په دنیا کښې سکون او عافیت ورکوی او په ده باندې مصیبتونه نه راځی که د امتحان په طور پرې مصائب راشی نو د الله جل جلاله د طرفه هغه ته د زړه سکون ملاویږی او په صبر کولو ورته ثواب ملاویږی

**په سخی باندې د مصیبت راتلو کښې حکمت**:- سخی دپاره راتلونکې مصیبت د معصیت سبب نه ګرځی بلکه د مغفرت سبب ګرځی ددې نه معلومه شوه چې معصیت والا مصیبت د الله جل جلاله غضب دې او د مغفرت والا مصیبت د الله جل جلاله رحمت دې لهذا په دې حدیث باندې اعتراض نشی کیدې چې سخی باندې مصیبتونه ولې راځی

**قوله: وَتَدْفَعُ مِيتَةَ السُّوءِ**:

**د سخی د خراب مرګ سره حفاظت**:- خراب مرګ څخه د بچ کولو مطلب دادې چې صدقه او خیرات کولو والا د مرګ په وخت کښې د خراب مرګ څخه محفوظ وی

**د خراب مرګ څلور صورتونه**:- ① خراب مرګ څخه مراد خرابه خاتمه ده

② د غفلت اچانك مرګ مراد دې

③ د مرګ په وخت کښې داسې علامات ظاهریدل چې د مرګ څخه روسته د بدنامی سبب جوړ شی

④ ددې څخه داسې سخته بیماری هم مراد کیدیشی چې د مړی په زړه کښې ویره پیدا کړی او د الله جل جلاله د ذکر نه نې غافله کړی یاد کفران نعمت سبب جوړ شی

الغرض سخی ددې ټولو خرابو نه په حفاظت کښې وی او خاتمه ئې بالخیر وی

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل الصدقة(رقم-۶۶۴)

### [١٩١٠] په هره نيکۍ د صدقې اطلاق

۳۱ -( ١)[٢٢] [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «كُلُّ مَعْرُوفٍ صَدَقَةٌ، [٣] وَإِنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ، [٤] وَأَنْ تُفْرِغَ مِنْ دَلْوِكَ فِي إِنَاءِ أَخِيكَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] حضرت جابر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هره نيکي صدقه ده [٣] او په نيکو کې يوه نيکي دا هم ده چې ته د خپل مسلمان ورور سره په روړ تندي سره [په خوشحالۍ سره] ملاقات وکړې [٤] او د خپل يو ورور په لوخي کې د خپلې ډولچې څخه اوبه واچوي [احمد ترمذي]

**حل اللغات:** - ① مَعْرُوفٍ: هر قسم نيکۍ ته معروف وائي، ② وَجْهٍ طَلْقٍ: أَيْ ضَاحِكٌ مُتَبَسِّمٌ: روړ تندی، يعنی په خوشحالۍ سره ③ تُفْرِغَ: أَيْ تَصُبَّ: چه واړوي ته، ④ دَلْوِكَ: بورقه، لوښي،

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د دې حديث شرح په د بل حديث په تسهيل کښې ذکر ده.

### [١٩١١] په مختلفو نيکو اعمالو د صدقې اطلاق

۳۲ -( ٢)[٢٣] [١] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «تَبَسُّمُكَ فِي وَجْهِ أَخِيكَ صَدَقَةٌ [٣] وَأَمْرُكَ بِالْمَعْرُوفِ صَدَقَةٌ، [٤] وَنَهْيُكَ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ، [٥] وَإِرْشَادُكَ الرَّجُلَ فِي أَرْضِ الضَّلَالِ لَكَ صَدَقَةٌ، [٦] وَنَصْرُكَ الرَّجُلَ الرَّدِيءَ الْبَصَرِ لَكَ صَدَقَةٌ، [٧] وَإِمَاطَتُكَ الْحَجَرَ وَالشَّوْكَ وَالْعَظْمَ فِي الطَّرِيقِ لَكَ صَدَقَةٌ، [٨] وَإِفْرَاغُكَ مِنْ دَلْوِكَ فِي دَلْوِ أَخِيكَ لَكَ صَدَقَةٌ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [١] ابو ذر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] د خپل مسلمان ورور په مخکې مسکې کيدل [يعني د چا سره په خنده پيشاني سره پيش راتلل] صدقه ده [٣] د نيک کار د پاره حکم کول صدقه ده [٤] د خرابو خبرو څخه منع کول صدقه ده [٥] په بې نشانه زمکه کې چا ته لار ښودل صدقه ده [يعني چيرته چې د لارې د څه نښې او څه علامې نه لرلو په وجه خلق خپله لار هېره کړي هلته يو لار خطاء مسافر ته د هغه لار ښودلو سره د صدقې په شان ثواب حاصلیږي] [٦] د يو ړوند يا کمزوري نظر سړي مدد کول [په دې طور چې د هغه لاس نيولو سره د هغه بوتلل] صدقه ده [٧] لارې څخه کاڼي، ازغي او هډوکي لرې کول صدقه ده [٨] او د خپلې بوقې څخه د ورور په بوقه کې اوبه اچول صدقه ده، امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي

**حل اللغات:** - ① إِرْشَادُكَ: لار ښودل ستا، ② أَرْضِ الضَّلَالِ: بې نشانه زمکه، داسې لار چه په هغې د يو مقام څه نښه او علامه نه وي ③ الرَّدِيءَ الْبَصَرِ: أَيِ الَّذِي لَا يُبْصِرُ أَصْلًا أَوْ يُبْصِرُ قَلِيلًا: دچا چه نظر بالکل نه

---

[١] اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في طلاقة الوجه وحسن البشر(رقم-١٩٧٠) واحمد في المسند ٣/٣٤٤

[٢] اخرجه الترمذي في السنن كتاب البر والصلة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صنائع المعروف(رقم-١٩٥٦)

لګی یا نې نظر کمزوري وی. ⑦إِمَاطَتُكَ: أَيْ إِزَالَتُكَ: لرې کول ستا. ⑧الشَّوْكَ: ازغي. ⑨الْعَظْمَ: هدوکي. ⑥إِفْرَاغُكَ: أَيْ صَبُّكَ: اړول ستا. ⑧دَلْوِكَ: دخپلې بورقې یا لوښی نه.

**تسهیلات:**

**قوله: وَإِفْرَاغُكَ مِنْ دَلْوِكَ فِي دَلْوِ أَخِيكَ لَكَ صَدَقَةٌ:**

**د شکر په نتیجه کښې د نعمتونو زیادت:-** د هر نعمت جدا جدا شکر وی او په شکر باندې د الله ﷻ د طرفه د نعمت د زیاتولو وعده ده لکه څنګه چې قرآن پاك کښې دی ﴿لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ﴾ لهذا د کمزورو او محتاجو مدد کول دا د الله ﷻ د طرفه د ورکړې شوی نعمت شکرانه ده دا شان ددې حدیث پاك نه دا هم معلومه شوه چې څنګه یو مسلمان ته نفع رسول ثواب دې داشان دیو مسلمان نه تکلیف لرې کول هم دیر غټ ثواب دې

**[١٩١٢] ذکوهی په کنستلو د غوره صدقې اطلاق**

> (٢٣) ①وَعَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ: ②«يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ أُمَّ سَعْدٍ مَاتَتْ، فَأَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ ③قَالَ: "الْمَاءُ" ④فَحَفَرَ بِئْرًا وَقَالَ: هَذِهِ لِأُمِّ سَعْدٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① سعد بن عباده رضي الله عنه راوي دي وايي ② چې ما د رسول الله ﷺ په خدمت کې عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ! ام سعد (یعنی زما مور) وفات شوي ده (د هغې د ایصال ثواب د پاره) کومه صدقه بهترینه ده؟ ③ رسول الله ﷺ راته وفرمایل چې اوبه ④ نو حضرت سعد رضي الله عنه (د رسول الله ﷺ ارشاد اوریدو سره) یو کوهی اوکنستلو او وی ویل چې دا د ام سعد (یعنی زما د مور) د پاره صدقه ده (ابوداؤد نسایي)

**حل اللغات:-** ①فَحَفَرَ: نو اونې کنستلو. ②بِئْرًا: کوهې

**تسهیلات:**

**قوله: هَذِهِ لِأُمِّ سَعْدٍ:**

**دا قول صدقې کیدو وجه:-** د اوبو فائده عام وی په دې وجه دا غوره صدقه اوګرځولې شوه بعضې خلق ددې نه دریمه او څلوېښتمه وغیره ثابته وی حالانکه دلته دعام صدقې ذکردې ددې دریمې اوڅلوېښتمې سره څه تعلق دې رسول الله ﷺ حضرت سعد رضي الله عنه ته یوه صدقه جاریه اوخودله چه کوهې کنستلوسره وقف کړه او ثواب خپلې مورته اوبخښه دا به صدقه جاریه جوړه شی

---

[1] اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الزکاة/باب فی فضل سقی الماء(رقم-١٦٧٩)والنسائی کتاب الوصایا/باب ذکر الاختلاف علی سفیان (رقم - ٣٦٦٤) وابن ماجة فی السنن کتاب الأدب/باب فضل صدقة الماء(رقم - ٣٦٨٤)

**[١٩١٣] غريبانانو او مسکینانو ته د جامو اچولو فضیلت**

—( )[٢٥] ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«أَيُّمَا مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا عَلَى عُرْيٍ ③كَسَاهُ اللهُ مِنْ خُضْرِ الْجَنَّةِ ④وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ أَطْعَمَ مُسْلِمًا عَلَى جُوعٍ ⑤أَطْعَمَهُ اللهُ مِنْ ثِمَارِ الْجَنَّةِ ⑥وَأَيُّمَا مُسْلِمٍ سَقَى مُسْلِمًا عَلَى ظَمَإٍ ⑦سَقَاهُ اللهُ مِنَ الرَّحِيقِ الْمَخْتُومِ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوسعید رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم مسلمان چې يو بربنډ مسلمان ته کپړه ورواغوندوي ③ نو الله تعالی به هغه ته د جنت د شنو لباسونو څخه لباس ورواغوندوی ④ کوم مسلمان چې په يو اوږي باندي طعام (رو ټی وغیره) وخوروي ⑤ نو الله تعالی به په هغه د جنت میوي وخوروي ⑥ او کوم مسلمان چې د يو مسلمان تنده مړه کړي ⑦ نو الله تعالی به هغه په مهر بند شرابو سره سیراب کړي (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:-** ① كَسَا: أَيْ أَلْبَسَ: واغوستولي، ② عُرْيٍ: چه بربنډ وی، ③ خُضْرِ الْجَنَّةِ: أَيْ مِنْ ثِيَابِهَا: يعني دجنت شين لباس، ④ جُوعٍ: اوږي، ⑤ سَقَى: اوبه پرې اوسکوی، تنده ني ماته کړی. ⑥ ظَمَإٍ: أَيْ عَطَشٍ: تنده. ⑦ الرَّحِيقِ: دجنت خالص شراب چه هيڅ ملاوټ به پکښې نه وی ⑧ الْمَخْتُومِ: مهر به پرې لګيدلي وی، يعنی سل بند به وی، هيچا به نه وی استعمال کړي

**تسهيلات:**

**قوله: مِنَ الرَّحِيقِ الْمَخْتُومِ:**

**دمختوم په تفسير کښې دوه اقوال:-** ① مهر شوی شراب چې د څه بدلون نه بغير محفوظ وی او دا هغه کس څکلي شی چې چا دپاره خاص دی بل څوك ني نشي څکلي يعنی په دې سره د شرابو بهترين نفاست طرفته اشاره ده لقوله تعالی ﴿يُسْقَوْنَ مِن رَّحِيقٍ مَّخْتُومٍ﴾

② او خينې حضراتو وئیلی دی چې د خوراك څکاك په څيزونو کښې چې به کوم څيز آخری وی د هغې نه به د مشکو خوشبو راخی يعنی په دې تولو خوراکونو به مهر لګولي شوي وی

خلاصه دا چې د يو مسلمان حاجت پورا کول الله ﷻ ته ډير خوښ دی خوراك څکاك لباس عوامی حاجات دی ددې خيرات عند الله ډير مقبول دي او په دې سره انسان ته اوچتې درجې ملاويږی

**[١٩١٤] د زکات څخه علاوه نور صدقات**

—( )[٢٦] ①وَعَنْ فَاطِمَةَ بِنْتِ قَيْسٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا سِوَى الزَّكَاةِ» ③ثُمَّ تَلَا ﴿لَيْسَ الْبِرَّ أَنْ تُوَلُّوا وُجُوهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ﴾ [البقرة: ١٧٧] الْآيَةَ». رَوَاهُ

---

( ) اخرجه ابوداود فی السنن كتاب الزكاة/باب فی فضل سقی الماء(رقم-١٦٨٢) والترمذی كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب(رقم-٢٤٤٩) واحمد فی السنن ١٣/٣

( ) اخرجه الترمذی فی السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء أن فی المال حقا سوی الزكاة(رقم-٦٥٩) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب ما أدی زكاته ليس بكنز(رقم-١٧٨٩)

التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه**: [١] بي بي فاطمه بنت قيس ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] په مال او زر کې د زکوة څخه علاوه نور حق هم شته [٣] بيا حضور ﷺ دا پوره آيت کريمه تلاوت کړو چې نيکي يوازې دا نه ده چې خپل مخ د مشرق اومغرب طرف ته متوجه کړې الخ (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات**: - ① لَحَقًّا: نور حقونه مثلا د کور لوښې کاسه، کټوی وغيره يا اوبه، مالګه، اور وغيره، ② اَلْبِرَّ: نيکي

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ فِي الْمَالِ لَحَقًّا:

**په مال کښې د زکات څخه علاوه نور حقوق**: - يعني په مال کښې د زکوة نه علاوه هم حقوق دی

① په هغې کښې خينې فرض دی لکه نذر پورا کول حج کول

② خينې واجب دی لکه قرباني صدقه فطر

③ خينې نفل دی لکه فقير ته صدقه ورکول يا ضرورت مند ته قرض ورکول يا ګوانډی ته مالګه ورکول يا اور ورکول يا ضرورت مند ته عارية څيزونه ورکول وغيره الغرض مذکوره آيت مبارك د حديث الباب مؤيد دي

**[١٩١٥] د اوبو او مالګې څخه د انکار کولو ممانعت**

حـ(١)[٢٧] [١] «وَعَنْ بُهَيْسَةَ عَنْ أَبِيهَا قَالَتْ: [٢] قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: "الْمَاءُ" [٣] قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ قَالَ: "الْمِلْحُ" [٤] قَالَ: يَا نَبِيَّ اللَّهِ مَا الشَّيْءُ الَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ؟ [٥] قَالَ: "أَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ خَيْرٌ لَكَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه**: [١] بي بي بهيسه ﷺ د خپل پلار بزر ګوار څخه نقل کوي [٢] د هغه پلار عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ هغه کوم شي دي چې د هغې منع کول او د هغې د ورکولو څخه انکار کول حلال نه دي؟ حضور ﷺ وفرمايل چې اوبه [٣] هغه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ بل کوم شي دي چې د هغې د ورکولو څخه انکار کول حلال نه دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل چې مالګه [٤] هغه بيا عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ بل کوم شي دي چې د هغې څخه منع کول حلال نه دي؟ [٥] حضور ﷺ وفرمايل چې نيکي کول چې ستا د پاره بهتر ده (ابوداؤد)

**حل اللغات**: - ① اَلْمِلْحُ: مالګه

(١) اخرجه ابوداود في السنن أبواب الإجارة/باب في منع الماء (رقم-٣٤٧٦) واحمد في المسند ٣/٤٨٠،

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: اَلْمَاءُ:**

**د اوبو منع کولو ممانعت:** ـ د اوبو مطلب دادی چې که ستا په زمکه کښې کوهې یا تالاب شته دې یا ستا په کور کښې نلکه وغیره شته دې او ددې نه څوك اوبه اوړی نو هغه ددې اوبو نه منع کول مناسب نه دی داشان که ستا نه یو کس اوبه غواړی تاسره ستا د ضرورت نه زیاتې اوبه شته نو ددې په ورکولو کښې انکار مه کوه

**قوله: قَالَ: "اَلْمِلْحُ"،**

**د مالګې منع کولو ممانعت:** ـ داشان د مالګې ورکولو نه د انکار کولو مطلب هم دا دې چې که یو کس ستاسو نه مالګه طلب کړی نو ددې په ورکولو کښې انکار مه کونی څکه چې خلقو ته د مالګې ډیر زیات احتیاج او ضرورت وی او دا خلق ورکوی راکوی بیا د مالګې په بشان څیز نه ا نکار کول هسې هم بنه خبره نه ده څکه چې دا یو عام او آرزان څیز دې اوددې څه وقعت وقدر نشته دې

**قوله: أَنْ تَفْعَلَ الْخَيْرَ خَيْرٌ لَكَ**

مذکوره جمله په ټولو نیکو او بنیګړو باندې حاوی ده ددې مطلب دادې چې ستاسو نه څه هم کیدیشی نو هغه ورکونی او چې کومه نیکی او بنیګړه کولې شې نو کونی یې د نیکی او د خیربنیګړې د کارونو څخه نه خو خپل څان لرې ساتل صحیح دی اونه ترې نور ترې منع کول جائز دی

**قوله: اَلَّذِي لَا يَحِلُّ مَنْعُهُ:**

**لایحل په معنی د لاینبغی:** ـ په حدیث مبارك کښې یې اول څه بنیګړې خاص طور سره ذکر کولو نه پس دا جمله ارشاد اوفرمائیله چې (تعمیم بعد تخصیص) دې په دې کښې دې طرفته اشاره ده چې د (لایحل) د مفهوم اعتبار سره د لاینبغی په معنی کښې استعمال کړې شوې دې داشان بۀ د حدیث مبارك مفهوم داشی چې ددې څیزونو نه منع کول او ددې په ورکړه کښې منع کول مناسب نه دی

**[١٩١٦] د فصل څخه د خوراك کولو باندې د صدقې اطلاق**

> ١٩١٦ ـ (١) [٢٨] [١] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً فَلَهُ فِيهَا أَجْرٌ [٣] وَمَا أَكَلَتِ الْعَافِيَةُ مِنْهُ فَهُوَ لَهُ صَدَقَةٌ» " رَوَاهُ النَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

---

[١]) اخرجه ابوداود فی السنن کتاب الخراج والإمارة والفیء/ باب فی إحیاء الموات(رقم- ٣٠٧٤) والترمذی کتاب الأحکام عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما ذکر فی إحیاء أرض الموات(رقم-١٣٧٩) ومالک فی الموطا کتاب الأقضیة/باب القضاء فی عمارة الموات(رقم-٢٧)

**ترجمه:** [۱] حضرت جابر ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې خشکه (بنجر. شاړه) زمکه آباده کړي (یعني قابل د کاشت یې کړي) نو د هغه د پاره په دې کار کې ثواب دي [۳] او که د هغه د فصل څخه څاروی یا انسان څه وخوري نو د هغه د پاره هغه صدقه ده (په شرط د دې چې په هغې شاکر یا صابر وي) (نسایي دارمي)

**حل اللغات:** - ① أَرْضًا مَيْتَةً: أَيْ: زَرَعَ أَرْضًا بَايِرَةً: یعنی بنجر او شاړه زمکه نې زرعونه کړه ② الْعَافِيَةُ: وَهِيَ كُلُّ طَالِبِ رِزْقٍ: هر يو رزق لټونکي حیوان ته عافیه وائي که هغه انسان وی که مرغۍ وی یاخرن کونکي او درنده وی.

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ أَحْيَا أَرْضًا مَيْتَةً:

میتة اوچې زمکې ته وائی کومې ته چه شاړه زمکه وائی که دَ چاخپله زمکه شاړه وی اوکه دَ بل سړی زمکه شاړه وی اویوسړی په کرلوسره هغه آباده کړه نوده ته به ثواب ملاویږی چه دَالله تعالی زمکه نی دَ بې کاره کیدونه بچ کړه

**قوله:** صَدَقَةٌ: په دې شرط چه دَ زمکې مالك په دې سره راضی هم وی او خوشحال هم وی او شکر هم اداکوی.

**[۱۹۱۷] د قرض ورکولو ثواب**

-( )[۲۹] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ مَنَحَ مِنْحَةَ لَبَنٍ أَوْ وَرِقٍ [۳] أَوْ هَدَى زُقَاقًا [۴] كَانَ لَهُ مِثْلَ عِتْقِ رَقَبَةٍ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] حضرت براء ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې د پیو څاروی (اوښه. میښه. میږه. بزه. غوا) عاریة ورکړي یا چاندی [یعنی نغدي روپې وغیره] قرض ورکړي [۳] یا یو لار خطا او ړوند ته په کوڅه کې لار وښایي [۴] نو هغه ته به د یو غلام د آزادولو په شان ثواب ورکول کیږي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① مَنَحَ: أَيْ: أَعْطَى: ورنې کړو، ② مِنْحَةَ: أَيْ: عَطِيَّةً: عاریتًا د پیو دپاره څاروي ورکول ③ وَرِقٍ: د سپینو زرو روپو ته وائی، یعنی چاله نې روپۍ پیسې او چاندی ورکړه دې دپاره چه هغه مجبوراً خپل کار جوړکړې شی ④ هَدَى: یعنی یوړوند ته نی لار اوخودله ⑤ زُقَاقًا: أَيْ سِكَّةً وَطَرِيقًا: کوڅه او لاري ته وائی

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن کتاب البر والصلة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المنحة(رقم-۱۹۵۷) واحمد فی المسند ۲۸۵/۴

**[١٩١٨] د سلام اچولو صحيح طريقه**

— ( ) [٣٠] [١] «وَعَنْ أَبِي جُرَيٍّ جَابِرِ بْنِ سُلَيْمٍ [٢] قَالَ: أَتَيْتُ الْمَدِينَةَ فَرَأَيْتُ رَجُلًا يَصْدُرُ النَّاسُ عَنْ رَأْيِهِ [٣] لَا يَقُولُ شَيْئًا إِلَّا صَدَرُوا عَنْهُ [٤] قُلْتُ: مَنْ هَذَا؟ قَالُوا: هَذَا رَسُولُ اللَّهِ [٥] قَالَ: قُلْتُ: عَلَيْكَ السَّلَامُ يَا رَسُولَ اللَّهِ، مَرَّتَيْنِ: [٦] قَالَ: "لَا تَقُلْ عَلَيْكَ السَّلَامُ، عَلَيْكَ السَّلَامُ تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ [٧] قُلْ: السَّلَامُ عَلَيْكَ" قَالَ: قُلْتُ: أَنْتَ رَسُولُ اللَّهِ؟ [٨] فَقَالَ: "أَنَا رَسُولُ اللَّهِ الَّذِي إِنْ أَصَابَكَ ضُرٌّ فَدَعَوْتَهُ كَشَفَهُ عَنْكَ [٩] وَإِنْ أَصَابَكَ عَامُ سَنَةٍ فَدَعَوْتَهُ أَنْبَتَهَا لَكَ [١٠] وَإِذَا كُنْتَ بِأَرْضٍ قَفْرٍ أَوْ فَلَاةٍ فَضَلَّتْ رَاحِلَتُكَ [١١] فَدَعَوْتَهُ رَدَّهَا عَلَيْكَ" قُلْتُ: اعْهَدْ إِلَيَّ،

**ترجمه:** [١] ابي جري (رضي الله عنه) چې د هغه نوم جابر ابن سليم دی وايي [٢] چې کوم وخت چې زه مديني ته راغلم نو ما يو سړی وليدلو چې خلق د هغه په عقل بهروسه کوي (يعني د هغه په خبرو عمل کوي نو خپله راوي د هغه وضاحت کوي) [٣] چې هغه څه هم فرمايي خلق په هغې عمل کوي، [٤] ما پوښتنه وکړه چې دا څوک دی؟ خلقو اووېل چې دا د الله ﷻ رسول ﷺ دی [٥] راوي وايي چې ما حضور ته حاضرېدو سره دوه ځله دا اووېل چې عليك السلام اې د الله رسول په تا دې سلام وي، [٦] رسول الله ﷺ د دې په اورېدو هغه وفرمايل چې عليك السلام مه وايه ځکه چې عليك السلام د مړي د پاره دعا ده [٧] البته السلام عليك وايه ځکه چې دغه شان افضل دی، د دې څخه روسته ما عرض وکړو چې ته د الله ﷻ رسول يې؟ [٨] حضور ﷺ وفرمايل چې هو زه د الله ﷻ رسول يم هغه الله ﷻ که ته ته څه تکليف او مصيبت ورسي او ته هغه راوبلې نو هغه به ستا تکليف او مصيبت لرې کړي [٩] که په تا باندې قحط سالي راشي او ته هغه راوبلې (مدد غوښتنې وغواړې) نو په زمکه کې به ستا د پاره سبزه (غله) زرغونه کړي [١٠] او که د زمکې په يوه داسې حصه کې ستا څخه خپله سوارلۍ ورکه شي چې هلته نه د اوبو نوم نښان وي او نه ونه وي يا داسې جنګل وي چې د آبادۍ څخه لرې وي [١١] او بيا ته هغه ته فرياد وکړې نو هغه به ستا سوارلۍ تا ته واپس راولېږي جابر (رضي الله عنه) وايي چې ما عرض وکړو چه ما ته څه نصيحت وکړه

[١] قَالَ: "لَا تَسُبَّنَّ أَحَدًا"، [٢] قَالَ: فَمَا سَبَبْتُ بَعْدَهُ حُرًّا وَلَا عَبْدًا وَلَا بَعِيرًا وَلَا شَاةً. [٣] قَالَ: "وَلَا تَحْقِرَنَّ شَيْئًا مِنَ الْمَعْرُوفِ، [٤] وَأَنْ تُكَلِّمَ أَخَاكَ وَأَنْتَ مُنْبَسِطٌ إِلَيْهِ وَجْهُكَ؛ [٥] إِنَّ ذَلِكَ مِنَ الْمَعْرُوفِ. [٦] وَارْفَعْ إِزَارَكَ إِلَى نِصْفِ السَّاقِ [٧] فَإِنْ أَبَيْتَ فَإِلَى الْكَعْبَيْنِ، [٨] وَإِيَّاكَ وَإِسْبَالَ الْإِزَارِ [٩] فَإِنَّهَا مِنَ الْمَخِيلَةِ، وَإِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمَخِيلَةَ، [١٠] وَإِنِ امْرُؤٌ شَتَمَكَ وَعَيَّرَكَ بِمَا يَعْلَمُ فِيكَ [١١] فَلَا تُعَيِّرْهُ بِمَا فِيهِ، فَإِنَّمَا وَبَالُ ذَلِكَ عَلَيْهِ» [١٢]" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ مِنْهُ حَدِيثَ السَّلَامِ، [١٣] وَفِي رِوَايَةٍ "«فَيَكُونُ لَكَ أَجْرُ ذَلِكَ وَوَبَالُهُ عَلَيْهِ»".

**ترجمه:** [١] حضور ﷺ وفرمايل چا ته بد مه وايه [٢] جابر (رضي الله عنه) وايي چه د دې څخه روسته ما چا ته بد ونه ويل نه آزاد ته، نه غلام ته، نه اوښ ته، نه بزې (چېلۍ) ته (يعني يو انسان ته بد

) اخرجه ابوداود في السنن كتاب اللباس /باب ما جاء في إسبال الإزار (رقم-٤٠٨٤) والترمذي كتاب الاستئذان والآداب عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في كراهية أن يقول عليك السلام مبتدئًا (رقم-٢٧٢٢) واحمد في المسند ٦٣/٥

ويل څه چې خاروی ته مې هم هيڅ كله بد ونه ويل څرنګه چې د عامو خلقو عادت وي، [۳] حضور ﷺ وفرمايل چې هيڅ كله نيكي حقيره (كمتره) مه ګڼه ايعنى كه ته د چا سره نيكي كوې يا بل څوك ستا سره څه نيكي كوي او هغه نيكي چې هر څومره د كمې درجې وي هغه حقيره (سپكه) مه ګڼه بلكه كه څوك ستا سره د كمې درجې نيكي هم وكړي نو هغه ډيره ګڼه او د هغه شكريه ادا كوه او خپله ستا څخه چې هم څه نيكي كيدې شي نو د هغې كول غنيمت وګڼه! [۴] او هركله چې ته د خپل يو وړور سره ملاقات كوې نو خنده پيشانې اختيار كړه ايعنې د چا سره چې ملاقات كوې نو د هغه سره په تواضع او خوش كلامۍ سره پيش راځه چې ستا د حسنِ خلق په وجه د هغه زړه خوشحاله شي! [۵] ځكه چې دا هم يوه نيكي ده [۶] او ته خپل پرتوګ او لنګ وغيره د پنډۍ تر نيمې پورې پورته كړه [۷] او كه دومره اوچت ته نه خوښوې نو تر پړكو (ګيټو) پورې ساته [۸] خو د پړكو (ګيټو) څخه لاندې زوړندولو څخه خان ساته [۹] ځكه چې د پړكو (ګيټو) څخه لاندې پرتوګ زوړندول د تكبر علامه ده او الله ﷻ تكبر نه خوښوي [۱۰] او كه يو سړي تاته كنځل وكړي او ستا په څه داسې عيب تاته عار (پيغور) دركړي [۱۱] نو ته انتقامًا د هغه په څه عيب چې تاته معلوم وي هغه ته عار (پيغور) مه وركوه ځكه چې د هغې ګناه به په هغه وي. [۱۲] ابوداؤد، ترمذي د دې روايت يواځې ابتدايي حصه نقل كړې ده چې په هغې كې د سلام ذكر دې (باقي روايت يې نه دې نقل كړي) [۱۳] او د ترمذي په يو دويم روايت كې د هغه ګناه به په هغه وي په ځاي دا الفاظ دي چې ستا د پاره به د هغه ثواب وي او د هغه د پاره د هغه ګناه

**حل اللغات:-** ① يَصْدُرُ : يعنى خلقوبه دَ هغوى راتې كافى ګنړلوسره مطمئن كيدل او واپس به ګرځيدل ② تَحِيَّةٌ : دعا، تحفه، ③ ضُرٌّ : ضرر او تكليف ④ كَشَفَهُ : أَيْ: أَزَالَ: لرې به نې كړى الله پاک. ⑤ عَامُ سَنَةٍ: أَيْ: سَنَةُ قَحْطٍ: اوچ كالى. دقحط په كال. ⑥ أَنْبَتَهَا : أَيْ: صَيَّرَهَا ذَاتَ نَبَاتٍ: رازرغونه به نې كړى. ⑦ أَرْضٍ قَفْرٍ: داسې زمكه چه اوبه پكښې نه وى. ⑧ فَلَاةٍ: داسې زمكه چه د آبادۍ نه لرې وى يعنى ځنګل غير آباده علاقه وى. ⑨ بَعِيرًا: اوښ. ⑩ مُنْبَسِطًا : أَيْ: بَشَّاشٌ: په خوشحالۍ او روڼر تندى. ⑪ أَبَيْتَ: نه خوښوې ته. ⑫ إِيَّاكَ : أَيْ: اجْتَنِبْهُ: خان ساته. ⑬ إِسْبَالَ الْإِزَارِ : إِرْسَالُ الثَّوْبِ وَإِرْخَاؤُهُ: كېږې ښكته ساتل او راښكلو ته اسبال وائى ⑭ الْمَخِيلَةِ: دا د خُيلاء نه دې، أَيْ: الْكِبْرُ وَالْعُجْبُ: تكبر او خان خوښى. ⑮ عَيَّرَكَ : أَيْ: لَامَكَ: تا ملامته كوى او پيغور دركوى. ⑯ وَبَالُ : أَيْ: إِثْمٌ: ګناه ، جرم

**تسهيلات:**

**قوله: "مَرَّتَيْنِ"**

يعنى حضور پاک په اول ځل سلام وانوريدو په دې وجه حضرت جابر بن سليم رضي الله عنه په دويم ځل سلام اوونيل

**قوله: "تَحِيَّةُ الْمَيِّتِ"** يعنى دَ عليك السلام په الفاظوسره نې سلام اونه كړو په دې وجه چه دا

طريقه په جاهليت کښې به دمړو د سلام اختيارولې شوه لکه څنګه چه دحماسه باب المراثي کښې يوشاعر خپل مړی دپاره داسې دعا کوی

عليك سلام الله قيس بن عاصم ورحمته ماشاء ان يترحما

لهذا اوس دا قسم سلام کول مکروه تنزيهی دې

**اعتراض:** – دَدې حديث نه معلوميږی چه قبرستان ته تلوسره مړو ته "عليك السلام" وئيل سنت طريقه ده حالانکه دامت په دې باندې عمل نشته دې بلکه چه څنګه په نورو احاديثوکښې راغلی دی هم هغه الفاظ وئيلې شی لکه "السلام عليکم يااهل القبور الخ"

**جواب:** –د حضوراکرم ﷺ مراد دانه وو چه عليك السلام مړو دپاره استعمال کړنی بلکه حضورپاك د اهل جاهليت د يوعادت تذکره فرمائيلې ده چه هغوی دې دمړو دپاره داسې الفاظوسره سلام کوی د اصل سلام طريقه السلام عليکم ده دا عمل کښې راولنی

**قوله:** أَنَارَسُولُ اللّٰهِ: يعنی زه دالله تعالی رسول يم هغه الله الخ

**اعتراض:** – جابربن سلم ﷺ سوال اوکړو حضورپاك ته جواب ورکول وو دلته په سوال اوجواب کښې څه مطابقت دې؟

**جواب:** – علامه طيبی ﷺ دَدې سوال جواب دا ورکړې دې چه حضورپاك د حکمت په اسلوب او طرز باندې جواب ورکړې دې يعنی دا سوال مه کوه چه زه د الله تعالی رسول يم دغه خو ثابت او فيصله شوې خبره ده بلکه دا سوال اوکړه چه زه الله تعالی د څه مقصد دپاره راليګلې يم هغه خو زما "رحمة للعالمين" کيدل دی چه زه دالله تعالی داسې رحمت يم چه زما په وسيله سره که څوك د الله تعالی نه سوال کوی يا زه پخپله د چادپاره د الله تعالی نه سوال کوم نو دمشکل نه مشکل کار کښې الله تعالی هغه سوال قبلوی اوهغه مشکل حل کوی [الکاشف ۱۳۳/۴]

**قوله:** اَلَّذِی:

**دبعضې خلقو غلط استدلال:** – دا لفظ صفت واقع دې دَدې موصوف لفظ الله دې کوم چه "انارسول الله" کښې مضاف اليه په توګه ذکر دې او آئنده "دعوته" کښې چه کوم ضمير راګرځی هغه په هرځائی کښې د لفظ الله طرف ته راګرځی اومطلب دادې چه زه د الله رسول يم چه کله تاته څه مصيبت اورسی اوتاسو زما په وسيله سره آواز اوکړنی يا زه هغه ته آواز اوکړم نوهغه دا مصيبت تاسو نه لرې کوی يادلرنی دا کلام ترآخره پورې داسې دې ليکن بعضې خلق "الذی" د رسول صفت جوړوی او هغوی وراندې د کلام په مطلب کښې سخته غلطی کوی او د الله تعالی صفات په حضورپاك باندې لګوی داسې نه دی کول پکار

**[١٩١٩] د الله تعالى په نوم ورکړې شوې څيز باقي پاتې کيدل**

١٩١٩ - ( ) [٣١] (١) وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّهُمْ ذَبَحُوا شَاةً [٢] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَا بَقِيَ مِنْهَا؟" [٣] قَالَتْ: مَا بَقِيَ مِنْهَا إِلَّا كَتِفُهَا، [٤] قَالَ: "بَقِيَ كُلُّهَا غَيْرَ كَتِفِهَا". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** [١] بي بي عايشه رضي الله عنها روايت کوي چې (يو ځل صحابه و يا اهل بيت) يوه بزه ذبح کړه [٢] هر کله چې د هغې غوښه تقسيم شوه، نو حضور ﷺ وفرمايل د هغې څخه څه باقي پاتې شوي ده؟ [٣] بي بي عايشه رضي الله عنها عرض وکړو چې بغير د شاني (ولی، څخه نور هيڅ نه دي پاتې شوي (يعني توله غوښه تقسيم شوې ده يواځې شانه (ولی) پاتې شوي دي. [٤] حضور ﷺ وفرمايل چې بغير د شاني (لاس) څخه نوره توله باقي ده. امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث صحيح دي

**حل اللغات:** - ① كَتِف: ولی.

**تسهيلات:**

**قوله: بَقِيَ كُلُّهَا غَيْرَ كَتِفِهَا:**

**دالله په نوم ده ورکړې باقي پاتې کيدل:** - مطلب دادې چه څه نې دَ خدائی په نوم باندې ورکړه هم هغه غوښه الله تعالى سره باقي ده کوم چه دَ ثواب دَپاره جمع شوه اوکوم ته چه تاسو خلق باقي وايئ کوم چه دَ الله تعالى په نوم باندې ورنه کړې شو نو په حقيقت کښې دغه باقي پاتې نه شو بلکه ضائع شو خکه چه تاسو کوم اوخوړل نودَ ثواب دَپاره هيڅ هم بچ نه شو په دې کښې دَقرآن آيت (مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللَّهِ بَاقٍ) [نحل الايه ٩٦] طرف ته اشاره ده

**[١٩٢٠] چاته دَلباس ورا غوستلو فضيلت**

١٩٢٠ - ( ) [٣٢] (١) وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [٢] "مَا مِنْ مُسْلِمٍ كَسَا مُسْلِمًا ثَوْبًا [٣] إِلَّا كَانَ فِي حِفْظٍ مِنَ اللَّهِ مَا دَامَ عَلَيْهِ مِنْهُ خِرْقَةٌ" رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنه وايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي [٢] کوم مسلمان چې بل مسلمان ته کپړه (يعني پرتوګ، قميص او څادر وغيره، واغوندوي [٣] نو هغه د الله جل جلاله د طرف څخه په زبردست حفاظت کې وي تر څو پورې چې د هغه مسلمان په بدن د هغه کپړې يوه ټکره هم وي (احمد ترمذي)

**حل اللغات:** - ① كَسَا: أَيْ أَلْبَسَ: واني غوستولي. ② خِرْقَةٌ: أَيْ قِطْعَةٌ يَسِيرَةٌ: معمولی ټکره.

---

[١] اخرجه الترمذي في السنن كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم - ٢٤٧٠) واحمد في المسند ٦/ ٥٠

[٢] اخرجه الترمذي كتاب صفة القيامة والرقائق والورع عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم - ٢٤٨٤)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا كَانَ فِي حِفْظٍ مِنَ اللّٰهِ:

**د جامو خيرات کولو صله:-** د يو مسلمان د ورکړې شوي جامې يوه ټکړه چې تر کومې پورې د يو مسلمان په بدن باندې وي نو ورکوونکې به د هر آفت څخه الله ﷻ ساتي څکه چې صدقه د آفتونو څخه په بچ کولو کښې يو مثال دې لهذا دا فائده خو په دنيا کښې حاصله شوه او آخرت کښې چې به ده به کوم ثواب ملاويږي هغه ددې څخه علاوه دې لکه څنګه چې د حديث مبارك مفهوم دې چې الله ﷻ به داسې کس ته د جنت جوړا واغوندوي

**[۱۹۲۱] په پټه طريقې سره د صدقې ورکولو فضيلت**

---()[۳۳] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ، يَرْفَعُهُ، قَالَ: ۲ "«ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ" ۳ رَجُلٌ قَامَ مِنَ اللَّيْلِ يَتْلُو كِتَابَ اللّٰهِ، ۴ وَرَجُلٌ يَتَصَدَّقُ بِصَدَقَةٍ بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا ۵ " أُرَاهُ قَالَ: "مِنْ شِمَالِهِ، ۶ وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَانْهَزَمَ أَصْحَابُهُ، فَاسْتَقْبَلَ الْعَدُوَّ» " ۷ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، ۸ أَحَدُ رُوَاتِهِ أَبُو بَكْرِ بْنُ عَيَّاشٍ، كَثِيرُ الْغَلَطِ.

**ترجمه:** ۱ عبد الله بن مسعود ﷺ بطريقِ مرفوع (يعني د حضور ﷺ څخه) نقل کوي چې حضور ﷺ وفرمايل ۲ درې سړي داسې دي چې الله ﷻ يې دوست لري ۳ ① يو هغه سړې چې د شپې ولاړ وي او کتاب الله وايي (د تهجد مونځ کوي) ۴ ② دويم هغه سړي چې نفل صدقه خپل لاس سره ورکړي او هغه پټه کړي ۵ راوي وايي چې زما ګمان دې چې حضور ﷺ وفرمايل او هغه د چپ لاس څخه هم پټه کړي ۶ او ③ دريم هغه سړي چې په ميدانِ جنګ کې هغه وخت د دښمن مقابلې ته ودريږي هر کله چې د هغه ملګرو ته شکست شوي وي. ۷ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او فرمايلي يې دي چې دا روايت غير محفوظ (ضعيف) ۸ دي د دې يو راوي ابوبکر ابن عياش دي چې ډيرې زياتې غلطۍ کوي

**حل اللغات:-** ① سَرِيَّةٍ: أَيْ فِي جَيْشٍ صَغِيرٍ: وړوکي لښکر ② فَانْهَزَمَ: شکست ني اوخوړو

**تسهيلات:**

**قوله:** يَتْلُو كِتَابَ اللّٰهِ:

**الله تعالى سره دخبرو صورت:-** چې د الله ﷻ د کتاب تلاوت کونکې. لکه چې هغه د الله ﷻ سره هم کلام وي او خلوت کښې الله ﷻ سره کلام کيدل دا د الله ﷻ د محبت علامت دې

---

[۱] اخرجه الترمذي كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۶۷) والنسائي كتاب الزكاة/باب ثواب من يعطي(رقم-۲۵۷۰)

**قوله: يَتَصَدَّقُ بِصَدَقَةٍ بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا مِنْ شِمَالِهِ:**

**په صدقه ورکولو کښې د پټوالي فضيلت:** - په ښي لاس دې صدقه داسې ورکړي چې ګس لاس ترې خبر هم نشي ددې نه په پټوالي کښې مبالغه کول مقصود دی چې چا ته معلومه نشي چې دا صدقه ورکړې ده د الله ﷻ درضا او خوشحالولو په خاطر او دريا، او تکبر نه د بچ کيدو په خاطر نفلي صدقه په پټه ورکولو کښې ثواب زيات دی او فرض صدقه په ښکاره ورکول چې نورو خلقو ته هم ترغيب ملاؤ شي دا افضل دی

**[۱۹۲۲] الله تعالى ته درې خوښ او درې ناخوښه کسان**

(۳۳)[۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«ثَلَاثَةٌ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ، وَثَلَاثَةٌ يَبْغَضُهُمُ اللّٰهُ، [۳] فَأَمَّا الَّذِينَ يُحِبُّهُمُ اللّٰهُ فَرَجُلٌ أَتَى قَوْمًا [۴] فَسَأَلَهُمْ بِاللّٰهِ وَلَمْ يَسْأَلْهُمْ لِقَرَابَةٍ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُمْ، [۵] فَمَنَعُوهُ فَتَخَلَّفَ رَجُلٌ بِأَعْيَانِهِمْ [۶] فَأَعْطَاهُ سِرًّا لَا يَعْلَمُ بِعَطِيَّتِهِ إِلَّا اللّٰهُ وَالَّذِي أَعْطَاهُ، [۷] وَقَوْمٌ سَارُوا لَيْلَتَهُمْ [۸] حَتَّى إِذَا كَانَ النَّوْمُ أَحَبَّ إِلَيْهِمْ مِمَّا يُعْدَلُ بِهِ [۹] فَوَضَعُوا رُءُوسَهُمْ، فَقَامَ يَتَمَلَّقُنِي وَيَتْلُو آيَاتِي، [۱۰] وَرَجُلٌ كَانَ فِي سَرِيَّةٍ فَلَقِيَ الْعَدُوَّ فَهُزِمُوا، [۱۱] فَأَقْبَلَ بِصَدْرِهِ حَتَّى يُقْتَلَ أَوْ يُفْتَحَ لَهُ، [۱۲] وَالثَّلَاثَةُ الَّذِينَ يَبْغَضُهُمُ اللّٰهُ الشَّيْخُ الزَّانِي، [۱۳] وَالْفَقِيرُ الْمُخْتَالُ، [۱۴] وَالْغَنِيُّ الظَّلُومُ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو ذر رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] درې داسې سړي دي چې الله ﷻ يې دوست لري او درې سړي داسې دي چې الله ﷻ يې دښمن لري [۳] هغه سړي چې الله ﷻ يې دوست لري په هغوئ کې يو هغه سړی دی چې داسې سړي ته يې صدقه ورکړه چې يو جماعت ته راغې [۴] او هغوئ ته د الله ﷻ قسم ورکولو سره يې څه وغوښتل، يعني داسې يې اوويل چې زه تاسو ته د الله ﷻ قسم درکوم چې ماته دومره مال يا دومره شې راکړي، هغه د جماعت والا څخه د حق قرابت په وجه او نه غوښتل چې د هغه او د جماعت په مينځ کې وو [۵] خو جماعت والا هغه ته هيڅ هم ورنه کړل نو يو سړي، يعني صدقه ورکونکي، د جماعت (چې هغه هم د جماعت يو فرد وو) په پټه ورمخکې شو [۶] سايل ته يې پټ څه شي ورکړو چې په هغې هيڅوك نه وو خبر ماسوا د الله ﷻ څخه او د هغه سړي څخه چې هغه ته يې ورکړل. [۷] او دويم سړي هغه دي چې د جماعت سره ټوله شپه لاړو امزل يې اوکړو [۸] تردې چې د هغوی د پاره خوب د هغه ټولو څيزونو څخه زيات خوښ شي چې د خوب برابر وي ايعنی خوب ورنه خوږ شو [۹] نو د جماعت ټول افراد اوده شو خو هغه سړي ودريدلو (الله ﷻ فرمايي) او زما مخکې عاجزي او زاري يې شروع کړله او زما آيتونه (يعني قرآن کريم) ويل يې شرع کړل (يعني زما په عبادت او مناجات کې مشغول شو [۱۰] او دريم هغه سړي دي چې په لښکر کې شامل وو چې د دښمن سره مقابله شوه نو د هغه لښکر

---

[۱]) اخرجه الترمذي كتاب صفة الجنة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۵۶۸) والنسائي كتاب الزكاة/باب ثواب من يعطي(رقم-۲۵۷۰) واحمد في المسند ۱۵۳/۵

شکست وخوړلو[۱۱] خو هغه د دښمن په مقابله کې سینه ډال کړه تر دې چې شهید شو یا فتح یاب شو[۱۲] او هغه درې سړي چې د الله ﷻ په نزد مبغوض دي په هغوی کې یو هغه سړي دي چې د بوډاتوب باوجود زنا کوي[۱۳] دویم تکبر کونکي فقیر دي [۱۴] دریم سړي دولتمند ظلم کونکي دي (یعني هغه سړي چه د دولتمند کیدو باوجود قرض ورکونکو ته قرض نه ادا کوي یا د نورو سره د ظلم معامله کوي) (ترمذي، نسائي)

**حل اللغات:** - ①فَتَخَلَّفَ: أَيْ تَأَخَّرَ: روستو شو ②بِأَعْيَانِهِمْ: أَيْ بِأَشْخَاصِهِمْ: دخپلو سرونه. ③سَارُوا: لاړل. ④يَتَمَلَّقُنِي: أَيْ يَتَوَاضَعُ لَدَيَّ: عاجزی او زاری نې راته شروع کړه. ⑤سَرِيَّة: أَيْ فِي جَيْشٍ صَغِيرٍ: وړوکې لښکر ⑥فَهُزِمُوا: شکست نې اوخوړلو ⑦يُفْتَحَ: أَيْ حَتَّى يَفُوزَ: یعنی کامیاب شو. ⑧الْمُخْتَالُ: أَيْ الْمُتَكَبِّرُ: کبر او غرور کونکي، ⑨الظَّلُومُ: أَيْ كَثِيرُ الظُّلْمِ: ډیر ظلم کونکي

**تسهيلات:**

**قوله: ثَلَاثَةٌ:**

په دې حدیث کښې دَ شپږو کسانو ذکر دې چه په حقیقت کښې شپږ قسم خلق دی درې محبوب او درې مبغوض دی.

**قوله: فَتَخَلَّفَ رَجُلٌ بِأَعْيَانِهِمْ:**

**دالله په نوم په پټه د صدقې فضیلت:** - یعنی پوره ډلې سائل ته څه ورکولو نه انکار اوکړو سائل صرف دَ الله په نوم سوال کړې وو څه قرابت نې نه وو، نه نې څه رشته وه دَ انکار نه پس هم دَ دغه قوم نه یو سړې اخوا دیخوا لاړو اوبیا هغه په پټه دغه سائل ته صدقه ورکړه دا صدقه نې دومره پټه ورکړه چه صرف ورکونکی او اخستونکی او الله تعالی ته علم وو "اعیانهم" نه دَ هغه خلقو اشخاص مراد دی

**قوله: الشَّيْخُ الزَّانِي:**

**د بوډا زنا کار د ګناه د قباحت وجه:** - دې نه مراد واده کړې سړې دې لیکن دَ ظاهر کلام نه معلومیږی چه بوډا سړې مراد دې او بوډا هم واده کړې وی دَهغه ګناه دَهغه دَپاره ډیره بده ده چه ټولو اندامونو نې جواب ورکړې وی دَمستئی زمانه نې تیره شوې وی هغه وخت چه کله دې پخپله دَ رحم قابل وی هغه دَ زنا په شان دَ قبیح ګناه ارتکاب کوی دا دَهغه دَ باطن دَ خباثت نشانی ده دغه شان یو سړې ډیر فقیر دې اودَ رحم قابل دې کله چه هغه ته څوك سړې څه صدقه اوخیرات ورکوی نوهغه کبر کولوسره دَ اخستونه انکارکوی دغه شان هغه خپله او خپل بال بچ په هلاکت کښې اچوی او غریبی پټولو سره کبر کوی علماؤ لیکلی دی چه دَ طمع نه بغیر څه څیز راځی هغه مه رد کونی ځکه چه هغه الله تعالی رالیګلې وی

**قوله: وَالْغَنِيُّ الظَّلُومُ:**

**د مالدار د قرض په ادا کولو کښې د ټال مټول حرمت:-** دې نه داسې مالدار سړي مراد دې چه غني دې د قرض ورکولو طاقت لري او قرض نه اداکوي نو داسې ظالم مالدار الله تعالى په خپل قبض کښې ساتي ځکه چه د قدرت نه باوجود قرض نه اداکوي دا د هغه د شرارت اوخباثت علامت دي يا د مالدارنې په نشه کښې دې نورو خلقو باندې ظلم کوي

**[۱۹۲۳] په پټه د صدقې ورکولو عجيبه فضيلت**

۱۹۲۳-(۱)[۳۵] ۞ وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۞ "«لَمَّا خَلَقَ اللهُ الْأَرْضَ جَعَلَتْ تَمِيدُ، ۞ فَخَلَقَ الْجِبَالَ فَقَالَ: بِهَا عَلَيْهَا، ۞ فَاسْتَقَرَّتْ فَعَجِبَتِ الْمَلَائِكَةُ مِنْ شِدَّةِ الْجِبَالِ، ۞ فَقَالُوا: يَا رَبِّ! هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْجِبَالِ؟ ۞ قَالَ: نَعَمِ، الْحَدِيدُ. ۞ فَقَالُوا: يَا رَبِّ! هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْحَدِيدِ؟ قَالَ: نَعَمِ، النَّارُ.

**ترجمه:** ۞ حضرت انس رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ۞ کوم وخت چې الله تعالى جل جلاله زمکه پيدا کړه نو هغه په خوزيدو شوه ۞ بيا الله تعالى جل جلاله غرونه پيدا کړل او په زمکه يې ودرول ۞ نو زمکه په خاې شوه (اودريده) فرښتو ته د غرونو په سختې ډير تعجب وشو ۞ هغوئ اوويل چې اې زمونږ پروردګاره آيا ستا په مخلوق کې څه څيز د غرونو څخه هم زيات سخت شته ؟ ۞ پروردګار وفرمايل چې وسپنه ده (چې هغه کاڼي هم ماتوي) ۞ هغوئ پوښتنه وکړه اې زمونږ پروردګاره آيا ستا په مخلوقاتو کې يو شې د اوسپنې څخه هم زيات سخت شته ؟ پروردګار وفرمايل چې هو اور دې (چې هغه وسپنه هم ويلې کوي)

۞ فَقَالُوا: يَا رَبِّ! هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ النَّارِ؟ ۞ قَالَ: نَعَمِ، الْمَاءُ. ۞ فَقَالُوا: يَا رَبِّ! هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الْمَاءِ؟ ۞ قَالَ: نَعَمِ، الرِّيحُ. ۞ فَقَالُوا: يَا رَبِّ! هَلْ مِنْ خَلْقِكَ شَيْءٌ أَشَدُّ مِنَ الرِّيحِ؟ ۞ قَالَ: نَعَمِ، ابْنُ آدَمَ تَصَدَّقَ صَدَقَةً بِيَمِينِهِ يُخْفِيهَا عَنْ شِمَالِهِ»" ۞ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، ۞ وَذُكِرَ حَدِيثُ مُعَاذٍ "«الصَّدَقَةُ تُطْفِئُ الْخَطِيئَةَ»" فِي كِتَابِ "الْإِيمَانِ".

**ترجمه:** ۞ بيا هغوئ عرض وکړو چې اې زمونږ پروردګاره آيا ستا په مخلوقاتو کې د اور څخه هم زيات سخت شې شته؟ ۞ پروردګار وفرمايل چې اوبه دي (چې هغه اور هم وژني) ۞ بيا هغوئ عرض وکړو چې اې زمونږ پروردګاره آيا ستا په مخلوقاتو کې څه څيز د اوبو څخه هم زيات سخت شته؟ ۞ پروردګار وفرمايل چې هوا ده (چې هغه اوبه هم وچوي) ۞ بيا هغوئ عرض وکړو چې اې زمونږ پروردګاره آيا ستا په مخلوقاتو کې څه څيز د هوا څخه هم زيات سخت شته؟ ۞ پروردګار وفرمايل هو هغه د بني آدم صدقه ورکول دي چې هغه د الله

[۱] اخرجه الترمذي کتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب(رقم-۳۳۶۹) واحمد في المسند ۱۵۱/۵

ﷻ په لار کې خپل ښې لاس سره داسې مال خرچ کړي چې هغه د چپ لاس څخه هم پټ وي.
[٧] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او ويلي يې دي چه دا حديث غريب دي [٨]
او په کتاب الايمان کښې د معاذ رضی الله عنه حديث ئې ذکرشوې دې چې صدقه ګناه مړه کوي يعنې د ګناه اورمړ کوي

**حل اللغات:-** ① تَمِيْدُ: أَيْ تَمِيْلُ وَتَتَحَرَّكُ: يوخوا بل خوا خوزيده راخوزيده. ② بِهَا عَلَيْهَا: أَيْ أَمَرَ وَأَقَرَّ بِكَوْنِهَا وَاسْتِقْرَارِهَا عَلَيْهَا: الله پاک ورته حکم اوکړو چه دا غرونه دې په زمکه مضبوط او درېږي نو اودريدل ③ فَاسْتَقَرَّتْ: أَيْ ثَبَتَتِ الْأَرْضُ: يعنې زمکه سمدست اودريده

**تسهيلات:**

**قوله :قَالَ: نَعَمْ،ابْنُ آدَمَ:**

**په پټه صدقې کولو د الله تعالی راضی کيدل:-** د ابن آدم صدقه ورکول داشان چې پټه او خفيه وی او په دې کښې د نفس اود شيطان مدافعت داسې راځي چې نفس ورته وائي چې کله زه چاته مال ورکوم نو چې خلقو ته ښکاره شي او زما تعريف اوکړي نو په دې کښې نفس سره مخالفت شو او نفس اماره سره مخالفت کولو کښې شيطان سره مدافعت اوشو د ځينې علماء کرام په نزد دا په شيطان باندې دومره سخت په دې وجه دی چې دده په وجه د الله ﷻ رضا حاصليږي ددې نه معلومه شوه چې د ټولې دنيا ايټم بم هم د مؤمن د نيکې مقابله نشي کولې په دې وجه مجاهدينو له پکار دی چې په عملې قوت هم زور ورکړي

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٩٢٤] د دوه ځيزونو د خيرات کولو فضيلت

١٩٣-()[٣٦][١] عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[٢] «مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يُنْفِقُ مِنْ كُلِّ مَالٍ لَهُ زَوْجَيْنِ فِي سَبِيلِ اللَّهِ[٣] إِلَّا اسْتَقْبَلَتْهُ حَجَبَةُ الْجَنَّةِ[٤] كُلُّهُمْ يَدْعُوهُ إِلَى مَا عِنْدَهُ»[٥] قُلْتُ: وَكَيْفَ ذَلِكَ؟[٦] قَالَ: «إِنْ كَانَتْ إِبِلًا فَبَعِيرَيْنِ[٧] وَإِنْ كَانَتْ بَقَرًا فَبَقَرَتَيْنِ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:**[١] ابو ذر رضی الله عنه څخه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم مسلمان بنده چې په خپل هر مال کې دوه دوه ځيزونه د الله ﷻ په لار کې خرچ کړي [٣] نو د جنت ټول دربانان (محافظان) به د هغه استقبال کوي[٤] او هغه به د خپلو ځيزونو طرف ته رابلي [٥] حضرت ابوذر رضی الله عنه وايي چې (د دې په اوريدو سره) ما عرض وکړو چه د دوه دوه ځيزونو خرچ کولو مطلب څه دې؟[٦] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې که د هغه سره اوښان وي (او هغه په هغې کې د الله ﷻ په لار کې د ورکولو اراده وکړي) نو دوه اوښان ورکړي[٧] اوکه ورسره غواګانې وي نو دوه غواګانې ورکړي (نسايي)

---

[١] اخرج النسائي في السنن كتاب الجهاد /باب فضل النفقة في سبيل الله تعالى (رقم-٣١٨٥) واحمد في المسند ١٥١/٥

**حل اللغات:** - ① زَوْجَيْنِ: أَيْ شَفْعَا مِنْ جِنْسٍ: زوجين جوړې ته وائي يعنى د يوجنس دوه څيزونه. دوچند ته هم وائي ② اسْتَقْبَلَتْهُ: استقبال به كوى، ③ حَجَبَةُ: د حاجب جمع ده، أَيْ بَوَّابُو أَبْوَابِهَا: د جنت دربانان او محافظانو ته وائي ④ فَبَعِيرَيْنِ: د بعير تثنيه ده، اوښ ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا اسْتَقْبَلَتْهُ حَجَبَةُ الْجَنَّةِ:**

**دالله تعالى په نوم د خرچ كولو شعبې:** - د الله ﷻ په لار كښې د خرچ كولو مطلب دادې چې خپل مال هغه ځائې خرچ كړنې چې كوم ځائې كښې په خرچ كولو الله ﷻ راضي كيږى لكه حج جهاد طلب علم دغريبانانو او د محتاجو سره مدد وغيره وغيره د خپلو څيزونو نه مراد د جنت ښه ښه څيزونه او دهغه ځائې نعمتونه دى ددې مطلب دادې چې دهغه ځائې دربان به دوى د جنت د هرې دروازې طرف رابلى

**[۱۹۲۵] د قيامت په ورځ د صدقې سيورې**

۱۹۲۵-( )[۳۷] ① وَعَنْ مَرْثَدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ، قَالَ: حَدَّثَنِي بَعْضُ أَصْحَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ③ "«إِنَّ ظِلَّ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَدَقَتُهُ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ① مرثد بن عبدالله وايي د نبى كريم صلى الله عليه وسلم بعضې صحابه ؤ ماته دا حديث بيان كړو ② چه هغوى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم څخه واوريدل ③ چې د قيامت په ورځ به د مؤمن سايه (سورې) د هغه صدقه وي. (احمد)

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ ظِلَّ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ صَدَقَتُهُ**

**د قيامت په ورځ د صدقې سيورې:** - د مؤمن صدقې به د قيامت په ورځ د سيورى والاونې په شكل ظاهريږى اوسخى مؤمن به ددې صدقو په سيورو كښې وى او دقيامت ګرمى څخه به محفوظ وى الغرض د قيامت په ورځ به د مال مختلف شكلونه وى د بخيل مال به دګنجى مار په شكل كښې وى

**[۱۹۲۶] د عاشورې په ورځ د زيات خرچ كولو حكم**

۱۹۲۶-( )[۳۸] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «مَنْ وَسَّعَ عَلَى عِيَالِهِ فِي النَّفَقَةِ يَوْمَ عَاشُورَاءَ ③ وَسَّعَ اللهُ عَلَيْهِ سَائِرَ سَنَتِهِ» ④ " قَالَ سُفْيَانُ: إِنَّا قَدْ جَرَّبْنَاهُ فَوَجَدْنَاهُ كَذَلِكَ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړي چې د

[1] اخرجه احمد فى المسند ۱۴۷/۴

[2] اخرجه الطبرانى فى الكبير ذكره فى كنز العمال (رقم -۵۷۶/۸) حديث رقم ۴۴۲۵۹

عاشوري په ورځ د خپل اهل وعیال په خرچ کې وسعت اختیار کړي [۲] نو الله تعالی ﷻ به تول کال د هغه په مال او زر کې، زیاتوالي (فراخی) پیدا کړي [۳] سفیان ثوري رحمه الله وایي چې مونږ د دې تجربه وکړه او دغه شان مو ومونده (رزین)

**حل اللغات:** - ① يَوْمَ عَاشُورَاءَ: دمحرم لسمه ورځ

۱۹۰۴ –()[۰۱] ① (وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ عَنْهُ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَأَبِي سَعِيدٍ وَجَابِرٍ وَضَعَّفَهُ).

**ترجمه:** ① دا روایت بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کې د ابن مسعود، ابوهریره، ابو سعید او جابر رضی الله عنهم څخه نقل کړي دي او هغه دا روایت ضعیف ګرځولی دي

**تسهیلات:**

**قوله: وَضَعَّفَهُ:**

**د حدیث تضعیف:** – یعنی امام بیهقی رحمه الله دا روایت ضعیف ګرځولی دې ملاعلی قاری رحمه الله په مرقات کښې او شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله په اشعه اللمعات کښې حدیث "توسع علی العیال" په یوم عاشور باندې کلام کړې دې چه آیا واقعی دا حدیث ناقابل استدلال دې یاقابل دَ عمل او قابل دَ استدلال دې؟

**دتضعیف جواب:** – څنګه چه ملاعلی قاری رحمه الله مرقات ج۴ص ۴۲۰باندې لیکی

"ونقل میرک رحمه الله عن المنذری فی الترغیب ان هذا الحدیث رواه البیهقی من طرق ومن جماعة من الصحابة وقال (ای البیهقی) هذه الاسانید وان کانت ضعیفة فهی اذا ضم بعضها الی بعض احدث قوة، قال العراقی رحمه الله له طرق صحح بعض یها وبعض یها علی شرط مسلم، واما حدیث الاکتحال یوم عاشوراء فلا اصل له وکذا سائر الاشیاء العشرة ما عدا الصوم والتوسع"

دَ دې عبارت خلاصه دا راووتله چه امام بیهقی رحمه الله سره دَدې چه دې حدیث ته ضعیف ونیلې دې لیکن دَمتعدد طرق دَ راجمع کولو نه پس فیصله دا اوروليِ ده چه دا اسانید سره دَدې چه انفرادی توګه باندې کمزورې دی خوچه کله متعدد طرق راجمع شی نو په حدیث کښې به قوت راپیدا شی

اصحاب جرح وتعدیل امام علامه عراقی رحمه الله فرمائی چه دَدې حدیث مختلف طرق دی بعضې صحیح ګرځولې شوی دی او بعضې خو دَامام مسلم رحمه الله په شرط باندې دی ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ عاشورې په ورځ دَ رانجو لګولو ذکر په کوم حدیث کښې دې هغه بې بنیاد دې دغه شان دَ عاشورې دَ ورځې دَپاره دَ لسو څیزونوذکر کولې شی ټول بې بنیاد دی صرف دَ عاشورې په ورځ روژه ساتل او دَ توسیع علی العیال حدیث صحیح دې

---

() اخرجه البیهقی فی شعب الایمان ۳۶۶/۳ حدیث (رقم-۳۷۹۵)

[١٩٢٨] د صدقې ثواب څو چنده کیدل

١٩٢٨-(١)[٣٩] ①وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: «قَالَ أَبُو ذَرٍّ: يَا نَبِيَّ اللهِ! ② أَرَأَيْتَ: الصَّدَقَةَ مَاذَا هِيَ؟ ③ قَالَ: أَضْعَافٌ مُضَاعَفَةٌ، ④ وَعِنْدَ اللهِ الْمَزِيدُ» رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**توجمه:** ① ابو امامه رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) ابو ذر رضي الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ ② ماته وښايه چې د صدقې ثواب څومره دي؟ ③ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمايل چه د دې ثواب چند درچند (يعني څو څو چنده) دي ④ بلکه د الله تعالیٰ ﷻ په نزد د دې څخه هم زيات دي (احمد)

**حل اللغات:** - ① أَضْعَافٌ مُضَاعَفَةٌ: څوڅو چنده زيات. ② الْمَزِيدُ: أي الزِّيَادَةُ تَفَضُّلًا: نورهم زيات په فضل د الله سره

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَ: أَضْعَافٌ مُضَاعَفَةٌ، وَعِنْدَ اللهِ الْمَزِيدُ:**

**يو په څو چنده اجر ملاويدل:** - په قيامت کښې د صدقې د ثواب څخه د لسو نه تر اوؤ سوؤ چندو پورې مراد دې ليکن که الله تعالی اوغواړي نو ددې څخه هم زياته ورکولې شي لقوله تعالی (وَاللهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَاءُ) داشان په يو حديث پاك کښې دی چې جنت کښې به ورته الله ﷻ يوه حوره ورکړی چې د هغې نوم به مزيد وی

# [٧] بَابُ أَفْضَلِ الصَّدَقَةِ

## دَبهترينې صدقې بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثمانية عشر حديثاً مشتملة على سبع مسائل:**

① فضيلة صدقة ماكان عن ظهر غنى: ١ ـ
② فضيلة صدقة ماكان على الأهل والأقارب : ٢، ٣، ٤، ٥، ٦، ٧، ١١، ١٢، ١٧.
③ فضيلة صدقة ماكان في سبيل الله: ٤، ١٣.
④ فضيلة صدقة ماكان على الجار: ٨، ٩.
⑤ فضيلة صدقة ما كان عن جهد المقل: ١٠
⑥ فضيلة صدقة ما يشبع الجائع: ١٨ ،
⑦ فضيلة إعانة السائل: ١٤، ١٥ـ

[١]) اخرجه احمد في المسند رقم الحديث ٢٢٩٤٨

**د غوره صدقې معيارات:** ① په دې اعتبار سره صدقه غوره ګرځي چه په صدقه کونکو کښې څه خاص امتيازي صفات وي مثلاً د هغه اخلاص زيات وي يا په حالت د احتياج کښې صدقه کوي
② په دې اعتبار سره صدقه غوره ګرځي چې هغې فائده عامه وي او د انسانانو ورته احتياج ډير زيات دې
③ په دې اعتبار سره صدقه غوره ګرځي چه په چا باندې صدقه کړې شوې ده هغه د ډير احسان قابل وو يا زيات حقدار وو يا ئې ډير بال بچ وو يا هغه خالص د الله تعالى په نوم سوال کړې وو هم

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۹۲۹] بهترينه صدقه

۱۹۲۹ ــ(۱)[۱] ۱ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ وَحَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ " «خَيْرُ الصَّدَقَةِ مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى، ۳ وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ» " ۴ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ عَنْ حَكِيمٍ وَحْدَهُ.

**ترجمه:** ۱ ابوهريره او حکيم بن حزام ﷄ دواړه راويان دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ بهترينه صدقه هغه ده چې بې پروايي سره يې ورکړې وي ۳ او د صدقې ابتداء د هغه سړي څخه وکړه چې د هغه نفقه په تا لازم وي. ۴ بخاري او، امام مسلم رحمه الله دا روايت يواځې د حکيم بن حزام ﷛ څخه نقل کړې دې

**حل اللغات:** - ① ظَهْرِ غِنًى: کومه صدقه چه سره د مالدارۍ نه ورکړې شي ② وَابْدَأْ: او ابتداء کوه، مخکښې کوه. ③ تَعُولُ: أي: بِمَنْ تَمُونُهُ: څوک چه ستا په کفالت کښې دی.

**تسهيلات:**

### قوله: مَا كَانَ عَنْ ظَهْرِ غِنًى:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:** - د دې لفظ دوه مفهومه دی
① صدقه کونکی ته د نفس غنا حاصله وی او هغه داسې چه هغه سخاوت خپل مال د الله تعالى په لار کښې داسې خرچ کوی چه د هغه د الله تعالى په ذات باندې مکمل او کامل يقين دې او هغه د دې خبرې نه مستغني او بې پرواه دې چه د خرچ کولو نه پس به زما اهل او عيال څه خوری لکه صديق اکبر ﷛ چه او فرمائيل په کوم کښې مې د الله او د هغه د رسول ﷺ نوم پريخودې دې [الکاشف ۱۴۲/۴].

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب لا صدقة إلا عن ظهر غنى (رقم-۱۴۲۶) ومسلم في كتاب الزكاة/باب بيان أن اليد العليا خير من اليد السفلى، وأن اليد العليا هي المنفقة وأن السفلى هي الآخذة (رقم) ۹۵ - (۱۰۳۴) وابوداود كتاب الزكاة/باب الرجل يخرج من ماله(رقم-۱۶۷۶) والنسائي كتاب الزكاة/باب أي الصدقة أفضل(رقم-۲۵۴۲) واحمد في المسند ۴۰۲/۲

④ كه چرته صدقه كونكى ته دنفس غنا حاصله نه وى ليكن هغه ته دمال اودولت غنا حاصله وى چه خرچ كولونه پس هم هغه سره دومره مال باقى دي چه د هغه دبال بچ دپاره كافى دي اولني مفهوم زيات مناسب دي [الكاشف ١٤٣/٤].

**قوله: وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ:**

**په خرچه كښې د خپل اهل وعيال څخه شروع كول:-** يعني چه كوم خلق ستا پرورش كښې دى صدقه وركولو كښې شمير دى دهغوى نه شروع اوكړه لكه چه اول خان دي اوبيا جهان دي.

**[١٩٢٠] په بال بچ خرچ كولو باندې د صدقې اطلاق**

١٩٢٠-(١)[٢] ①وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②" «إِذَا أَنْفَقَ الْمُسْلِمُ نَفَقَةً عَلَى أَهْلِهِ③ وَهُوَ يَحْتَسِبُهَا كَانَتْ لَهُ صَدَقَةً» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل② كوم مسلمان چې په خپل اهل (يعني ښځي او اقرباء) باندې څه خرڅ كوي③ او په هغې كې د ثواب توقع لري نو د هغه دا خرچ به د هغه په حق كې (ډيره مقبوله) صدقه وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① يَحْتَسِبُهَا: د ثواب طلبګاره وى.

**تسهيلات:**

**قوله: نَفَقَةً عَلَى أَهْلِهِ:**

**د اهل څخه مراد:-** د اهل نه خپله بى بى اونزدې رشته دار مراد دى په دې كښې صدقه هم ده او صله رحمى هم ده يعنى دبل ثواب دې

**[١٩٢١] بهترينه اشرفى**

١٩٢١-(٢)[٣] ①وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②" «دِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ فِي سَبِيلِ اللهِ③ وَدِينَارٌ تَصَدَّقْتَ بِهِ فِي رَقَبَةٍ④ وَدِينَارٌ تَصَدَّقْتَ بِهِ عَلَى مِسْكِينٍ⑤ وَدِينَارٌ أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ. ⑥أَعْظَمُهَا أَجْرًا الَّذِي أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② يو دينار خو هغه دي چې ته يې د الله تعالى په لاره كې (يعني په حج يا جهاد يا په طلب علم كې) خرچ كړي ③ او يو دينار هغه دي چې ته يې د غلام په آزادولو كې خرچ كړي ④ او يو دينار هغه دي چې په يومسكين يې خرچ كړي ⑤ او يو دينار هغه دې چه ته يې په خپل اهل و عيال باندې خرچ

---

(١) اخرجه البخاري فى كتاب النفقات/باب فضل النفقة على الأهل (رقم-٥٣٥١) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب بيان أن اليد العليا خير من اليد السفلى. وأن اليد العليا هي المنفقة وأن السفلى هي الآخذة (رقم) ٩٥ - (١٠٣٤) والنسائى كتاب الزكاة/باب أي الصدقة أفضل(رقم-٢٥٤٥) واحمد فى المسند ٢٧٤/٥

(٢) اخرجه مسلم فى كتاب الزكاة/باب فضل النفقة على العيال والمملوك. وإثم من ضيعهم أو حبس نفقتهم عنهم (رقم) ٣٩ - (٩٩٥) واحمد فى المسند:١٧٦/٢

کړي[٦] په دي تولو ديناورنو کې د ثواب په لحاظ د ټولو ښه لوي دينار هغه دي کوم چې تا په خپل اهل وعيال خرچ کړي وي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: أَعْظَمُهَا أَجْرًا الَّذِي أَنْفَقْتَهُ عَلَى أَهْلِكَ:**

**په اهل وعيال باندې مزيات ثواب ملاويدو دوه وجوهات:** - ① په اهل وعيال باندې د خرچ کولو ثواب زيات په دې وجه دې چې په دې کښې صله رحمي هم ده او صدقه هم ده او لهذا دوچند اجربهٔ ملاوېږي په څينې روا ياتو کښې ددې صراحت موجود دي (عن سلمان بن عامر..... إن الصدقة على ذي الرحم ثنتان صدقة وصلة)

② يا په دې وجه ثواب زيات دي چې هغه خيراتونه د نفل وو او دا خرچ فرض دې اکثر فرض نفلي نه بهتر وي.

**[۱۹۲۲] صدقې بهترين مصرف**

(۳)[۳][۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَفْضَلُ دِينَارٍ يُنْفِقُهُ الرَّجُلُ دِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى عِيَالِهِ، [۳] وَدِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى دَابَّتِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ، [۴] وَدِينَارٌ يُنْفِقُهُ عَلَى أَصْحَابِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] حضرت ثوبان رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] بهترين دينار هغه دي چې يو سړي يې په خپل اهل وعيال خرچ کړي [۳] او بهترين دينار هغه دي چې يو سړي يې په خپل هغه څاروی باندې خرچ کړي کوم چې د جهاد (غزا) د پاره پالل شوي وي [۴] او بهترين دينار هغه دي چې يو سړي يې په خپل هغه دوستانو باندې خرچ کړي کوم چې د الله تعالى په لار کې جهاد کونکي وي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① فِي سَبِيلِ اللهِ: د الله په لار کښې مثلاً جهاد، حج، طلب دعلم وغيره

**تسهيلات: قوله، أَفْضَلُ دِينَارٍ يُنْفِقُهُ الرَّجُلُ:**

**د صدقې درې مصارف:** - په دې حديث پاک کښې د مصرف درې مقامات ذکر شوي دي په دې درې وارو کښې خپل مال خرچ کول په نورو ځايونو کښې د خرچ کولو ښه بهتر دي

**په درې وارو کښې افضل مصرف:** - باقي په دې درې وارو کښې کوم يو افضل دې نود دې انحصار په موقع او محل دې که د جهاد ضرورت زيات دې نو په غازيانو باندې خرچ کول افضل دي او که کور والا زيات ضرورت مند وي نو بيا خپل اهل وعيال باندې خرچ کول بهتر دي

(۱) اخرجه مسلم في كتاب الزكاة/باب فضل النفقة على العيال والمملوك، وإثم من ضيعهم أو حبس نفقتهم عنهم (رقم) ۳۸ - (۹۹٤) واحمد في المسند: ۲۷۷/۵

**[١٩٢٣] په بال بچ باندې د خرچ کولو ثواب**

١٩٢٣ - ( )[٥] [١] «وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ [٢] أَلِيَ أَجْرٌ أَنْ أُنْفِقَ عَلَى بَنِي أَبِي سَلَمَةَ، إِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ؟ [٣] فَقَالَ: "أَنْفِقِي عَلَيْهِمْ، فَلَكِ أَجْرُ مَا أَنْفَقْتِ عَلَيْهِمْ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] د مؤمنانو مور بي بي أم سلمه رضي الله عنها فرمايي چې (يوه ورځ) ما عرض وکړو يا رسول الله ﷺ [٢] د ابوسلمه رضي الله عنه په زامنو باندې په خرچ کولو کې زما د پاره ثواب شته که نه؟ حالانکه هغه زما زامن دي [٣] نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په هغوئ خرچ کوه کوم شي چې ته په هغوئ خرچ کوې د هغه به ثواب درکول کيږي (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّمَا هُمْ بَنِيَّ؟:

**په خپلو بچو د خرچ کولو فضيلت:** حضرت ابوسلمه رضي الله عنه يو صحابي وو ام سلمه رضي الله عنها اول د هغوی په نکاح کښې وه چه د هغه انتقال اوشو نو ام سلمه کونډه شوه د ابوسلمه رضي الله عنه نه د هغې اولاد وو کوم وخت چه ام سلمه رضي الله عنها د حضورپاک په نکاح کښې راغله نودا يتيمان بچي هم ورسره راغلل ام سلمه رضي الله عنها به په هغوی باندې خرچ کولو ليکن خيال نې دا وو چه خپل اولاد دې په دوی باندې خرچ کولو کښې به څه ثواب ملاؤ شي کله چه نې د حضورپاک نه تپوس اوکړو نو رسول الله ﷺ ورته اوفرمائيل په دوی باندې خرچ کوه ثواب به ملاويږي

**[١٩٢٤] خپلې ښځې يا خپل خاوند ته د زکات ورکولو حکم**

١٩٢٤ - ( )[٦] [١] «وَعَنْ زَيْنَبَ امْرَأَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " [٢] تَصَدَّقْنَ يَا مَعْشَرَ النِّسَاءِ وَلَوْ مِنْ حُلِيِّكُنَّ "، [٣] قَالَتْ: فَرَجَعْتُ إِلَى عَبْدِ اللهِ فَقُلْتُ: [٤] إِنَّكَ رَجُلٌ خَفِيفُ ذَاتِ الْيَدِ، [٥] وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَدْ أَمَرَنَا بِالصَّدَقَةِ فَأْتِهِ فَاسْأَلْهُ، [٦] فَإِنْ كَانَ ذَلِكَ يُجْزِئُ عَنِّي وَإِلَّا صَرَفْتُهَا إِلَى غَيْرِكُمْ. [٧] قَالَتْ: فَقَالَ لِي عَبْدُ اللهِ: بَلِ ائْتِيهِ أَنْتِ، [٨] قَالَتْ: فَانْطَلَقْتُ فَإِذَا امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ بِبَابِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَاجَتِي حَاجَتُهَا، [٩] قَالَتْ: وَكَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَدْ أُلْقِيَتْ عَلَيْهِ الْمَهَابَةُ،

**ترجمه:** [١] د عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ښځه بي بي زينب رضي الله عنها وايي چې (يو ځل) د ذکر او نصيحت په مجلس کې (ښځې مخاطب کولو سره) رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] چې اې د

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب الزكاة على الزوج والأيتام في الحجر (رقم-١٤٦٧) ومسلم في كتاب الزكاة/باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد، والوالدين ولو كانوا مشركين (رقم-٤٧ - (١٠٠١) واحمد في المسند: ٥٠٣/٣

(٢) اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب الزكاة على الزوج والأيتام في الحجر (رقم-١٤٦٦) ومسلم كتاب الزكاة/باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد، والوالدين ولو كانوا مشركين (رقم) ٤٥ - (١٠٠٠) والنسائي كتاب الزكاة/باب الصدقة على الأقارب (رقم-٢٥٨٣) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب الصدقة على ذي قرابة (رقم-١٨٣٤) واحمد في المسند ٣٦٣/٦

ښځو جماعته· صدقه او خيرات کوئ اګر که هغه ستاسو د زيوراتو څخه وي ③ بي بي زينب رضي الله عنها وايي (د دي په اوريدو سره) زه (د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د مجلس څخه عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ته راغلم او هغه ته مي او ويل ④ چي ته خالي لاس (يعني مفلس) سړي يي ⑤ او رسول الله ﷺ مونږ ته د صدقي کولو حکم راکړي دي نو ته د رسول الله ﷺ خدمت ته ورشه او تپوس اوکړه ⑥ چي آيا دا صدقه به زما د پاره کافي وي که نه؟ [که تاته او ستا اولاد ته زما صدقه ورکول زما د پاره کافي کيږي نو بيا به تاته صدقه درکړم او که دا زما د پاره کافي نه وي] نو بيا به ستا څخه علاوه په نورو خلقو باندي په طور د صدقه خرچ کړم ⑦ بي بي زينب رضي الله عنها وايي چي عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه ماته او ويل چي ته پخپله ورشه [او د رسول الله ﷺ څخه په دي باره کي پوښتنه وکړه] ⑧ نو زه خپله د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کي حاضره شوم هلته څه ګورم چي د رسول الله ﷺ پر دروازه د انصارو يو ښځه ولاړه ده او (هلته د راتلو) زمونږ د دواړو حاجت يو شان وو (يعني هغه هم د دي خبري معلومولو د پاره راغلي وه چي آيا زه د خپلي صدقي مال خاوند او د هغه متعلقينو ته ورکولي شم که نه؟) ⑨ بي بي زينب رضي الله عنها وايي چي د رسول الله ﷺ ذات اقدس د هيبت او عظمت پيکر (مجسمه) وه مونږ تهحضور ﷺ ته د ورتلو جرأت ونه شو

**حل اللغات:-** ① حُلِيِّ: د حَلْي جمع ده، وَهُوَ مَا يُتَزَيَّنُ بِهِ: کوم څه چه ښځي خپل ښائست جوړوی هغي ته حلي وائي ② خَفِيفُ: أَيْ قَلِيلُ: يعني لږدی، سپک دی، ③ خَفِيفُ ذَاتِ الْيَدِ: يعني خالي لاس. فقير. ④ صَرَفْتُهَا: خرچ به ئي کړم. ⑤ حَاجَتِي وَحَاجَتُهَا: يعني دکومي مسئلي دمعلومات دپاره چه زه تلي ووم دغه شان مسئله دي ښځي ته هم پيښه شوي وه ⑥ الْمَهَابَةُ: أَيْ هَيْبَةٌ وَعَظَمَةٌ يَهَابُهُ النَّاسُ: يعني الله تعالى نبي عليه السلام ته رعب او دبدبه او لوئي شان ورکړي ووچه خلق به تري ويريدل او تعظيم به ئي کولو. نو چابه په ورتلو کښي زړورتيا هم نه شوه کولي.

①فَقَالَتْ: فَخَرَجَ عَلَيْنَا بِلَالٌ فَقُلْنَا لَهُ: ائْتِ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ②فَأَخْبِرْهُ أَنَّ امْرَأَتَيْنِ بِالْبَابِ تَسْأَلَانِكَ: ③ أَتُجْزِئُ الصَّدَقَةُ عَنْهُمَا عَنْ أَزْوَاجِهِمَا وَعَلَى أَيْتَامٍ فِي حُجُورِهِمَا؟ ④ وَلَا تُخْبِرْهُ مَنْ نَحْنُ، ⑤ قَالَتْ: فَدَخَلَ بِلَالٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَسَأَلَهُ، ⑥ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "مَنْ هُمَا؟" ⑦ قَالَ: امْرَأَةٌ مِنَ الْأَنْصَارِ وَزَيْنَبُ، ⑧ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "أَيُّ الزَّيَانِبِ؟" ⑨ قَالَ: امْرَأَةُ عَبْدِ اللَّهِ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑩ "لَهُمَا أَجْرَانِ أَجْرُ الْقَرَابَةِ، وَأَجْرُ الصَّدَقَةِ" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَاللَّفْظُ لِمُسْلِمٍ.

**ترجمه:** ① او مونږ د هغه ځاي څخه د تلو سره حضرت بلال رضي الله عنه ته راغلو هغه ته مو او ويل چي ته د رسول الله ﷺ خدمت ته ورشه ② او ورته اووايه چي په دروازه کي دوه ښځي ولاړي دي او ستا ﷺ څخه پوښتنه کوي ③ چي آيا خپلو خاوندانو ته او هغه يتيمانو ته چي دهغوی په پرورش کي دي هغوئ ته صدقه ورکول به د هغه ښځو د پاره کافي وي؟ ④ خو

ګوره چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته دا مه وايه چې مونږ څوك يو [يعنی هغوی د خپل ځان د ظاهرولو ښځه په بچ کيدو کې مبالغه وکړه چې په دی باره کې د ريا څه شائبه رانشی]٥ بي بي زينب رضي الله عنها وايي چې حضرت بلال رضي الله عنه نبي کريم صلی الله عليه وسلم ته ورغي او هغه مسئله يې ځني وپوښتله ٦ اول نبي کريم صلی الله عليه وسلم د هغه ښځه پوښتنه وکړه چې هغه دوه ښځې څوك دي؟ ٧ بلال رضي الله عنه ورته اوويل چې يوه خو د انصارو يوه ښځه ده او دويمه زينب (رضي الله عنها) ده ٨ نبي کريم صلی الله عليه وسلم د هغه ځخه پوښتنه وکړه چې کومه زينب؟ (ځکه چې د زينب په نامه خو ډيرې ښځې دي) ٩ بلال رضي الله عنه اوويل چې د عبدالله ابن مسعود ښځه بيا نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې هغوی ته ورشه او ورته اووايه ١٠ چې په دې صورت کې د هغوی دپاره دوچنده ثواب دې يو د حق قرابت (د ادا کولو) او دويم د صدقې ورکولو بخاري مسلم، الفاظ د مسلم دي

**حل اللغات:**- ⑥أَيْتَام: د يتيم جمع ده، ⑧حُجُورِهِمَا: د حجر جمع ده أَيْ فِي تَرْبِيَتِهِمَا: يعنی د دوی په پرورش کښې دی

**تسهيلات:**

**قوله**: وَلَوْمِنْ حُلِيِّكُنَّ:

ددې نه په واضحه توګه باندې د احنافو مسلك ثابتيږی د چا په نيز چه د ښځو په کالوکښې زکوة دی مسئله اول تيره شوې ده

**قوله**: بَلِ انْتِيهِ أَنْتِ:

**دعبدالله بن مسعود په جواب کښې ژوروالي:**- حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه ډير ښکلې جواب ورکړو په کوم سره چه د سړی اوچتوالي هم په ځانې پاتې شو الله تعالی دې په هغوی باندې په کروړونو رحمتونه نازل کړی مطلب دا چه زه د زکوة اخستلو دپاره د دارالافتاء نه د دې مسئلې تپوس نه شم کولې چه زما د ښځې زکوة زما دپاره صحيح دی که نه نه پخپله لاړ شه او معلومه کړه

**قوله**: وَأَجْرُ الصَّدَقَةِ:

**دښځې اوخاوند يو بل ته د زکات په ورکولو په حکم کښې مذاهب:**-

يعنی دوه اجرونه به ملاويږی يو اجر به د صدقې ملاويږی او دويم د خپلولئی او صله رحمئی په دې کښې د تولو فقهاؤ د احنافو اتفاق دې چه خاوند خپلې ښځې ته د زکوة مال نه شی ورکولې ځکه چه دواړه خرچه کښې مشترك دی په کوم سره چه سړې د خپل مال نه پخپله فائده اوچتولې شی ځکه ناجائز دی البته په دې کښې اختلاف دې چه ښځه خپل خاوند ته زکوة ورکولې شی که نه، دې کښې اختلاف دې

① د امام محمد رحمه الله او امام ابويوسف رحمه الله په نيز ښځه خپل خاوندته زکوة ورکولې شی

خکه چه په مفاداتو کښې اشتراك نشته

② امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه ښځه هم خپل خاوند ته زکوة نه شي ورکولې خکه چه دلته هم مفادات مشترك دي

**د اول فريق دليل:** - زير بحث حديث د دوی مستدل دې په دې کښې چه دکوم صدقې ذکر دې هغې څخه واجبی صدقه مراد ده

**د اول فريق د دليل جواب:** - دا حديث دَ زکوة نه علاوه په يوبله صدقه خيرات او نفلی معاملاتو باندې حمل دې

**د دويم فريق دليل:** - رسول الله ﷺ فرمائي. ((وَوَجَدَكَ عَائِلًا فَأَغْنَىٰ)) (الايه)او وې موندلې ته مفلس بيائې بې پرواه کړې . ددې په تفسيرکښې ونيلې شوې دی چه نبی کريم ﷺ د دوی د بی بی په مال غنی او مالداره شو .معلومه شوه چه د ښځې په مالداره کيدو سره خاوند مالدار شمارلې شی.اوددې په عکس هم.نوهرکله چه داسې ده نود خاوند خپلې ښځې ته زکاة ورکول گويا چه د يوجيب نه اوبشکل اوبل جيب ته اچول دی.اوښکاره ده چه په دې سره زکاة څنگه اداکيدې شي.

**[۱۹۲۵] په خپلوانو صدقې کولو افضليت**

| وَعَنْ مَيْمُونَةَ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّهَا أَعْتَقَتْ وَلِيدَةً فِي زَمَانِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَقَالَ: "لَوْ أَعْطَيْتِهَا أَخْوَالَكِ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِكِ" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] د مؤمنانو مور بي بي ميمونه رضي الله عنها بنت حارث په باره کې منقول دي چې هغې ،يو خل، د رسول الله ﷺ په زمانه کې يوه وينځه آزاده کره[۲] او رسول الله ﷺ ته يي د هغې تذکره وکره [۳] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې که تا هغه وينځه خپل ماما ته ورکړې وې نو تاته به ډير زيات ثواب حاصليدي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① وَلِيدَةً: أَيْ جَارِيَةً مَوْلُودَةً فِي مِلْكِهَا: وينزه اوچا ونيلی دی چې وليده داسې وينځې ته وائي چې دخپل مملوك غلام او د وينځې د خيټې نه پيدا شوې وی

② أَخْوَال :د خَال جمع ده، ماما ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله :لَوْ أَعْطَيْتِهَا أَخْوَالَكِ كَانَ أَعْظَمَ لِأَجْرِكِ:**

**په رشته دار باندې د صدقې کولو افضليت:** - ستا ماما ته ديو خدمتگار ضرورت وو په دې وجه که تاهغه ته دا وينځه ورکړې وې نو تاته به دوچند اجر ملاؤ شوې وې يو د صله رحمی او

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب هبة المرأة لغير زوجها وعتقها. إذا كان لها زوج فهو جائز. إذا لم تكن سفيهة. فإذا كانت سفيهة لم يجز (رقم-۲۵۹۲) ومسلم في كتاب الزكاة/باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد. والوالدين ولو كانوا مشركين (رقم) ٤٤ - (۹۹۹) وابوداود كتاب الزكاة/باب في صلة الرحم (رقم-۱۶۹۰)

بل د صدقې او په دې خبره کښې څه شك دې چې دوه نيکۍ د يوې نيکۍ څخه بهترې دی ايضا، د دې څخه معلومه شوه چې صله رحمی د غلام آزادولو څخه هم افضله ده

**[١٩٣٦] د دروازې په اعتبار سره د احسان استحقاق**

—( )[٨] [١] «وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي جَارَيْنِ [٢] فَإِلَى أَيِّهِمَا أُهْدِي؟ [٣] قَالَ: "إِلَى أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [١] د ام المومنين بي بي عايشې ﷺ په باره کې منقول دي چې هغې عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زما دوه ګاونډيان دي [٢] په هغوی کې چاته تحفه وليږم؟ يعني مخکې يا زياته چاته ورکړم [٣] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هغه ګاونډی ته چې د هغه دروازه تاته زياته نزدې وي (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَى أَقْرَبِهِمَا مِنْكِ بَابًا:**

**د دروازې په اعتبار سره القربيت:** - که ديو کس دوه ګاونډيان وی او په دوی کښې ديو ګاونډی ديوال زيات نزدې وی او دبل دروازه زياته نزدې وی نو دا د چا دروازه چې نزدې ده هغه به مقدم ګرځولې کيږی

**دحديث مفهوم:** - په دې خبره پوهيدل پکار دی چې دلته په حديث پاك کښې حصر مراد نه دې يعنی د رسول کريم ﷺ د ارشاد مطلب دا نه دې چې صرف هغه ته دې ورکړې شی او هغه بل ته دې ورنه کړې شی بلکه مراد ترې دادې چې اول يا زيات دې هغه ګاونډی ته ورکړې شی د چا دروازه چې نزدې وی او د دې وجه په ظاهره دا معلوميږی چې د کوم ګاونډی دروازه زياته نزدې وی او د هغه سره ملاقات کول او تګ راتګ زيات وی نو په دې وجه دهغه د حالاتو علم هم زيات وی لهذا هغه سره د محبت اود سلوك معامله اولی ده

**[١٩٣٧] په ترکاری کښې د ګاونډيانو خيال ساتل**

—( )[٩] [١] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«إِذَا طَبَخْتَ مَرَقَةً فَأَكْثِرْ مَاءَهَا [٣] وَتَعَاهَدْ جِيرَانَكَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ابوذر ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هرکله چې ته ښوروا پخوې نو په هغې کې اوبه زياتې اچوه [٣] او د خپل ګاونډی خيال ساته (مسلم)

**حل اللغات:** - ① طَبَخْتَ: پخوې. ② مَرَقَةً: خوروا

( ) اخرجه البخاري فی کتاب الهبة وفضلها والتحريض عليها/باب بمن يبدأ بالهدية (رقم -٢٥٩٥) واحمد فی المسند ١٧٥/٦
( ) اخرجه مسلم فی کتاب البر والصلة والآداب/باب الوصية بالجار والإحسان إليه (رقم) ١٤٢ - (٢٦٢٥) والدارمی حديث رقم ٢٠٧٩

**تسهيلات:**

**قوله** إِذَا طَبَخْتَ مَرَقَةً فَأَكْثِرْ مَاءَهَا:

**د خوروا ه زياتولو حكم:** - دلته دخوروا ذكر دې د غوښې وي او كه د بل څيز (أى فيهما لحما) يعنى تركارۍ كښې او به زياتې واچوه چې ګاونډيانو ته ئې هم وركړې صرف د خپلو خواهشاتو د لذتونو خيال مه ساتې بلكه د ګاونډى هم خيال ساتې اګر چې خوروا زياتولو كښې به لذت كښې كمې راشي خو ددې په ذريعه به ګاونډيانو سره تعلقات زيات شي ابن الملك رحمه الله فرمائي چې په او بو خوروا كښې د او بو د اچولو حكم ګاونډى ته د رسولو د حرص په وجه دى اګر چې لذت په كښې هم نه وى (مرقاة ج ۴ ص ۳۲۱).

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۹۲۸] دغريب د صدقې افضليت**

۱۹۲۸ - ( ) [۱۰] ⑴ «عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ الصَّدَقَةِ أَفْضَلُ؟ ⑵ قَالَ: " جُهْدُ الْمُقِلِّ، وَابْدَأْ بِمَنْ تَعُولُ» ". رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ⑴ د ابوهريره رضي الله عنه په باره كې منقول دي چې هغه عرض وكړو يا رسول الله صلى الله عليه وسلم كومه صدقه د زيات ثواب باعث ده؟ ⑵ نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د كم مال لرونكې په صدقه وركولو كې زيات سعې او كوشش كول ⑶ او د صدقې مال مخكې هغه سړي ته وركړه چې د هغه د ژوند ضروريات ستا د ذات سره تړلي (وابسته يعنى ستا اهل وعيال) وي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① جُهْدُ: المَشَقَّةُ: كوشش، محنت. ② المُقِلِّ: لږ مال لرونكې (مراد ترې غنى القلب دى) ③ ابْدَأْ: او ابتداء كوه، مخكښې كوه. ④ تَعُولُ: أَيْ: بِمَنْ تَمُونُهُ: څوك چه ستا په كفالت كښې دى

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ: جُهْدُ الْمُقِلِّ:

**د جهد المقل څخه مراد:** - جهد خو محنت مزدورۍ ته وائى دلته په صدقه كولو كښې اخلاص كول او پوره كوشش كول مراد دى مال كم دې خو په خپل زړه باندې كانړې كيخودو سره د الله تعالى په لار كښې مال وركوى المقل داد قليل اوقلت نه دې مراد ترې هغه خلق دى چاسره چه د صدقې دپاره مال بالكل كم وى عربى محاوره ده "جهد المقل دموعه" يعنى چاسره چه مال نه وى هغه د ژړا نه بغير څه كولې شي.

(۱) اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الزكاة باب فى الرخصة فى ذلك (رقم-۱۶۷۷)

## [۱۹۳۹] په خپلوانو د صدقي كولو دوچنده ثواب

[۱] (۱) وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «اَلصَّدَقَةُ عَلَى الْمِسْكِينِ صَدَقَةٌ، [۳] وَهِيَ عَلَى ذِي الرَّحِمِ ثِنْتَانِ صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] سليمان بن عامر رضي الله عنه روايت كوي چه رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] يو مسكين ته صدقه وركول يوه صدقه ده، يعني هغه ته په وركولو كې يواځې د صدقې ثواب حاصلېږي [۳] خو په خپلو اقرباؤ كې چاته صدقه وركول د دوچنده ثواب باعث دي يو ثواب د صدقې او دويم ثواب د صله رحمي، د رشته داروسره د حسن سلوك، وي احمد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه، دارمي.

**حل اللغات:** - ① ذِي الرَّحِمِ: رشته داران. ② صِلَةٌ: صله رحمي، حسن سلوک

**تسهيلات:**

**قوله:** عَلَى ذِي الرَّحِمِ ثِنْتَانِ صَدَقَةٌ وَصِلَةٌ:

**په رشته دار باندې د صدقې كولو دوه اجرونه:** - اجنبي مسكين ته صدقه وركولو كښې صرف د صدقې ثواب دې او خپل نزدې رشته دار ضرورت مند ته وركولو كښې د صدقې ثواب هم دې او د صله رحمي هم

## [۱۹۴۰] د خرچ كولو ترتيب

[۲] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۲] عِنْدِي دِينَارٌ، قَالَ: "أَنْفِقْهُ عَلَى نَفْسِكَ". [۳] قَالَ عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "أَنْفِقْهُ عَلَى وَلَدِكَ". [۴] قَالَ عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "أَنْفِقْهُ عَلَى أَهْلِكَ". [۵] قَالَ: عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "أَنْفِقْهُ عَلَى خَادِمِكَ". [۶] قَالَ: عِنْدِي آخَرُ، قَالَ: "أَنْتَ أَعْلَمُ"» رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې د رسول الله ﷺ په خدمت كې يو سړي حاضر شو هغه وويل چې يا رسول الله ﷺ [۲] ما سره يو دينار دي، چې خرچ كول يې غواړم نو هغه كوم ځاى خرچ كړم؟ نبى كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هغه په خپل ځان باندې خرچ كړه [۳] هغه عرض وكړو چې ما سره يو بل دينار دي حضور صلي الله عليه و سلم ورته اوفرمائيل چه په خپل اولاد يې خرچ كړه [۴] هغه عرض وكړو چې ما سره يو بل دينار دي نبى

---

(۱) اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصدقة على ذي القرابة(رقم-۶۵۸) والنسائي كتاب الزكاة/باب الصدقة على الأقارب(رقم-۲۵۸۲) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب فضل الصدقة(رقم-۱۸۴۴) واحمد في المسند ۲۱۴/۴

(۲) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب في صلة الرحم (رقم-۱۶۹۱) والنسائي كتاب الزكاة/باب تفسير ذلك(رقم-۲۵۳۵) وابن ماجة كتاب الزكاة/باب فضل الصدقة(رقم-۱۸۴۴) واحمد في المسند ۲۱۴/۴

کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل هغه په خپل اهل (یعني ښځه، موږ او پلار او نور اقرباؤ) باندې خرچ کړه ۵ هغه اوویل چې ما سره یو بل دینار دي نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا بدلول دی ورته وفرمایل چې هغه په خپل خادم باندې خرچ کړه ۶ بیا هغه اوویل چې ما سره یو بل دینار دي نبی کریم صلی الله علیه وسلم نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې اوس ته ددې په باره کې زیات پوهیږې (یعني اوس د دې څخه روسته مستحق ته بهتر پیژنې چې ته څوک مستحق وګڼې هغه ته یې ورکړه). (ابوداؤد نسایي)

**تسهیلات:**

**نوټ:-** ددې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده

**[۱۹٤۱] بدترین سوال ګري**

**–( ) [۱۳] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ "«أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ النَّاسِ: ۳ رَجُلٌ مُمْسِكٌ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللهِ ۴ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِالَّذِي يَتْلُوهُ: ۵ رَجُلٌ مُعْتَزِلٌ فِي غُنَيْمَةٍ لَهُ ۶ يُؤَدِّي حَقَّ اللهِ فِيهَا ۷ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِشَرِّ النَّاسِ: ۸ رَجُلٌ يُسْأَلُ بِاللهِ وَلَا يُعْطِي بِهِ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.**

**ترجمه:** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ آیا زه تاسو ته درونښایم چې ښه سړي څوک دي؟ ۳ هغه سړي دي چې د الله تعالی په لار کې د اس واګې نیولي ولاړ دي (یعني د جنګ په میدان کې په اس سور او د جنګ په انتظار وي) ۴ آیا زه تاسو ته درونښایم هغه کوم سړي دي چې د مذکوره بالاسړي (یعني مجاهد) مرتبې ته نژدې دي؟ ۵ هغه سړي دي چې د خپلو څو بزو سره یې ګوشه نشیني اختیار کړی ده ۶ او د الله تعالی حق ادا کوي (یعني هغه د څو بزو اخستو سره د خلقو څخه لرې په یو ځنګل کې د خپلو بزو سره وسیږي او د هغې په وخت زکات ورکوي) ۷ آیا زه تاسو ته وښایم چې بدترینه سړي څوک دي؟ ۸ هغه سړي دي چې د هغه څخه د الله تعالی په قسم سره سوال وشي (یعني سوالګر د هغه څخه په دې طریقه څه غواړي چې ستا دې په الله تعالی قسم وي چې ماته څه راکړه) خو هغه د سایل (سوالګري) سوال نه پوره کوي (ترمذي، نسایي، دارمي)

**حل اللغات:-** ① مُمْسِكٌ: أي آخِذٌ: نیونکي وی ② عِنَانٌ: واګې. ③ مُعْتَزِلٌ: أي مُتَبَاعِدٌ: لرې کیدونکي او جدا کیدونکي وی دخلقو نه ④ يسئل بالله: یعنی د الله تعالی د نوم واسطه ورکولوسره دهغه نه سوال اوکړې شی مګر هغه څه ورنه کړی

() اخرجه الترمذي في السنن كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء أي الناس خير(رقم-١٦٥٢) والنسائي كتاب الزكاة/باب من يسأل بالله عز وجل ولا يعطى به(رقم-٢٥٦٩) ومالك في الموطا كتاب الجهاد/باب الترغيب في الجهاد(رقم-٤)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِ النَّاسِ:

**دمجاهد فضیلت:** - یعنی دټولو خلقونه افضل هغه غازی اومجاهد دې چه هروخت اسونه تیار ساتی اودَ جهاد په انتظار وی کله هم چه دَ یوطرف نه دکافرانو شورشرابه اوری په منډه هغه طرف ته خی اودَ الله تعالی په لار کښې مرګ لټوی

**د شارحینو په تحذیف (حذف مئلو) باندې اشکال:** - حافظ فضل محمد د دې حدیث په شرح کښې لیکی دلته ټولوشارحینو کلمه دَتمریض سره دا کلام کړې دې چه په دې حدیث کښې داسې عبارت محذوف دې "ای ممن هومن خیرالناس" یعنی داسې سړې چه دَ نورو خو خلقونه یو ښه سړې وی یعنی دَ ټولو نه افضل نه وی بلکه دَافضل خلقو نه یو کس وی

**دمحذوف کنړلو وجه:** شارحین فرمائی چه دا محذوف خکه اخستلې کیږی چه کیدې شی دَدې غازی اومجاهد نه بل څوك سړې زیات بهتر وی دَ شارحینودا کلام او احتمال په خپل خائی په سر سترګو قبول دې لیکن په دې سره دَ حضورپاك په کلام کښې دَمحذوف عبارت لګولوبې خایه تکلف لازم راخی کله چه په حدیث کښې مجاهد دَ ټولو خلقونه افضل ګرخولې دې اودَ قرآن پاك اعلان دې ﴿وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا﴾ دې نه پس کومه یوه مجبوری ده چه مجاهد افضل نه دې؟

**قوله:** يُسْأَلُ بِاللّٰهِ وَلَا يُعْطِي بِهِ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال:** - شیخ عبدالحق محدث دهلوی لیکی

① "یسأل" دَمعلوم صیغه ده او "لایعطی" دَمجهول صیغه ده یعنی دَ الله تعالی په نوم باندې سوال کوی ګرخی مګر یوسړې هغه ته دَ الله تعالی په نوم باندې نه ورکوی دا دَ هغه سړی حال دې چه پخپله سوالګر دې هغه دَ الله تعالی دَ نوم بې حرمتی اوکړه چه دَمعمولی مال دپاره ئې هرخائی پیش کړو اوچاځه هم ورنه کړل

② "یسال بالله" دَمجهول صیغه ده او "لایعطی" دَ معلوم صیغه ده ترجمه داسې ده چه په خلقوکښې بدترین سړې هغه دې چه دَهغه نه دَ الله په نوم باندې سوال اوکړې شی مګر هغه دَ الله تعالی په نوم باندې ورکړه نه کوی دا دَ هغه سړی حال بیان کړې شو دَ چانه چه سوال کولې شی سائل نه بلکه مسؤل دې هغه دَ الله تعالی دَ نوم په احترام کښې هیڅ ورنه کړل [اشعة المعات]

③ "یسأل" دَ معلوم صیغه او "لایعطی" هم دَ معلوم صیغه ده مطلب دا چه پخپله دَ الله تعالی په نوم باندې دَ الله تعالی واسطه ورکولوسره غوښتنه کوی لیکن چه کله هم دَ دغه الله تعالی په نوم ده نه څوك غواړی نودې دَ الله تعالی په نوم باندې هیڅ نه ورکوی دا دَهغه

سړی حال دی چه بخپله سائل هم دی او مسئول هم دی هغه د الله تعالی په نوم باندي خپل کار اوویستلو لیکن د بل کار نی د الله په نوم باندي اونه کړو دا دریم احتمال دی او ممکن ده چه په دې حدیث کښې د دې احتمال ګنجائش وی ما د یو شارح په کلام کښې دا احتمال نه دی لیدلی ممکن ده چه چا لیکلی وی. ما په حدیث کښې د غور کولو نه پس دا اولیکلو که صحیح وی نو قبول نی کړئی ګنی پریږدئی

**[۱۹۴۲] سوال کونکی خالی لاس نه واپس کول**

(۱)[۱۴]۱ وَعَنْ أُمِّ بُجَيْدٍ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ "«رُدُّوا السَّائِلَ وَلَوْ بِظِلْفٍ مُحْرَقٍ» ". رَوَاهُ مَالِكٌ وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ مَعْنَاهُ.

**ترجمه**: ۱ بي بي أم بجيد رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ سوالګر د څه ورکولو سره واپس کوئ اګر که هغه سوزيدلي نوك وي. مالك، نسايي، ترمذي او ابوداود د دې هم معنی روایت نقل کړي دي

**حل اللغات**:- ۱ رُدُّوا: واپس کوئ، ۲ ظِلْف: نوک مراد ترې معمولي څيز دی ۳ مُحْرَق: سوزيدلی (دا د مبالغې په طور دی)

**تسهيلات**:

**قوله: بِظِلْفٍ مُحْرَقٍ**:

**د ظلف محرق ذکر کولو څخه غرض**:- سوزيدلی کور د هيڅ مطلب نه وی يوبې فائدې څيز وی حضورپاك د دې تذکره د مبالغې په توګه کړې ده مراد دادې چه د قليل نه قليل او د کم نه کم تر څيز ولې ورنه کړې مګر سائل خالی لاس مه واپس کوه

**[۱۹۴۳] د محسن د بدلې خلاصولو ترغيب**

(۲)[۱۵]۱ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ "«مَنِ اسْتَعَاذَ مِنْكُمْ بِاللَّهِ فَأَعِيذُوهُ، ۳ وَمَنْ سَأَلَ بِاللَّهِ فَأَعْطُوهُ، ۴ وَمَنْ دَعَاكُمْ فَأَجِيبُوهُ، ۵ وَمَنْ صَنَعَ إِلَيْكُمْ مَعْرُوفًا فَكَافِئُوهُ، ۶ فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَا تُكَافِئُونَهُ فَادْعُوا لَهُ، ۷ حَتَّى تَرَوْا أَنْ قَدْ كَافَأْتُمُوهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه**: ۱ ابن عمر رضي الله عنهما روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړي چې ستاسو څخه د الله جل جلاله په واسطه پناه وغواړي نو هغه ته پناه ورکوئ ۳ او کوم سړي چې ستاسو څخه د الله جل جلاله په نامه څه وغواړي نو د هغه سوال پوره کوئ ۴ او کوم سړي چې تاسو د طعام د پاره راوبلي (يعني ستاسو دعوت وکړي) نو د هغه دعوت قبلوئ (په شرط د دې

(۱) اخرجه ابوداودفي السنن کتاب الزکاة/باب حق السائل(رقم-۱۶۶۷) والترمذی کتاب الزکاة عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی حق السائل(رقم-۶۶۵) ومالک فی الموطا کتاب صفة النبی صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی المساکین(رقم-۸) واحمد فی المسند ۴۳۵/۶

(۲) اخرجه ابوداودفي السنن کتاب الزکاة/باب عطیة من سأل بالله(رقم-۱۶۷۲) والنسائی کتاب الزکاة/باب من سأل بالله عز وجل(رقم-۲۵۶۷) واحمد فی المسند ۶۸/۲

چې څه حسي يا شرعي مانع نه وي، ⑤ او کوم سړي چې ستاسو سره ،قولي يا فعلي، احسان وکړي نو تاسو هم د هغه بدله ورکړئ ،يعني تاسو هم د هغه سره هغه شان احسان وکړئ، ⑥ او که تاسو مال وزر بيامومئ چې د هغه بدله ورکړئ نو بيا د خپل محسن د پاره دعا کوئ ⑦ تر دې چې تاسو پوهه شئ چې تاسو د هغه بدله ورکړه ،احمد، ابوداؤد، نسايي،

**حل اللغات:-** ① اِسْتَعَاذَ: چاچه تاسو ته فرياد اوکړو او پناه نې درنه اوغوښتله ② صَنَعَ: أَيْ أَحْسَنَ: احسان اوکړی، ③ مَعْرُوفًا: نیکی ،که قولی وی اوکه فعلی وی، ④ فَكَافِئُوهُ: اى مِثْلَ مَا أَحْسَنَ إِلَيْكُمْ: يعنی پوره بدله ورکړئ، نیکی ورسره اوکړئ څنګه نې چه تاسو سره کړې ده، ⑤ كَافَأْتُمُوهُ: اى قَدْ أَدَّيْتُمْ حَقَّهُ: يعنی چه تاسو نې بدله ورکړه نو يقينا چه دهغه حق مو پوره ادا کړو

**تسهيلات:**

**قوله: دَعَاكُمْ:**

يعنی دَ خوراك په دعوت نې راؤغوښتلو يا که څه شرعی ممانعت نه وی نو دا قبلونی

**قوله: فَإِنْ لَمْ تَجِدُوا مَا تُكَافِئُوهُ:**

**د احسان د بدلې علاوه لو غوره طريقه:-** داد مکافات نه دې دبدلې ورکولو په معنی کښې دې اوچه تاسو بدله نه شې ورکولې نو دَاحسان کونکی دپاره دعاکوئی تاسو پخپله خيال اوکړئی چه تاسود هغه دَ احسان حق بدله ورکړه په يو روايت کښې دی چاچه احسان کونکی ته اووئيل "جزاك الله خيرًا" نو هغه په بدله ورکولو کښې مبالغه اوکړه يعنی بـه حق نی اداکړو

**[۱۹۴۴ [دَالله تعالى په نوم د جنت څخه سوا د بل څيز سوال کولو ممانعت**

> (۱۶) ① وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا يُسْأَلُ بِوَجْهِ اللهِ إِلَّا الْجَنَّةُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت جابر ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د الله ﷻ د ذات په واسطه د جنت څخه علاوه بل هيڅ مه غواړئ ،ابوداؤد،

**حل اللغات:-** ① بِوَجْهِ اللهِ: أَيْ بِذَاتِهِ: يعنی د الله د ذات په واسطه

**تسهيلات:**

**قوله: لَا يُسْأَلُ بِوَجْهِ اللهِ إِلَّا الْجَنَّةُ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① دَ الله تعالى په نوم باندې دَ دنياڅه څيز نه شی غوښتلې ځکه چه دنيا فانی او حقير څيزدې دَدې دَحاصلولو دپاره دَ الله تعالى دومره لوئی نوم نه دی استعمالول پکار که چرته يو سړې دا لوئی نوم دَ څه مقصد دپاره استعمالول

(۱) اخرجه ابوداودفی السنن کتاب الزکاة/باب کراهية المسألة بوجه الله تعالى (رقم-۱۶۷۱)

غوارې نود جنت غوښتنو دپاره دې داسې استعمال کړې "اللهم اني اسألك الجنة باسمك الكريم وبوجهك العظيم" يعنې اې الله ماله دَخپل نوم اوعظمت په واسطه جنت راکړه دَ حديث دا مفهوم ډير واضح دې

④ دَ الله تعالى ذات واسطه جوړولوسره دَخلقو نه هيڅ هم مه غوارئ خکه چه کله دا اونيلې شوچه دَالله تعالى په نوم باندې صرف جنت غوارئ اوبنکاره خبره ده چه جنت بوداسې څيز دې کوم چه دَخلقو نه نه شي غوښتې دَدې مطلب دا شو چه دَ الله تعالى په نوم باندې هيڅ هم مه غوارئ

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [١٩٤٥] دغوره څيز صدقه کولو ترغيب

١٩٤٥ - (١٧) [١] عَنْ أَنَسٍ قَالَ: «كَانَ أَبُو طَلْحَةَ أَكْثَرَ الْأَنْصَارِ بِالْمَدِينَةِ مَالًا، مِنْ نَخْلٍ، [٢] وَكَانَ أَحَبُّ أَمْوَالِهِ إِلَيْهِ بَيْرَحَاءَ، [٣] وَكَانَتْ مُسْتَقْبِلَةَ الْمَسْجِدِ [٤] وَكَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدْخُلُهَا وَيَشْرَبُ مِنْ مَاءٍ فِيهَا طَيِّبٍ، [٥] قَالَ أَنَسٌ: فَلَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ [٦] ﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ [آل عمران: ٩٢] [٧] قَامَ أَبُو طَلْحَةَ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه:** [١] حضرت انس رضي الله عنه وايي چې ابو طلحه رضي الله عنه د مديني په انصارو کې د کجورو په اعتبار سره ډير مالدار وو [٢] په خپل مال کې د هغه د ټولو څخه زيات خوښ بيرحاء نومې باغ وو [٣] چې د مسجد نبوي بالکل مخې ته وو [٤] رسول الله ﷺ به اکثر دې باغ ته تشريف ورو او د هغه خاي اوبه به يې څکلي چې ډيري ښې (يعني خوږې يا بلا شك شبه حلالې او پاکې) وې [٥] حضرت انس رضي الله عنه وايي چې کوم وخت دا آيت کريمه نازل شو [٦] نيکي يعني (جنت) ته تاسو تر هغه وخته پورې نه شئ رسيدلې تر څو پورې چې تاسو د الله ﷻ په لار کې هغه څه خرچ نه کړئ کوم شي چې ستاسو ډير خوښ وي. [٧] نو ابوطلحه رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو

[١] فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ اللهَ - تَعَالَى - يَقُولُ [٢] ﴿لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ﴾ [آل عمران: ٩٢] [٣] وَإِنَّ أَحَبَّ مَالِي إِلَيَّ بَيْرَحَاءُ، [٤] وَإِنَّهَا صَدَقَةٌ لِلهِ - تَعَالَى - [٥] أَرْجُو بِرَّهَا وَذُخْرَهَا عِنْدَ اللهِ، [٦] فَضَعْهَا يَا رَسُولَ اللهِ حَيْثُ أَرَاكَ اللهُ، [٧] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "بَخٍ بَخٍ ذَلِكَ مَالٌ رَابِحٌ، [٨] وَقَدْ سَمِعْتُ مَا قُلْتَ، وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَجْعَلَهَا فِي الْأَقْرَبِينَ [٩]" فَقَالَ أَبُو طَلْحَةَ: أَفْعَلُ يَا رَسُولَ اللهِ، [١٠] فَقَسَمَهَا أَبُو طَلْحَةَ فِي أَقَارِبِهِ، وَبَنِي عَمِّهِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب الزكاة على الأقارب (رقم-١٤٦١) ومسلم في كتاب الزكاة/باب فضل النفقة والصدقة على الأقربين والزوج والأولاد. والوالدين ولو كانوا مشركين (رقم) ٤٢ - (٩٩٨) واحمد في المسند ١٤١/٣

**ترجمه:** [۱] او عرض یي وکړو چې یا رسول الله ﷺ الله تعالی ﷻ فرمایي چې [۲] نیکي یعنی (جنت) ته ترهغه وخته پورې نه شی رسیدلې تر څو پورې چې هغه څیز خرچ نه کړې کوم چې ستاسو ډیر خوښ وي، [۳] نو بیرحاء چې په ټول مال کې د ټولو څخه زیات زما خوښ دي [۴] زه هغه د الله ﷻ د پاره صدقه کوم [۵] او د دې آیت کریمه پیش نظر د هغې څخه د نیکي اُمید لرم چې او امید وار یم چې د الله ﷻ په نزد به زما د پاره د آخرت ذخیره شي [۶] پس یا رسول الله ﷺ دا قبول کړئ او چیرته چې الله تعالی ﷻ تاﷺ ته وښایي (یعني کوم ځاې چې یي ته ﷺ مناسب ګڼې دا خرچ کړه) [۷] رسول الله ﷺ وفرمایل چې شاباس شاباس دا باغ خو د نفع والا مال دي [۸] څه چې تا اوویل ما واوریدل زما په نزد مناسب دا دي چې ته دا باغ په خپلو محتاجو اقرباؤ کې تقسیم کړه (چې د صدقې د ثواب سره د صله رحمي ثواب هم درته حاصل شي) [۹] ابوطلحه رضي الله عنه عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ ستا ﷺ د ارشاد مطابق عمل کوم [۱۰] نو ابوطلحه رضي الله عنه هغه باغ په خپلو اقرباؤ او د تره په زامنو کې تقسیم کړو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَيْرَحَاءَ: دا د یو باغ نوم دي یا د ځائې نوم دي بَرَاح هغه ځائې ته وائې چه وونې بوټې پکښې نه وی ② مُسْتَقْبِلَةً: مخامخ. ③ طَيِّبٍ: أَيْ حُلْوُ الْمَاءِ: خوږې اوبه. ④ بِرَّهَا: أَيْ خَيْرَهَا: نیکي، خیر. ⑤ ذُخْرَهَا: ذخیره ددې، فائده او ثمره ددې. ⑥ فَضَعْهَا: أَيْ اصْرِفْهَا: خرچ ئې کړه. ⑦ أَرَاكَ اللّٰهُ: أَيْ فِي مَصْرِفٍ عَلَّمَكَ اللّٰهُ إِيَّاهُ: یعنی کوم مصرف کښې چه تاته الله تعالی د لګولو تعلیم درکړې دي. یا دا معنی چه حَيْثُ شِئْتَ: څنګه چه ستا خوښه وی (خرچ ئې کړه) ⑧ بَخٍ بَخٍ: شاباش شاباش، واه واه، په وخت د تعجب کښې د مدح او تعریف په طور وئیلې کیږی او تکرار د مبالغې د پاره دي

**تسهیلات:**

**قوله: مَالٌ رَابِحٌ:**

**د مال رابح مفهوم:-** یعنی دا ډیر فائده مند او نفع ورکونکي مال دي. "اي مال ذو ربح" په یو روایت کښې رائح لفظ دې ددې مطلب دا دي چه ددې مال فائده ستا طرف ته راګرځیدونکې ده

**[۱۹٤٦] وږې ته روټی ورکول**

[۱۸] (۱۹٤٦) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَفْضَلُ الصَّدَقَةِ أَنْ تُشْبِعَ كَبِدًا جَائِعًا». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت انس رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] بوه بهترینه صدقه دا هم ده چې ته د یو جاندار (ساه لرونکی) وږې نس (خیټه) ډکه کړې (بیهقي)

(۱۹٤٦) اخرجه البیهقي في شعب الایمان (رقم-۱۹٤٦)

**حل اللغات:** - ① تُشْبِعَ: چه نه موړ کړي، ② كَبِدًا: كبد خيګر ته وائي يعنى خيګر لرونكي حيوان. مراد تري هر ساه لرونكي دي. ③ جَائِعًا: اوږي

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْ تُشْبِعَ كَبِدًا جَائِعًا:**

**د كبد جائع مفهوم:** - اى ذوكبدجائع، دي نه ساوالا مراددي كه انسان وى كه حيوان وى په انسانانوكښي مسلمان وى كه كافر وى ټول مراددي البته په خناوروكښي هغه خناور مستثنى دي كوم چه تكليف رسونكي وى څكه چه د ده د ختمولوحكم دي بعضي خلق سحر وختى په كارغانو باندې غوښه خورى اود ثواب نيت كوى خود هغه په ګاونډ كښي انسان اوګي اونهرپروت دي، دي د هغه فكرنه كوى دا صدقه نه ده بلكه خپل خان خوشحالول دى [الكاشف ۴/۱۵۲]

# [۸] بَابُ صَدَقَةِ الْمَرْأَةِ مِنْ مَالِ الزَّوْجِ]

**د خاوند د مال نه د ښځي د صدقه كولو بيان**

| **خلاصة الباب:** - <br> **فيه سبعة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:** <br> ① ما يحل للمرأة من مال الزوج: ۱، ۲، ۴، ۶- <br> ② الأجر بانفاق الخازن والغلام بالإذن: ۱، ۳، ۷- <br> ③ وجوب إذن الزوج للمرأة فى الانفاق: ۵- |
|---|

مشكوة شريف كښي بعضي مقاماتوكښي بغيرد عنوان نه څه ابواب قائم كړي شوى دى دا په حقيقت كښي د تيرشوى باب سره متعلق وى اوهم د هغي د تكميل د پاره وى په دي كښي هم د هغه مضمون احاديث وى كوم چه په تيرشوى باب كښي وى علامه طيبى رحمه الله په خپله شرح طيبى كښي دا عنوان كيخودې دي "باب صدقة المرأة من مال الزوج" بهرحال په دي باب كښي صرف د ښځي د صدقي ذكرنه دي بلكه هغه احاديث هم په دي باب كښي دى په كوم كښي چه خادم خازن او د غلام د صدقي ذكر هم دي [الكاشف ۴/۳۳۴].

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۹۴۷] د خاوند د مال څخه د ښځي د صدقي كولو ثواب**

۱۳۷-(۱)[۱] [۱] عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "إِذَا أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ طَعَامِ

[۱] اخرجه البخاري فى كتاب الزكاة/باب أجر الخادم إذا تصدق بأمر صاحبه غير مفسد (رقم-۱۴۳۷) ومسلم فى كتاب الزكاة/باب أجر الخازن الأمين. والمرأة إذا تصدقت من بيت زوجها غير مفسدة بإذنه الصريح أو العرفى (رقم) ۷۹ - (۱۰۲۳) واحمد فى المسند ۴۴/۶

بَيْتِهَا غَيْرَ مُفْسِدَةٍ [۳]كَانَ أَجْرُهَا بِمَا أَنْفَقَتْ، [۴]وَلِزَوْجِهَا أَجْرُهُ بِمَا كَسَبَ، [۵]وَلِلْخَازِنِ مِثْلُ ذَلِكَ، [۶]لَا يَنْقُصُ بَعْضُهُمْ أَجْرَ بَعْضٍ شَيْئًا". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] أم المؤمنين بي بي عايشه رضي الله عنها روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هركله چي يوه ښځه د خپل كور د طعام څخه صدقه وركوي په شرط د دې چي هغه اسراف (زياتوالى) نه كوى [۳] نو هغې ته د هغه خرچ كولوثواب وركول كيږي [۴] او د هغې خاوند ته د مال ګټولو په وجه ثواب حاصليږي [۵] او داروغه (د باورچي خاني نګران) ته هم دغه شان ثواب وركول كيږي (څرنګه چي مالك ته ثواب وركول كيږي) [۶] او په هغوى كې د يو په ثواب كې د دويم دثواب په وجه كمي نه كيږي) يعنى هر يو ته پوره پوره ثواب وركول كيږي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① غَيْرَ مُفْسِدَةٍ: أَيْ غَيْرَ مُسْرِفَةٍ فِي التَّصَدُّقِ: چه په صدقه كولو كښې اسراف كونكې نه وى. دخاوند مال خرابول ئې مقصد نه وى ② لِلْخَازِنِ: أَيِ الَّذِي كَانَتِ النَّفَقَةُ فِي يَدِهِ: نګران او باورچى يعنى ددې خرچ كول چه دچا په اختيار كښې وى

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ أَجْرُهَا بِمَا أَنْفَقَتْ:**

**په يوه صدقه درې كسانو ته اجر ملاويدل:-** بعضې شارحينو ليكلى دى چه د اهل حجاز دا معمول وو چه هغوى به دخپلو مالونو نه څه مال خپلو بيبيانوسره كيخودلو دې دپاره چه هغوى د ضرورت په وخت ددې نه صدقه اوضيافت اوكړې شى حضورپاك ددې ښه عادت ستائينه اوكړه خو يوشرط ئې دا كيخودو چه "غيرمفسدة" يعنى چه د خاوند دمال خرابولواراده ئې نه وى نه بې ځايه خرچ وى نه اسراف وى

**د مزيد تفصيل حواله:-** ددې مسئلې پوره تفصيل د تسهيلات په مقام كښې ذكر دې هلته كتل پكاردى دلته درې قسم احاديث دى بعضې كښې د خرچ كولوحكم دې بعضې كښې ممانعت دې او بعضې كښې د شئ قليل اجازت دې. بهتره خبره داده چه ښځه اجازت واخلى ځكه چه مقام زمان او دخاوند دمزاج د وجې نه مسئله بدليږى

**[۱۹۴۸] د خپل خاوند داجازته بغيرد صدقې كولو حكم**

۱۹۴۸-()[۲] [۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲]" «إِذَا أَنْفَقَتِ الْمَرْأَةُ مِنْ كَسْبِ زَوْجِهَا مِنْ غَيْرِ أَمْرِهِ [۳]فَلَهَا نِصْفُ أَجْرِهِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب النفقات/باب نفقة المرأة إذا غاب عنها زوجها. ونفقة الولد (رقم-۵۳۶۰) ومسلم كتاب الزكاة/باب ما أنفق العبد من مال مولاه (رقم) ۸۴ - (۱۰۲۶) وابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب المرأة تتصدق من بيت زوجها(رقم-۱۶۸۷)

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هركله چې يوه ښځه د خپل خاوند د ګټې (مال) څخه د هغه د اجازت څخه بغير صدقه او خيرات وركوي [٣] نو هغې ته نيم ثواب حاصليږي (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: مِنْ غَيْرِ أَمْرِهِ:**

دَدې مطلب دانه دې چه دَ خاوند په منع كولو باندې ښځه صدقه كوى او هغې ته ثواب ملاويږى بلكه مطلب دادې چه معمولى شان څيز دې دَ كوم اجازت چه دلالةً يا اشارةً يا صراحةً دَخاوند دَطرف نه وى لكه دَ ماچس تلى مالګه دَ اوړو يوچونګ يا دَ روټئى ټكړه يا معمولى پيسه ښځه دَ خاوند دَ حكم نه بغير وركوى دا جائز دى بهرحال مجموعى احاديثوته په كتو كښې دَ بعضو نه اجازت اودَ بعضو نه ممانعت معلوميږى دَ خاوندانو مزاج هم مختلف وى دَمقام اوزمانې دَ وجې نه كله معمولى څيز قيمتى كيږى په دې وجه ښځې له پكار دى چه هغه دَ دې څه قسم صدقه كولونه مخكښې دَ خاوندانونه اجازت واخلى كله چه مال دَ خاوند وى

**[١٩٤٩] خادم ته دَمالك په صدقه كښې ثواب ملاويدل**

(٣) [١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "[٢] «الْخَازِنُ الْمُسْلِمُ الَّذِي يُعْطِي مَا أُمِرَ بِهِ [٣] كَامِلًا مُوَفَّرًا، طَيِّبَةً بِهِ نَفْسُهُ [٤] فَيَدْفَعُهُ إِلَى الَّذِي أُمِرَ بِهِ أَحَدُ الْمُتَصَدِّقَيْنِ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابو موسى اشعري رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كوم دياتندار مسلمان داروغه (يعني ملازم لكه خزانچي وغيره) هغه څيز چې د هغه د وركولو مالك حكم كړي وي [٣] بغير د څه نقصان څخه په خوش دلۍ سره هغه سړي ته وركړي چې د هغه د پاره مالك حكم كړي دي [٤] نو هغه د صدقه كونكو د دوو سړو څخه يو دي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الْخَازِنُ: أَيِ الَّذِي كَانَتِ النَّفَقَةُ فِي يَدِهِ: نګران او باورچى يعنى ددې خرچ كول چه دچا په اختيار كښې وى ② كَامِلًا مُوَفَّرًا: أَيْ تَامًّا: مكمل او پوره ③ طَيِّبَةً: أَيْ رَاضِيَةً: يعنى رضامندئ او خوشحالئ سره ئې وركړى څه بخيل توب پكښې نه وى. ④ فَيَدْفَعُهُ: نو وركړى دا صدقه.

[١] اخرجه البخاري في كتاب الزكاة/باب أجر الخادم إذا تصدق بأمر صاحبه غير مفسد (رقم-١٤٣٨) ومسلم في كتاب الزكاة/باب أجر الخازن الأمين. والمرأة إذا تصدقت من بيت زوجها غير مفسدة بإذنه الصريح أو العرفي (رقم) ٧٩ - (١٠٢٣) كتاب الزكاة/باب أجر الخازن (رقم-١٦٨٤) والنسائي كتاب الزكاة/باب صدقة المرأة من بيت زوجها (رقم-٢٥٣٩)

**تسهيلات**

**قوله**: اَلْخَازِنُ:

**د خزانچي د ثواب دپاره څلور شرطونه**:- دا خزانچي ته واني دَدي په مفهوم کښې هريو نوکر او سيکرټري او خادم راځي او غلام هم په دې کښې داخل دې يعنی کله چه دَمال مالك صدقه کوي اودا خلق په دغه صدقه ورکولو کښې ذريعه اوسبب جوړشي نودوی ته به هم ثواب ملاويږي ليکن په زير بحث حديث کښې د دغه خازن دپاره څلور شرائط لګولې شوي دي
① چه څومره مال مالك جدا کړې اودَ ورکولو حکم ئې ورکړې دې دا نوکر هغه مال پوره پوره ادا کړي او څه کمې اونه کړي.
② چه مال څنګه په خوشحاله زړه باندې خپل مال صدقه کړې دې نوکر هم دغه شان په ارت زړه او خوشحالئی سره ورکړي داچه مالك ورکړه کوي او نوکر ئې کنځلې کوي چه دا ته دې ولې ورکړه يا دومره دې ولې ورکړه؟
③ دکوم سړي دَ ورکولودپاره مالك ونيلي دي هم هغه ته ئې ورکړو دا نه چه چرته بل غريب ې مستحق ته ئې ورکړو
④ چه دَ مالك حکم موجودوی دَهغه دَحکم نه بغيرنه وی

**قوله**: أَحَدُ الْمُتَصَدِّقِيْنِ:

**دمتصدقين په مصداق کښې دوه اقوال**:- ①يا دا صيغه دَتثنيه ده چه يوه صدقه کونکې مالك دې
② اودويم دَهغه نوکر دې دَمشکوة شريف په بعضې نسخو کښې دا لفظ دَجمع دَ صيغې سره راغلې دې يعنی "متصدقون"لفظ دې مطلب دا چه دا نوکر هم دَصدقه کونکونه يو کس شو

**[۱۹۵۰] دَمړي دَ ايصال ثواب دپاره صدقه**

حديث ( )[۳] [۱]«وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: إِنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲]إِنَّ أُمِّي افْتُلِتَتْ نَفْسُهَا، [۳]وَأَظُنُّهَا لَوْ تَكَلَّمَتْ تَصَدَّقَتْ، [۴]فَهَلْ لَهَا أَجْرٌ إِنْ تَصَدَّقْتُ عَنْهَا؟ قَالَ: "نَعَمْ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [۱] بي بي عايشه رضي الله عنها وايي چې يو سړي نبي کريم ﷺ ته عرض وکړو[۲] چې زما مور اچانك مړه شوه [۳] او زما خيال دي که هغه د مرګ څخه مخکې څه ويلاى نو د صدقي کولو به يې ضرور وصيت کړي وو[۴] که زه د هغې د طرف څخه صدقه ورکړم نو هغی ته به يې ثواب ور رسي؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې هو (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① اُفْتُلِتَتْ: دادَ مجهول صيغه ده أَيْ مَاتَتْ فَجْأَةً: ناڅاپی مړ شو يعنی لکه چه چا اوچت کړو.

[۱] اخرجه البخاری کتاب الجنائز /باب موت الفجأة البغتة(رقم-۱۳۸۸) وابن ماجة کتاب الوصايا/باب من مات ولم يوص هل يتصدق عنه(رقم-۲۷۱۷)

**تسهيلات**

**قوله: نَفْسَهَا:**

**د نفسها په اعراب کښې دوه احتماله:-**

① ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی دا لفظ په اکثرو نسخوکښې منصوب دې نو دا "افتلتت" دپاره مفعول ثانی دې او مفعول اول د افتلتت ضمیر دې کوم چه به نائب فاعل وی

② او که چرې "نَفْسَهَا" د منصوب په ځائې مرفوع وی نو دا "افتلتت" دپاره به نائب فاعل وی د اهل سنت والجماعت په نیز نفلی صدقاتو ثواب مړو ته رسیږی معتزله وائی هیڅ نه رسیږی

**دایصال ثواب په حکم کښې مذاهب:-**

① د احنافو په نیز د عباداتو مالی او بدنی دواړو ثواب رسیږی

② د شوافع حضراتو په نیز د بدنی عبادت ایصال ثواب کښې څه اختلاف دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۹۵۱] د خاوند د اجازت څخه بغیر د ښځې خرچ کولو ممانعت**

۱۹۵۱-(۵)[۱] عَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] يَقُولُ فِي خُطْبَتِهِ عَامَ حَجَّةِ الْوَدَاعِ: [۳] «لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا [۴]» قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ وَلَا الطَّعَامُ؟ [۵] قَالَ: «ذَلِكَ أَفْضَلُ أَمْوَالِنَا» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو امامه رضی الله عنه وائې چې ما واوریدل [۲] چې رسول الله ﷺ د حجة الوداع په کال په خپله خطبه کې وفرمایل [۳] چې یوه ښځه دې د خپل خاوند د اجازت څخه بغیر د کور څخه څه شي نه خرچ کوي (که صراحة اجازت وي یا دلالة) [۴] عرض وکړل وشو چې یا رسول الله ﷺ آیا په طعام کې هم څه خرچ نه کړی؟ [۵] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې طعام خو زمونږ په اموالو کې بهترین شي دي (ترمذي)

**تسهیلات:**

**قوله: لَا تُنْفِقُ امْرَأَةٌ شَيْئًا مِنْ بَيْتِ زَوْجِهَا إِلَّا بِإِذْنِ زَوْجِهَا:**

**د مذکوره جملې مطلب:-** د رسول کریم ﷺ د جواب مطلب دادې چې هر کله د خاوند د اجازت څخه بغیر ددې څیزونو خرچ کول جائز نه دی کوم چې د خوراك کم تر درجه کښې دی نو خوراك خرچ کول به څنګه درست وی حالانکه دا افضل ترین څیز دې

**د تعارض اشکال دفع کول:-** په ظاهره په دې حدیث مبارك کښې او ددې څخه وړاندې تیر

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب في نفقة المرأة من بيت زوجها(رقم-۶۷۰) وابن ماجة كتاب التجارات/باب ما للمرأة من مال زوجها(رقم-۲۲۹۵)

شوؤ احاديثو کښې تعارض په نظر راځي ليکن که دهغه احاديثو تشريحات مخې ته وي نو بيا هيڅ تعارض په نظر نه راځي ځکه چې ددې تشريحاتو په ذريعه په دې احاديثو کښې تطبيق بيان شوې دې

**[۱۹۵۲] د ښځې د خاوند د مال ځخه معمولي څيز خرچ کول**

۱۹۵۲-()[۲] ① وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ: «لَمَّا بَايَعَ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - النِّسَاءُ ② قَامَتِ امْرَأَةٌ جَلِيلَةٌ كَأَنَّهَا مِنْ نِسَاءِ مُضَرَ، ③ فَقَالَتْ: يَا نَبِيَّ اللهِ إِنَّا كَلٌّ عَلَى آبَائِنَا وَأَبْنَائِنَا وَأَزْوَاجِنَا ④ فَمَا يَحِلُّ لَنَا مِنْ أَمْوَالِهِمْ؟ ⑤ قَالَ: "الرَّطْبُ تَأْكُلْنَهُ وَتُهْدِينَهُ»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① حضرت سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ د ښځو ځخه بيعت واخستو (يعني د هغوی ځخه يې په احکام شريعت باندې د عمل کولو عهد واخستو) ② نو په هغوی کې د يو لوې قد يا لوې مرتبې والا ښځه ودريده چې غالباً د مضر قبيلې ځخه معلوميده ③ او هغې عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زمونږ بوج زمونږ په مور پلار، په خپل اولاد او په خپلو خاوندانو باندې دې ④ آيا د هغوئ مال زمونږ د پاره (د هغوئ د اجازت ځخه بغير) حلال دې؟ ⑤ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم تازه مال وي هغه خورئ او بطور تحفه يې ليږئ (ابوداؤد)

**حل اللغات:-** ① بَايَعَ: بيعت ئې واخستلو يعنی د عمل کولو عهد ئې واخستلو ② جَلِيلَةٌ: أي عَظِيمَةُ الْقَدْرِ أَوْ ضَخْمَةُ الْقَامَةِ: دلونې مرتبې يا د لونی قد والا ښځه. ③ مُضَرَ: دا يوه قبيله ده. ④ الرَّطْبُ: مَا يَسْرَعُ إِلَيْهِ الْفَسَادُ: تر وتازه کوم چه زر خرابيږی لکه مثلا خوروا، پئ (شودې) او لوندې ميوې، سبزی وغيره.

**تسهيلات:**

**قوله:** الرَّطْبُ تَأْكُلْنَهُ وَتُهْدِينَهُ:

**د تازه مال ځخه مراد:-** تازه مال ددې ځخه هغه څيزونه مراد دی چې هغه تر ډيره مودې پورې نه پاتې کيږی بلکه زر خرابيږی لکه ترکاری او پئ وغيره لهذا ددې څيزونو په استعمال کښې د اجازت ضرورت نشته دې ځکه چې عام طورخلق ددې د خرج کولو نه منع نه کوی لکه چې ددې څيزونو دخرج کولو دپاره دلالة اجازت حاصل وی په خلاف دهغه څيزونو کوم چې خشك او خرابيدو والا نه وی چې دهغې د خرج کولو دپاره اجازت او د رضا طلب کول ضرروی ده.

[1]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الزكاة/باب المرأة تتصدق من بيت زوجها(رقم-۱۶۸۶)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۹۵۲] د مالک د اجازت څخه بغیر د غلام خرچ کول**

(۷) [۱] عَنْ عُمَيْرٍ مَوْلَى آبِي اللَّحْمِ قَالَ: [۲] «أَمَرَنِي مَوْلَايَ أَنْ أُقَدِّدَ لَحْمًا [۳] فَجَاءَنِي مِسْكِينٌ فَأَطْعَمْتُهُ مِنْهُ [۴] فَعَلِمَ بِذَلِكَ مَوْلَايَ فَضَرَبَنِي، [۵] فَأَتَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرْتُ ذَلِكَ لَهُ [۶] فَدَعَاهُ فَقَالَ: "لِمَ ضَرَبْتَهُ؟" [۷] فَقَالَ: يُعْطِي طَعَامِي بِغَيْرِ أَنْ آمُرَهُ، [۸] فَقَالَ: "الْأَجْرُ بَيْنَكُمَا"، [۹] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: كُنْتُ مَمْلُوكًا فَسَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۱۰] أَتَصَدَّقُ مِنْ مَالِ مَوَالِيَّ بِشَيْءٍ؟ [۱۱] قَالَ: "نَعَمْ وَالْأَجْرُ بَيْنَكُمَا نِصْفَانِ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** [۱] د ابي اللحم رضي الله عنه آزاد کړي غلام عمير رضي الله عنه وايي [۲] چې يو ځل ما د خپل آقا ابي اللحم رضي الله عنه د حکم مطابق غوښه د وچولو د پاره د هغې ټکړې کولې [۳] چې ماته يو مسکين او فقير راغلو ما هغې ته د هغه څخه د خوراک د پاره څه ورکړل [۴] کله چې زما آقا ته د دې علم وشو نو هغه زه ووهلم [۵] زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې حاضر شوم او پوره واقعه مې ورته بيان کړه [۶] نبی کریم صلی الله علیه وسلم زما آقا را وغوښتلو او د هغه څخه يې پوښتنه وکړه چې تا دې ولې وهلې دي؟ [۷] هغه اوويل چې دي زما د طعام څخه زما د اجازت څخه بغير (خيرات) ورکوي [۸] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې (که تا د صدقې حکم ورکولې يا د هغه صدقه کولو سره ته راضي او خوشحاليدې نو) تاسو دواړه به د ثواب حقدار وئ، [۹] او په يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې عُمير رضي الله عنه اوويل زه د يو سړي غلام وم ما د رسول صلی الله علیه وسلم څخه پوښتنه وکړه [۱۰] چې آيا زه د خپل مالک په مال کې څه يعني څه قليل او د کمې درجې شي چې د هغه د خرچ کولو په عام طور سره اجازت وي، په طور د صدقې خرچ کولې شم؟ [۱۱] نبی کریم صلی الله علیه وسلم اوويل چې هو د هغې ثواب به تاسو دواړو ته نيم نيم حاصليږي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُقَدِّدَ: وَهُوَ الشَّقُّ طُولًا: غوښه په اوږدو باندې کټ کول. ② مَوَالِيَّ: زما د مالکانو

**تسهيلات:**

**قوله: آبِي اللَّحْمِ:**

**په آبی اللحم د ملقب کيدو وجه:** - لحم غوښې ته وائي او آبی د اسم فاعل صيغه ده ابا يابی نه د انکار په معنی کښې دې دې ټولو صحابه کرامو به غوښه نه خورله په دې وجه د هغه نوم آبی اللحم (د غوښې نه انکار کونکې) شو صاحب مظاهرحق په جديد ترجمه کښې هم اوتشريح کښې هم دا ابو اللحم ليکلې دي دا غلطي ده د دې صحابي نوم عبد الله رضي الله عنه وو او عميرد هغه ازاد کړې شوې غلام وو

[1] اخرجه مسلم في صحيحه كتاب الزكاة/باب ما أنفق العبد من مال مولاه (رقم-۸۲ - (۱۰۲۵))

**قوله:** وَالْأَجْرُ بَيْنَكُمَا نِصْفَانِ:

**داسلوب الحکیم په نهج باندې جواب ورکول:** - علامه طیبی رحمه الله لیکی حضورپاك دَ اسلوب حکیم په توګه داسې جواب ورکړې دې چه ابی اللحم ته ترغیب وکړو چه دَ دې غلام دَ وهلو او اجازت نه ورکولونه بهتر کاردا وو چه ده ته ئې دَ خرچ کولواجازت ورکړې وې ځکه چه په ثواب کښې تاسو دواړه برابرشریك ئې نوچه کله تاته ثواب ملاویږی نوتادې ولې اووهلو ده ته نقصان خونه دې کړې اوتاته خو ثواب ملاویږی په دې کلام سره دَ آبی اللحم خودل مقصود وو دامطلب نه دې چه دَ مولی دَ اجزت نه بغیرغلام دَ هغه په مال کښې د مطلق تصرف شروع کړی

**نصفان په تاویل کښې د یوقول تضعیف:** - دَ نصفان باره کښې بعضې علماء فرمائی دې نه مراد حصه ده داسې نه ده چه نیم نیم به شی په حدیث نمبر۱۹۴۸ کښې هم دَ نصف لفظ راغلې دې هلته هم دغه مطلب دې لیکن په احادیثوکښې دَ نصف صریح لفظ موجوددې دا تاویلات صرف هم تاویلات دی

# [۹] بَابُ مَنْ لَایَعُودُ فِی الصَّدَقَةِ

**په صدقه کښې دَ رجوع کولوحکم**

**خلاصة الباب:** -

**فیه حدیثان مشتملان علی مسئلتین:**

① قباحة العود فی الصدقة: ۱.

② كراهة العود فی الصدقة: ۲.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۹۵٤] په صدقه کښې د رجوع کولو ممانعت**

۱۹۵٤ - ( ) [۱] ①«عَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: ② حَمَلْتُ عَلَى فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللهِ فَأَضَاعَهُ الَّذِي كَانَ عِنْدَهُ، ③ فَأَرَدْتُ أَنْ أَشْتَرِيَهُ وَظَنَنْتُ أَنَّهُ يَبِيعُهُ بِرُخْصٍ، ④ فَسَأَلْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: ⑤ "لَا تَشْتَرِهِ وَلَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ، وَإِنْ أَعْطَاكَهُ بِدِرْهَمٍ، ⑥ فَإِنَّ الْعَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالْكَلْبِ يَعُودُ فِي قَيْئِهِ» "، ⑦ وَفِي رِوَايَةٍ: "«لَا تَعُدْ فِي صَدَقَتِكَ ⑧ فَإِنَّ الْعَائِدَ فِي صَدَقَتِهِ كَالْعَائِدِ فِي قَيْئِهِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① د امیرالمؤمنین حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه په باره کې منقول دي فرمايي چې

[۱]) اخرجه البخاری کتاب الزکاة/باب هل یشتری الرجل صدقته؟ (رقم-۱۴۹۰) ومسلم کتاب الهبات/باب کراهة شراء الإنسان ما تصدق به ممن تصدق علیه (رقم-۱ - (۱۶۲۰) وابوداود أبواب الإجارة/باب الرجوع فی الهبة(رقم-۳۵۳۹) والنسائی کتاب الهبة باب رجوع الوالد فیما یعطی ولده وذکر اختلاف الناقلین للخبر فی ذلک (رقم-۳۶۹۰) وابن ماجة کتاب الهبات /باب الرجوع فی الهبة(رقم- ۲۳۸٤) واحمد فی المسند ۲۷/۲

۲ بوځل ما يو سړي ته د الله ﷻ په لارکي د سپرتيا د پاره اس ورکړو (يعني د يو مجاهد سره آس نه وو نو ما هغه ته اس ورکړو) هغه سړي هغه اس چې ورسره وو ضايع يې کړو (يعني هغه د اس پرورش ونه اوکړو چې د هغې په وجه اس کمزوري شو) ۳ ما سوچ وکړو چې هغه اس ځني واخلم او خيال مې وو چې په ارزان قيمت به يې راکړي ۴ (خو د اغستلو ځنې مخکې) ما د دې په باره کې د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ځنې پوښتنه وکړه نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ۵ ته دا مه اخله او مه خپله ورکړي صدقه واپس اخله اګر که هغه تاته په يو درهم درکړي (لکه چې دا چې حقيقةً نه بلکه صورةً خپله صدقه واپس اخستل دي) ٦ ځکه چې خپله صدقه واپس اخستونکي سړي د سپي په شان دي چې خپل قې ځټي، ۷ په يوه روايت کې دا الفاظ موجود دی چې نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل خپله ورکړې صدقه واپس مه اخله (که واپس اخستل صورةً ولې نه وي) ۸ ځکه چې خپله ورکړي صدقه واپس اخستل د هغه کس په شان دی چې قيئ وکړي او بيا هغه وځټي [مطلب دا چې صورتًا او معنًى د صدقى مال واپس کول مکروه دی] (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① فَأَضَاعَهُ: ضائع ئې کړو، ② بِرُخْصٍ: په ارزان قيمت، ③ الْعَائِدَ: ګرځيدونکې واپس کيدونکي

**تسهيلات:**

**قوله: لَا تَشْتَرِهِ:**

**صدقه شوې څيز واپس نه اخستل:** - حضرت عمر فاروق ﷺ يوښکلي اس يو صحابي ته صدقه کولو سره ورکړې وو دغه سړی دَ اس ښه شان سره خيال نه ساتلو په دې وجه هغه اس کمزوري او قابل رحم شو حضرت عمر فاروق ﷺ غوښتل چه اوس دغه اس دَ دې سړی نه واخلي مګر دَ حضورپاك نه تپوس کول ئې مناسب اوګڼړل حضورپاك اوفرمائيل چه که هغه سړي ئې په يو درهم باندې هم درکوی نومه ئې اخله او خپله صدقه کښې رجوع مه کوه.

اوس دوه مسئلې دی يوه مسئله هبه کښې دَ رجوع کولو ده هغه جدا مسئله ده دويمه رجوع في الصدقه ده دا جدا مسئله ده سره دَ دې چه دَ صدقې او هبې په شرطونو کښې اتحاد دې ليکن دَ دې په حکم کښې اتحاد نه دې حکم ئې جدا جدا دې (کذافی العنايه)

**د اس د اشتراء نه د منع کولو وجه:** - بهرحال حضورپاك حضرت عمر ﷺ ځکه دَ اس دَ اخستلو نه منع کړو چه ډيره ممکن وه هغه سړی دا خيال کړې وي چه ده ماته خيرات کولو سره راکړې وو اوس ئې چه زه خرخوم نو دَ مروت تقاضا ده چه لږ شان ارزان ورکول پکار دی.

اوکيدې شي دَ حضرت عمر فاروق ﷺ په زړه کښې هم دا خيال راتلو چه دغه شان دحضرت عمر ﷺ دَ صدقه کړې شوي اس په ثواب کښې به فرق راشي. مثلاً اس دَ دوو

زرو وو مګر هغه سړي په مروت کښې په پنځلس سوه کښې ورکړو دغه شان پنځه سوه درهم حضرت عمر رضي الله عنه ته بچت اوشو لکه چه حضرت عمر رضي الله عنه په پنځه سوه درهم کښې رجوع اوکړه هم دغه ذدي نه حضورپاك منع کړو اوس په حديث باندې د پوهيدلو د پاره په دې کښې د فقهاؤ معمولي شان اختلاف اوګورئ

**د صدقه شوې څيز د اشتراء په حکم کښې مذاهب:-**

① د بعضې اهل ظواهر او بعضې نورو علماؤ په نيز د يوسړي د پاره دا جائز نه دی چه هغه صدقه کړې شوې خپل مال واپس واخلي که چرته چا داسې اوکړو نودا حرام هم دی او دا بيع قابل د فسخ ده

② جمهور علماء فرمائي چه داسې اخستل مناسب نه دی دا يوقبيح حرکت دې ليکن که چ واخستو نو بيع مکروه تنزيهي ده

**د اول فريق دليل:-** زير بحث د حضرت عمر فاروق رضي الله عنه واقعه د دوی مستدل دې چه په خپله مدعا باندې ډير واضح دې.

**د دويم فريق دليل:-** قواعد شرعيه اصوليه د دوی مستدل دې چه دلته د شرعی ضابطه لاندې څه داسې منع نه دې دکوم په وجه چه بيع فسخ شی صدقه کولونه پس مصدق عليه د دغه مال مالك کيږي اوس چه هغه دا څنګه خرڅول غواړی خرڅولې شی اوس که هم صدقه کونکې نې واخلي نود تبدل يد د وجې نه هغه مال دغه وخت کښې د صدقې پاتې نه شو ليکن چونکه په حديث کښې ذدې اخستلو ډير قبيح مثال ورکړې شوې دې په دې وجه د مصدق د پاره اخستل مناسب نه دی څکه چه په دې کښې قباحت لغيره راغلې دې لهذا دا بيع مکروه تنزيهي ده دې نه بچ کيدل بهتر دی علامه بدرالدين عيني رحمه الله او ملاعلی قاری رحمه الله تشريحاتو هم دغه خلاصه ده (زجاجة المصابيح ج۱ص ۵۳۹)

**د اول فريق د دليل جواب:-** زير بحث حديث په مکروه تنزيهي حمل دې د پاره چه د قواعد شرعيه حفاظت اوکړې شی

**[۱۸۸۹] د صدقه کړې شوی مال د واپسئ يوصورت**

۱۸۸۹-(۲) ﴿١﴾ وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: «كُنْتُ جَالِسًا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ﴿٢﴾ إِذْ أَتَتْهُ امْرَأَةٌ فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ﴿٣﴾ إِنِّي تَصَدَّقْتُ عَلَى أُمِّي بِجَارِيَةٍ، وَإِنَّهَا مَاتَتْ ﴿٤﴾ قَالَ: "وَجَبَ أَجْرُكِ وَرَدَّهَا عَلَيْكِ الْمِيرَاثُ" ﴿٥﴾ قَالَتْ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّهُ كَانَ عَلَيْهَا صَوْمُ شَهْرٍ أَفَأَصُومُ عَنْهَا؟ ﴿٦﴾ قَالَ: "صُومِي عَنْهَا" ﴿٧﴾ قَالَتْ: إِنَّهَا لَمْ تَحُجَّ قَطُّ أَفَأَحُجُّ عَنْهَا؟ ﴿٨﴾ قَالَ: "نَعَمْ حُجِّي عَنْهَا"» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[۱]) اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب قضاء الصيام عن الميت (رقم-) ۱۵۷ - (۱۱٤۹) وابوداود في السنن كتاب الأيمان والنذور/باب في قضاء النذر عن الميت (رقم-۳۳۰۹)

**ترجمه**:[١] حضرت بريده ﷺ روايت کوي چي (يوه ورځ) زه د نبي کريم ﷺ سره ناست وم [٢] چه اچانك يوه ښځه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضره شوه او عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ [٣] ما يوه وينځه بطور صدقه خپلې مور ته ورکړې ده او س زما مور مره شوې ده (آيا زه هغه واپس واخلم او دغه شان به هغه وينځه زما په ملکيت کې راشي که نه؟) [٤] نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې (د صدقې ورکولو په وجه) ستا ثواب خو ثابت شو (يعني د هغې ثواب خو يقيناً تا ته حاصل شو) او اوس ميراث هغه وينځه تاته واپس درکړله [٥] هغه ښځې عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زما د مور په ذمه د يوې مياشتې روژې دي نو زه د هغې د طرف څخه (حقيقةً يا حکماً) روژې نيولې شم [٦] نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې د هغې دطرفه څخه روژې ونيسه [٧] بيا هغه ښځې عرض وکړو يا رسول الله ﷺ زما مور هيڅ کله حج نه وو کړې نو آيا زه د هغې د طرف څخه حج وکړم [٨] نبي کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هو د هغې د طرف څخه حج وکړه. (مسلم)

**تسهيلات**:

**قوله**: وَجَبَ أَجْرُكِ وَرَدَّهَا عَلَيْكِ الْمِيرَاثُ:

**ميراث ته د نسبت وجه**: دَ ميراث طرف ته نسبت اسنا الى غير ماهوله دَ قبيل نه مجازى دي خکه چه په حقيقت کښې واپس کونکې دَالله تعالى ذات دي دَدې جملې حقيقى معنى داسې ده الله تعالى دَ ميراث په ذريعه ستاسو وينځې تاسو ته واپس کړې

**نوټ**: ① يادساتئ په صدقه کښې ورکړې شوې مال واپس کولو چه کوم ممانعت راغلې دې دا صورت دَ هغې نه بالکل جدا دې خکه چه په دې کښې چاته هم څه اختيار نښته دې په غير اختياري توګه باندې مال واپس راغلو

② په دې حديث دَخرخولو او اخستلو هم څه صورت نښته دې [المرقات: ٤/٤٤٠]

**د نيابت في الصوم په صحت کښې مذاهب**:

① که سړې مړشو او دَهغه په ذمه باندې څه روژې پاتې شوې نو دَهغه دَ وارثانو نه يو کس دهغه دَ طرف نه روژه ساتلې شي که نه؟ امام احمد بن حنبل ﷺ او اسحاق بن راهويه ﷺ په نيز فرض روژه کښې نيابت خو صحيح نه دې ليکن دَ نذر په روژه کښې دَ فديې په ځائې د روژې قضاء هم صحيح ده

② ائمه ثلاثه او جمهور علماء فرمائي لکه څنګه چه په فرض روژه کښې نيابت صحيح نه دې بلکه فديه ورکول لازم دی هم دغه شان دَ نذر په روژه کښې هم قضاء جائزنه ده فديه ورکول لازم دی

**فلول فريق دليل**: حديث الباب د دوی مستدل دې په دې کښې صومي عنها کښې ښکاره:

مړی څخه د رژوي نیولو حکم دي ددي څخه په روژه نیولوکښې د نیابت صحت معلومیږي

**د دویم فریق دوه دلائل:** ① دَحضرت ابن عمر رضی الله عنهما موقوف حدیث د دوی مستدل دی په کوم کښې چه حضورپاك داسې فرمانیلی دی "من مات وعلیه صیام شهر رمضان فَلْيُطْعَمْ عنه مكان كل يوم مِسْكِيْنٌ" (مشکوة ص ۱۷۸)

② "عن مالك بلغه ان ابن عمر كان يسأل هل يصوم احد عن احد اويصلى عن احد فقال لا يصوم احد عن احد ولا يصلى احد عن احد" (مشکوة ص ۱۷۸)

**داول فریق د دلیل دري جوابونه:** ① په دې حدیث کښې تاویل کولی شی هغه دا چې دصومی عنها څخه صوم حکمی مراد دی کوم چه فدیه ده

② دې څخه مراد دا دې چې ته نفلی روژه اونیسه نوهغې ته به ستا د نفلی روژې ثواب ملاؤ شی

③ دعبدالله بن عمر رضی الله عنهما په موقوف حدیث سره دا حدیث منسوخ دې

**نوټ:** دَ نیابت حج مسئله به ان شاء الله په خپل مقام راځی

# [۷] كِتَابُ الصَّوْمِ

## دَروژې بیان

**خلاصة الکتاب - فیه اثنا عشر حدیثاً مشتملة علی علی مسئلتین:**

① فضیلة شهر رمضان : ۱، ۵، ۶، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲۔

② ثواب الصوم: ۲، ۳، ۴، ۵۔

**د صوم لغوی معنی:** - کښې دی چه صوم او صیام دواړه مصدرونه دی په معنی د بندیدلو،

**د صوم شرعی شرعی تعریف:** - او د شریعت په اصطلاح کښې (الصوم امساك مخصوص فی زمن مخصوص عن شئ مخصوص (ای عن الاکل والشرب والجماع) بشرائط مخصوصة ذکرت فی مواضعها) دا تعریف دی

**د صوم د فرضیت دلائل:** - ① اما الکتاب فقوله تعالی ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ﴾

② واما السنة فقول النبی صلی الله علیه وسلم ﴿بُنِيَ الإِسْلَامُ عَلَى خَمْسٍ شَهَادَةِ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَأَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللَّهِ، وَإِقَامِ الصَّلَاةِ، وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ، وَالْحَجِّ، وَصَوْمِ رَمَضَانَ﴾.

③ واما الاجماع فان الامة اجمعت علی فرضية صوم شهر رمضان لا يجحدها الا كافر).

④ واما المعقول (دلیل عقلی) کوم چه د روژې حکمت هم دې چه اکل او شرب او جماع کوم چه د اجل نعم نه دې د روژې په حالت کښې د هغې نه منع کولې شی چه په هغې سره د نعمت قدر پیدا شی او د شکر موقع ملاؤ شی اذ النعمة عظيمة فاذا فقدت عرفت. (بدائع وغیره)

**په امت محمدی د روژې په فرضيت کښې مختلف مراحل:-** علامه عيني رحمه الله فرمائی چه په دې کښې اختلاف دې چه اول کومه روژه واجب شوه

① چا ونيلی دی د عاشورې روژه فرض شوې وه
② ايام البيض فرض شوې وې يعنی ديارلسمه، څوارلسمه او پنځلسمه او د ايام البيض روژې په هغه وخت کښې فرض شوې کله چې نبی کريم ﷺ د مکې مکرمې څخه مدينې منورې ته هجرت اوکړو (رواه البيهقی)
③ چه کله درمضان روژې فرض شوې نوپه ذکرشوې روژه او کوژه کښې اختيار ورکړې شو،
④ بيا ټولې روژې د رمضان د روژو په ذريعه منسوخ کړې شوې حيث قال تعالى (فمن شهد منكم الشهر فليصمه) پس په ۲ هجری شعبان کښې صوم رمضان فرض شو

**د رمضان په روژو کښې مختلف تغيرات:-** پخپله هم دَ رمضان په روژو باندې مختلف زمانې راغلی دی

① په شروع کښې روژه ساتل او مالی فديه ورکولو اختيار ورکړې شوې وو بيا هغه حکم منسوخ شو
② دغه شان په شروع کښې دَ نمر ډوبيدو نه پس دَ سترګو پټولو دَ وجې نه دَ ټولې شپې روژه فرض وه بيا هغه هم منسوخ شوه
③ دَ رمضان په مباشت کښې په يو وخت او په يو حالت کښې دَ جماع ممانعت وو بيا هغه منسوخ شو دَ شپې دَ جماع اجازت ملاؤ شو

**د رمضان د روژې حکم:-** اوس دَ رمضان روژې ساتل فرض دی او دا دَ اسلام دَ پنځو بنيادی ارکانونه څلورم رکن دې دَدې منکر کافردې دَ رمضان دَ روژو فضيلت پخپله په احاديثو کښې په لويه پيمانه باندې بيان کړې شوې دې هغه کافی او شافی دې البته دَ روژ يوڅوفوائد وراندې کولې شی

**د ديرشو ورځو په روژو کښې حکمت:-** حافظ ابن حجر رحمه الله د بعض صوفياء نه نقل کړی دی چه سيدنا ادم عليه السلام د اکل شجره نه پس چه کومه توبه اوکړه د هغې قبوليت تر ديرشو ورځو پورې ، چه ترڅو پورې د هغه خوراك اثر باقی وو، مؤخر شوه د بدن د صفاء کيدو نه پس ئې توبه قبوله شوه په دې وجه په ذريت ادم عليه السلام باندې ديرش ورځې روژې فرض کړې شوې

(العينی ج ۵ ص ۱۶۱. فتح الملهم ج ۳ ص ۱۰۵)

**دَ روژې فوائد:-** دَ رمضان روژې فرض دی دا په هر عاقل بالغ صحت مند مسلمان ذمه واری ده کـه دَهغـه څـه دنيـاوی فائـده وی اوکـه نـه وی دَالله تعالى حکم دې دا پـه خـانی راوړل ضروری دی خو بيا هم دَ يوڅو فوائدو طرف ته اشاره کول به هم دَ فائدې نه خالی نه وی

① په روژه سره د الله تعالی رضا او خوشحالي حاصلیږي او ددې صورت دا دې چه سړی ته جنت ملاویږي

② په روژه ساتلو سره انساني جذبات او احساسات او شهوت په قابو کښې کیږي ځکه دې وجې نه چه سړې د ټولو ګناهونو نه بچ کیږي خکه چه په خیټه ډکیدو سره ټول اعضا د ګناه خواهشمند کیږي په دې وجه عارفینو نیلي دي چه

اِذَا جَاعَتِ النَّفْسُ شَبِعَتْ جَمِيْعُ الْاَعْضَاءِ وَاِذَا شَبِعَتْ جَاعَتْ كُلُّهَا

③ په روژه ساتلو سره د فقیرانو مسکینانو او غریبانانو سره همدردي پیدا کیږي یو مالدار سړي ته دا احساس پیدا کیږي چه ما ځنګه د کال په یوه میاشت کښې لوګه تنده او مشقت تیر کړو مسکینان او فقیران ټول کال دغه شان په محنت او مشقت کښې پراته وي لهذا هغه د دوی همدرد جوړیږي

د بشر حافي رحمه الله متعلق لیکلې شوې دي چه هغه به په بغداد کښې په سخت یخ موسم کښې ګرمې کپړې کوزولو سره په کونډه کښې زوړندولې او په نرو کپړو کښې بنکاره په عام یخ خنې کښې کیناستلو چا د وجې تپوس او کړو نوونی فرمائیل بغداد کښې ډیر فقیران دي چه د یخنی مشقت برداشت کوي زه هغه ټولو ته ګرمې کپړې نه شم ورکولې نو کم نه کم د هغوی په مشقت د همدردئی په توګه هغوی سره شریکیږم هم دغه وجه ده چه بعضې عارفین په مړه خیټه د خوراك نه پس داسې دعا کوي اَللّٰهُمَّ لَا تُؤَاخِذْنِيْ بِحَقِّ الْجَائِعِيْنَ

④ په روژه ساتلو سره سړې جفاکش جوړیږي چنانچه که چرې میدان د جهاد کښې یا بل څه میدان کښې د خو ورځو پورې خوراك ملاؤ نه شي نو د روژې عادت سړې د دغه مصیبت ترډیر وخته پورې برداشت کوي نو لکه چه روژه د نورو عبادتونو د پاره مدد کونکې ده او د سړي د ذاتي ژوندون د پاره په کار راتلونکې څیز دې

⑤ په روژه ساتلو سره د سړي په مزاج کښې برداشت راپیدا کیږي لهذا هغه د صبر عادت کیږي دغه شان د روژه دار سړي کورنئی او معاشرتی ژوندون کښې په بهتره طریقه ژوند تیرولې شي

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۱۹۵٦] په رمضان کښې د سرکشه شیطانانو په قید کښې بندیدل

۱۹۵٦ ـ( )[۱] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ ـ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ: ②" «إِذَا دَخَلَ رَمَضَانُ فُتِحَتْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ» " ③وَفِي رِوَايَةٍ: " «فُتِحَتْ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ ④وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ جَهَنَّمَ ⑤وَسُلْسِلَتِ الشَّيَاطِيْنُ» " ⑥

[۱] اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب: هل يقال رمضان او شهر رمضان. ومن رأى كله واسعًا(رقم-۱۸۹۹) ومن كتاب الصوم/باب في فضل شهر رمضان (رقم-۱۸۱٦) كتاب الصيام/باب جامع الصيام (رقم-٥۹)

وَفِي رِوَايَةٍ: "«فُتِحَتْ أَبْوَابُ الرَّحْمَةِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل[۲] كوم وخت چې د رمضان مياشت شروع شي نو د آسمان دروازې كولاؤ شي [۳] په يو دويم روايت كې راځي چې د جنت دروازې كولاؤ شي [۴] او د دوزخ دروازې بندې شي [۵] او شيطانان بند [قيد] كړل شي [۶] د يو بل روايت الفاظ «دآسمان دروازې كولاؤشي» په ځاي دا دي چې درحمت دروازې كولاؤ شي «بخاري مسلم»

**حل اللغات:** - ① غُلِّقَتْ: بندې كړې شي ② سُلْسِلَتْ: أَيْ قُيِّدَتْ بِالسَّلَاسِلِ: په زنځيرونو كښې بند كړې شي.

**تسهيلات:**

**قوله:** فُتِحَتْ أَبْوَابُ السَّمَاءِ:

**د جنت دروازې پرانستيدو او جهنم دروازې بنديدو كښې دوه احتماله:** - ① دا جمله يا په حقيقت باندې محمول ده چه واقعي دَ آسمان دروازې كولاوولې شي دې نه دَرمضان عظمت مقصود دې. قاضي عياض مالكي رحمه الله فرمائي چه دا دلته كوم ذكر دې چه دآسمان دروازې كولاوولې شي يا دَ جنت دروازې كولاوولې شي دَ جهنم بندولې شي او سركش شيطانان تړلې شي دا ټول په حقيقت باندې محمول دي دې نه دَرمضان تعظيم اوعظمت مقصود دې

② بعضې علماؤ دا ټول واقعات كنايه او مجاز باندې حمل كړي دي اوونيلي دي چه دَ آسمان دروازې كولاويدل دَ رحمت دَعام كيدو نه كنايه ده دَ جنت دروازې كولاويدل دَ نيكو دَ عام كيدو نه كنايه ده اودَ دوزخ دروازې بنديدل دَخرابو كارونو دكميدو نه كنايه ده خكه چه روژه دَ بدو نه بچ كول كوي اودَ سركش شيطانانو بنديدل دَدې نه كنايه ده چه هغوي دَ انسانانو دَ اغوا او تزئين بالشهوات ميدان كښې عاجزكولې شي

**قوله:** وَسُلْسِلَتِ الشَّيَاطِينُ:

**د سركشه شيطانانو بنديدل:** - يعني شيطانان په زنځيرونو كښې تړلې او راګيرولې شي اوهغوي په رمضان كښې قيد كولې شي اودَ هغوي نه هغه قوت سلب كولې شي دكوم په ذريعه چه هغوي دَ الله تعالى مخلوق ګمراه كوي يائي په ګناهونو باندې تياروي په يو روايت كښې دَ صفدت الشياطين لفظ راغلې دې دَدې هم دغه معنى ده

**اعتراض:** - دلته دا اعتراض راپيدا كيږي چه كله ټول شيطانان قيد كولې شي نو په رمضان كښې دا ګناهونه ولې كيږي؟

**جوابونه:** - ① شيطانان واقعي ټول تړلې شي ليكن چه يوولس مياشتې شيطانانو كوم نفس اماره تيار كړې دي يوې مياشتې پورې پخپله هغه نفس كارچلوي لكه ځنګه چه ګاډې بندولونه پس هم دَ وړاندې طرف ته څه حركت كوي.

② غټ او سرکش شیطانان تړلي شي دهغوی واړه کارکنان کار چلوي چنانچه په یو روایت کښې "مردة الجن" الفاظ هم ددې تائیدکوي اومشاهده ګواه ده چه په رمضان کښې لوئي لوئي ګناهونه کم شي

③ داهم ممکن دی چه کوم خلق روژه ساتي اوهغوی نیکان اوډینداره دی د روژې شرائط هم پوره کوي صرف هم د دغه شان خلقو شیطانان تړلي شي اود شریرانو اوکافرانو هغه خلاص پاتې وي خلاصه دا چه په رمضان کښې دخیر لارې کولاوولي شي اود شر هغه بندولي شي

④ کیدې شي چه د شیطانانو د تړلو نه پس هم هغوی دخپلو مقاماتو د انسانو په زړونو کښې د وسوسې اچولو سلسله جاري ساتي بهرحال زیر بحث حدیث اود رسول الله ﷺ ارشاد بې شکه دې هرسړي په رمضان کښې په شرارتونوکښې کمي محسوس کوي

**[۱۹۵۷] دجنت داخلیدو دپاره د روژه دارو مخصوص دروازه**

١٩٥٧-(٢)[٢] ① وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«فِي الْجَنَّةِ ثَمَانِيَةُ أَبْوَابٍ ③ مِنْهَا بَابٌ يُسَمَّى الرَّيَّانَ ④ لَا يَدْخُلُهُ إِلَّا الصَّائِمُونَ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① سهل بن سعد رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د جنت اته دروازې دی ③ چې په هغې کې يوه هغه دروازه ده چې د هغې نوم ريان دې ④ او په دې دروازه به يواځې روژه دار داخليدې شي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الرَّيَّانَ: په جنت کښې د روژې د دروازې نوم دې. ريان خروب کولو ته وائي. ددې دروازې نه به روژه دارو ته شراب څکولې کيږي يعنی دې ته د عطشان په ضد سره ريان اونيلي شو

**تسهيلات:**

**قوله: فِي الْجَنَّةِ ثَمَانِيَةُ أَبْوَابٍ:**

**د دروازو څخه مراد:** - جنت يو دې دروازې نی اته دی چه په حقيقت کښې د جنت درجات دی د هرې يوې دروازې جدا جدا نوم دې يو په دې کښې باب الريان دې اودوزخ هم يو دې مګر د دې د طبقات اودرکات جدا جدا نومونه دی د دې اووه دروازې دی

**د باب الريان په نوم کښې نکته:** - د باب الريان معنی خروب کيدل دی کومه چه د روژه دارو دپاره ده د يو تکی روژه دار دپاره دا نوم ښومره خوندور دې

[1] اخرجه البخاري كتاب بدء الخلق /باب صفة أبواب الجنة (رقم-٣٢٥٧) كتاب الصيام/باب ما جاء في فضل الصيام (رقم-١٨٩٦)

**[١٩٥٨] په اخلاص سره د رمضان د روژو او تراويح فضيلت**

١٩٥٨ - ( )[٣] [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«مَنْ صَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا [٣] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ، [٤] وَمَنْ قَامَ رَمَضَانَ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا [٥] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ، [٦] وَمَنْ قَامَ لَيْلَةَ الْقَدْرِ إِيمَانًا وَاحْتِسَابًا [٧] غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] كوم سړي چې د ايمان سره (يعني شريعت لره رښتيا ګڼلو سره او د فرضيت رمضان اعتقاد ساتلو سره، او د طلب ثواب د خاطره (يعني د ريا په طور نه بلكه خالصةً لله) د رمضان روژه وساتله [٣] نو د هغه هغه ګناه بخښل كيږي چې هغه مخكې يې كړي وي [٤] اوچا چې د رمضان په شپه كښې عبادت اوكړو په كامل يقين او ثواب په اميدسره [٥] نودهغه هغه ګناهونه به معاف شي كوم چې هغه كړي وي [٦] دغه شان كوم سړي چې په شب قدر كې د ايمان سره (يعني د شب قدر د حقيقت او اعتقاد ساتلو سره) او د طلب ثواب د خاطره ودريدلو [٧] نو د هغه هغه ګناه بخښل كيږي كومې چې هغه مخكې كړي وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① صَامَ رَمَضَانَ: دا يو اصطلاحي لفظ دې چه صرف د تراويح دپاره ونيلى شي د تهجد دپاره د قيام الليل الفاظ راځي ② إِيمَانًا: اى الإعْتِقَادُ بِفَرْضِيَّةِ الصَّوْمِ: يعني د روژې د فرضيت او د ثواب عقيده ئې وى ③ احْتِسَابًا: أَيْ: طَلَبًا لِلثَّوَابِ: دثواب دپاره

**تسهيلات:**

**قوله: إِيمَانًا:**

دكوم سړى چه ايمان نه وى اوهغه مسلمان نه وى نو دهغه د روژې هيڅ فائده نشته دې په دې وجه ئې ايمان د قيد اولګولو

**قوله: وَاحْتِسَابًا:**

يعنى د ثواب په نيت باندې روژه ساتى په دې سره په هغه خلقو باندې رد دې چه صرف دشرم د وجې نه يا دخپلولنى او عزيزولنى د وجې نه روژه ساتى دې دپاره چه په معاشره كښې دهغه رسوائى نه وى

**قوله: غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ:**

**په روژه د ګناهونو معاف كيدل:** - يعنى واړه ګناهونه ټول معاف كيږى اوكبيره كمزورې پاتې كيږى ليكن كه دلويو ګناهونونه ئى توبه اوكړه نوبيابه ټول ګناهونه معاف شى هم دغه فضيلت د تراويح او ليلة القدر دتهجد دې

[1]) اخرجه البخارى كتاب الصوم/باب من صام رمضان إيمانًا واحتسابًا ونيةً(رقم-١٩٠١) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل شهر رمضان(رقم-٦٨٣) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فى فضل الصيام(رقم-١٦٤١) والدارمى ومن كتاب الصوم/باب فى فضل قيام شهر رمضان (رقم-١٨١٧) واحمد فى المسند ٣٢/٢

## [١٩٥٩] د روژې جامع فضيلت

(...) [٣] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«كُلُّ عَمَلِ ابْنِ آدَمَ يُضَاعَفُ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ "③ قَالَ اللهُ - تَعَالَى - " إِلَّا الصَّوْمَ فَإِنَّهُ لِي وَأَنَا أَجْزِي بِهِ، ④ يَدَعُ شَهْوَتَهُ وَطَعَامَهُ مِنْ أَجْلِي، ⑤ لِلصَّائِمِ فَرْحَتَانِ، فَرْحَةٌ عِنْدَ فِطْرِهِ ⑥ وَفَرْحَةٌ عِنْدَ لِقَاءِ رَبِّهِ، ⑦ وَلَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ أَطْيَبُ عِنْدَ اللهِ مِنْ رِيحِ الْمِسْكِ، ⑧ وَالصِّيَامُ جُنَّةٌ، ⑨ وَإِذَا كَانَ يَوْمُ صَوْمِ أَحَدِكُمْ ⑩ فَلَا يَرْفُثْ وَلَا يَصْخَبْ، ⑪ فَإِنْ سَابَّهُ أَحَدٌ أَوْ قَاتَلَهُ فَلْيَقُلْ: ⑫ إِنِّي امْرُؤٌ صَائِمٌ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د بني آدم د هر نيك اعمال ثواب زياتيږي په دي طور چې د يوي نيكي ثواب د لسو [١٠] څخه تر اووه سوه [٧٠٠] چنده پورې وي ③ او الله تعالى جل جلاله فرمايي خو روژه چې ده هغه زما د پاره ده او زه به د هغې اجر وركوم [يعنى د روژې چې كومه جزاء ده هغه ماته معلومه ده او زه به د هغې اجر وركوم او هغه به روژه دارته زه پخپله وركوم په دي باره كې به د بل چا يعنى د فرشتې واسطه نه وي] ④ څكه چې روژه دار خپل خواهش او خپل طعام يواځې زما د پاره پريږدي يعني هغه زما حكم په ځاي كولو زما، د رضا او خوښي د خاطره او زما د ثواب د طلب د پاره روژه نيسي، ⑤ د روژه دار د پاره دوه خوشحالي دي يوه خوشحالي خو د روژې د ماتولو په وخت ⑥ او دويمه خوشحالي (د ثواب د حاصلولو په وجه) د خپل پروردګار سره د ملاقات په وخت ⑦ ياد لرئ چې د روژه دار د خُلي بوي د الله جل جلاله په نزد د مشك د خوشبو څخه زيات لطيف او خوښ دي ⑧ او روژه ډهال دي (چې د دې په وجه بنده په دُنيا كې د شيطان د شر او فريب څخه او په آخرت كې د دوزخ د اُور څخه محفوظ وي) ⑨ هر كله چې په تاسو كې يو سړي روژه دار وي ⑩ نو هغه دې فحش خبري نه كوي او نه دې په بيهودګۍ سره خپل آواز اوچتوي ⑪ او كه څوك نادان جاهل هغه ته بد رد اوواني يا د هغه سره د جنګ كولو اراده وكړي نو هغه ته يكاردي چې ورته اوواني ⑫ چې زه روژه دار يم (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① يُضَاعَفُ: أَيْ ثَوَابُهُ فَضْلًا مِنْهُ: يعنى ثواب ورله الله تعالى په خپل فضل سره زياتوى ② ضِعْفٍ: په څو څو چنده (نې ورله زياتوى، ③ يَدَعُ: أَيْ يَتْرُكُ: پريږدى ④ مِنْ أَجْلِي: أَيْ مِنْ جِهَةِ أَمْرِي: زما دحكم په وجه. او زما د رضا دپاره. ⑤ فَرْحَتَانِ: د فرحة تثنيه ده. يعنى دوه خوشحالي، ⑥ خُلُوف: خَلْف چه د خُلي خوند بدل شي او بدبويه شي هغې ته واني يا دې ته واني چه كوم خوراك چه په خله كښې پاتې شي اوپه هغې سره خله بدبويه شي ⑦ جُنَّةٌ: أَيْ وِقَايَةٌ: حفاظت كونكې يعنى ډهال. ⑧ فَلَا يَرْفُثْ: د ښځو په وړاندې د ښځو محاسن تذكره رفث ياديږي مراد فحش خبرې اترې

---

(١) اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب: هل يقول إني صائم إذا شتم (رقم-١٩٠٤) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل الصوم (رقم-٧٦٦) والنسائي كتاب الجنائز/باب ذكر الاختلاف على الزهري فيه (رقم-٢١٠٧) واحمد ٣١١/٤

دی ⑨ وَلَا يَصْخَبْ چغې صورې او شور شغب كولوته "صخب" وائی ⑩ سَابَّهُ: أَيِ ابْتَدَأَهُ بِسَبٍّ أَوْشَتْمٍ: يعنی يوكس ورته په كنځلو يا بدو ردو شروع اوكړه

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا الصَّوْمَ:

**د روژې د تخصيص مفهوم:**- يعنی اول چه كومه ضابطه مقرركړې شوې ده دغه د باقی عبادتونود پاره ده د روژې دپاره نه ده

**قوله:** فَإِنَّهُ لِي: يعنی د هرې نيكئی قاعده ده چه په يوه باندې لس نيكئی بلكه تر اووه سوو پورې ثواب زياتيږی مگر د روژې چه كومه نيكی ده د هغې قاعده داسې نه ده خكه چه روژه زما دپاره ده ددې دپاره به د دې بدله زه پخپله وركوم

**عبادات خو ټول د الله دپاره وی؟:**- عبادتونه خومره چه دی ټول په ټول هم د الله تعالی دپاره دی دلته ددې تخصيص وجه څه ده؟

**جوابونه:**- ددې سوال اوددې تخصيص ډير وجوهات دی

① د جاهليت په دوركښې هرعبادت د غيرالله دپاره كړې شوې دې مگر د روژې عبادت هيڅ كله د غيرالله دپاره نه دې شوې په دې وجه ئی اوفرمائيل چه روژه زما دپاره ده

② په هرعبادت كښې د رياكارئی خطره وی مگر په روژه كښې نشته خكه چه تركومې پورې روژه دار پخپله اونه ښائی چاته پته نه لگی چه د چا روژه ده اود چانه ده په دې وجه ئی اوفرمائيل چه روژه زما دپاره ده.

③ د دې خيزونو ترك كول د الله تعالی د صفاتونه دی كوم سړې چه روژه ساتی نود الله تعالی د صفاتوسره مشابهت راخی په دې وجه الله تعالی د روژې عبادت خپل طرف ته منسوب كړو

④ د هيڅ وجې اوتاويل ضرورت نشته دې بلكه الله تعالی د روژې د شان تكريم اوعظمت زياتولودپاره اوفرمائيل چه دا خوخاص زما دپاره ده

**قوله:** وَأَنَا أَجْزِي بِهِ: يعنی روژه دار ته به د روژې ثواب زه وركوم

**ثوابونه خو صرف الله تعالی وركوی؟:**- ددې تخصيص څه مطلب دې حالانكه ثواب خو هم الله تعالی وركوی؟

**جوابونه:**- ① الله تعالی د هرعبادت په ثواب وركولوباندې فرښتې مقرركړی دی ليكن د روژې ثواب به الله تعالی په خپل دست قدرت سره وركوی بيا به د هغې كوم شان وی سبحان الله

② علامه قرطبی رحمه الله وركړې دې چه د هرعبادت ثواب متعين دې اود هغې دپاره يوحد

مقرردي لس درجې دي يا اووه سوه يا يو لاکهه يا د اووو لاکهو پورې دي. مګر د روژې د ثواب څه حد مقرر نه دې الله تعالى چه څومره زيات ثواب ورکول غواړي ورکوی به.

④ د هر عمل د محنت او مشقت اندازه فرښتو ته کيږي مګر د روژه دار تنده او د هغه اولږه او باطني سوزش او تکليف اندازه صرف الله تعالى ته ده په دې وجه ثواب هم هغه ورکوی.

④ بعضې علماؤ د "اجزي" لفظ د مجهول صيغې سره لوستلي دې چه ترجمه ئې داده روژه زما ډپاره ده او د دې په بدله کښې به روژه دار ته د ثواب په ځائی زما ذات ملاويږي. دا ډيره ښکلې توجيه ده ليکن په يو معتمد شرح کښې ماته ملاؤ نه شوه په يو شاذ روايت کښې د مجهول صيغه ده.

**قوله: وَلَخُلُوفُ فَمِ الصَّائِمِ:**

**د خلوف تعريف:** -لام ابتدائيه تاکيد يه مفتوح دي او په خاء باندې پيښ ده فتحه وئيل غلط دی. د اولږې تندې د وجې نه په خيټه کښې چه کوم بخارات راپيدا کيږي هم دغې ته خلوف وئيلې شوې دې او هم دغه بوئی الله تعالى ته محبوب دې کوم چه صرف د روژې د وجې نه کيږي د خلوف نه مراد هم دغه دي. بهرحال د روژې د وجې نه چه کوم اثر پريوځی د هغې قدر او تعريف کيږي او د تعريف هم هغې کيدل پکاردی. هغه هم لوګه تنده ده بل څه څيز نه دي.

**قوله: إِنِّي امْرُؤٌ صَائِمٌ:** يعنی هر روژه دار ته پکار دی چه هغه د روژې په ورځ د هر قسم احساسات او جذبات په قابو کښې اوساتی تردې چه کنځلې هم پريږدی چه روره زما روژه ده.

**قوله: وَالصِّيَامُ جُنَّةٌ:** يعنی روژه د هرې ګناه د پاره باطنی ډهال دې په دې شرط چه دغه ډهال صحيح سالم وی شليدلې نه وی. شيطان هم باطنی دښمن دې او روژه هم باطنی ډهال دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۱۹۶۰] د رمضان د مياشتې فضائل او برکات**

۱۹۶۰-(۱)[۵] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «إِذَا كَانَ أَوَّلُ لَيْلَةٍ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ ③ صُفِّدَتِ الشَّيَاطِينُ وَمَرَدَةُ الْجِنِّ ④ وَغُلِّقَتْ أَبْوَابُ النَّارِ فَلَمْ يُفْتَحْ مِنْهَا بَابٌ ⑤ وَفُتِّحَتْ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ فَلَمْ يُغْلَقْ مِنْهَا بَابٌ ⑥ وَيُنَادِي مُنَادٍ: يَا بَاغِيَ الْخَيْرِ أَقْبِلْ ⑦ وَيَا بَاغِيَ الشَّرِّ أَقْصِرْ ⑧ وَلِلَّهِ عُتَقَاءُ مِنَ النَّارِ ⑨ وَذَلِكَ كُلَّ لَيْلَةٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① حضرت ابوهريره ﷺ روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې د رمضان اوله شپه راشي ③ نو شيطانان او سرکشه جنات قيد کړل شي ④ د دوزخ دروازي بندي کړل شي بيا هيڅ دروازه کولاؤ نه وي ⑤ او د جنت دروازي کولاؤ کړل شي بيا د هغې

(۱) اخرجه الترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في فضل الصوم (رقم-۶۸۲) والنسائي كتاب الجنائز /باب ذكر الاختلاف على الزهري فيه (رقم-۲۱۰۷) واحمد ۳۱۱/٤

هيڅ دروازه بنده نه وي [٦] او اعلان کونکي (فرښته) دا اعلان کوي چې اې د نيکۍ او ثواب طلب ګاره د الله ﷻ طرف ته متوجه شه [٧] او اې د بدۍ اراده کونکيه د بدۍ څخه منع شه [٨] ځکه چې الله تعالى ﷻ خلق د اُور څخه آزادوي (يعني الله رب العزت د دې مبارکې مياشتې په برکت ډير خلق د دوزخ د اُور څخه آزادوي) ځکه کيدي شي چې ته هم په هغه خلقو کې شامل شي [٩] او دا اعلان د رمضان په هره شپه کې کيږي (ترمذي ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① صُفِّدَتْ: قيد کړې شي، ② مَرَدَةُ: د مَارِد جمع ده او مَارِ سرکش ته وائي ③ بَاغِيَ الْخَيْرِ أَيْ طَالِبَ الْعَمَلِ وَالثَّوَابِ: اې د نيکۍ او د ثواب طلب کونکيه، ④ أَقْبِلْ: أَيْ تَعَالَ: راشه، متوجه شه، يعني الله ته رجوع اوکړه، ⑤ أَقْصِرْ: أَيْ أَمْسِكْ عَنِ الْمَعَاصِي: د ګناهونو نه منع شه ⑥ عُتَقَاءُ: آزادونکي خلق (د اُور نه)

| ۱۹۶۱ - (٥) [١] وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ رَجُلٍ، [٢] قَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ. |
|---|

**ترجمه:** [١] امام احمد رحمه الله دا روايت د يو سړي څخه نقل کړي دي [٢] او امام ترمذي رحمه الله فرمائيلي دي چې دا حديث غريب دي

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د دې حديث شرح په د بل حديث په تسهيل کښې ذکر ده.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۱۹۶۲] د رمضان په مياشت کښې د جنت دروازې خلاصيدل

| ۱۹۶۲ - (٦) [١] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[٢] «أَتَاكُمْ رَمَضَانُ، شَهْرٌ مُبَارَكٌ [٣] فَرَضَ اللهُ عَلَيْكُمْ صِيَامَهُ، [٤] تُفْتَحُ فِيهِ أَبْوَابُ السَّمَاءِ، [٥] وَتُغْلَقُ فِيهِ أَبْوَابُ الْجَحِيمِ، [٦] وَتُغَلُّ فِيهِ مَرَدَةُ الشَّيَاطِينِ، [٧] لِلّٰهِ فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ، [٨] مَنْ حُرِمَ خَيْرَهَا فَقَدْ حُرِمَ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چه رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] ستاسو د پاره د رمضان برکت ناکه مياشت راغلي ده [٣] چې په هغې کې الله تعالى ﷻ په تاسو روژې فرض کړي دي [٤] په دې مياشت کې د آسمان دروازې کولاؤ وي [٥] او د دوزخ دروازې بندې شي [٥] او په دې مياشت کې سرکشه شيطانانو ته طوق وراچول کيږي [٦] او په دې کې (يعني پوره د رمضان په مياشتې کې يا د رمضان په آخري لسو شپو کې) د الله تعالى ﷻ يوه خاصه شپه ده چې (با اعتبارد ثواب) د زرو مياشتو څخه بهتره ده (يعني په دې شپه کې عمل کول په هغه زرو مياشتو کې د عمل کولو څخه چې په هغې کې ليلة القدر نه وي ډيره زياته افضله او بهتره ده) [٧] نو کوم سړي چې د دې شپې د خير څخه محروم شو هغه د هر خير څخه محرومه شو (احمد نسايي)

---

[1] اخرجه احمد في المسند ٣١٢/٤

[2] اخرجه النسائي في السنن كتاب الجنائز باب ذكر الاختلاف على الزهري فيه (رقم-٢١٠٦) واحمد في المسند ٢٣٠/٢

**حل اللغات:** - ①الْجَحِيم دوزخ، ②تُغَلُّ: طوق ورته اچولي شي، په مرئ کښې ورته زنځيرونه اچولي شي، ③مَرَدَةُ: د مَارد جمع ده او مَارد سرکش ته وائي ④حُرِمَ: محرومه شو، يعني منع کړې شو،

**تسهيلات:**

**قوله:** وَتُغَلُّ فِيهِ مَرَدَةُ الشَّيَاطِينِ:

**د حديثونو په الفاظو کښې تطبيق:** - دې نه وړاندې چه کوم حديث تيرشوې دې په هغې کښې هم د مردة الجن الفاظ راغلي دي او په دې حديث کښې هم د مردة الشياطين الفاظ دي اول خو په دې خبره باندې ځان پوهه کول پکاردي چه د شياطين نه پس د مردة الجن دا لفظ د تخصيص بعد تعميم د قبيل نه دی مردة د مارد جمع ده او مارد سرکش ته وائی په دې روايت سره د دې باب د دومبي حديث مسئله هم حل شوه چه هلته د نورو جوابونونه علاوه يو جواب داهم ورکړې شوې وو چه د شيطانانو تړلونه مراد سرکش شيطانان تړل مراد دي او واړه شيطانان خو په انسانانو کښې کار کوی

**[۱۹۶۲] د روژې او قرآن پاک شفاعت کول**

—( ۱۷)[١]وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[٢] «الصِّيَامُ وَالْقُرْآنُ يَشْفَعَانِ لِلْعَبْدِ،[٣] يَقُولُ الصِّيَامُ: أَيْ رَبِّ إِنِّي مَنَعْتُهُ الطَّعَامَ وَالشَّهَوَاتِ بِالنَّهَارِ فَشَفِّعْنِي فِيهِ،[٤] وَيَقُولُ الْقُرْآنُ: مَنَعْتُهُ النَّوْمَ بِاللَّيْلِ فَشَفِّعْنِي فِيهِ،[٥] فَيُشَفَّعَانِ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:**[١] عبدالله بن عمرو رضی الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] روژه او قرآن دواړه به د بنده د پاره شفاعت کوي[٣] روژه به وايي چې اې زما پروردګاره ما دې د خوراک او نورو خواهشاتو ،مثلاً د اوبو، جماع او د غيبت وغيره، خخه په ورځ کې منع کړي وو نو زما د طرف خخه هم د ده په حق کې شفاعت قبول کړې [٤] او قرآن به وايي چې ما دې د شپې د خوب خخه منع کړي وو نو زما د طرف خخه هم د ده په حق کې شفاعت قبول کړه [٥] نو د دې دواړو شفاعت به قبول کړل شي ،بيهقي،

**تسهيلات**

**قوله:** الصِّيَامُ وَالْقُرْآنُ يَشْفَعَانِ لِلْعَبْدِ:

**د روژې او قرآن شفاعت:** - قرآن خخه مراد تلاوت دقرآن پاک دې علامه طيبي رحمه الله فرمانی چې د قرآن نه تهجد او ،دقرآن پاک تلاوت وغيره دپاره، شب بيداری کول مراد دی د روژې او دقرآن د شفاعت ثمره به داوی چې غالبا د روژې په شفاعت سره به خو ګناهونه ختم شي او د قرآن شفاعت سره به درجات عاليه نصيب شي

[١] اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم-١٩٣٨)

**[۱۹٦٤] د شب قدر نه لاندې کولو نقصان**

—( )[۸] [۱] وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ: دَخَلَ رَمَضَانُ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«إِنَّ هَذَا الشَّهْرَ قَدْ حَضَرَكُمْ، [۳] وَفِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ [۴] مَنْ حُرِمَهَا فَقَدْ حُرِمَ الْخَيْرَ كُلَّهُ، [۵] وَلَا يُحْرَمُ خَيْرَهَا إِلَّا كُلُّ مَحْرُومٍ»". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] انس ابن مالك رضي الله عنه وايي چې د رمضان مياشت چې راغله نو رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ستاسو د پاره دا مياشت راغلي ده [۳] چې په دې کې يوه شپه (يعني شب قدر) د زرو مياشتو څخه بهتره ده [۴] کوم سړي چې د دې شپې د سعادت څخه محروم شو (چې هغه نه پوره شپه يا کم څخه کم د شپې په څه حصه کې هم د بيداريدو او په عبادت خداوندي کې د مشغوليدو توفيق ونه شو) نو هغه د هر سعادت او خير څخه محروم شو [۵] او ياد ساتئ، چې د شب قدر د سعادت څخه بې نصيبه محروميږي (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① مَحْرُومٍ: أَيْ كُلِّ مَمْنُوعٍ مِنَ الْخَيْرِ: يعنې څوک چه د هر خيرنه منع کړې شوې دې هم هغه دې نه هم محرومه کولې شي

**تسهيلات: قوله:** إِنَّ هَذَا الشَّهْرَ قَدْ حَضَرَكُمْ:

**د رمضان د مياشتې عظمت:** - دا دې چې د رمضان مياشت داسې سخې ده چې تاسو ته راشي او ستاسو خير غواړي لکه څنګه چې وريځې راشي او اوبه راوروی د کوهی پشان څوک راغواړي نه لهذا د رمضان مياشت غنيمت اوګڼړئ اود ورځې روژه ساتئ او د شپې قيام کړئ داشان شب قدر د اتياؤ کالو د عبادت څخه بهتر دې لهذا د شب قدر برکتونه حاصل کړئ په دې شب قدر کښې محنت اوکړئ او زيات نه زيات اجر حاصل کړئ داشان د ليلة القدر د سعادت څخه هغه کس محرومه کيږي چې په حقيقت کښې بدنصيبه وي

**[۱۹٦۵] د رمضان د مياشتې برکتونه**

—( )[۹] [۱] وَعَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي آخِرِ يَوْمٍ مِنْ شَعْبَانَ فَقَالَ: [۲] "«يَا أَيُّهَا النَّاسُ، قَدْ أَظَلَّكُمْ شَهْرٌ عَظِيمٌ [۳] شَهْرٌ مُبَارَكٌ، [۴] شَهْرٌ فِيهِ لَيْلَةٌ خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ شَهْرٍ، [۵] جَعَلَ اللهُ صِيَامَهُ فَرِيضَةً، [٦] وَقِيَامَ لَيْلِهِ تَطَوُّعًا، [۷] مَنْ تَقَرَّبَ فِيهِ بِخَصْلَةٍ مِنَ الْخَيْرِ [۸] كَانَ كَمَنْ أَدَّى فَرِيضَةً فِيمَا سِوَاهُ، [۹] وَمَنْ أَدَّى فَرِيضَةً فِيهِ كَانَ كَمَنْ أَدَّى سَبْعِينَ فَرِيضَةً فِيمَا سِوَاهُ، [۱۰] وَهُوَ شَهْرُ الصَّبْرِ، [۱۱] وَالصَّبْرُ ثَوَابُهُ الْجَنَّةُ، [۱۲] وَشَهْرُ الْمُوَاسَاةِ، [۱۳] وَشَهْرٌ يُزَادُ فِيهِ رِزْقُ الْمُؤْمِنِ،

**ترجمه:** [۱] سلمان فارسي رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ د شعبان په آخري ورځ زمونږ په مخکې (د جمعې يا په طور د تذکير اونصيحت) خطبه ورکولو سره وفرمايل [۲] چې اې

( ) اخرجه ابن ماجة في السنن كتاب الصيام/باب ما جاء في فضل شهر رمضان (رقم-۱٦٤٤)
( ) اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم-۳٦۰۸)

خلقو، با عظمته مياشت ستاسو په سر سايه (سوري) كونكي ده (يعني د رمضان مياشت راتلونكي ده) [۳] دا ډيره بركت ناكه او مقدسه مياشت ده [۴] دا هغه مياشت ده چې په دې كې هغه شپه (يعني ليلة القدر) ده چې د زرو مياشتو څخه بهتره ده [۵] الله تعالى ﷻ د دې مياشتې روژې فرض كړې دي [۶] او د دې په شپو كې قيام (د الله عبادت د پاره بيدارېدل) يې نفل ګرځولي دي [۷] كوم سړي چې دې مباركه مياشت كې نيكي (يعني د نفل په طريقه اود عمل په ذريعه په بارګاه حق كې د تقرب طلبګار شي [۸] نو هغه د هغه سړي په شان وي كوم چې د رمضان څخه علاوه څه بله مياشت كې فرض ادا كړې وي (يعني د رمضان په مياشت كې د نفل اعمالو ثواب د رمضان څخه علاوه په نورو ورځو كې د فرض اعمالو د ثواب برابر وي) [۹] او كوم سړي چې په ماه رمضان كې (بدني يا مالي) فرض ادا كړل نو هغه د هغه سړي په شان شو چې هغه د رمضان څخه علاوه په بله مياشت كې اويا فرض ادا كړي وي (يعني په رمضان كې د يو فرض د ادا كولو ثواب په نورو ورځو كې د اويا فرضو د ادا كولو د ثواب سره برابر وي) [۱۰] او د رمضان مياشت د صبر مياشت ده (چې روژه دار د خوراك او څښاك او نورو خواهشاتو څخه منع كوي) [۱۱] هغه صبر چې د هغې ثواب جنت دې [۱۲] مه رمضان د غم خوارئ مياشت ده (نو په دې مياشت كې د محتاجو او فقيرانو خبر ګيرى كول پكار دي) [۱۳] او دا هغه مياشت ده چې په دې كې (د دولتمند او د مفلس) هر قسم مؤمن (ظاهري او معنوي) رزق زياتيږي

[۱] مَنْ فَطَّرَ فِيهِ صَائِمًا [۲] كَانَ لَهُ مَغْفِرَةً لِذُنُوبِهِ [۳] وَعِتْقَ رَقَبَتِهِ مِنَ النَّارِ [۴] وَكَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَنْتَقِصَ مِنْ أَجْرِهِ شَيْءٌ". [۵] قُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ لَيْسَ كُلُّنَا نَجِدُ مَا نُفَطِّرُ بِهِ الصَّائِمَ [۶] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يُعْطِي اللهُ هَذَا الثَّوَابَ مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا [۷] عَلَى مَذْقَةِ لَبَنٍ، أَوْ تَمْرَةٍ، أَوْ شَرْبَةٍ مِنْ مَاءٍ [۸] وَمَنْ أَشْبَعَ صَائِمًا سَقَاهُ اللهُ مِنْ حَوْضِي شَرْبَةً لَا يَظْمَأُ حَتَّى يَدْخُلَ الْجَنَّةَ، [۹] وَهُوَ شَهْرٌ أَوَّلُهُ رَحْمَةٌ وَأَوْسَطُهُ مَغْفِرَةٌ وَآخِرُهُ عِتْقٌ مِنَ النَّارِ [۱۰] وَمَنْ خَفَّفَ عَنْ مَمْلُوكِهِ فِيهِ [۱۱] غَفَرَ اللهُ لَهُ، وَأَعْتَقَهُ مِنَ النَّارِ».

**ترجمه:** [۱] كوم سړي چې په رمضان كې په يو روژه دار باندې (د خپلي حلالې ګټې) سره روژه ماته كړي [۲] نو د هغه دا عمل به د هغه د ګناهونو د بخشش او مغفرت ذريعه وى [۳] او د دوزخ د اور څخه د هغه د حفاظت سبب وي [۴] او هغه ته به د روژه دار د ثواب په شان ثواب حاصليږي بغير د دې څخه چې د روژه دار په ثواب كې څه كمي وشي [۵] مونږ عرض وكړو چې يا رسول الله په مونږ كې ټول خو داسې نه دي چې د روژه دار د افطارې په قدر د انتظام كولو قدرت لري [۶] نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل دا ثواب الله تعالى ﷻ هغه چاته هم وركوي چې روژه دار باندې افطارى اوكړي [۷] په يو ګوټ شيدې (پې) يا يوى كجورې يا د ګوټ اوبو په ذريعه (روژه ماته كړي) [۸] او كوم سړي چې روژه دار باندې په مړه نس (خيټه) طعام وخوروي نو الله تعالى ﷻ به هغه زما د حوض (يعنى د حوض كوثر)

ښخه دا سې سیراب کړي چې د هغې ښخه روسته به هیڅ کله تږي نه شي تر دي چې هغه په جنت کې داخل شي [۹] او ماه رمضان هغه میاشت ده چې د دې میاشتې ابتدایي حصه رحمت دي او په درمیانه حصه کې یې بخښش دی، یعنی هغه د مغفرت زمانه ده، او د دې په آخري حصه کې د دوزخ د اور ښخه نجات دي (خو دا درې څیزونه د مؤمنانو د پاره مخصوص دي د کافرانو د دې سره هیڅ تعلق نشته)[۱۰] او کوم سړي چې په دې میاشت کې د خپل غلام او وینځې بوج سپك کړي [۱۱] نو الله تعالی ﷻ به یې وبخښي او د اور ښخه به نجات ورکړي (بیهقی)

**حل اللغات:** - ① أَظَلَّكُمْ: أَيْ أَشْرَفَ عَلَيْكُمْ: په تاسو راتلونکې ده، په سر راتلونکې ده. ② تَطَوُّعًا: أَيْ سُنَّةً مُؤَكَّدَةً: د تطوع معنی نفل ده خو دلته ترې تراویح مراد دی او دا سنت مؤکد دی. ③ تَقَرَّبَ: نزدیکت حاصل کړی ④ بِخَصْلَةٍ: په خوئی او نیک عمل سره. ⑤ الْمُوَاسَاةِ: غم خواری، همدردی. ⑥ مَذْقَةٍ: أَيْ شَرْبَةٍ: یو ګوټ، ⑦ خَفَّفَ: سپکوالې اوکړی.

**د راوي مختصر تعارف:** - نوم ئی مجوسی مایه وو د اسلام قبلولونه پس ئی سلمان کیخودې شو. ابوعبدالله ئې کنیت دې. نسب نامه ئی څه په دې ډول ده. مایه بن لوذخشان بن مورسلان بن بهنوذان بن فیروز ابن بهرك. د جاهلیت په زمانه کښې په مجوسی مذهب کښې کلك وو. دهغه شمیر د اُور په هغه عبادت کونکوکښې ووچه یووخت به ئی هم اُور نه مړکولو. بیا د عیسانی مذهب طرف ته مائل شو او په دې سلسله کښې ډیرو پادریانو سره پاتې شو. آخری پادری هغه ته د رسول الله ﷺ د بعثت زیرې ورکړو د حضور ﷺ خدمت ته په رسیدوسره مسلمان شو. حضوراکرم ﷺ د هغه حضرت ابودرداء رضی الله عنه سره رورولی قائمه کړه. (۴) دهغه د تولونه رومبنی غزوه خندق وه دې نه پس بیا په تولو جنګونو کښې مسلمانانوسره اوګه په اوګه جنګیدلو. (۵)

حضرت عمر رضی الله عنه هغه د مدائن ګورنرهم جوړکړې وو. د هغوی په ژوندکښې یوڅو صفتونه ډیر ښکاره وو په هغې کښې ① زهداوتقوی ② د رهبانیت نه نفرت ③ سادګی ④ سخاوت ⑤ دصدقاتونه خان ساتل وغیره شامل وو.؟

**وفات:** - دحضرت عثمان رضی الله عنه دخلافت په زمانه کښې وفات شو. دهغوی عمربعضو ۲۵۰ یا ۳۵۰ کاله خودلې دې.

**مرویات:** - د هغه نه د روایاتو شمیر ۶۰ ته نیزدې دې حضرت ابوسعیدالخدری رضی الله عنه ابن عباس رضی الله عنه اوس بن مالك رضی الله عنه د هغه شاګردان وو. د نورو حالاتودپاره اوګورئی ① مسنداحمد ۴۱/۵-۴۴ ② بخاری ۸۹۸/۲ ③ طبقات ابن سعد ۴۸/۱ ④ اسدالغابة ۳۳۰/۲ ⑤ مستدرك حاكم ۵۹۹/۳ ⑥ استیعاب ۵۷۲/۲ ⑦ تهذیب الکمال ۱۴۷ ⑧ صفوة الصلوة وغیره.

**تسهیلات: نوټ:** - ددې حدیث شرح په د بل حدیث په تسهیل کښې ذکر ده.

**[۱۹٦٦] په رمضان کښې د قیدیانو خلاصول**

۱۹٦٦ - (۱) [۱۰] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ شَهْرُ رَمَضَانَ ③ أَطْلَقَ كُلَّ أَسِيرٍ ④ وَأَعْطَى كُلَّ سَائِلٍ».

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنه فرمایي ② هر کله چې به د رمضان مقدسه میاشت شروع شوه ③ نو رسول الله ﷺ به هر قیدي خلاصولو ④ او د هر سائل مراد به یې پوره کولو (بیهقي)

**حل اللغات:** - ① أَطْلَقَ: په معنی د إِعْتَاقِ سره، یعنی خلاصولو به ئې ② أَسِيرٍ: أَيْ مَحْبُوسٍ: قیدی

**تسهیلات:**

**قوله: أَطْلَقَ كُلَّ أَسِيرٍ:**

**د رمضان په وجه د قیدی آزادول ولې؟:** - دلته په عام توګه په دماغو کښې دا شك پیدا کیږی چه حضورپاك سره به د کافرانو نه علاوه بل څه قیدی نه وو او د کافرانو قیدیانو د پاره یوه خان له ضابطه مقرر ده کوم چه فدیه وغیره ده. دلته ئی د رمضان د وجې نه څنګه قیدی پریخودو؟

**جواب:** - ملاعلی قاری رحمه الله په دې الفاظو سره جواب ورکړې دې "ای ممن یستحق الحبس لحق الله اوحق لعبد بتخلیصه منه" یعنی د قیدی نه مراد هغه خلق هم کیدې شی څوك چه به د حقوق الله د وجې نه قید کیدل او د قیدی نه هغه خلق هم مراد اخستلې شی څوك چه د حقوق العباد د وجې نه قید کولې شو. د حقوق العباد د وجې نه چه به کوم خلق قید کیدل د هغوی د راخلاصولو مطلب دادې چه حضورپاك به صاحب حق ته د آزادولو فرمائیل نو "اطلق کل اسیر" نه مراد خاص اسیرا وقیدی دې کوم چه د خلقو د حقوق د وجې نه خلقو سره قید وو حضورپاك سره نه وو

**[۱۹٦۷] د رمضان استقبال او اهتمام**

۱۹٦۷ - (۲) [۱۱] ① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ② "«إِنَّ الْجَنَّةَ تُزَخْرَفُ لِرَمَضَانَ مِنْ رَأْسِ الْحَوْلِ إِلَى حَوْلٍ قَابِلٍ ③" قَالَ: "فَإِذَا كَانَ أَوَّلُ يَوْمٍ مِنْ رَمَضَانَ ④ هَبَّتْ رِيحٌ تَحْتَ الْعَرْشِ مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ عَلَى الْحُورِ الْعِينِ ⑤ فَيَقُلْنَ: يَا رَبِّ اجْعَلْ لَنَا مِنْ عِبَادِكَ أَزْوَاجًا ⑥ تَقَرُّ بِهِمْ أَعْيُنُنَا وَتَقَرُّ أَعْيُنُهُمْ بِنَا» " ⑦ رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① ابن عمر رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د رمضان (د استقبال د پاره) جنت د کال د شروع څخه د کال تر آخر پورې خپل زیب او زینت کوي ③ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کله د رمضان اوله ورځ شي ④ نو د عرش لاندې د جنت

[۱] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان (رقم-۳٦۲۹)

[۲] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان (رقم-۳٦۳۳)

د ونو د پاڼو څخه د حورعين په سرونو هوا چلېږي [۵] ښا حورې وايي چې اې زمونږ پروردګاره د خپلو بنده ګانو څخه زمونږ د پاره خاوندان جوړکړې [۶] چې د هغوئ د صحبت او د هم نشيني سرور اوخوشحالي، سره زمونږ سترګي يخي شي او د هغوئ سترګي زمونږ په ديدار او وصل سره يخي شي [۷] دا دري روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان کي نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① تُزَخْرَفُ أَيْ تُزَيَّنُ يعني په سرو زرو وغيره سره ښائسته کولي شي ② رَأْسِ الْحَوْلِ اي أَوَّلِ السَّنَةِ دکال د شروع نه. ③ قَابِلٍ اي آتِيَةٍ يعني راتلونکی (کال بوږي). ④ هَبَّتْ چلېږي. را الوخی ⑤ وَرَقٍ پاڼرې (د جنت د ونو). ⑥ الْحُورِ الْعِينِ: حور معنی سپين. او عين غټو سترګو والا. يعني د غټو سترګو والا ښائسته حورې. ⑦ تَقَرَّ أَيْ تَتَلَذَّذُ يخي شی يعنی خوند او شوق حاصل کړی

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ الْجَنَّةَ تُزَخْرَفُ لِرَمَضَانَ مِنْ رَأْسِ الْحَوْلِ:**

**د کال د شروع په مصداق کښي دوه اقوال:** -

① د کال د شروع څخه مراد د محرم ابتدائي ورځي دی

② ليکن دا هم بعيد نه دی چې د جنت او رمضان په اعتبار سره د کال د شروع څخه مراد د شوال ابتدائي ورځي وی حاصل دادې چې رمضان او د رمضان برکتونه يعني کثرت مغفرت او اوچت درجات وغيره د راتلو په خوشحالی کښي جنت ټول کال ښکل ښول سنګار کوی

**قوله يَا رَبِّ اجْعَلْ لَنَا مِنْ عِبَادِكَ:**

**روژه دار ته د حورو اشتياق:** - ددې نه مراد د الله ﷻ نيک بندګان او فرمانبرداره بندګان دی کوم چې د رمضان په ورځو کښي روژه ساتی او د شپې د تراويح په مونځ کښي مشغول وی د رسول کريم ﷺ دا ارشاد مبارک منقول دې چې کوم بنده په رمضان کښي روژې ساتی ده ته د هرې ورځي په بدله کښي د ملغلرو په خيمې يوه حور عين بي بي ورکولې شي لکه څنګه چې الله تعالى فرمائيلی دی (حُورٌ مَقْصُورَاتٌ فِي الْخِيَامِ) يعنی په خيمو کښي به داسي حورې وی چې د خپلو خاوندانو د پاره به خاص کړې شوې وی

**[۱۹۶۸] د رمضان په آخری شپه کښي د روژه دار مغفرت**

۱۹۶۸ - [۱۲] (۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَالَ: [۲] «يُغْفَرُ لِأُمَّتِهِ فِي آخِرِ لَيْلَةٍ فِي رَمَضَانَ» [۳] قِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أَهِيَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ؟ [۴] قَالَ: "لَا، وَلَكِنَّ الْعَامِلَ إِنَّمَا يُوَفَّى أَجْرَهُ إِذَا قَضَى عَمَلَهُ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

---

(۱) اخرجه احمد فی المسند ۲۹۲/۲

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② زما د أمت د روژه دار د رمضان په آخري شپه كې بخښش كيږي ③ عرض وشو چې يا رسول الله ﷺ آيا هغه ليلة القدر ده (چې په هغې كې بخښش كيږي؟) ④ نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل نه بلكه كار كونكي چې كله خپل كار وكړي نو هغه ته هغه وخت د هغه پوره مزدوري وركول كيږي. (احمد)

**حل اللغات:** - ① اَلْعَامِلُ. كاركونكي. ② يُوَفَّى: أَيْ يُعْطَى وَافِيًا: يعنى پوره پوره ورته وركولې شي

**تسهيلات:**

**قوله: يُغْفَرُ لِأُمَّتِهِ فِي آخِرِ لَيْلَةٍ فِي رَمَضَانَ:**

**د مذكوره الفاظو قائل:-**

د روايت الفاظ (يغفرلامته) د حضرت رسول كريم ﷺ ارشادنه دي بلكه دا دحضرت ابوهريره رضي الله عنه خپل الفاظ دى او ددې په ذريعه هغوئ د حضور سرور كائنات ﷺ د الفاظو مفهوم ادا كړي دي او بعينه ئې د حضرت رسول كريم ﷺ الفاظ نقل نه كړل چې هغه دا دى (يغفرلامتي)

**قوله: لَا، وَلٰكِنَّ الْعَامِلَ إِنَّمَا يُوَفَّى أَجْرَهُ إِذَا قَضَى عَمَلَهُ**

**د نبى عليه السلام د جواب مطلب:-**

د نبى كريم ﷺ دجواب مطلب دادې چې د مغفرت دا سعادت دليلة القدر په وجه نه وركړې كيږي بلكه ددې عظيمې فريضې د تكميل په وجه ملاويږي دكومې د ادا كولو حكم چې الله ﷻ بندگانو ته وركړي دې او هغه روژه ساتل دي

# [ ۱ ]بَابُ رُؤْيَةِ الهِلَالِ ]

## دَ سپوږمۍ کتلومسائل

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاث عشرة حديثاً مشتملة على على خمس مسائل:**

① إعتبار رؤية الهلال في الصوم والإفطار لرؤية الهلال: ۱، ۲، ۱۳-

② عدد أيام الشهر: ۱، ۳، ۴-

③ حكم تقدم رمضان بالصوم: ۵، ۶، ۸، ۹-

④ إحصاء شعبان: ۷، ۱۲-

⑤ كفاية شهادة الواحد لثبوت رمضان : ۱۰، ۱۱-

**د عباداتو مدار په قمري مياشتو، نه په شمسي:-** قال الله تعالى ﴿ يَسْئَلُوْنَكَ عَنِ الْاَهِلَّةِ قُلْ هِيَ مَوَاقِيْتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ﴾ [سورة بقره الايه ۱۸۹]

زمونږ اسلامي شريعت دَ سپوږمۍ دَ ثبوت دَپاره اودَ مياشتې دَ شروع کيدو مدار دَ سپوږمۍ په ليدو باندې کړې دې ياني دَ ديرش ورځو په پوره کيدوباندې کيخودې دې که چرې په ۲۹ تاريخ باندې سپوږمۍ اوليدلې شوه نو وړاندې ورځ به دَ اسلامي مياشتې ړومبې ورځ شميرلې شي اوکه په ۲۹ باندې سپوږمۍ ښکاره نه شوه نو ديرش ورځې پوره کيدو باندې به راتلونکې مياشت شروع کيږي.

**د مياشتې شروع په ليدو، نه په حساب:-** دَ اسلامي مياشتې دَ شروع کيدو مدار دَ سپوږمۍ په افق باندې په موجود کيدوباندې نه دې بلکه دَهغې په ليدوباندې مداردې لهذا که آسمان صفاوي او سپوږمۍ په يو صورت هم په نظر نه راځي نو په افق باندې دَ سپوږمۍ پيداکيدو او موجود کيدونه باوجودوړاندېنۍ اسلامي مياشت نه شروع کيږي هم دغه فرق دې په اهل شرع علماء اودَ اهل نجوم ماهرينو په مينځ کښې چه علماء دَ سپوږمۍ په ليدو باندې دَ مياشتې مدار ايږدي خو اهل نجوم په افق باندې راپيداکيدوباندې مدار ايږدي هغوی دَ سپوږمۍ کتلونه وړاندې حکم لګوي چه صباَدَ مياشتې ړومبې ورځ ده مسلمانان دَ شريعت دَ حکم پابندی دَ اهل نجوم قياسونوتخيالاتو او تجرباتو پابندنه دی.

**د مياشتې د ثبوت دپاره شرائط:-** په اسلامي شريعت کښې دَ سپوږمۍ دَ ثبوت دَپاره يوځو شرطونه دي

① **"الشهادة على الشهادة"**: يعنې چه يوسړی دَ قاضي په عدالت کښې دَ سپوږمۍ کتلوګواهي ورکړه بل يوسړی واوريده لاړو په بل يوځائې کښې په دې ګواهۍ باندې

ګواهی ورکړه نو په دې سره به د سپوږمئی ثبوت کیږی

② "**الشهادة على رؤية الهلال**":- يعنی د کتونکی په ګواهئی سره به د سپوږمئی ثبوت وی

③ "**استفاضة الخبر**":- يعنی چه په مختلف اطرافو کښې داخبر مشهور کیدوسره خور شی چه میښت اوليدلې شوه په دې سره هم د میاشتې ثبوت کیږی بهرحال د ائمه احناف په کتابونو کښې ليکلی دی که چرې آسمان صفانه وی نود يوعادل سړی ګواهی د میاشتې د کتلودپاره کافی ده خوکه چرې آسمان صفاوی نوبیابه د يوعادل ګواهی معتبرنه وی بلکه د ګنړو خلقو يعنی ښه لونی جماعت په ګواهئی سره به د میاشتې ثبوت کیږی

④ "**الشهادة على القضاء**":- يعنی په محکمه عدالت کښې قاضی د میاشتې د ليدو د ثبوت فيصله واؤروله د دې عدالت نه يوسړې لاړو بل خانی کښې ګواهی ورکړه په دې سره به هم د سپوږمئی ثبوت کیږی

**د اختر د ثبوت دپاره شرائط**:- دا خود رمضان د روژودپاره د ګواهئی مسئله ده د اختردپاره څه حکم دې؟ نود دې باره کښې احناف فرمائی که آسمان صفاوی نوبيو يرلوئی جماعت ګواهی به پکاروی خوکه په آسمان باندې ګردوغباروی نود دوو کسانود ګواهئی ضرورت به وی درمختار وغيره کښې ليکلی دی که چرې يوسړې په اوچت مقام باندې اوسیږی د ښارنه بهر وی پخپله عادل وی اوهغه راشی د رمضان د میاشتې د ليدو ګواهی ورکړی نوسره د دې که آسمان صفاوی نودهغه ګواهی به قبلولې شی اود میاشتې ثبوت به اوشی د امام طحاوی رحمه الله خيال هم دې طرف ته دې چه په دې باندې فتوی ورکول ډیر بهتردی په عام تار او خط وغيره سره د سپوږمئی ثبوت نه شی کیدې دغه شان د ريډيوپه خبر سره هم د میاشتې ثبوت نه شی کیدې اوکه د قاضی خط قاضی له راشی يا په ريډيوباندې د رؤيت هلال کميټئی چيئرمين پخپله په خپل آواز کښې اعلان اوکړی نود دې اعتبار به کیږی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۹٦۹] د رمضان او شوال د ثبوت معيار**

۱۹٦۹ــ( )[۱] ①عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«لَا تَصُوْمُوا حَتّٰى تَرَوُا الْهِلَالَ، ③ وَلَا تُفْطِرُوا حَتّٰى تَرَوْهُ، ④ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَاقْدُرُوا لَهُ"، ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: "الشَّهْرُ تِسْعٌ وَعِشْرُوْنَ لَيْلَةً، ⑥ فَلَا تَصُوْمُوا حَتّٰى تَرَوْهُ، ⑦ فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوا الْعِدَّةَ ثَلَاثِيْنَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱] اخرجه البخاري كتاب الصوم باب قول النبي صلى الله عليه وسلم [ص:۲۷]: «إذا رأيتم الهلال فصوموا. وإذا رأيتموه فأفطروا» (رقم-۱۹۰٦) وابوداود في السنن كتاب الصوم. باب الشهر يكون تسعًا وعشرين(رقم-۲۳۲۰) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا تقدموا الشهر بصوم(رقم-٦۸٤) والنسائي كتاب الجنائز/باب ذكر الاختلاف على الزهري في هذا الحديث(رقم-۲۱۲۱) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في صوموا لرؤيته وأفطروا لرؤيته(رقم-۱٦٥٤) ومالك في الموطا كتاب الصيام/باب ما جاء في رؤية الهلال للصوم والفطر في رمضان(رقم-۱)

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنهما روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] (د شعبان په دیرشم تاریخ د رمضان په نیت سره) روژه مه نیسئ تردې چې میاشت وویني [٣] د غسې روژه تر هغه وخته پورې مه ختموئ تر څو پورې چې (د اختر) میاشت او نه وینئ [٤] نو (په دیرشمه شپه یعني یو کم دیرشم تاریخ) که (گرد وغبار او وریځ وغیره یا څه بل سبب) میاشت په نظر رانشي نو د هغې اندازه کوئ (یعني هغه میاشت د دیرش ورځو وگڼئ) [٥] د یو روایت الفاظ دا دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل میاشت کله د یوکم دیرشو شپو هم وي [٦] په دې وجه څو پورې چې میاشت ونه وینئ (د رمضان په نیت) روژه مه نیسئ [٧] او که (په یو کم دیرشم تاریخ وریځ او غبار وغیره وي) او میاشت په نظر رانه شي نو دیرش ورځې پوره کړئ (یعني د دیرشو ورځو میاشت وگڼئ) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① الْهِلَالُ: د رومبئ شپې سپوږمئ ته هلال وائی ② غُمَّ: أَيْ غُطِّيَ: یعنی دَ غیم او وریځو وجې نه تاسو نه میاشت پټه شی ③ فَاقْدِرُوا: که چرې میاشت ښکاره نه شی نو تاسو د رمضان دیرش ورځې پوره کړئ

**تسهیلات: قوله:** لَا تَصُومُوا:

**یوه فائده:-** یعنی ترکومې پورې چه میاشت ښکاره نه شی تاسو په شعبان کښې روژه ساتل مه شروع کوئی او ترکومې پورې چه میاشت ښکاره نه شی تاسو دَ اختر دپاره روژه مه ماتوی ستاسو روژه ساتل یا افطارکول دَ میاشتې په لیدو باندې موقوف دی

**قوله:** فَاقْدِرُوا لَهُ: ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی په دې صیغه کښې په دال باندې پیښ دې په دې باندې کسره ونیل غلط دی بهرحال اسلامی میاشت کله ٢٩ او کله دَ ٣٠ راځی نواصل مدار خو په میاشت باندې دې که چرې میاشت ښکاره نه شی نو تاسو دَ رمضان دیرش ورځې پوره کړئ

**١٩٧٠ - د شعبان دیرش ورځې پوره کول**

> ١٩٧٠-(٢)[١] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] "صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ [٣] وَأَفْطِرُوا لِرُؤْيَتِهِ [٤] فَإِنْ غُمَّ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوا عِدَّةَ شَعْبَانَ ثَلَاثِينَ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [٢] د میاشتې د لیدو څخه روسته روژه نیسئ [٣] او د میاشتې په لیدو سره روژه ماتوئ (یعني اخترکوئ) [٤] نو (په یو کم دیرشم تاریخ (که وریځ وغیره وي (او لیدل د میاشتې ثابت نشي) نو د شعبان میاشت د دیرشو ورځو وگرځوئ (دغه شان د رمضان د میاشتې هم اعتبار وکړئ) (بخاري مسلم)

---

[١] اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم [ص:٢٧]: «إذا رأيتم الهلال فصوموا، وإذا رأيتموه فأفطروا» (رقم ١٩٠٩) والنسائي كتاب الجنائز/باب ذكر الاختلاف على عبيد الله بن عمر في هذا الحديث (رقم-٢١٢٤) واحمد في المسند ٤٢/٥

**تسهيلات:**

**قوله: صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ**

**په رؤيته کښې د لام نوعيت:-** صُومُوا لِرُؤْيَتِهِ لام د تعليل دپاره دې اى لأجل رؤية الهلال د میاشتې په ليدلو روژه کرئی او روژه پريږدئی امام طيبى رحمه الله فرمائی لام د توقيت دپاره دې نقوله تعالى. أَقِمِ الصَّلٰوةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ اى وقت دلوكها.

**[۱۹۷۱] ذ سپوږمئ باره کښې ذ نجوميانو د قول عدم اعتبار**

وعنه-(٣)[٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] "«إِنَّا أُمَّةٌ أُمِّيَّةٌ لَا نَكْتُبُ وَلَا نَحْسُبُ، [٣] الشَّهْرُ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا» " [٤] وَعَقَدَ الْإِبْهَامَ فِي الثَّالِثَةِ، [٥] ثُمَّ قَالَ: الشَّهْرُ هَكَذَا وَهَكَذَا وَهَكَذَا يَعْنِي تَمَامَ الثَّلَاثِينَ [٦] يَعْنِي مَرَّةً تِسْعًا وَعِشْرِينَ وَمَرَّةً ثَلَاثِينَ. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضي الله عنهما روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] مونږ اهل عرب، أمي قوم يو چې حساب کتاب نه پيژنو [٣] مياشت د دومره او دومره او دومره ورځو وي [٤] الفظ د دومره درې خله ويلو سره) نبى كريم صلى الله عليه وسلم [د دواړو لاسونو ګوتې دوه خله بندې کړې او بيا يې خلاصې کړې او] په دريم ځل يې [د لاسونو د ګوتو بندولو سره بيا يې نهه [٩] ګوتې خو خلاصې کړې او] غټه ګوته يې بنده وساتله (چه د هغې مطلب دا وو چې کله خو په مياشت کې يوکم ديرش ورځې وي يعنى د يوکم ديرشو مياشت وي) [٥] او بيا يې وفرمايل چې دومره او دومره او دومره (او دا ځل نبى كريم صلى الله عليه وسلم د ديرشو عدد ښودلو د پاره د مخکې په شان په دريم ځل کې غټه ګوته بند نه کړله) يعنى پوره د ديرشو ورځو وي [٦] د نبى كريم صلى الله عليه وسلم مطلب دا وو چې کله خو مياشت د ۲۹ ورځو وي او کله د ۳۰ ورځو وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أُمِّيَّةٌ: انپړه. ② لَا نَكْتُبُ: ليکل نه شو کولې. ③ وَلَا نَحْسُبُ: حساب نه شو کولې. ④ عَقَدَ: بنده نې اوساتله. ⑤ الْإِبْهَامَ: مته ګوته، غټه ګوته

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّا أُمَّةٌ أُمِّيَّةٌ**

**امت ته د امى نسبت کولو کښې درې اقوال:-**

① اول قول دا دې چه امية د عرب امت طرف ته نسبت دې "اي نحن امة العرب" يعنى مونږ عرب قوم يو ځکه چه د عربو خلقو ليکل لوستل نه پيژندل

[١] اخرجه البخارى كتاب الصوم /باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «لا نكتب ولا نحسب» (رقم-١٩١٣) وابوداود كتاب الصوم، باب الشهر يكون تسعًا وعشرين(رقم-٢٣١٩) والنسائى كتاب الجنائز/باب ذكر الاختلاف على يحيى بن ابى كثير فى خبر أبى سلمة فيه(رقم-٢١٤١) و احمد فى المسند ١٢٢/٢

② دا نسبت دَام القراء طرف ته دې چه دَمکې نوم دې "اي نحن امة مكية" په اهل مکه کښې هم دَخط اوکتابت رواج نه وو

③ دا نسبت "ام" طرف ته دې يعنې مونږ ليکل لوستل نه پيژنو څنګه چه دَموږ نه پيدا شوی هم هغه شان يو ؟

**اشکال او دهغې جواب**:- په دې حديث کښې چه "لانكتب ولانحسب" راغلي دې دا دَ اکثر عربو په اعتبار سره دې ګنی په هغوی کښې به حساب دان اوکاتبان وو مګر لږ شان

**قوله**: الشَّهْرُ هٰكَذَا:

**دنبی کریم ﷺ د اشارې مطلب**:- حضورپاك دَ دواړو لاسونو په لسو ګوتو سره دَمياشتې ورځې شميرلې دی مګر په اول ځل دَ شمير کولودپاره کومه په ګوتو سره اشاره اوکړه دَهغې په آخره کښې دَ غټې ګوتې دَ شمير نه دَ بهر کولودپاره تلی سره يوځائی کړه په کوم سره چه نی اشاره اوکړه چه کله مياشت ناقص کيدوسره ٢٩ ورځو وی علامه ابن عبدالبر رحمه الله فرمائی چه تسلسل سره څلورو مياشتونه زياتې دَ يوکم ديرشو نه شی راتلې صرف څلور مياشتې راتلې شی

بهرحال نبی کريم بيا په لسو ګوتو سره دوباره شمير شروع کړو او دې ځل حضورپاك غټه ګوته کولاو اوساتله په کوم سره چه اشاره اوشوه چه کله مياشت دَ ديرشو ورځو وی دَ حديث په آخره کښې دَ دې اجمال تفصيل راوی بيان کړې دې چه کله مياشت دَ ٢٩ وی اوکله دَ ٣٠ وو

**په ابن سريج د قول ترديد**:- ملاعلی قاری رحمه الله په اهل نجوم باندې سخت رد کولوسره ليکی ابن سريج ليکلی دی چه حديث کښې کوم دَ "فاقدروا" حکم دې دې نه مراد اهل نجوم دی لهذا کوم خلق چه علم نجوم باندې پوهيږی هغوی دې هم په هغې سره حساب اوکړی اوکوم خلق چه علم نجوم باندې نه پوهيږی هغوی دې "فاكملوا" باندې عمل اوکړی يعنی ديرش ورځې دې پوره کړی ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی "وهومردود" دا قول مردود دې

**د ترديد دلائل**:- ① ځکه چه "انا امة امية" صريح حديث دې کوم چه حکم ورکوی چه په مياشت باندې دَ پوهيدلودپاره دَ اهل نجوم دَ دې ژور حساب کتاب ضرورت نشته دې

② دَامت په دې باندې اجماع ده چه دَ سپوږمنی باره کښې دَ نجوميانو دَ قول هيڅ اعتبار نشته دې سره ددې چه ټول نجوميان په دې باندې متفق شی چه دا سې مياشت ليدلې شی

③ دَ قرآن عظيم اعلان دې (فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ) [بقرة الاية ١٨٥] په دې کښې دَ مياشتې ذکر دې دَ نجوميانو دَ حساب نه (لکه مياشت دَ سپوږمنی دَ وجې نه حاضريږی دَ نجوميانو په حساب کتاب سره نه)

③ اود حضورپاك واضح حديث دي «صوموا لرؤيته وافطروا لرؤيته» اودا هم واضح حديث دي «لا تصوموا حتى تروه» په دې احاديثو كښې د سپوږمۍ كتلو سره د مياشتې شروع او آخره مربوط كړې شوې ده د يونجومي په قول سره نه. (مرقاة ج۴ص ۴۴۲)

**د ملا علي قاري رائې:** - ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه بلكه زه خودا وايم كه يونجومي د ميشتې د كتلونه مخكښې د سپوږمۍ په پيدا كيدو باندې زور وركړو نو هغه به گناهگار شي اودا روژه به د رمضا په روژوكښې نه شميرلې كيږي كه چرې نجومي د خپل باطل حساب كتاب په بنياد باندې د وړونكي اختر فيصله كولوسره روژه كولاؤ كړه نو دې سره به هغه فاسق شي اود روژې كفاره به وي (يعني دوه مياشتې روژې به ساتي) اوكه چرې نجومي دخپل حساب په بنياد باندې د روژې افطار ته فرض واجب ونيلوسره كولاؤ كړه نوكافربه شي ملاعلي قاري رحمه الله يوخوصفحات پس نور ليكي چه حضورپاك په ديرزيات اهتمام سره د لاسونو په اشاره سره دا مسئله داسې بيان كړه چه د نجوميانو دحساب كتاب طرف ته رجوع كول باطل شي

**د نجوميانو غلط استدلال:** - باقي نجوميان خلق كوم د ﴿وَبِالنَّجْمِ هُمْ يَهْتَدُونَ﴾ نه استدلال كوي هغه غلط دى خكه چه دا آيت د قبلې رخ معلومولو او د سفرد رخ معلومولو دپاره دې د نجوميانود حساب كتاب دپاره نه دي

**[۱۹۷۲] د رمضان او ذوالحجې د مياشتې نه كميدل**

> ۱۸۸۰-(۳)[۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «شَهْرَا عِيدٍ لَا يَنْقُصَانِ [۳] رَمَضَانُ وَذُو الْحِجَّةِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ".

**ترجمه:** [۱] ابي بكره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] د اختر دواړه مياشتې ناقص نه وي [۳] يعنى رمضان او ذي الحجه (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** شَهْرَا عِيدٍ:

**د رمضان مياشت ته د اختر مياشت ويلو وجه:** - يعنى د اختردوه مياشتې. د رمضان مياشت سره د دې چه د اختر نه ده ليكن چونكه د دې په ختميدو باندې وروكې اختر راخي د دې دپاره د قرب د وجې نه دې ته د اختر مياشت اوونيلې شوه هسې هم د اختر مياشت د رمضان په آخرى ورځ كښې پيدا كيږى اودماښام نه پس ښكاره كيږى د دې وجې نه هم رمضان ته د اختر مياشت ونيلې شي

[1]) اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب: شهرا عيد لا ينقصان (رقم-۱۹۱۲) وابوداود فى السنن كتاب الأيمان والنذور/باب من نذر نذراً لم يسمه(رقم ۳۳۲۳) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء شهرا عيد لا ينقصان(رقم ۶۹۲) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في شهري العيد(رقم ۱۶۵۹) واحمد فى المسند ۳۸/۵

**قوله:** لَا يَنْقُصَانِ:

**د عدم نقصان په مفهوم کښې دری اقوال:** - يعنى دَ رمضان او ذوالحجه دوه مياشتې کله ناقص کيږی نه بلکه هميشه دَ پوره ديرشو ورخو وی دَ دې جملې مفهوم او مطلب کښې دَ علماء کرام دير اقوال دی

① امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی چه دواړه مياشتې يوکال کښې دننه ناقص کيږی نه که چرې يو ناقص ده يعنی دَ ۲۹ ورخو ده نودويمه به کامل وی يعنی دَ ديرشو ورخو به وی

② اسحاق بن راهويه رحمه الله فرمائی چه دې نقصان نه حسی نقصان مراد نه دې بلکه معنوی نقصان مراد دې کوم چه ثواب دې مطلب دا چه دا دواړه مياشتې دَ ثواب په اعتبار سره دَ ديرشو نه کله نه کميږی سره دَدې چه که په ظاهری توګه دَ يوکم ديرشو ورخو شی ليکن ثواب به هم دَ ديرشو ورخو پوره پوره ملاويږی دا توجيه دَ ټولو نه واضح ده

③ دا ضابطه دَهميشه دپاره نه ده فرمائيلې شوې بلکه دَ حضورپاك په ژوند کښې څوځل هم دا دوه مياشتې راغلی وې نوپوره وې په دې کښې يوه ناقص نه وه

**[۱۹۷۲] د يوم الشك د روژې حكم**

[۱۹۷۲] [۵] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا يَتَقَدَّمَنَّ أَحَدُكُمْ رَمَضَانَ بِصَوْمِ يَوْمٍ أَوْ يَوْمَيْنِ [۳] إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَجُلٌ كَانَ يَصُومُ يَوْمًا [۴] فَلْيَصُمْ ذَلِكَ الْيَوْمَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] په تاسو کې دي هيڅوك د رمضان څخه يوه ورځ يا دوه ورځې مخکې روژه نه نيسي [۳] البته کوم سړي چې د روژې نيولو عادي وي [۴] هغه په دغه ورځ روژه نيولې شي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① لَا يَتَقَدَّمَنَّ: مخکښې والې دې نه کوی

**تسهيلات: قوله:** لَا يَتَقَدَّمَنَّ:

**د يتقدمن مفهوم:** - يعنی دَ رمضان دَ راتلونه مخکښې دَ شعبان په آخره کښې يوه ورځ يا دوه ورځې يا زياتې ورځې روژې مه ساتئ اوچه کوم سړې دَ اول نه هره مياشت آخره کښې دَ روژې ساتلو عادت وی يا دَ زيارت جمعې يا پير وغيره روژو عادت وی هغه ئې ساتلې شی

**د ممانعت وجوهات:** - ① دَدې ممانعت وجه داده چه اهل کتاب سره مشابهت رانه شی څکه چه اهل کتاب فرض روژو سره نفل روژې ګډې ودې کولوسره ساتی

---

[۱] اخرجه البخاری كتاب الصوم/باب: لا يتقدم رمضان بصوم يوم ولا يومين (رقم-۱۹۱۴) وابو داود فى السنن كتاب الأيمان والنذور/باب من نذر فى الجاهلية ثم أدرك الإسلام (رقم-۳۳۲۵) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا تقدموا الشهر بصوم(رقم-۶۸۵) والنسائى كتاب الجنائز/باب ذكر الاختلاف على منصور فى حديث ربعى فيه(رقم-۲۱۳۰) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فى النهى أن يتقدم رمضان بصوم، إلا من صام صوما فوافقه (رقم-۱۶۵۰)

④ دې سره به سړی سست شي او د رمضان د روژو د پاره د کومې چستۍ ضرورت وي هغه به پاتې نه شي

⑤ علامه مظهر رحمه الله فرمائي د رمضان نه مخکښې او د شعبان په آخره کښې داسې روژه ساتل مکروه دي علماؤ وئيلي دي چه د کراهت نه مکروه تنزيهي مراد دي

**د عادي روژه دار دپاره عدم ممانعت:** - مولانا اسحاق رحمه الله فرمائي چه دلته د کومې روژې نه ممانعت راغلې دې دا د يوم الشك روژه نه ده بلکه د شعبان د آخري ورځو روژې دي. او چه کوم سړی په دې ورځو کښې د روژې ساتلو عادي وي د هغه د پاره ساتلو کښې هيڅ حرج نشته حضور پاك پخپله د شعبان روژې ساتلې دي چرته چه ممانعت دې هغه د هغه خلقو د پاره دې چه ضعيف وي او د روژې ساتلو سره کمزوري کيږي د کوم په وجه چه په رمضان کښې خلل واقع کيدې شي بهرحال دا نهي ارشادي ده د شفقت په توګه حضور پاك منع فرمائيلې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِيْ

**[۱۹۷٤]د شعبان په آخري نيمه مياشت کښې د روژې نيولو ممانعت**

١٩٧٤-(١)[٢] ①عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِذَا انْتَصَفَ شَعْبَانُ فَلَا تَصُومُوا» " رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② هر کله چې د شعبان نيمه مياشت تيره شي نو روژې مه نيسئ (ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** - ① انْتَصَفَ: أَيْ إِذَا مَضَى النِّصْفُ الْأَوَّلُ: يعنی کله چه نيمه مياشت تيره شي

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا انْتَصَفَ شَعْبَانُ فَلَا تَصُومُوا

**په احاديثو کښې تعارض:** - په دې مذکوره حديث پاك کښې نصف شعبان نه پس د روژې نيولو ممانعت راغلې دې حالانکه وړاندې د حضرت ام سلمه رضی الله عنها روايت راروان دې په هغې کښې دي (مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ يَصُومُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ إِلَّا شَعْبَانَ وَرَمَضَانَ) حضور نبی کريم صلی الله علیه وسلم به په شعبان او رمضان کښې متواتر روژې نيولې نو په دواړو احاديثو کښې تعارض دې؟

**د تعارض جوابونه:** - ① دابو هريره رضي الله عنه حديث مبارك کښې فلاتصوموا حکم په وجه د دې څخه

---

[١]) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الطلاق/ باب في المملوكين يعتقان معًا هل تخير امرأته؟(رقم-٢٢٣٧) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية الصوم في النصف الباقي من شعبان لحال رمضان(رقم-٧٣٨)

معلومیږي چې دا د آخر الامورنه دي او نهي تنزيهي دي

(۲) د ابوهريره ﷺ حديث مبارك كښې د نهي حكم د امت دپاره د شفقت دي چې د رمضان د روژو دپاره قوت حاصل كړي او نبي ﷺ ته به په روژو نيولو باندې كمزورتيا نه راتله

**[۱۹۷۵] [د رمضان دپاره د شعبان د مياشتې كتلو اهتمام**

۱۹۷۵-()[۷] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«أَحْصُوا هِلَالَ شَعْبَانَ لِرَمَضَانَ»" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره ﷺ روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] چې د رمضان د پاره د شعبان مياشت شميرئ (ترمذي)

**حل اللغات:** - (۱) أَحْصُوا: أَيْ عُدُّوا: يعنى شمار كوئ، اصل كښې دا د حَصَا نه دي، ورو كانړو (ګيټكو) ته وائي. چونكه عربو به شميرل په ګيټكو كول نو ځكه د شميرلو په معنى كښې استعمال شوي دي

**تسهيلات: قوله:** أَحْصُوا هِلَالَ شَعْبَانَ لِرَمَضَانَ:

**د مياشتې د ليدو د اهتمام عموميت:** - په دې حديث كښې امت ته واضح تعليم وركړې شوي دې چه په مسلمانانو باندې لازم دى چه هغوى دې دَ خپل شعائر اسلام او اسلامى احكامو دَ پبندئى اهتمام اوكړى په احكام دې عمل اوكړى او دَ احكام دَپاره چه كوم اسباب او ذرائع دى هغه دې اولټوى چنانچه دَرمضان دَپاره ضرورى دى چه دَ شعبان دَ ورځو شمير به محفوظ كړى چه دَ رمضان په شروع كولوكښې څه خلل رانه شى معلومه شوه مياشت كتل چه څنګه دَ حكومت ذمه وارى ده دَعامو مسلمانانو هم ذمه وارى ده چه هغوى دې ددې په كتلو كښې دلچسپى واخلى

**[۱۹۷٦] [د شعبان تول مياشت روژه نيول**

۱۹۷٦-()[۸] [۱] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: [۲] «مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصُومُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ [۳] إِلَّا شَعْبَانَ وَرَمَضَانَ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] د مؤمنانو مور بي بي أم سلمه ﷺ فرمايي [۲] چې ما نبي كريم ﷺ دوه مياشتې متواتر په روژو نيولو باندې نه دي ليدلي [۳] غير د شعبان او رمضان نه (ابوداؤد، ترمذي، نسايي. ابن ماجه)

**حل اللغات:** - (۱) مُتَتَابِعَيْنِ: پرله پسې

---

[۱] اخرجه الترمذي في السنن كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إحصاء هلال شعبان لرمضان (رقم-۶۸۷)

[۲] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم باب فيمن يصل شعبان برمضان (رقم-۲۳۳۶) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في وصال شعبان برمضان (رقم-۷۳۶) والنسائي كتاب الصوم/باب ذكر حديث أبي سلمة في ذلك (رقم-۲۱۷۵) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في وصال شعبان برمضان (رقم-۱۶۴۸)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّا شَعْبَانَ:

**د حديث په مينځ کښې تعارض:** - دَدې حديث په ظاهره دَ ابوهريره رضي الله عنه دَ سابقه حديث نمبر "" سره تعارض دې بل باب الصيام التطوع کښې دَحضرت عائشه رضي الله عنها حديث دې سره هم تعارض دې دَدې تعارض يوڅو وجوهات دی؟

**د تعارض جوابونه:** - ① دَحضرت ام سلمه رضي الله عنها دَ روايت بعضې طرق کښې اکثر دَشعبان لفظ راغلې دې اواکثر دَشعبان دَ روايت نه دَحضرت عائشه رضي الله عنها دَ روايت تعارض نه دې خکه چه حضرت عائشه رضي الله عنها دکامل شعبان دَ روژو نفی کوی دغه شان دَ ابوهريره رضي الله عنه دَ روايت تعارض ختميږی

② ممکن دی چه دَ ابوهريره رضي الله عنه قولی حديث دَ ام سلمه رضي الله عنها دَدې فعلی حديث دَپاره ناسخ وی

③ دادې چه حضورپاك په توګه دَ شفقت امت دَ شعبان دَ روژو نه منع کړې دې اوپخپله ئې دَ قوت او طاقت دَ وجې نه ساتلی دی.

④ حضرت ام سلمه رضي الله عنها دَ خپل علم مطابق په خپل نمبرکښې دَ حضورپاك عمل اوکتلو اوحضرت عائشه رضي الله عنها په خپل نمبرکښې دَحضورپاك عمل بيان کړې دې.

**[۱۹۷۷] دَيوم الشک د روژې نيولو ممانعت**

عـ () [۹] ① وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ: ② مَنْ صَامَ الْيَوْمَ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ ③ فَقَدْ عَصَى أَبَا الْقَاسِمِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① د عمار بن ياسير رضي الله عنه ارشاد دی ② کوم سړي چې په يوم الشک کښې روژه ونيوله ③ هغه د ابوالقاسم (نبی کريم) ﷺ نافرماني وکړه (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه، دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله:** الْيَوْمَ الَّذِي يُشَكُّ فِيهِ:

**د يوم الشک مصداق:** - دَ شعبان ۲۹ تاريخ مثلاً مابنام کښې آسمان صفانه وی په آسمان باندې بنه اوريځې وی نودې نه پس چه دَ ديرشم شعبان کومه ورځ راتلونکې ده هغه دَ شک ورځ ده په دې کښې احتمال دې چه اول رمضان وی اودا هم احتمال دې چه دا ديرشم شعبان وی په دې حديث کښې هم دغه خودلې شوی دی چه په يوم الشک کښې دَ رمضان فرض روژه ساتل مکروه دی

---

() اخرجه البخاری تعليقا باب اذا رايتم الهلال فصوموا وابوداود فی السنن کتاب الصوم . باب کراهية صوم يوم الشک (رقم-۲۳۳٤) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية صوم يوم الشک (رقم-۶۸۶) وابن ماجة کتاب الصيام/باب ما جاء فی صيام يوم الشک (رقم-۱۶٤۵)

**په یوم الشک د نفلي روژې په حکم کښې اقوال:** - شیخ عبدالحق محدث دهلوی رحمه الله فرمائی چه د یوم الشك د ورځې د روژې باره کښې د علماؤ اختلافی اقوال دی

① د امام ابوحنیفه رحمه الله امام شافعی رحمه الله او امام مالك رحمه الله قول دادې چه د شك په ورځ روژه مه ساتئی په دغه ورځ روژه ساتل مکروه دی او که څوك ئې ساتل غواړي نوهغه دې د نفل نیت اوکړی بیا که یوم الشك د رمضان ثابته شوه نودا نفل روژه به د رمضان فرض جوړه شی

② د احنافو په نیز که چرته د یوسړی په دغه ورځ باندې د روژې ساتلو د مخکښې نه عادت وی مثلاً د زیارت یا جمعې ورځ یوم الشك شوه د ده د پاره دا روژه ساتل مستحب دی دغه شان خواص مثلاً مفتی یا عالم یا د قوم د مشر د پاره دا روژه ساتل مستحب دی و عوام الناس دې د شك روژه د زوال پورې اوساتی که د میاشتې خبر رانغلو نوهغه دې روژه ماته کړی او که چرې د میاشتې خبر راغلو نود رمضان روژه دې مکمل کړی

**په باب الصوم کښې د عوامو او خواصو پیژندګلو:** - د عوامو او خواصو دا اصطلاح د نیت د وجې نه ده کوم خلق چه د دغه ورځې صحیح نیت کولې شی هغه خواص دی او کوم خلق چه صحیح نیت نه شی کولې هغه عوام دی.

صحیح نیت دا سې دې چه یوسړې صرف د نفل نیت اوکړی په دې کښې دا خیال او تردد والې نه وی که چرته د رمضان ورځ شوه نودا روژه به د رمضان شی او غلط نیت دا سې دې چه یوسړې دا سې نیت اوکړی که چرې صبا د رمضان ورځ شوه نوزما روژه به فرض وی او که د صبا ورځ د رمضان نه شوه نوزما روژه به نفل وی دغه شان تردد کښې نه نیت صحیح دې اونه به عبادت صحیح وی

**د یوم الشک د روژې صورتونه:** - بعضې شارحینو د یوم الشك روژه کښې د احنافو څه مربوط او منضبط اقوال نقل کړی دی فرمائی چه صوم یوم الشك کښې د احنافو په نیز یوڅو صورتونه دی

① چه خالص د رمضان په نیت سره روژه اوساتی دا مکروه دی ځکه چه زیربحث حدیث کښې صریح ممانعت دې

② چه د رمضان نه علاوه د یوفرض یا واجب د قضاء نیت اوکړی داهم مکروه دی مګر د اول صورت نه ئې کراهت لږ شان کم دې

③ چه د نفل په نیت سره روژه اوساتی دا مکروه نه دی بلکه د خواص د پاره افضل دی کما قال ابویوسف رحمه الله

④ چه په اصل نیت کښې تردد اوکړی که چرې رمضان شو نوداروژه هم د هغې ده او که چرې رمضان نه شو نودا به نفل وی دا نیت نه معتبر دې اونه په دې سره څه عبادت معتبر دې

بهرحال د حديث شريف حکم واضح دي چه يوم الشك کښې روژه مه ساتئ دا د ګناه سبب دي (اشعة اللمعات)

**[١٩٧٨] د رمضان د مياشتې د ثبوت دپاره د يو ګواه اعتبار**

١٩٧٨ ـ (٥) [١٠] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ② «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: إِنِّي رَأَيْتُ الْهِلَالَ يَعْنِي هِلَالَ رَمَضَانَ، ③ فَقَالَ: "أَتَشْهَدُ أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ؟" قَالَ: نَعَمْ ④ قَالَ: "أَتَشْهَدُ أَنَّ مُحَمَّدًا رَسُولُ اللهِ؟" قَالَ: نَعَمْ ⑤ قَالَ: "يَا بِلَالُ أَذِّنْ فِي النَّاسِ أَنْ يَصُومُوا» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنه وايي ② چې يو اعرابي (يو صحرايي) د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو، هغه اوويل چې ما د رمضان مياشت ليدلې ده ③ نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه ته وفرمايل آيا ته د دې خبرې شاهدي [ګواهي] ورکوې چې د الله ﷻ څخه سوا بل معبود نشته؟ هغه اوويل چې هو ④ بيانبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل آيا ته د دې خبرې شهدې [ګواهي] ورکوې چې محمد ﷺ د الله ﷻ پيغمبر دي هغه اوويل چې هو ⑤ د دې څخه روسته نبی کريم صلی الله عليه وسلم حضرت بلال رضي الله عنه ته وفرمايل چې اې بلاله رضي الله عنه په خلقو کې اعلان اوکړه چې سبا روژه ونيسي (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه، دارمي)

**تسهيلات:**

**قوله:** تَشْهَدُ

**د حديث فوائد:** - ① د دې لفظ نه معلومه شوه چه کوم سړي مستورالحال وي د هغه شهادت د رمضان د مياشتې باره کښې معتبر دي ② په دې حديث کښې په کلی کښې اوسيدونکی صحابی د رأيت لفظ استعمال کړې دې دکوم نه چه علماؤ دا خبره راويستلې ده چه د رمضان د مياشتې په ګواهنی کښې د شهادت الفاظ استعمالول ضروری نه دی د باب په شروع کښې تفصيل تيرشوې دې

③ د رمضان په مياشت کښې د يو سړی ګواهی معتبر ده کـه هغه عادل وی او کـه مستورالحال وی په دې شرط چه په آسمان باندې اوريځې وی که چرې آسمان صفا وی نو بيا دوه ګواهان ضروری دی د ښځو ګواهی هم معتبره ده چه يوسړې وی او دوه ښځې وی.

---

[١] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم . باب في شهادة الواحد على رؤية هلال رمضان (رقم-٢٣٤٠) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصوم بالشهادة(رقم-٦٩١) والنسائى كتاب الجنائز/باب قبول شهادة الرجل الواحد على هلال شهر رمضان وذكر الاختلاف فيه على سفيان في حديث سماك (رقم-٢١١٣) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في الشهادة على رؤية الهلال (رقم-١٦٥٢)

**[۱۹۷۹] د ابن عمر رضی الله په میاشت لیدو د رمضان د روژې حکم کول**

۱۹۷۹ – (۱) [۱۱] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] «تَرَاءَى النَّاسُ الْهِلَالَ فَأَخْبَرْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : أَنِّي رَأَيْتُهُ، [۳] فَصَامَ وَأَمَرَ النَّاسَ بِصِيَامِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضی الله عنهما روایت کوي [۲] چې یوه ورځ د میاشتې د لیدو د پاره خلق جمع شول ما رسول الله ﷺ ته عرض وکړو چې ما میاشت لیدلې ده [۳] نبی کریم صلی الله علیه وسلم روژه ونیوله او نورو خلقو ته یې د روژې د نیولو حکم وکړو (ابوداؤد نسایي)

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنِّي رَأَيْتُهُ، فَصَامَ وَأَمَرَ النَّاسَ بِصِيَامِهِ

**د یو کس په ګواهۍ د رمضان ثبوت:** - د دې حدیث پاك نه معلومیږي چې د یو کس ګواهي سره به د رمضان شهادت قبلولې شي

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۱۹۸۰] د شعبان د میاشتې ورځې په ډیر احتیاط سره شمارل**

۱۹۸۰ – (۱) [۱۲] [۱] عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَحَفَّظُ مِنْ شَعْبَانَ مَا لَا يَتَحَفَّظُ مِنْ غَيْرِهِ، [۳] ثُمَّ يَصُومُ لِرُؤْيَةِ رَمَضَانَ، [۴] فَإِنْ غُمَّ عَلَيْهِ عَدَّ ثَلَاثِينَ يَوْمًا ثُمَّ صَامَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] زمونږ د مؤمنانو مور بي بي عایشه صدیقه رضی الله عنها فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ به د شعبان د میاشتې ورځې په دومره احتیاط شمیرلې چې بلې میاشتې ته به یې دومره زیاته توجّه نه فرمایله [۳] بیا به نبی کریم صلی الله علیه وسلم د رمضان میاشت لیدو سره روژه نیوله [۴] که (په ۲۹ تاریخ به) مطلع آبرآلود وه یعنی وریځ به وه او د میاشتې لیدل به ثابت نه شو نو دیرش ورځې به یې پوره کولې بیا به یې روژه شروع کوله (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَتَحَفَّظُ: أَيْ يَتَكَلَّفُ فِي عَدِّ: په شمیر ساتلو کښې به ني کوشش کولو. یعنی احتیاط نه به ني کار اخستلو ② غُمَّ: أَيْ غُطِّيَ: یعنی دَ غیم او اوریخودَ وجې نه تاسو نه میاشت پټه شي ③ عَدَّ: شمار به ني پوره کولو

**تسهیلات:** **نوټ:** - د دې حدیث شرح د بل حدیث په تسهیل کښې ذکرده

**[۱۹۸۱] دَ میاشتې دَ غټوالي او وړوکوالي عدم اعتبار**

۱۹۸۱ – (۱) [۱۳] [۱] وَعَنْ أَبِي الْبَخْتَرِيِّ قَالَ: [۲] «خَرَجْنَا لِلْعُمْرَةِ فَلَمَّا نَزَلْنَا بِبَطْنِ نَخْلَةَ تَرَاءَيْنَا الْهِلَالَ، [۳] فَقَالَ بَعْضُ

---

(۱) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم، باب في شهادة الواحد على رؤية هلال رمضان (رقم-۲۳۴۲)

(۲) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم، باب إذا أغمي الشهر (رقم-۲۳۲۵) واحمد في المسند ۱۴۹/۶

(۳) اخرجه مسلم في صحيحه كتاب الصيام/باب بيان أنه لا اعتبار بكبر الهلال وصغره، وأن الله تعالى أمده للرؤية فإن غم فليكمل ثلاثون (رقم-۳۰ - (۱۰۸۸)

الْقَوْمِ: هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ، ۴ وَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: هُوَ ابْنُ لَيْلَتَيْنِ ۵ فَلَقِينَا ابْنَ عَبَّاسٍ فَقُلْنَا: إِنَّا رَأَيْنَا الْهِلَالَ، ۶ فَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: هُوَ ابْنُ ثَلَاثٍ ۷ وَقَالَ بَعْضُ الْقَوْمِ: هُوَ ابْنُ لَيْلَتَيْنِ ۸ فَقَالَ: أَيَّ لَيْلَةٍ رَأَيْتُمُوهُ؟ قُلْنَا: لَيْلَةَ كَذَا وَكَذَا، ۹ فَقَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَدَّهُ لِلرُّؤْيَةِ فَهُوَ لِلَيْلَةٍ رَأَيْتُمُوهُ ۱۰ وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ قَالَ: أَهْلَلْنَا رَمَضَانَ وَنَحْنُ بِذَاتِ عِرْقٍ ۱۱ فَأَرْسَلْنَا رَجُلًا إِلَى ابْنِ عَبَّاسٍ يَسْأَلُهُ ۱۲ فَقَالَ ابْنُ عَبَّاسٍ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "إِنَّ اللهَ - تَعَالَى - أَمَدَّهُ لِرُؤْيَتِهِ ۱۳ فَإِنْ أُغْمِيَ عَلَيْكُمْ فَأَكْمِلُوا الْعِدَّةَ». "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ۱ ابو البختري وايي ۲ چې (يو خل) مونږ خلق د عمري کولو په غرض د خپل ښار کوفې څخه ووتلو کوم وخت چې مونږ په بطن نخله کې چې د مکې او طايف په منځ کې يو مقام دی. څکته شو نو د مياشتې د ليدو د پاره په يو ځاي کې جمع شو ۳ د مياشتې د ليدو څخه پس بعضې خلقو اوويل چې دا مياشت د دريمې شپې ده ۴ او بعضې نورو خلقو اوويل چې د دويمې شپې ده ۵ ددې وروسته چې د ابن عباس رضي الله عنهما سره زمونږ ملاقات وشونو مونږ هغه ته د خلقو بيان عرض کړو چه مونږ مياشت اونيدله ۶ د مياشتې د ليدو څخه پس، بعضې خلقو اوويل چې دا مياشت د دريمې شپې ده ۷ او بعضې نورو خلقو اوويل چې د دويمې شپې ده ۸ نو ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل چې تاسو مياشت په کومه شپه ليدلې وه؟ مونږ اوويل چې په داسې داسې شپه (يعنې د ګل په شپه يا مثلاً نبې په شپه) مو ليدلې وه ۹ ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل چې نبي کريم صلی الله علیه وسلم د رمضان موده د مياشت په ليدو باندې موقوف کړې ده (يعني مياشت چې وليدل شي نو رمضان شروع شي) نو مياشت د هغه شپې ده په کومه شپه چې تاسو ليدلې ده ۱۰ د ابو البختري يو روايت داسې دی چې مونږ په ذات عرق کې (چې د مذکوره بالا بطن نخله ته نژدې يو مقام دی) مياشت وليده ۱۱ نو مونږ يو سړي د ابن عباس رضي الله عنه په خدمت کې د هغه څخه د پوښتنې کولو د پاره وليږلو اچې دا مياشت د کومې شپې ده؟ ځکه چې زمونږ په مينځ کې مذکوره بالا اختلاف پيدا شوي وو ۱۲ ابن عباس رضي الله عنهما وفرمايل چې د نبي کريم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد ګرامي دی چې الله تعالی جل جلاله د شعبان د مياشتې موده د رمضان د مياشت د ليدو تر وخته پورې اوږده کړې ده ۱۳ که په (۲۹ تاريخ، وريځ وي نو حساب پوره کړئ (يعنې د شعبان ديرش ۳۰ ورځې پوره کړئ) او د هغې څخه روسته روژه ونيسئ (مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَرَاءَيْنَا أي اجْتَمَعْنَا لِرُؤْيَةِ الْهِلَالِ: يعنې مونږ ټول يو ځاي شو د مياشتې کتلو د پاره په يو ځاي راجمع شو ② بَطْنِ نَخْلَةَ: د مکې مشرقي طرف ته يو مشهور کلې دې نن صبا ورته مضيق وائي ③ أَمَدَّهُ: اوږده کړې ئې ده ④ أَهْلَلْنَا: اى رَأَيْنَا هِلَالَ: چه مونږ مياشت اوليده. اصل کښې اهلال اوچت آواز ته ونيلې شي. د (روژې يا اختر) مياشت په ليدو باندې هم خلق په زور آواز سره وائي چه مونږ مياشت اوليده په دې وجه دا لفظ دلته هم استعمال شوې دې مراد ترې مياشت ليدل دی ⑤ ذَاتِ عِرْقٍ: د بطن نخله نه اخوا يو ځاي دې

**تسهیلات:**

**قوله: هُوَاتِنُ ثَلاثٍ:**

**د میاشت د غتوالي عدم اعتبار:** - یعني دا میاشت دومره لویه ده چه د دریوورځو معلومیږی بعضو ونیل د دوو شپومعلومیږی حضرت ابن عباس رضی الله عنهما اوفرمانیل تاسوخلقوچه په کومه شپه میاشت اولیدله داهم د دغه شپې ده یعني که مخکښې وې نو ښکاریده به لهذا د دې د غتوالی هیڅ اعتبار نشته دې بعضې علماؤ لیکلی دی چه د رومبی شپې د میاشتې غتوالي د قیامت د علاماتونه دی چه قرب قیامت کښې به د میاشتې حجم زیاتیږی

**د روایاتو په مینځ کښې د تعارض دفع کول:** - دلته په دوو روایتونوکښې څه تضاد معلومیږی د دې د مربوط کولود پاره تاسوداسې اوګنړئ چه اول خلق په ذات عرق کښې جمع کیدوسره میاشت کتله بیا د کتلونه پس اختلاف پیداشو بعضو ونیلې د یوې ورځې ده بعضې ونیل د دووورځو په دې خبره باندې هغوی یوسړې ابن عباس رضی الله عنهما ته اولیګلو حضرت ابن عباس رضی الله عنهما جواب ورکړو بیادا ټول خلق بطن نخله کښې جمع شو هلته نی یوخل بیا د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما نه بلاواسطه سوال اوکړو هغوی جواب ورکړو بطن نخله د مکې او طائف په مینځ کښې د یوځائی نوم دې اوذات عرق هم دې سره نیزدې د یومقام نوم دې

**د روژې مسائل:** - ① که د شعبان په دیرشم تاریخ باندې د ورځې میاشت ښکاره شی نودا به د راتلونکې شپې میاشت ګنړلې شی لهذا د ورځې په وخت کښې به د روژې حکم نه کیږی اوکه د رمضان په دیرشم تاریخ باندې د ورځې میاشت ښکاره شی نویه هغه ورځ به نه روژه ماتولې شی اونه به اخترکولې شی بلکه دا سپوږمئی به د راتلونکی صباد پاره وی ② د میاشتې کتل واجب علی الکفایه دی کوم سړی چه پخپله میاشت اولیدله خو د څه وجې نه د هغه ګواهی رد کړې شوه نوپخپله به ده باندې روژه ساتل لازم دی

**مطالع د اختلاف مفهوم:** - د مطالع د اختلاف اعتبارشته که نه؟ د دې مطالع د اختلاف مطلب دادې چه مثلاً په یوښاریا ملك کښې میاشت اولیدلې شوه د بل ښار یا ملك په خلقو به د ددغه میاشت د لیدلوڅه اثر پریوځی که نه؟ چه کوم فقهاء وائی اثر پریوځی نو هغوی وائی چه د مطالع د اختلاف اعتبارنشته دې د ټول اسلامی ممالك د پاره د یواسلامی ملك سپوږمئی اومیاشت لیدل کافی کیږی

**د اختلاف مطالع په اعتبار او عدم اعتبار کښې مذاهب:** -

شوافع وائی چه د هرملك خپل مطلع دې لهذا د یوملك سپوږمئی لیدل د بل ملك د پاره حجت اودلیل نه دې

② احناف د اختلاف مطالع د عدم اعتبار قائل دی

**داول فریق دلیل:-** دوی د ترمذی د حضرت کریب رضی الله عنه روایت نه استدلال کړې دې چه په شام کښې روژه وه او په مدینه کښې نه وه

**د دویم فریق دلیل:-** احناف د «صوموالرؤیته وافطروالرؤیته» نه استدلال کړې دې چې دلته نبی کریم په عموم سره فرمانیلی دی چې د دې په لیدو سره روژه او اختر کوئ د اختلاف مطالع د اعتبار قید په کښې نشته

**د احنافو په نیز مفتی به قول:-** دَ احنافو دَعلماؤ نه علامه زیلعی رحمه الله فرمائی که چرې دَمطلع دَا ختلاق اعتبار اونه کړې شو نو ډیرپیچیده مسائل به پیداشی لهذا نیزدې ښارونو کښې که دَ اختلاف مطالع اعتبار نه وی نو نه دی وی لیکن لرې ملکونو کښې دَ اختلاف مطالع اعتبار به کولې شی یعنی دَهغوی میاشت او سپوږمئی جدا او زمونږ میاشت او سپوږمئی جدا حضرت علامه شاه انورشاه کشمیری رحمه الله فرمائی چه دَ زیلعی رحمه الله دا قول صحیح دې گنی که روښې قول اختیار کړې شی اودَ پوره دنیا دَپاره میاشت معتبراوګنړلې شی نو یا به په ۲۷،۲۸ او یا ۳۱، ۳۲ کښې اختر کولې کیږی لهذا فتوی هم په دغه اول قول باندې ورکول پکاردی

**د اختلاف مطالع په اعتبار کښې دمسافت تعین:-** اوس پاتې شوه داخبره چه کوم یوته به قریب یعنی نیزدې وئیلې شی او کوم یوته به بعید یعنی لرې وئیلی کیږی په دې کښې تفصیل دې

① دَ عرف اعتبار به کولې شی او شوافع دَ دریو ورځو دَمسافت اعتبار کړې دې

② ابن عابدین رحمه الله په خپلو رسالو کښې لیکلی دی چه دَ یو میاشتې په مسافت باندې واقع ښار بعید شمیرلې کیږی او دې نه کم مسافت والا ښار به قریب شمیرلې کیږی

③ په یو اقلیم یعنی براعظم کښې اوسیدونکی خلق به نیزدې ګڼړلې شی لیکن دَ دوو براعظمونو خلق به لرې شمیرلې کیږی اقلیم یو براعظم وی

④ آسان او واضح قول دادې چرته چه دَ شپې تاریخ بدلیږی هغه بعید دې او چرته چه تاریخ نه بدلیږی هغه قریب دې مثلاً امریکه برطانیه کښې ورځ وی لیکن پاکستان کښې شپه وی تاریخ جدا جدا بدلیږی

# [۲] بَابٌ فِيْ فَضْلِ السُّحُوْرِ

د پیشمنی د فضیلت بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه سبعة عشر حديثاً مشتملة على على ثماني مسائل:**

① فضيلة السحور: ۱، ۲، ۶، ۱۷۔
② فضيلة تعجيل الفطر ووقته: ۳، ۴، ۸، ۱۴، ۱۵۔
③ النهي عن صوم الوصال: ۵۔
④ وقت النية: ۶۔
⑤ شرب لإناء وقت النداء: ۷۔
⑥ ما يفطر به: ۹، ۱۰۔
⑦ أجر المفطر: ۱۱۔
⑧ الدعاء وقت الإفطار: ۳۔

قال الله تعالى ﴿ وَكُلُوْا وَاشْرَبُوْا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْاَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْاَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيْلِ ﴾ [سورت بقره الايه ۱۸۷]

دلته بغير د عنوان نه باب كېخودلې شوې دې دا د دې خبرې طرف ته اشاره ده چه د دې باب مسائل د تیر شوی باب سره ملحق دی ملاعلی قاری رحمه الله دې سره "في السحور" جمله لګولې ده علامه طيبي رحمه الله "في مسائل متفرعه من كتاب الصوم" عنوان زيات کړې دې په دې باب کښې واقعي د رمضان متفرق مسائل بيان کړې شوی دی د پيشمنی او روژې ماتي متعلق زيات تر احاديثو بيان دې او د نيت کولو سره متعلق هم احاديث دی [الكاشف ۴/۱۷۸]

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۱۹۸۲] د پیشمنی برکت**

۱۹۸۲-(۱)[۱] عَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲] «تَسَحَّرُوْا فَإِنَّ فِي السُّحُوْرِ بَرَكَةً» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱]) اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب بركة السحور من غير إيجاب (رقم-۱۹۲۳) ومسلم كتاب الصيام/باب فضل السحور وتأكيد استحبابه. واستحباب تأخيره وتعجيل الفطر(رقم-۴۵ - (۱۰۹۵) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل السحور(رقم-۷۰۸) والنسائي كتاب الجنائز/باب الحث على السحور (رقم-۲۱۴۴) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في السحور(رقم-۱۶۹۲) واحمد في المسند ۹۹/۳

**ترجمه**: [۱] انس رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] پيشمني كوئ ځكه چې په پيشمنى كولو (خوړولو) كې بركت وي (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: - ① تَسَحَّرُوا: دامر صيغه ده، پيشمنې كوئ، د صبح صادق راختلو نه مخكښې څه خوړلو ته سحرى (يعنى پيشمنې) وائى

**تسهيلات**:

**قوله: فِي السَّحُوْرِ بَرَكَةً**:

**د سحور د لفظ تحقيق**: - سحور د سين فتحه اوحاء باندې ضمه سره د پيشمنى خوراك ته وائى په احاديثوكښې زيات تر دا لفظ دغه شان نقل دې اوهم دغه محفوظ دې اودا اسم دې ليكن بعضې علماؤ دا لفظ د سين پيښ سره نقل كړې دې هغوى فرمائى چه سحور مصدر دې چه د پيشمنى فعل ته وائى اودا زيات مناسب دى ځكه چه د بركت تعلق د فعل سحو سره دې صرف طعام سره نه دې بهرحال دا ډيرمعمولى فرق دې

**په پيشمنى كښې د بركت وجوهات**: - ① روحانى وجه نې دا ده چه دغه وخت الله تعالى په آسمان دنيا باندې نزول فرمائى لهذا په دې مبارك وخت كښې چه څوك بيدار شى نودا بيدار كيدل پخپله د بركت سبب دې بيا چه د ژبې نه دنيكئى څه كلمه ادا شى دا جدا بركت دې بيا كه چرته مونځ نې اوكړو دا جدا بركت دې د پيشمنى دې عمل سره په سنت باندې عمل اوشو دا جدا بركت دې

② د بركت مادى وجه نې دا ده چه سړې د شپې بالكل په آخره كښې اود ورځې په شروع كښې اول څه خوراك څښاك كوى لهذا ټوله ورځ هغه د اولږې او تندې نه بچ وى

**[۱۹۸۲] د مسلمانانو او يهوديانو په روژه كښې فرق**

۱۹۸۲ - (۱)[۲] [۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «فَصْلُ مَا بَيْنَ صِيَامِنَا وَصِيَامِ أَهْلِ الْكِتَابِ أَكْلَةُ السَّحَرِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] عمرو بن عاص رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زمونږ د روژې او د اهل كتابو د روژې په مينځ كې فرق پيشمنې كول دي (مسلم)

**حل اللغات**: - ① فَصْلُ: فرق، جدائى ② أَكْلَةُ: په معنى د لقمې سره د پيشمنى خوراک څښاک ته وائى

**تسهيلات**: **قوله: أَكْلَةُ السَّحَرِ**:

**پيشمنى د مسلمانانو خصوصيت**: - اهل كتاب يهود او نصارى د روژې دپاره پيشمنې نه كوى دهغوى په روژو كښې د شپې روژه هم شامل ده د روژې ماتى نه پس اوده كيدلو سره د

(۱) اخرجه مسلم فى صحيحه كتاب الصيام/باب فضل السحور وتأكيد استحبابه، واستحباب تأخيره وتعجيل الفطر(رقم ۴۶ - (۱۰۹۶)) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل السحور(رقم-۷۰۸) والنسائى كتاب الصوم/باب فصل ما بين صيامنا وصيام أهل الكتاب(رقم-۲۱۶۶)

شپې روژه لازم کیږي. د اسلام په شروع کښې د مسلمانانو د پاره هم دغه حکم وو بیا دا حکم منسوخ شو اوس مسلمانان د شپې پیشمنی کښې خوراك کوي او اهل کتاب خوراك نه کوي اهل کتاب سره مشابهت نه ساتل خپل دین سره وفاداري هم ده او د دې دین د عظیم نعمت شکر په خاني راوړل هم دي.

**[۱۹۸٤] په افطار کښې د عجلت کولو حکم**

۱۹۸٤–()[۳] ① وَعَنْ سَهْلٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا يَزَالُ النَّاسُ بِخَيْرٍ مَا عَجَّلُوا الْفِطْرَ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① حضرت سهل رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② تر څو پورې چې خلق په افطارې کې جلتي کوي د خیر سره به وي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① عَجَّلُوا: جلتي کوي، ② الْفِطْرَ: روژه ماتي.

**تسهیلات: قوله:** مَا عَجَّلُوا الْفِطْرَ:

**په تعجیل الافطار کښې د یهودیانو مخالفت:** - په روژې ماتي کښې د تادنې کولو مطلب دا دې چه کله نمر ډوب شي او د روژې ماتي وخت راشي نو په روژې ماتي کښې ناوخته کول مناسب نه دي ځکه چه دا سې تاخیر کول د یهودو او نصارې طریقه ده هغوي د هغه وخته پورې انتظار کوي تر څو چه په آسمان باندې ستوري ښکاره نه شي. هم دغه طریقه د روافض او شیعه ګانو ده. نور اهل بدعت هم د احتیاط په نوم باندې دغه شان تاخیر کوي لیکن سنت طریقه دا ده چه د ماښام د مونځ نه مخکښې روژه ماته کړې شي او بیا د ماښام مونځ اوکړې شي

علامه طیبي رحمه الله د دې حدیث متعلق لیکي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د سنت اتباع کول نیغه لار ده کوم سړې چه د دې نیغې لارې نه اخوا دیخوا شو هغه ګګه لاره اختیار کړه سره د دې چه هغه په عبادت کښې ولې نه وي [الکاشف ۱۷۹/۴]

**[۱۹۸۵] د نمر په ډوبیدو د افطار جواز**

۱۹۸۵–()[۴] ① وَعَنْ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «إِذَا أَقْبَلَ اللَّيْلُ مِنْ هَاهُنَا ③ وَأَدْبَرَ النَّهَارُ مِنْ هَاهُنَا ④ وَغَرَبَتِ الشَّمْسُ فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ» "(مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الصوم/باب تعجیل الإفطار (رقم-۱۹۵۷) ومسلم کتاب الصیام/باب فضل السحور ......... ..... وتأکید استحبابه. واستحباب تأخیره وتعجیل الفطر(رقم) ٤٨ - (۱۰۹۸) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی تعجیل الإفطار(رقم-۶۹۹) وابن ماجة کتاب الصیام/باب ما جاء فی تعجیل الإفطار(رقم-۱۶۹۷) و مالک فی الموطا کتاب الصیام/باب ما جاء فی تعجیل الفطر(رقم-۶) واحمد فی المسند ۳۳۹/۵

[۲] اخرجه البخاری کتاب الصوم/باب: متی یحل فطر الصائم (رقم-۱۹٥٤) ومسلم کتاب الصیام/باب بیان وقت انقضاء الصوم وخروج النهار(رقم-)٥١ - (۱۱۰۰) وابوداود فی السنن کتاب الصوم . باب وقت فطر الصائم(رقم-۲۳٥۱) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء إذا أقبل اللیل، وأدبر النهار فقد أفطر الصائم (رقم-۶۹۸)

**ترجمه:** [١] حضرت عمر رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې د دې خوا څخه شپه راشي (يعني د مشرق د طرف څخه د شپې سياهي (تور والي) اوچت شي) [٣] او د دې خوا څخه (د مغرب) څخه ورځ په شا لاړه شي [٤] او نمر پوره ډوب شي نو (پوهه شه چه) روژه دار افطاري اوکړو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① أَقْبَلَ اللَّيْلُ: أَيْ ظَلَامُهُ: يعنی د شپې راتلو نه مراد تياره راتلل دی. ② أَدْبَرَ النَّهَارُ: أَيْ ضَوْءُهُ: يعنی د ورځ راتلو نه مراد رڼا ده.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَغَرَبَتِ الشَّمْسُ:

**د غربت الشمس مطلب:** - دا جمله دَماقبل کلام دپاره دَ تاکيد په توګه ده په ماقبل کلام کښې دوه ځل "ههنا" لفظ راغلي دې په دې سره اشاره کول مقصود دی يعنی چه کله دَ مشرق دَ طرف نه شپه راشی مطلب دا چه په مشرقی افق باندې تورwالي راوچت شی او دَمغرب دَ طرف نه ورځ لاړه شی نمر پوره ډوب شی

**قوله:** فَقَدْ أَفْطَرَ الصَّائِمُ:

**د افطر الصائم وضاحت:** - يعنی بيا اوګنړه چه روژه دار روژه کولاؤ کړه مطلب دا چه اوس دَ روژې ماتی وخت شوې دې دې نه زياتی انتظار نه دی کول پکار

علامه طيبی رحمه الله فرمائی "اي اقبل ظلمة الليل من جانب المشرق وادبر ضوء النهار من المغرب فقد افطر الصائم حکمًا وان لم يفطر حسًا اودخل في وقت الافطار". [الکاشف ۴/۱۸۰]

**[١٩٨٦] دَ صوم وصال څخه ممانعت**

١٩٨٦ - (٥) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [٢] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْوِصَالِ فِي الصَّوْمِ، [٣] فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: إِنَّكَ تُوَاصِلُ يَا رَسُولَ اللهِ، [٤] قَالَ: "وَأَيُّكُمْ مِثْلِي؟ إِنِّي أَبِيتُ يُطْعِمُنِي رَبِّي وَيَسْقِينِي» " (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي [٢] چې رسول الله ﷺ د وصال په روژه باندې د روژې نيولو څخه منع اوفرمائيله [٣] يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ ته خو روژه په روژه نيسې؟ [٤] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې په تاسو کې کوم سړي دي چې زما په شان وي، زه خو داسې شپه تيروم چې زما پروردګار په ما خوروي او زما تنده ماتوی (بخاري مسلم)

---

[١] اخرجه البخاري کتاب الصوم باب صوم الصبيان (رقم - ١٩٦٠) ومسلم کتاب الصيام باب النهي عن الوصال في الصوم (رقم -)٥٧ - (١١٠٣) وابوداود في السنن کتاب الصوم . باب في الوصال(رقم- ٢٣٦١) و مالک في الموطا کتاب الصيام باب النهي عن الوصال في الصيام(رقم-٣٩)واحمد في المسند ٢٥٨/٦

**حل اللغات:-** ① اَلْوِصَالُ: أَيْ تَتَابُعُ الصَّوْمِ مِنْ غَيْرِ إِفْطَارٍ بِاللَّيْلِ: د شپې افطارى (يعنى د خوراک خوړلو) نه بغير پرله پسې روژو نيولو ته وصال وائى ② أَبِيْتُ: شپه تيروم

**تسهيلات:**

**قوله: عَنِ الْوِصَالِ.**

**د صوم الوصال تعريف:-** دَدې مطلب دادې چه يوسړې مثلاً دوه يا درې روژې داسې مسلسل ساتى چه په مينځ كښې دَ شپې په وخت څوك افطار اونه كړى.

**د صوم الوصال د كراهت وجه:-** په حديث كښې دَدې څكه ممانعت راغلې دې چه په دې سره سړې كمزورې كيږى نودَ نورو عبادتونو قابل نه پاتې كيږى نه مونځ كولې شى اونه جهاد كولې شى اونه دَ نيكئى بل څه كار كولې شى.

**د امت دپاره د صوم الوصال په حكم كښې مذاهب:-**

دَ حضورپاك نه علاوه دَ امت دَ يوكس دَ پاره په روژه باندې روژه ساتل جائز دى كه نه؟ نوپه دې باره كښې اختلاف دې ① د بعضې عالمانو په نيز چه دَ امت كوم كسان دَدې طاقت لرى هغوى ساتلې شى هغه حضرات دَدې حديث ممانعت په شفقت اورحمت باندې حمل كوى څنگه چه حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه او حضرت عبدالله بن زبير رضي الله عنه وغيره به په دې باندې عمل كولو اوپه روژه باندې به ئې روژه ساتله بعضې تابعينو به هم په صوم وصال باندې عمل كولو

② اكثر علماء صوم وصال ناجائز گڼى امام ابوحنيفه رحمه الله امام مالك رحمه الله او امام شافعى رحمه الله فرمائى صوم وصال مكروه دې ظاهرى حديث هم په دې باندې دلالت كوى.

**دكراهت نوعيت:-** البته په دې كښې بحث دې چه دَدې كراهت نه مكروه تحريمى مراد دې كه مكروه تنزيهى صحيح قول هم دغه دې چه صوم وصال مكروه تحريمى دې

**قوله: يُطْعِمُنِي:**

**صوم الوصال د نبى كريم خصوصيت:-** ددې جملې نه په واضحه توگه معلوميږى چه صوم وصال دَ حضورپاك دَ خصوصيات نه وه په حضورپاك كښې هغه روحانى طاقت وو چه بل چا كښې ممكن نه دې رسول الله ﷺ خودَ الله تعالى په محبت كښې مستغرق وونه دَ بل څه خوراك ضرورت وو

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

[۱۹۸۷]د روژې د نيت حکم

۱۹۸۷-()[۲] ۱ عَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَنْ لَمْ يُجْمِعِ الصِّيَامَ قَبْلَ الْفَجْرِ فَلَا صِيَامَ لَهُ» ". ۳ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ. ۴ وَقَالَ أَبُو دَاوُدَ: وَقَفَهُ عَلَى حَفْصَةَ مَعْمَرٌ وَالزَّبِيدِيُّ وَابْنُ عُيَيْنَةَ وَيُونُسُ الْأَيْلِيُّ كُلُّهُمْ عَنِ الزُّهْرِيِّ.

**ترجمه:** ۱ بي بي حفصه رضي الله عنها روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړي چې د روژې نيت د فجر څخه مخکې ونه کړي نو د هغه روژه پوره (کامله) نه ده. ۳ (ترمذي، ابوداؤد، نسايي، ابن ماجه، دارمي) ۴ او امام ابوداؤد رحمه الله فرمايي چې معمر زبيدي ابن عينيه او يونس ويلي دي ټولو دا روايت د زهري [څخه نقل کړي دي او] په بي بي حفصه رضي الله عنها باندې يې موقوف کړي دي ايعنى دي حديث ته يې د بي بي حفصې رضي الله عنها قول ويلي دي]

**د راوي مختصر تعارف:** ـنوم حفصه د پلار نوم عمربن الخطاب د بعثت نبوى نه پنځه کاله وړاندې پيداشوې وه. دغه وخت قريش د خانه کعبه په جوړولوکښې مصروف وو. اوله نکاح ئې خنيس بن حذافه سره شوې وه. د مورپلار او خاوندسره مسلمانه شوه. خاوندسره ئې هجرت اوکړو. خاوندئې په جنګ بدرکښې شهيدشو. دې نه پس حضور ﷺ سره د هغې نکاح اوشوه (۳)

حضرت ابن سعد رحمه الله د هغې باره کښې وائي "انهاصوامةقوامة" هغې به د ورځې روژه ساتله او د شپې به ئې قيام کولو. په اصابه کښې دى "ماتت حفصة حتى ماتفطر" د مرګ په وخت هم هغه روژه وه.

**وفات:**- د حضرت حفصه رضي الله عنها انتقال په کال ۴۵ھ کښې مدينه منوره کښې اوشو. د حضرت امير معاويه رضي الله عنه زمانه وه مروان چه د مدينې ګورنروو هغه جنازه اوکړه. د هغې رور ابن عمر رضي الله عنهما او د هغه خامنو عاصم سالم عبدالله او حمزه رحمهم الله قبرته کوزه کړه. د وفات په وخت کښې ئې خپل رور حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنهما ته وصيت اوکړوچه د غابه کوم جائيداد ووهغه وقف کړئي اوصدقه ئې کړئي.

**مرويات:** د هغې نه ۶۰ احاديث نقل دى (۴) د نوروحالاتو دپاره اوګورئ ① اصابه ۵۱/۸ ② زرقانى ۲۷۱/۳ ③ مسند احمد ۲۸۵/۶ ④ فتح البارى ۵۰۴/۸ ⑤ طبقات ابن سعد ⑥ تهذيب ⑦ تذکرة الحفاظ وغيره

[۱] اخرجه ابوداود فى السنن كتاب الصوم ، باب النية فى الصيام (رقم-٢٤٥٤) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء لا صيام لمن لم يعزم من الليل(رقم-٧٣٠) ومالك فى الموطا كتاب الصيام/باب من أجمع الصيام قبل الفجر(رقم-٥) واحمد فى المسند ٢٥٨/٦

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ لَمْ يُجْمِعِ الصِّيَامَ:**

**د يجمع معنى:-** دا صيغه دَ شد سره هم ونيلې شوې ده اوبغيرد شد نه هم ونيلې شوې ده. اجماع او تجميع پخې ارادې اوعزم كامل ته وائي دلته دَ شپې نه دَ روژې دَ پوخ نيت كولودپاره ونيلې شوى دى دَ حديث نه په واضحه توګه سره معلوميږى چه دَ روژې نيت دَ شپې وخت كښې كول ضرورى دى ګنې روژه به صحيح نه وى. ليكن نورو رواياتو ته كتلوسره دَ فقهاء كرام په خپل مينځ كښې اختلاف دې.

**د تبييت نيت په حكم كښې مذاهب:-**

په دې باندې دَ ټولو فقهاؤ اتفاق دې چه دَ روژې دَ صحت دپاره نيت شرط دې ليكن دَدې نيت وخت كوم كيدل پكاردى په دې باره كښې اختلاف دې. ① امام مالك رحمه الله خو فرمائى دَ هرقسم روژې ساتلو دَ پاره دَ شپې نه نيت كول شرط دى كه روژه نفل وى كه واجب وى يا فرض وى دَ شپې نه نيت كولو ته تبييت نيت وائى.

② امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز دَنفل روژو نه علاوه دَ هرقسم روژو دپاره دَ شپې نه نيت ضرورى دى په نفل كښې ضرورى نه دې بلكه دَزوال نه مخكښې وخت پورې نيت كيدې شى

③ دَ ائمه احناف په نيز څه تفصيل دې.

دَ قضا شوې روژې، دَ عام نذر روژه اودَ كفارې روژه كه څوك ساتى نودَ شپې نه نيت كول شرط دې دې نه علاوه دَرمضان اونذر معين اونفلى روژو نيت دَ شپې نه ضرورى نه دې بلكه مستحب دې اوس اختلاف په حقيقت كښې احناف شوافع اوحنابله په مينځ كښې بيانول دى ځكه چه مالكيه خو په هرصورت كښې تبييت نيت ضرورى ګنړى دَ هغوى اختلاف ټولو سره دې

**داول فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوى مستدل دې. اودا مطلق منلوسره دَهرقسم روژې دپاره تبييت نيت ضرورى ګرخوى

**د دويم فريق دليل:-** زير بحث حديث د دوى مستدل دې. ليكن نفلى روژې دې حديث سره خاص كوى ځكه چه دَهغوى په نيز نفلى روژه كښې دَ بلې روژې نيت كولې شى يعنى دكوم وخت نه چه دې نيت اوكړو هم دَهغه وخت نه دَ روژې ثواب شروع كيږى. لهذا دَ شپې نه نيت كول ضرورى نه دى

**د دواړو فريقو د دليل مجموعى جواب:-** دَدې حديث په مرفوع او موقوف كيدو كښې اختلاف دې امام ابوداؤد رحمه الله دا ضعيف ګرځولې دې

④ "فلاصيام له" کښې نفی د کمال د صوم ده تبییت نیت مونږ هم مستحب منو

⑤ زیر بحث حدیث تعلق د هغه روژو سره دې په کوم کښې چه د شپې نه نیت د ټولو په نیز ضروری دې لکه د نذر مطلق، کفارات او د قضاء راوړلو روژې چه وی داحدیث هم په دې باندې محمول دې

**د دویم فریق دلائل:-** ① د قرآن کریم آیت دې ﴿وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتّٰى يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ﴾ ابقرة الاية ۱۸۷ | د دوی مستدل دې دلته د صبح صادق پورې د خوراك څښاك اجازت دې اوكله چه صبح صادق اوشي نيت به د دې نه روستو وی نو په آیت کښې دا اشاره اوشوه چه د رمضان د روژې نیت د صبح صادق نه پس جائز دې د دې دنيل تعلق د فرض روژې د نیت سره دې.

② د حضرت سلمه بن اكوع رضي الله عنه روایت دې «عن سلمة بن اكوع انه قال بعث رسول الله صلى الله عليه وسلم رجلا من اسلم يوم عاشوراء فأمره ان يؤذن في الناس من كان لم يصم فليصم ومن كان اكل فليتم صيامه الى الليل» متفق عليه

د استدلال طرز داسې دې چه د رمضان روژې فرض کیدونه مخکښې د عاشورې روژه فرض وه دلته د عاشورې فرض روژې نیت د ورځې په وخت کړې شوې دې معلومه شوه د فرض روژې نیت د ورځې وخت کیدې شی کله چه فرض معین وی

③ د حضرت عائشه رضي الله عنها روایت دې دکوم الفاظ چه دا دی «عن عائشة قالت دخل علي رسول الله صلى الله عليه وسلم ذات يوم فقال هل عندكم شيء فقلنا لا فقال فاني اذًا صائم» رواه مسلم مشكوة ص ۱۸۱.

④ عقلی دې هغه داسې چه دکومو روژو دپاره ورځ او وخت متعین دې د هغې دپاره د شپې نه د نیت کولو ضرورت نشته دې ځکه چه د دې وخت دپاره هم هغه روژه مقرر ده د دې هیڅ مقابله کونکې خبره نشته دې لکه د رمضان روژې چه دی یا د خاص نذر اوکه چرې قضا روژې وی یا د کفارې روژې وی یا د نذر مطلق روژې وی نو د دې دپاره یو ورځ یا وخت مقرر اومعین نه دې او د دې مزاحم هم موجود دې چه په دغه ورځ باندې بله روژه هم کیدې شی په دې وجه به دا د شپې نه متعین کولې شی لهذا د شپې نه نیت ضروری دې

**[۱۹۸۸] د سحر د آذان په وخت کښې د خوراك څښاك حکم**

۱۹۸۸-( )[۷] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِذَا سَمِعَ النِّدَاءَ أَحَدُكُمْ وَالْإِنَاءُ فِي يَدِهِ ③ فَلَا يَضَعْهُ حَتّٰى يَقْضِيَ حَاجَتَهُ مِنْهُ»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه روایت کوی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② که په تاسو کې څوك د سحر اذان واوری او د هغه په لاس کې لوښې وي (چې د هغې څخه د څکلو یا د خوړلو اراده

) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم، باب في الرجل يسمع النداء والإناء على يده(رقم-۲۳۵۰) واحمد في المسند ۲/ ۵۱۰

لري.[۳] نو لوښي دي نه پردي بلکه خپل ضرورت دې پوره کړی (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① النِّدَاءَ: أَيْ أَذَانَ الصُّبْحِ: د ندا. نه مراد دلته کښې د سحر اذان دي ② الْإِنَاءُ: د خوراک څښاک لوښي مراد دي

**تسهيلات:**

**قوله: إِذَاسَمِعَ النِّدَاءَ:**

**د بعضې خلقو غلط فهمی:** - يعنی چه يو سړي د پيشمنی په وخت څه خوراك څښاك کوی اواذان اوشو نودې حديث تعليم دادي چه هغه دي خوراك څښاك نه بندوی بلکه خپل ضرورت دي پوره کړی

**د حديث په مفهوم کښې دوه اقوال:** - ① د دې حديث د ظاهری مطلب نه څه خلقوته غلط فهمی کیږی او هغوی خپلو منونکوته د سحر اذان په وخت د صبح صادق نه پس د خوراك څښاك کولو اجازت ورکړو او د خلقو روژې ئې خرابې کړې. حالانکه زير بحث حديث شارحينو داسې ليکلي دي چه د دې حديث تعلق هغه سړی سره دې چه د سحرد راختلو محدذاتو کښې مخامخ ناست دي او هغه د سحر اوصبح صادق اوکاذب بنه تجربه لری د هغه په لاس کښې خوراك دي يا اوبه دی اوهغه خوراك څښاك هم کوی اوصبح صادق ته ګوری هم يو نادان مؤذن د وخت نه وړاندې اذان اوکړو اودا پوهه کس اوتجربه کار داګوری چه سحر لا تردغه وخته پورې نه دې راختلې د داسې اذان کونکی سړی د پاره په دې حديث کښې دا حکم دي چه داسړې دې د سحر راختلوته ګوری نادان مؤذن ته دې نه ګوری

② د دې حديث دويم مطلب علامه خطابی رحمه الله دابيان کړې دي چه دې نه د تهجدو اذان مراد دي ځکه دغه شان نور ډير احاديث تهجدوسره متعلق دی داجواب ډيرواضح دي بهرحال د سحرد راختلونه وړاندې اذان جائزنه دي او صبح صادق نه پس قصداً خوراك څښاك سره روژه فاسد کيدو سره کفاره لازميږی د الله تعالی نه ويريدونکوله سوچ کول پکاردی

**[۱۹۸۹] د غروب الشمس څخه روسته په افطار کښې تلوار کول**

١٩٨٩-()[٨] [١] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] " «قَالَ اللَّهُ - تَعَالَى -: أَحَبُّ عِبَادِي إِلَيَّ أَعْجَلُهُمْ فِطْرًا» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [٢] د الله تعالی عزوجل ارشاد دي چې زما په بنده ګانو کې د ټولو څخه زيات خوښ بنده ماته هغه دي چې (په وخت داخليدو باندې) په افطاري کې جلتي کوي. (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① أَعْجَلُهُمْ فِطْرًا: زر روژه ماتونکې

() اخرجه الترمذي في السنن كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في تعجيل الإفطار(رقم-٧٠٠) واحمد في المسند ٣٢٩/٢

**تسهيلات:**

**قوله: أَحَبُّ عِبَادِي إِلَيَّ أَعْجَلُهُمْ فِطْرًا**

**په زر افطار كولو كښې حكمت:** - زر افطار كولو سره دې روژه دار د سنت اتباع اوكړي او دې سره سره داهل كتابواو روافضو ترديد اومخالفت هم كيږي په دې وجه الله ﷻ ته دا خوښ دې.

**[١٩٩٠] په قجورې سره افطار كول**

-( )[٩] ١ وَعَنْ سَلْمَانَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ " «إِذَا أَفْطَرَ أَحَدُكُمْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى تَمْرٍ فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ، ٣ فَإِنْ لَمْ يَجِدْ فَلْيُفْطِرْ عَلَى مَاءٍ، ٤ فَإِنَّهُ طَهُورٌ» ٥ " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ، ٦ وَلَمْ يَذْكُرْ: فَإِنَّهُ بَرَكَةٌ غَيْرُ التِّرْمِذِيِّ فِي رِوَايَةٍ أُخْرَى.

**ترجمه:** ١ سلمان بن عامر ﷺ روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ په تاسو كې چې كوم سړي روژه ماتوي نو هغه ته پكار دي چې د كجوري سره يې ماته كړي خكه چې كجوره د بركت باعث دي ٣ او كه يو سړي كجوره بيا نه مومي نو په اوبو سره دي روژه ماته كړي ٤ خكه چې اوبه پاكونكي دي، ٥ دا روايت احمد، ترمذي، ابن ماجه او دارمي نقل كړي دي ٦ خو لفظ فانه بركة د ترمذي څخه علاوه بل چا نه دي ذكر كړي

**د راوي مختصر تعارف:** -نوم ئې سلمان دَ پلار نوم ئې عامر بن اوس بن جعد اودَ قبيله ،ضبي،، نه وو. دې دبصرې په خلقوكښې شميرلې شو دبعضې اسماء الرجال والا خيال دا دې چه په ،ضبي،، قبيله كښې دهغه نه علاوه بل څوك صحابي ﷺ روايت كونكي نشته.

**مرويات:** - دَ دوى نه ديارلس (١٣) روايات نقل دى په دې كښې يو په بخاري كښې دې.

**تسهيلات:**

**قوله: عَلَى تَمْرٍ:**

**په قجورو او اوبو باندې د روژه ماتى حكم:** - كهجورو اواوبوسره دَروژې ماتولوحكم مستحب دې اوبه خو په آسانئى سره حاصليږي

**په قجورو د روژه ماتى فوائد:** -

① په كهجوروكښې بركت دې خكه چه كهجوره يو مباركه ميوه ده

② په دې كښې خوږوالې او ښكلې شيريني ده اودَ انسان معده چه كله دَ روژې دَ وجې نه خالي وى او هغې ته خوږوالي رسيږي نومعده دا ډير زر قبلوى. په كوم سره چه دَ ټولو اندامونو دكمزرئى نه پس خاص قوت حاصليږي اوهم دغه قوت دَ بدن دَپاره بركت دې.

③ دَ كهجورې ونې دَ مؤمن په شان ده بيا

---

[١] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم . باب ما يفطر عليه(رقم-٢٣٥٥) والترمذي كتاب الزكاة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصدقة على ذي القرابة(رقم-٦٥٨) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء على ما يستحب الفطر (رقم-١٦٩٩) واحمد في المسند ١٧/٤

④ بل په عربو کښې د کهجورو میوه د ټولو نه زیات کیږی اوعربو ته کهجورې د ټولو نه زیاتې خوښې هم دی

⑤ کهجورې څنګه چه میوه ده اود دې په اور باندې د پخولو څه ضرورت نه وی نودې سره اور لګیدلې نه دې په دې وجه هم مبارك ده

**په اوبو سره د روژه ماتی فائده:** – اود اوبو پاکیزه کېدل خو ښکاره خبره ده. که چرې کهجورې نه وی نو بیا اوبه ښکلې روژې ماتې دې

**[١٩٩١] د نبی علیه السلام د روژه ماتی څیزونه:**

–()[١٠]① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: ②«كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُفْطِرُ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَى رُطَبَاتٍ، ③ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ رُطَبَاتٌ فَتُمَيْرَاتٌ، ④ فَإِنْ لَمْ تَكُنْ تُمَيْرَاتٌ حَسَا حَسَوَاتٍ مِنْ مَاءٍ».
⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** ① انس ﷜ فرمایي ② چه نبي کریم ﷺ به د ماښام د مانځه څخه مخکې په څو تازه کجورو سره روژه ماتوله ③ که تازه کجوري وي به نه وي نو په وچو کجورو سره به یې ماتوله ④ او که وچې کجوري به هم نه وي نو څو (یعني درې ګوټه) اوبه به یې څکلې، (ترمذي ابوداؤد) او ترمذي ﷫ ویلي دي چې دا حدیث حسن غریب دي

**حل اللغات:** – ① رُطَبَاتٍ: تازه کجورې. ② فَتُمَيْرَاتٌ: تصغیر دې، اوچې کجورې، چوارې. ③ حَسَا: أيْ شَرِبَ: یعنی لږې اوبه به ئې څکلې

**تسهیلات:**

**قوله: يُفْطِرُ قَبْلَ أَنْ يُصَلِّيَ عَلَى رُطَبَاتٍ:**

**په اوربخ شوې څیز روژه نه ماتول:** – په یوروایت کښې دی کوم چې د ابویعلی نه منقول دی چې رسول کریم ﷺ په دریو کهجورو سره یا څه داسې څیز سره چې په اور به پخ شوې نه وو روژه ماتول خوښول

**یوه غلطه عقیده:** – ځینې خلق داوائی چې کوم خلق په مکه مکرمه کښې مقیم دی هغوی لره دا مسنون دی هغوی دې د کهجورو نه چې اول په آب زمزم باندې افطار اوکړی یا دې دا دواړه یو ځائې کړی او په دې سره دې افطار اوکړی نو دا بالکل غلط دی بلکه د اتباع سنت هم خلاف دی ځکه چې نبی کریم ﷺ د فتح مکه نه پس ډیرو ورځو پورې دلته مقیم وو خو نبی کریم ﷺ نه هیڅ یو داسې عمل منقول نه دې

[١] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم رباب ما يفطر عليه(رقم-٢٣٥٦) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء ما يستحب عليه الإفطار(رقم-٦٩٦) واحمد في المسند ١٦٤/٣

[۱۹۹۲] روژه دار ته د افطار ورکولو فضیلت

---( )[۱۱][۱]وَعَنْ زَيْدِ بْنِ خَالِدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «مَنْ فَطَّرَ صَائِمًا [۳] أَوْ جَهَّزَ غَازِيًا فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ» ". [۴] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ، وَمُحْيِي السُّنَّةِ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ، وَقَالَ: صَحِيحٌ.

**ترجمه:** [۱] زید بن خالد ﷺ روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړي چې په یو روژه دار روژه ماته کړی [۳] یا د یو غازي د غزا سامان تیار کړی نو هغه ته د هغه د ثواب په شان ثواب حاصلیږي، [۴] دا روایت بیهقي په شعب الایمان کې نقل کړي دي او محي السـنه هم دا په شرح السنه کې نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا حدیث صحیح دي

**حل اللغات:** - ① جَهَّزَ: أَيْ هَيَّأَ أَسْبَابَهُ: یعنی دجهاد اسباب ئې ورته برابر کړل مثلاً وسله، اس یا نفقه وغیره

**د راوي مختصر تعارف:** -نوم زید ابوعبدالحمن کنیت دَ پلار نوم خالد دَ قبیله جهینه په وجه ورته جهنی وائی. دحدیبیه نه وړاندې مسلمان شوې اوهم مدینې ته راغلې آبادشوې دې.(۵)

**وفات** - په سن وفات کښې اختلاف دې.ډیر صحیح قول دادې چه په مدینه منوره کښې۷۸ھ کښې وفات شوې.دَ وفات په وخت کښې عمر مبارک ۸۵ کال وو.(۶)

**مرویات** - دَ هغوی نه ۸۱ روایات نقل دی.په دې کښې ۵ باندې دَ بخارې اومسلم اتفاق دې باقی په مسلم شریف کښې درې داسې هم دی چه په بخاری شریف کښې نشته.(۷)

**تسهیلات:**

**قوله:** فَلَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ:

**د روژه دار او مجاهد د ثواب کټلو طریقه:** - مطلب دادې چې روژه دار ته دده د روژې په وجه او غازی ته دهغه د جهاد په وجه ثواب ملاویږی همداشان ثواب یو کس ته روژه ماتې ورکول او یا یو مجاهد سره دهغه په سامان دجهاد درست کولو کښې مدد کومکی ته هم ملاویږی ځکه چې هغه ددې عمل په ذریعه یو نیک کار کښې مدد کوی

[۱۹۹۳] د روژه ماتی دعا

---( )[۱۲][۱]وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] كَانَ «النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَفْطَرَ قَالَ: [۳] " ذَهَبَ الظَّمَأُ [۴] وَابْتَلَّتِ الْعُرُوقُ [۵] وَثَبَتَ الْأَجْرُ إِنْ شَاءَ اللهُ» " رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر ﷺ روایت کوي [۲] چې نبي کریم ﷺ به روژه ماتوله نو دا کلمات به یې فرمایل [۳] تنده لاړه [۴] رګونه تر الونده شو [۵] او که الله ﷻ وغوښتل نو ثواب ثابت شو ابوداود.

---

( ) اخرجه احمد في المسند ۱۱٤/٤

( ) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم، باب القول عند الإفطار(رقم-۲۳۵۷)

حل الفاظ: - ① ذَهَبَ لاړه يعنې ختمه شوه. ② الظَّمَأُ: وَهُوَ الْعَطَشُ: تندې ته وائي ③ ابْتَلَّتْ: لامده شو. ④ الْعُرُوْقُ: رګونه

**تسهيلات:**

**قوله: ذَهَبَ الظَّمَأُ:**

**د ان شاء الله ويلو وجه:** - په عباداتو کښې مشقت خو لږ ډير ضروروی خوهغه هم د آرام نه پس ختميږی خو اجر او ثواب ئې زيات دې او باقی په حديث کښې د ان شاء الله ونيل يا خو دبرکت دپاره هم دې ياپه طور دتعليم دې

**[۱۹۹٤] ذروژه ماتی ذوخت بله دعا**

| |
|---|
| ---()[۳] ① وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ زُهْرَةَ قَالَ: ② إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «كَانَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ: ③ "اللَّهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَعَلَى رِزْقِكَ أَفْطَرْتُ»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ مُرْسَلًا. |

**ترجمه:** ① معاذ بن زهره (تابعي) رحمه الله وايي ② چې نبي کريم ﷺ چې به روژه ماتوله نو دا کلمات به يې فرمايل ③ اللَّهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَعَلَى رِزْقِكَ أَفْطَرْتُ (اي الله ما ستا د پاره روژه ونيوله او اوس ستا په رزق سره روژه ماتوم. دا روايت ابوداؤد بطريقِ ارسال نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله: كَانَ إِذَا أَفْطَرَ قَالَ:**

**دروژه ماتي په وخت د دعا قبليدل:** - دَ ابن ماجه په يوروايت کښې دی چه روژه ساتونکی چه دَ روژه ماتی وخت کښې کومه دعا غواړی هغه نشی ردکولې بلکه قبليږی هم په دې وجه حضورپاك دَ روژه ماتی وخت کښې دَ دعا اهتمام کړې دې اوامت ته ئې دَ دې تعليم ورکړې دې په دې حديث کښې هم دَدغه سلسلې يوه دعا ذکرده

**دروژه په دعا کښې د بعضې کلماتو د اضافې حکم:** - ابن ملك رحمه الله فرمائی چه په مذکوره دعا کښې خلق "وبك امنت وعليك توكلت" دَ الفاظ اضافه کوی. دا الفاظ دَ احاديثونه ثابت نه دی دَ معنى په اعتبار سره صحيح دی راودَ حضورپاك نه نقل شوی دعانه پس لوستل پکاردی، دَ رسول الله ﷺ نه دَ روژه ماتی په وخت دا دعاهم نقل ده "الحمدلله الذی اعانی فصمت ورزقنی فافطرت" دا ډيره ښکلې دعاده. دې نه وراندې حديث کښې دا الفاظ هم راغلی دی "ذهب الظمأ وابتلت العروق وثبت الاجران شاءالله" په دې دعائيه کلماتوکښې دَ الله تعالى عبادت پوره کولوباندې دَالله تعالى شکريه اداکړې شوې ده.

---

() اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم، باب القول عند الإفطار (رقم-۲۳۵۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [١٩٩٥] د روژې زر ماتولو فائده

١٩٩٥-(١)[١٣] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«لَا يَزَالُ الدِّينُ ظَاهِرًا ③ مَا عَجَّلَ النَّاسُ الْفِطْرَ، ④ لِأَنَّ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى يُؤَخِّرُونَ»". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② دين اسلام به هميشه غالب وي ③ تر څو پورې چې خلق په افطارۍ كې جلتي كوي ④ ځكه چې يهود او نصاري په افطارۍ كې تاخير كوي (ابوداؤد ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① ظَاهِرًا: أَيْ غَالِبًا وَعَالِيًا: يعنې غالب او بالا به وي.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَزَالُ الدِّينُ ظَاهِرًا:

**دباطل موافقت اختيارولو ممانعت:** - ددې نه معلومه شوه چې د اهل باطل سره موافقت او مشابهت نه بچ كيدل پكار دی ځكه چې دا ددين د غلبې باعث دی او داهل باطل مشابهت اختيارول ددين د كمزورۍ باعث دی

**قوله:** مَا عَجَّلَ النَّاسُ الْفِطْرَ:

**د تعجيل څخه مراد:** - ددې جلتی نه په وقت جواز كښې جلتی مراد كښې جلتی ده د وقت جواز نه مخكښې جلتی مراد نه ده

## [١٩٩٦] په افطار كښې د تادى مسنونيت

١٩٩٦-(٢)[١٥] ① وَعَنْ أَبِي عَطِيَّةَ قَالَ: ② «دَخَلْتُ أَنَا وَمَسْرُوقٌ عَلَى عَائِشَةَ فَقُلْنَا: يَا أُمَّ الْمُؤْمِنِينَ، ③ رَجُلَانِ مِنْ أَصْحَابِ مُحَمَّدٍ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَحَدُهُمَا يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلَاةَ ④ وَالْآخَرُ يُؤَخِّرُ الْإِفْطَارَ وَيُؤَخِّرُ الصَّلَاةَ، ⑤ قَالَتْ: أَيُّهُمَا يُعَجِّلُ الْإِفْطَارَ وَيُعَجِّلُ الصَّلَاةَ؟ ⑥ قُلْنَا: عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ، قَالَتْ: هَكَذَا صَنَعَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَالْآخَرُ أَبُو مُوسَى» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① ابو عطيه رضي الله عنه وايي ② چې زه او مسروق دواړه د بي بي عايشې رضي الله عنها په خدمت كې حاضر شو او عرض مو وكړو چې اې د مؤمنانو مورې ③ د نبی كريم صلى الله عليه وسلم په اصحابو كې دوه اشخاص (سړي) دي په هغوی كې يو صاحب خو په تلوار سره افطاري

---

[١] اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم ، باب ما يستحب من تعجيل الفطر (رقم-٢٣٥٣) وابن ماجة كتاب الصيام باب ما جاء في تعجيل الإفطار (رقم-١٦٩٨) واحمد في المسند ٢/ ٤٥٠

[٢] اخرجه مسلم في كتاب الصيام باب فضل السحور وتأكيد استحبابه، واستحباب تأخيره وتعجيل الفطر (رقم-٤٩ - ١٠٩٩) وابوداود كتاب الصوم ، باب ما يستحب من تعجيل الفطر (رقم-٢٣٥٤) والنسائي ذكر الاختلاف على سليمان بن مهران في حديث عائشة في تأخير السحور واختلاف الفاظهم (رقم-٢١٦١) واحمد في المسند ٤٨/٦

کوي او زر مونځ کوي ۞ او دويم سړي په تاخير سره افطاري کوي او په تاخير سره مونځ کوي ۞ بي بي عايشي ﷺ پوښتنه وکړه چې زر روژه ماتونکي او زر مونځ کونکي سړي څوک دي؟ ۞ مونږ ورته اوويل چې عبدالله ابن مسعود ﷺ دي، بي بي عايشي ﷺ وفرمايل چې د نبي کريم ﷺ هم دا معمول وو او دويم صاحب چې په افطاري او مانځه کې په بي تاخير کولو ابوموسي ﷺ وو (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** رَجُلَانِ:

**د رجلان مصداق:** – په دغه دوو کسانو کښې يوخو جليل القدر صحابي حضرت ابن مسعود ﷺ دې د چا په باره کښې چه حضورپاك فرمائيلي دی "رضيت لامتي مارضي بها ابن ام عبد" يعني په ما امت د پاره چه کوم څه ابن مسعود ﷺ خوښ کړی دی زه هم هغه خوښوم حضرت عمرفاروق ﷺ د حضرت ابن مسعود ﷺ باره کښې فرمائيلي دی "كُنَيْفٌ مُلِيَّ عِلْمًا" د ابن مسعود علم خزانه ده په دې حديث کښې ذکر دی چه حضرت ابن مسعود ﷺ په روژه ماتي کښې هم او مانځه کښې هم د حضورپاك د سنت اعلی مقام خپل کړې دې او حضرت ابوموسی اشعری ﷺ هم د لوئی شان والاصحابی دې په دې حديث کښې ذکر دی چه هغوی ﷺ د سنت په آخری جواز باندې عمل اوکړو د هغه د تاخير مطلب دانه دې چه د ممنوعه وخت پورې به ئې تاخيرکولو بلکه مطلب دادې چه د جواز د حدپورې به تللو کيدې شي د څه عذرد وجې نه داسې شوې وی يا د بيان د جواز د پاره په توګه د تعليم داسې کړې وی يا به ئې يوخل نيم د څه مجبورئی نه داسې کړې وی

**[١٩٩٧] په پشمنی کولو کښې برکت**

(١٦) ۞ وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ قَالَ: ۞ «دَعَانِي رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِلَى السَّحُورِ فِي رَمَضَانَ ۞ فَقَالَ: "هَلُمَّ إِلَى الْغَدَاءِ الْمُبَارَكِ"» "رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ".

**ترجمه:** ۞ عرباض ابن ساريه ﷺ وايي ۞ چې رسول الله ﷺ زه په رمضان کې د پيشمنی خوړلو دپاره وبللم ۞ او وې فرمايل چې دبرکت ناك طعام خوړلو دپاره راشه (ابوداؤد نسايي)

**حل اللغات:** – ① دَعَانِي: راوې بللم. ② السَّحُور: د پيشمنی خوراک ته وائی ③ هَلُمَّ: أَيْ تَعَالَ: راشه، ④ الْغَدَاء: د سحر خوراک خوړلو ته وائی. (ن شته)

(١) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم. باب من سمى السحور الغداء (رقم-٢٣٤٤) والنسائي كتاب الصوم/باب دعوة السحور (رقم-٢١٦٣)

**تسهيلات**

**قوله: هَلُمَّ إِلَى الْغَدَاءِ الْمُبَارَكِ:**

**په سحور باندې د غدا اطلاق وجه:-** په سحور باندې رسول الله ﷺ د غدا اطلاق اوفرمائيلو. اصل کښې غدا خو د سحر خوراک ته ونيلې شي کوم چه د ورځې په شروع کښې د زوال نه مخکښې اوخوړلې شي، خو پيشمنې د روژه دار په حق کښې د غدا قائم مقام وی په دې وجه بري دا غد اطلاق

**قوله: الْمُبَارَكِ:**

**د پيشمنۍ د برکت درې وجوهات:-** ① د پيشمنۍ مبارک کيدل ظاهر دی ځکه چه زمونږ د نبی سنت دې هم دغه شان د تيرو انبياء کرام هم سنت وو.

② بذل کښې حضرت خليل احمد سهارنپوری رحمه الله ليکلې دی پيشمنې د روژې په حالت کښې د نشاط سبب دې

③ پيشمنې په روژه نيولو کښې معين وی او د دې په برکت سره انسان ته د روژې نيولو توفيق کيږی او د روژې مشقت لره اسان کړی

④ شاه فيصل وانی په نورو مياشتوکښې خلق دتهجدو دپاره د خوب څخه نه پاسی اوپه رمضان کښې چې د پيشمنۍ دپاره پاسی نو تهجد هم کوی

**[١٩٩٨] په قجورو د پيشمنۍ کولو فضيلت**

(٢٠٠٠)[١٧] ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ٢ «نِعْمَ سَحُورُ الْمُؤْمِنِ التَّمْرُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ١ ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ د مؤمن د پاره د پيشمنۍ بهترين خوراك کجوري دی (ابوداود)

**تسهيلات:**

**قوله: نِعْمَ سَحُورُ الْمُؤْمِنِ التَّمْرُ:**

**په پيشمنۍ کښې د قجورو خوړلو استحباب:-** د پشمنی کله کله قجوري خوړل هم پکار دی او پشمنی خوړلو کښې برکت دې او دې سره چې د قجورې برکت يو ځائې شی نو نور علی نور به شی

---

) اخرجه ابوداود في السنن كتاب الصوم، باب من سمى السحور الغداء (رقم-٢٣٤٥)

# [٣] بَابُ تَنْزِيهِ الصَّوْمِ

د روژې د منافي څيزونو بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه تسعة عشر حديثاً مشتملة على على خمس مسائل.**

① ما ينزه عنه الصوم ويفسد به. ١، ٩، ١٠، ١٣، ١٩.

② ما يجوز في الصوم ولا يفسد به: ٢، ٣، ٤، ٥، ٨، ٩، ١١، ١٢، ١٣، ١٧، ١٨، ١٩.

③ عدم فطر الصوم بالنسيان: ٥.

④ وجوب الكفارة بإفساد الصوم عمداً: ٦.

⑤ الزجر على من لا ينزه الصوم من الفساد: ١٥، ١٦.

**د ماقبل باب سره مناسبت:-** په دې باب کښې به دَ روژې منافي بيان کيږي. د روژې منافي بعضې داسې څيزونه دي په کوم سره چه روژه بالکل فاسديږي لکه عمداً خوړل څکل او جماع کول اوبعضې داسې څيزونوبيان به کيږي په کوم سره چه به روژه فاسديږي نه ليکن مکروه کيږي لکه بغيردَ څه عذر نه دَ يوڅيز په ژبه سره څکل اوبيا توکل دغه شان دَ خوان سړي خپله ښځه ښکلول اودغه شان په غاښ کښې پاتې شوې خوراک باندې د روژې په حالت کښې شوخوند وهل مکروه دي

**په قصدسره د روژې ماتولو حکم:-** په قصدسره روژه ماتونکې باندې کفاره لازم راځي او په غلطئ سره اوبه په حلق کښې تللوسره کفاره نه بلکه قضاء لازم راځي

**د کفارې مقدار او ترتيب:-** دَ کفارې مقدار او ترتيب داسې دې

① که چرې غلام ملاويږي نودَ يوغلام آزادول دَ يوې روژې کفاره ده

② که غلام نه وي نو بيا شپېته ورځې يعني دوه مياشتې روژې په يوه مخه ساتل دي

③ که چرې دَدې طاقت نې نه وي نوبيا شپېتو مسکينانوته دوه وخته خوراک ورکول دي

**د روژه ماتولو عذرونه:-** دَ څه عذرونو اومجبوروَ وجې نه روژه ماتولې شي خوروستو بيا دَدې قضالازم ده يابه دَ فديې صورت وي

① يو سفردې دَ سفرد وجې نه روژه ماتولې شي

② دَ حامله يا مرضعه دپاره دَ مجبورنې په وخت روژه ماتول جائزدي

③ دَ اکراه په صورت کښې دَ روژه ماتې اجازت دې

④ دَ سختې بيمارنې دَ وجې نه دَ افطار اجازت دې

⑤ دَ بوداوالې دَ وجې نه دَ روژه ماتې اجازت دې

**د فديې مقدار او دا په چا لازم ده:** - د هرې ورځې د يوې ورځې روژې په بدله کښې به نيم صاع غنم د فديې په توګه ورکولې شي
① بيمار که جوړشو نو قضاء راوړي ګنی د هغه د طرف نه به فديه ورکولې شي
② د بوډا د پاره هم د فديې حکم دې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[١٩٩٩] روژې سره غير مناسب اعمال**

١٩٩٩ –()[1] ① عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ وَالْعَمَلَ بِهِ ③ فَلَيْسَ لِلّٰهِ حَاجَةٌ فِي أَنْ يَدَعَ طَعَامَهُ وَشَرَابَهُ»" رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې د روژې په حالت کې لغوه او باطل کلام او بيهوده افعال پرې نږدي ③ نو الله تعالی جل جلاله ته د دې خبرې پرواه نشته چې هغه خپل خوراك څښاك پريږدي دي. (بخاري)

**حل اللغات:** - ① الزُّور: أي الْبَاطِلَ: ناروا او د ګناه خبرې.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ لَمْ يَدَعْ قَوْلَ الزُّورِ:

**د حلالو څخه پرهيزاو د حرامو ارتکاب:** - روژه د انسان په بدن کښې د بدلون راوستو په غرض سره فرض کړې شوې ده لکه څنګه چه په دې عبادت سره د انسان باطنی احساسات او خيالات او د هغه کيفيات اوجذبات کښې نيك بدلون راځی دغه شان د انسان په ظاهری اندامونوکښې هم بدلون راتلل پکاردی لهذا د ده په سترګو، شرمګاه کښې بدلون راتلل پکاردی. د ده په لاس خپو او ژبه غوږونوکښې بدلون راتلل پکاردی د سوچ مقام دې چه يو طرف ته دا نسان د روژې په حالت کښې د حلال خوراك اوڅښاك نه ځان ساتی اوبل طرف ته حرام غيبت اوحرام دروغ فضول اوباطل کارونوکښې اخته وی. نو د خوراك څښاك نه ځان ساتلوڅه فائده شوه؟ هم دا مضمون په دې حديث کښې بيان کړې شوې دې چه يوسړې په روژه کښې د حرامو څيزونونه ځان نه ساتی نو د حلال څيزونونه پرهيزکول او د روژې ساتلو الله تعالی ته هيڅ پرواه نشته

**د صوفيانو په نيز د روژې درې قسمونه:** - اهل تصوف ليکی چه د روژې درې قسمونه دی
① يوه د عوامو روژه ده په کوم چه خلق صرف د خوراك څښاك او جماع نه پرهيزکوی.
② دويمه د خواص روژه ده په کوم کښې چه هغه خلق د خپلو اندامونو خپلو احساساتو

[1] اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب من لم يدع قول الزور، والعمل به في الصوم (رقم-١٩٠٣) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في الغيبة والرفث للصائم(رقم-١٦٨٩) واحمد في المسند ٤٥٢/٢

جذباتو او لذاتو اومکروهاتو نه ځان ساتي

④ دريم د اخص الخواص روژه ده په کوم کښې چه هغه خلق خپل ځان دَ غيرالله طرف ته د تلو نه بچ کوي

**[۲۰۰۰]په روژه کښې د ښکلولو حکم**

(۲)[۲] ①وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُقَبِّلُ وَيُبَاشِرُ وَهُوَ صَائِمٌ ③ وَكَانَ أَمْلَكَكُمْ لِأَرَبِهِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ".

**ترجمه:** ① بي بي عايشه ﷺ فرمايي ② چي رسول الله ﷺ به د روژي په حالت کي ‹د خپلو بيبيانو څخه› مچي ‹پپه› اخستله ③ او د خپل بدن سره به يي لګولی خکه چي حضور ﷺ په خپل حاجت باندې ستاسو څخه زيات قابو موندونکی وو. ‹بخاري مسلم›

**حل اللغات:** - ①يُقَبِّلُ :مچي ‹پپه› به نې آخستله. يعنی ښکلوله به نې ②يُبَاشِرُ: اى يُلصِقُ الْبَشَرَةَ بِالْبَشَرَةِ: بدن سره به نې بدن لګولو. ③أَمْلَكَكُمْ: يو شی باندې قابو موندلو ته ملک وائی. يعنی زه ستاسو نه زيات قابو موندونکي يم ④أَرَبِهِ:حاجت اوضرورت ته ارب اومارب وائی. ‹ددې نه مراد شهوت دې›

**تسهيلات:** **قوله** :لِأَرَبِهِ:

دلته دَ حاجت نه مراد جماع او شهوت دې. يعنی دَ حضورپاك بعضې ازواج مطهرات سره دَ روژې په حالت کښې ښکلول او مينه کيدله ليکن حضورپاك به په خپلو جذباتو باندې مکمل قابولرله

**د روژه دار دپاره د بوسې اخستلو حکم:** - دَ ښکلولو اومينې کولو باره کښې ائمه احناف فرمائي که دَ ښکلولو او دَمينې کولو دَ وجې نه دَ جماع او انزال ويره وی نودا مکروه دی اوکه دَدې ويره نه وی نوبيا مکروه نه دی بعضې رواياتوکښې دَ ځوان دَپاره ممانعت راغلې دې اودَ بوډا دَپاره دَ اجازت ذکر دې

**[۲۰۰۱]د جنابت روژې سره عدم منافات**

(۲)[۳] ①وَعَنْهَا قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُدْرِكُهُ الْفَجْرُ فِي رَمَضَانَ وَهُوَ جُنُبٌ ③مِنْ غَيْرِ حُلُمٍ ④فَيَغْتَسِلُ وَيَصُومُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

---

[۱] اخرجه البخاری کتاب الصوم رقم الحديث ۱۹۲۷. ومسلم فی صحيحه رقم الحديث ۶۵/ ۱۱۸۶ ابوداود فی السنن کتاب الصوم . باب القبلة للصائم(رقم ۲۳۸۲) وابن ماجة کتاب الصيام/باب ما جاء فی المباشرة للصائم(رقم-۱۶۸۷) واحمد فی المسند ۴۲/۶

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الصوم/باب اغتسال الصائم (رقم-۱۹۳۰) ومسلم فی کتاب الصيام/باب صحة صوم من طلع عليه الفجر وهو جنب (رقم-۷۶ - (۱۱۰۹) وابوداود کتاب الصوم/باب فيمن أصبح جنبًا فی شهر رمضان (رقم-۲۳۸۸) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الجنب يدركه الفجر وهو يريد الصوم (رقم-۷۷۹) وابن ماجة کتاب الصيام/باب ما جاء فی الرجل يصبح جنبًا وهو يريد الصيام (رقم-۱۷۰۴)

**ترجمه:**[۱] بي بي عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې كله به داسې وو چې نبی كريم صلى الله عليه وسلم به د جنابت (يعني ناپاكي د كوروالي په وجه) په حالت كې سحر كولو [۳] او دا جنابت به د احتلام (په خوب كې د غسل اوړيدو) په وجه نه وو[۴] نو په داسې حالت كې به نبی كريم صلى الله عليه وسلم لامبل او روژه به يې نيوله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① غَيْرِ حُلُمٍ: أَيْ مِنْ غَيْرِ احْتِلَامٍ بَلْ مِنْ جِمَاعٍ: يعنی دا جنابت به په خوب كښې د احتلام په وجه نه وو بلكه د جماع په وجه به وو

**تسهيلات:**

**د حديث فوائد:** - دَدې حديث مطلب دادې چه بعضې وخت به حضورپاك دَ جماع دَ وجې نه په جنابت كښې وو او صبح صادق به كيدلو اودَ حضورپاك به روژه هم وه او په جنابت كښې به هم وو.

① دَ جنابت په حالت كښې دَ روژې نيت كول جائزدی ځكه چه حضورپاك دَ صبح صادق نه مخكښې دَ روژې نيت كولوسره دَ جنابت په حالت كښې اوده شوې وو

② جنابت پخپله دَ احتلام دَ وجې نه وی يا دَ جماع دَ وجې نه وی هغه دَ روژې منافی نه دې

③ كه چاته دَ ورځې احتلام اوشی نودَ جنابت دَ وجې نه روژې ته نقصان نه رسی

④ دَ جنابت په حالت كښې پيشمنی كول جائز دی.

[۲۰۰۲] دَروژې په حالت كښې د ښكرلګولو حكم

―()[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: [۲] «إِنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - احْتَجَمَ وَهُوَ مُحْرِمٌ، [۳] وَاحْتَجَمَ وَهُوَ صَائِمٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[۱] ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي [۲] چې نبي كريم ﷺ د احرام په حالت كې ښكر ولګولو (يعنی وينه يې وخكله)[۳] او نبی كريم صلى الله عليه وسلم د روژې په حالت كې هم وينه وخكله. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① احْتَجَمَ: دا دحجامة نه ماخوذ دې، ښكرلګولو ته حجامه وائی. (يعنی د بدن نه ني فاسده وينه اوويستله، ② مُحْرِمٌ: په حالت د احرام كښې وو.

**تسهيلات: قوله:** احْتَجَمَ:

**دحجامه طريقه:** - دَدې دا طريقه وی چه اول دَمريض بدن په ستن وغيره څه څيز سره زخمی كولې شی بيا په هغې باندې دَ غوا ښكر كيخودې شی اودَ ښكردَ څوكې والاسر كښې وروكې شان سورې كولې شی هم دا سورې په خله كښې كيخودوسره په زور سره دَ سا په

[۱] اخرجه البخاری فی كتاب الصوم/باب الحجامة والقيء للصائم (رقم-۱۹۳۸) وابوداود كتاب الصوم/باب فی الرخصة فی ذلك (رقم-۲۳۷۳) والترمذی كتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء من الرخصة فی ذلك (رقم-۷۷۵) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فی الحجامة للصائم (رقم-۱۶۸۲)

ذریعه دَ مریض دَ بدن نه وینه راښکلې شی په دې کښې مریض ته تکلیف نه کیږی او داعمل دَ ډیرو بیمارو دپاره فائده مند دې خاص کر دَ بلډ پریشر دپاره ډیر نافع دې البته سړې هر کال دَدې عادت کیږی

## په حجامه د روژې په ماتیدو کښې مذاهب:-

① امام احمد بن حنبل رحمه الله فرمائی دَ مریض او د اکټر دواړو روژه ماتیږی قضا لازم ده کفاره نه ده ② ائمه جمهور فرمائی دَ روژه دار دپاره ښکرلګول بغیر دَ کراهت نه جائز دی دَمریض دپاره هم جائز دی اودَ علاج کونکی دپاره هم جائز دی

**داول فریق دلیل:** - دَ اول فریق دلیل راتلونکې دَ شداد بن اوس رضي الله عنه حدیث نمبر ۲۰۰۳ دې

**جواب:** - د دې جواب به په ۱۴ نمبر حدیث په شرح کښې روسته راشی

**دویم فریق دلیل:** - زیر بحث حدیث دویم فریق دلیل دې

**[۲۰۰۲] په هیره خوراك څښاك كولو سره د روژې نه ماتيدل**

— ( ) [۵] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَنْ نَسِيَ وَهُوَ صَائِمٌ فَأَكَلَ أَوْشَرِبَ ③ فَلْيُتِمَّ صَوْمَهُ، فَإِنَّمَا أَطْعَمَهُ اللهُ وَسَقَاهُ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② کوم سړي چې روژه دار وي او په هیره خوراك او څښاك اوكړي ③ نو هغه ته پكار دي چې خپله روژه پوره كړي ځكه چې د هغه خوړل څكل د الله د طرف څخه دي. (بخاري مسلم)

**تسهیلات: قوله:** مَنْ نَسِيَ وَهُوَ صَائِمٌ:

## په هیره باندې د روژې په ماتیدو کښې مذاهب:-

دَ جمهور ائمه په نیز په هیره سره یو روژه دار خوراك څښاك اوكړو نو په دې سره دَهغه روژه ماته نه شوه البته دَدې نه پس خوراك كول منع دی دغه شان په هیره سره جماع كول هم معاف وی ② امام مالك رحمه الله فرمائی چه كوم سړی په هیره سره څه خوراك څښاك اوكړو نودَهغه روژه ماتیږی اوقضا لازم ده كفاره نشته دي

**داول فریق دلیل:** - دوی روژه په مونځ باندې قیاس كوی

**جواب:** - دا قیاس صحیح نه دي ځكه چه دَ مونځ په حالت كښې حالت وریادونكې دې اودَ روژې حالت داسې نه دې

**د دویم فریق دلیل:** - زیربحث حدیث د دویم فریق مستدل دې كوم چې په خپله مدعا ښكاره دلیل دې.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب الصائم إذا أكل أو شرب ناسيًا (رقم-۱۹۳۳) ومسلم كتاب الصيام/باب أكل الناسي وشربه وجماعه لا يفطر (رقم-۱۷۱ - (۱۱۵۵) وابوداود كتاب الصوم/باب من أكل ناسيًا (رقم-۲۳۹۸) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصائم يأكل أو يشرب ناسيًا(رقم-۷۲۱)

## [۲۰۰٤] په قصد سره د روژې ماتولو کفاره

(۲)[۱]وَعَنْهُ قَالَ: [۲]«بَيْنَمَا نَحْنُ جُلُوسٌ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ هَلَكْتُ، [۴] قَالَ: "مَا لَكَ؟" قَالَ: وَقَعْتُ عَلَى امْرَأَتِي وَأَنَا صَائِمٌ، [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "هَلْ تَجِدُ رَقَبَةً تُعْتِقُهَا؟" قَالَ: لَا، [٦] قَالَ: "فَهَلْ تَسْتَطِيعُ أَنْ تَصُومَ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ؟" قَالَ: لَا، [۷] قَالَ: "هَلْ تَجِدُ إِطْعَامَ سِتِّينَ مِسْكِينًا؟" قَالَ: لَا

**ترجمه:** [۱] ابوهريره ﷛ فرمايي [۲] چې مونږ د نبي كريم ﷺ سره ناست وو [۳] اچانك يو سړي چې د هغه نوم سلمه بن صخر الانصاري البياضي وو، د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو هغه اوویل چې یا رسول الله! ﷺ (د يوی ګناه سرزد کیدو په وجه) زه تباه شوم [۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم پوښتنه ځيني وکړه چې په تا څه وشو؟ هغه اوویل چې د روژې په حالت کې مې د خپلې ښځې سره جماع وکړه [۵] نبی کريم صلی الله عليه وسلم تري نه پوښتنه وکړه چې آيا ستا سره غلام شته چې ته يې (د كفاري په طور) آزاد کړې؟ هغه اوويل چې نه [٦] نبی کريم صلی الله عليه وسلم تري نه پوښتنه وکړه چې په تا کې دومره طاقت شته چې دوه مياشتې پرله پسې روژې ونيسې؟ هغه اوويل چې نه [۷] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ځيني بيا پوښتنه وکړه چې ته دومره استطاعت (وس) لرې چې په شپيتو مسکينانو طعام وخورې؟ هغه اوويل چې نه

[۱] قَالَ: "اجْلِسْ" وَمَكَثَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -، [۲] فَبَيْنَمَا نَحْنُ عَلَى ذَلِكَ أُتِيَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِعَرَقٍ فِيهِ تَمْرٌ، (۲) وَالْعَرَقُ الْمِكْتَلُ الضَّخْمُ، [۳] قَالَ: "أَيْنَ السَّائِلُ؟"، قَالَ: أَنَا، [٤] قَالَ: "خُذْ هَذَا فَتَصَدَّقْ بِهِ" . [٦] فَقَالَ الرَّجُلُ: أَعَلَى أَفْقَرَ مِنِّي يَا رَسُولَ اللَّهِ، [۷] فَوَاللَّهِ مَا بَيْنَ لَابَتَيْهَا يُرِيدُ الْحَرَّتَيْنِ أَهْلُ بَيْتٍ أَفْقَرُ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي؟ [۸] فَضَحِكَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - حَتَّى بَدَتْ أَنْيَابُهُ [۹] ثُمَّ قَالَ: "أَطْعِمْهُ أَهْلَكَ"» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] نو نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل بښه ده. ته کينه او نبی کريم صلی الله عليه وسلم په دې انتظار کې وو اچې څوك څه راوړي نو هغه ته يې ورکړي چې هغه يې بطور کفاره صدقه کړي) [۲] مونږ دغه شان ناست وو چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کې يو (غونچه،عرق) راغې چې په هغې کښې کجورې وې [۳] نبی کريم صلی الله عليه وسلم بڅپله ليدو سره وفرمايل چې سايل (پوښتنه کونکې) چيرته دې؟ هغه عرض وکړو چې

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الصوم/باب إذا جامع فی رمضان، ولم یکن له شیء، فتصدق علیه فلیکفر (رقم-۱۹۳٦) ومسلم کتاب الصیام/باب تغلیظ تحریم الجماع فی نهار رمضان علی الصائم، ووجوب الکفارة الکبری فیه وبیانها، وأنها تجب علی الموسر والمعسر وتثبت فی ذمة المعسر حتی یستطیع (رقم-۸۱ - (۱۱۱۱) وابوداود کتاب الصوم/باب کفارة من أتی أهله فی رمضان (رقم-۲۳۹۰) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کفارة مفطر فی رمضان(رقم-۷۲٤) وابن ماجة کتاب الصیام/باب ما جاء فی کفارة من أفطر یومًا من رمضان (رقم-۱٦۷۱) ومالك فی الموطا کتاب الصیام/باب کفارة من أفطر فی رمضان (رقم-۲۸)

جناب زه حاضر یم[۵] نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې دا کجورې واخله او په محتاجو باندې یې تقسیم کړه [۶] هغه عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ آیا زه دا داسې سړي ته ورکړم چې زما څخه هم زیات محتاج وي؟ (یعني د ټولو څخه زیات محتاج زه یځپله یم نورو خلقو ته یې څرنګه ورکړم؟)[۷] قسم په الله د مدینې د دواړو غاړو په مینځ کې هيڅ کور داسې نشته چې زما څخه زیات محتاج وي [او د مدینې د دواړو غاړو څخه د هغه مراد هغه دوو غرونه وه (چې د مدینې شرقی طرف او غربی طرف ته واقع دي)[۸] نبي کریم ﷺ د هغه خبرې اوریدو سره وخندل تردې چې مخکنې (څلور) غابنونه مبارك يې ښکاره شو[۹] بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ښه ده دا کجورې په خپل اهل وعیال باندې وخورو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① وَقَعْتُ: أَيْ جَامَعْتُهَا: دلته د وَقَعْتُ (يعنی پرېوتلو) نه مراد جماع کول دی ② مُتَتَابِعَيْنِ پرله پسې روژې نیول. ③ مَكَثَ: أَيْ لَبِثَ: وخت نې تیر کړو ④ بِعَرَقٍ: د کجورو د پوستکو نه جوړه شوې ټوکرئ. زمبیل. ⑤ الْمِكْتَلُ: أَيِ الزِّنْبِيلُ: تهیلئ، زمبیل ⑥ الضَّخْمُ: أَيِ الْعَظِيمُ: لونې تیلئ ته وائی چې په هغه کې به د شپیته ۶۰ سیره څخه تر اتیا ۸۰ سیره پورې کجورې راتلې ⑦ لَابَتَيْهَا: د لابة تثنیه ده، توره کاڼړیزې زمکه، أَيْ مَا بَيْنَ أَطْرَافِهَا: اى فى طُرُقِ الْمَدِينَةِ مِنَ الشَّرْقِيَّةِ وَالْغَرْبِيَّةِ دې ته حَرَّةٌ هم وائی ⑧ الْحَرَّتَيْنِ: د تورو کاڼړو والا زمکه کومه چه د مدینې مشرقی او مغربی لاره ده ⑨ أَنْيَابُهُ: په خله کښې هغه غابنونه کوم چه د رباعی نه پس دی (مخامخ د منځ غابنونو ته ثنایا وائی وریسې رباعی دی بیا انیاب دی)

**تسهيلات:**

**قوله: إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ:**

**په حدیث کښې د رجل مصداق:**- ددې صحابی نوم سلمه بن صخر بیاضی انصاری ﷺ دي ددې د ښخوباره کښې نازل وو ددې حدیث نه علاوه بل روایت کښې دا تفصیل دې چه حضورپاك د هغه نه تپوس اوکړو چه تا جماع ولې اوکړه؟ هغه جواب ورکړو چه ما کله دخپلې بی بی پانزیب اولیدل نوصبر نه شوم حضورپاك ارشاد اوفرمائیلو چه ستې آزاد کړه هغه د خپل ستې طرف ته اشاره اوکړه چه په الله قسم چه دخپل ستې نه علاوه زه دهيڅ يوستې مالك نه يم حضورپاك ارشاد اوفرمائيلو چه دوه مياشتې روژې اوساته هغه ونيل چه اوس انختې يم خو هم ددې روژې د وجې نه يم يعنى د يوې مياشتې طاقت اوصبر نشته نودوه مياشتې بـه څنګه صبر کوم حضورپاك ونيل دا غله واخله اود مدينې په فقيرانو باندې تقسيم کړه راشه دا ستا کفاره ده هغه اوونيل په الله قسم چه د مدينې په اطرافو کښې زمانه زيات څوك فقيرنشته دې حضورپاك مسکې شو او ورته نې اوفرمائيل خپل بال بچ باندې اوخوره وه اوس دلته دوه لوئې اختلافي مسئلې دى.

**د کفارې په سبب کښې مذاهب:-**

کفاره صرف د جماع په وجه سره راځي يا د خوراك څښاك د وجې نه هم کفاره راځي

① امام شافعي رحمه الله او امام احمدبن حنبل رحمه الله فرمائي چه کفاره صرف په جماع سره واجب کيږي

② د امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله په نيز د رمضان په روژه کښې د جماع په شان په قصد سره خوراك څښاك کولو سره هم کفاره واجب کيږي

**د اول فريق دليل:-** زير بحث حديث د اول فريق مستدل دې په کوم کښې چه د جماع د کفارې ذکر دې

**د دويم فريق دليل:-** احناف او مالکيه د حضرت عائشه رضي الله عنها د روايت نه استدلال کړې دې کوم چه امام نسائي رحمه الله په صحيح سند سره داسې نقل کړې دې «عن عائشة انه عليه السلام سأله رجل فقال عليه السلام افطرت في رمضان فأمره بالتصدق بالعروق ولم يسأله بماذا افطر» (رواه النسائي بسند صحيح)

**د اول فريق د دليل جوابونه:-** ① په دې حديث کښې د جماع ذکر دې ليکن د خوراك څښاك د وجې نه د کفارې څه نفي نشته دې.

② په جماع کښې د وجوب کفاره د وجې نه او سبب او علت جماع نه ده بلکه د روژې ماتول دي او روژه ماتې په خوراك څښاك سره هم کيږي.

**د غريب شخص د غربت په وجه د کفارې په سقوط کښې مذاهب:-**

په دې حديث کښې دويمه اختلافي مسئله داده چه آيا د فقير او غريب سړي نه په وجه د فقر کفاره ساقط کيږي که نه؟

① امام احمدبن حنبل رحمه الله او څه نورو علماؤ په نيز ساقط کيږي

② د جمهورو په نيز نه ساقط کيږي

**د اول فريق دليل:-** زير بحث حديث د اول فريق مستدل دې دلته د هغه فقير سړي نه کفاره ساقط شوه بلکه هغه کفاره پخپله اوخوړله

**د اول فريق د دليل جوابونه:-** ① دا حديث د هغه سړي خصوصيت وو ځکه چه دا هم د هغه سړي خصوصيت وو چه د هغه نه د کفارې او طعام مطالبه کړې شوې وه حالانکه په هغه باندې د روژې کفاره يعنې دوه مياشتې روژې لازم وې

② دې حديث نه د اسلام د شروع وخت مراد دې روستو بيا دا حکم منسوخ شو او د کفارې تعين اوشو

③ دا سړې چونکه غريب وو هغه وخت د هغه سره د کفارې د پاره هيڅ نه وو او پخپله محتاج وو نو د هغه د پاره کفاره بالدين په صورت کښې مؤخر کړې شوه چه روستو بيا اداکړه

**د دويم فريق دليل:** - هغه ټول نصوص د دويم فريق مستدلات دي په کومو کښې چه د غريب اومالدار هيڅ فرق نشته دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٠٠٥] ذ بل د ژبې په لوندوالي سره د روژې نه ماتيدل**

٢٠٠٥-(١)[٧] ① عَنْ عَائِشَةَ: «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُقَبِّلُهَا وَهُوَ صَائِمٌ ② وَيَمُصُّ لِسَانَهَا». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① د بي بي عايشي صديقي رضي الله عنها په باره کې منقول دي چې نبي کريم ﷺ به د روژې په حالت کې د هغې ښځه مچې (ښکل) آخستله ② او د هغې ژبه به يې په خپله خُله مبارکه کې نيوله (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يُقَبِّلُهَا: مچې (ښکل) به ئې آخستله، يعنې ښکلوله به ئې ② يَمُصُّ: چوپله (رودله) به ئې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَيَمُصُّ لِسَانَهَا:

**د ژبې څټلو مطلب:** - په مس لسان سره دا قطعًا نه لازميږي چه دَهغه توکانړې به ئې هم تيرې کړې وي بلکه يا صرف په ژبه رولوسره يا توکانړې ئې نه دي لګولې اوکه چرې توکانړې لګيدلې هم وي اوهغه ئې دَ خپلې خلې نه بهر اوغورزولې توجيه خکه ضروري ده چه د ټولوفقهاؤ په دې باندې اتفاق دې چه دَ بل توکانړې تيرولوسره روژه ماتيږي اوهسې داحديث ضعيف هم دې

**[٢٠٠٦] د ځوان اوبوډا دپاره په روژه کښې د ښکلولو جدا جدا حکم**

٢٠٠٦-(٢)[٨] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ «أَنَّ رَجُلًا سَأَلَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنِ الْمُبَاشَرَةِ لِلصَّائِمِ ② فَرَخَّصَ ③ وَأَتَاهُ آخَرُ فَسَأَلَهُ فَنَهَاهُ ④ فَإِذَا الَّذِي رَخَّصَ لَهُ شَيْخٌ ⑤ وَإِذَا الَّذِي نَهَاهُ شَابٌّ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې يو سړي د نبي کريم ﷺ څخه د روژې په حالت کې د مباشرت په باره کې پوښتنه وکړه (چې آيا زه د خپلې ښځې سره خپل بدن لګولې شم که نه؟) نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه ته اجازت ورکړو ③ د هغه څخه روسته يو بل سړي په خدمت کې حاضر شو د مباشرت په باره کې يې پوښتنه وکړه نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه منع کړی ④ کوم سړي ته چې يې د مباشرت اجازت ورکړي وو نو هغه بوډا وو او کوم چې يې منع کړي وو هغه ځوان وو (ابوداؤد)

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الصوم/باب الصائم يبلع الريق (رقم-٢٣٨٦)
(٢) اخرجه ابوداود في كتاب الصوم/باب كراهيته للشاب (رقم-٢٣٨٧)

**حل اللغات:** - ① اَلْمُبَاشَرَةُ: هِيَ الْقُبْلَةُ وَاللَّمْسُ بِالْيَدِ: ښځه ښکلول او ورته لاس اوړل. يا دښځې بدن سره خپل بدن لګول ② شَيْخٌ: بوډا، ③ شَابٌّ: خوان

**تسهيلات:**

**قوله: اَلَّذِي نَهَاهُ شَابٌّ:**

**په روژه کښې د ښځې سره د لوبو کولو حکم:** - خوان ئې ځکه رامنع کړو چه هغه خپل جذبات په قابو کښې نه شي ساتلې نو هغه به خپله روژه فاسد کړي او د بوډا جذبات دومره تيزنه وي په دې وجه ئې هغه ته د ښکلولو او مينې کولو اجازت ورکړو. د خوان دپاره دا ممانعت د بعضې علماؤ په نيز دمکروه تحريمي په درجه کښې دی او د بعضې علماؤ په نيز مکروه تنزيهي دی

بهرحال نن صبا بوډاګان هم په وجه دکمزورئې خپل جنسي حرکت قابو نه شي ساتلې په دې وجه د خوانانو په شان خطره هغوی ته هم ده لهذا په دې شغل کښې نه دی پرېوتل پکار شريعت په رمضان کښې د ښکلولو اومينې کولو ترغيب نه ورکوی بلکه شريعت د هغه مجبوره سړي خبره ښائي چه داسې قسم واقعه کيدو نه پس روژه خرابه شوه که نه، نو شارع عليه السلام اوخودل چه نه خرابيږي.

**[۲۰۰۷] په التو کولو د روژې د ماتيدو حکم**

۲۰۰۷-( )[۹] ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَنْ ذَرَعَهُ الْقَيْءُ وَهُوَ صَائِمٌ فَلَيْسَ عَلَيْهِ قَضَاءٌ ③ وَمَنِ اسْتَقَاءَ عَمْدًا فَلْيَقْضِ» ". ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ، ⑤ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ لَا نَعْرِفُهُ إِلَّا مِنْ حَدِيثِ عِيسَى بْنِ يُونُسَ ⑥ وَقَالَ مُحَمَّدٌ يَعْنِي الْبُخَارِيَّ: لَا أُرَاهُ مَحْفُوظًا.

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② په کوم سړي چې قي غالب شي (يعني پخپله راشي) او د هغه روژه وي نو په هغه قضاء نشته ③ او کوم سړي چې په حلق کې ګوته وغيره اچولو سره قصداً قي اوکړی نو هغه ته پکار دي چې د خپلې روژې قضاء راوړي. ④ ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي، ⑤ او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې مونږ دا حديث د عيسى بن يونس څخه علاوه په بل سند سره نه پيژنو ⑥ او محمد رحمه الله يعنی امام بخاري فرمايي چې زه دا حديث محفوظ نه ګنم (يعني دا حديث منکر دی).

**حل اللغات:** - ① ذَرَعَهُ: أَيْ غَلَبَهُ: غالب شي پرې،

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم /باب الصائم يستقيء عامدا (رقم-۲۳۸۰) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم /باب ما جاء فيمن استقاء عمدا (رقم-۷۲۰) کتاب الصيام /باب ما جاء فی الصائم يقيء (رقم-۱۶۷۶)

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَنِ اسْتَقَاءَ:**

**د قئ کولو مختلف صورتونه:** - ① بې اختياره قئ کيدو سره روژه نه ماتيږي که قئ په ډکه خله وي اوکه کم وي په دې شرط چه روژه دار دغه قئ فوري توګه باندې بهر اوغورزوي که واپس ئې تير کړو نو روژه ماتيږي.

② که قئ د حلق پورې راغلې وي او د بهر راتلو په ځائې غير اختياري توګه باندې دننه لاړو نو په دې سره هم روژه ماته نه شوه خلافاً لابی یوسف.

③ که قصداً ئې قئ اوکړو او هغه په ډکه خله وي نو د ټولو ائمه په نيز به روژه فاسد کيږي

④ که په ډکه خله نه وي نو د امام محمد رحمه الله په نيز بيا به هم روژه فاسديږي ليکن د امام ابويوسف رحمه الله په نيز به روژه نه ماتيږي اوهم دغه قول راجح دې

**په قئ د فساد الصوم په صورت کښې عدم کفاره:** - بهرحال د قئ په مسئله کښې که چرې روژه ماته هم شي نو کفاره نشته دې صرف قضاء ده

**[۲۰۰۸] په القئ کولو سره د روژې ماتيدل**

۲۰۰۸ - (۱۰) [۱] وَعَنْ مَعْدَانَ بْنِ طَلْحَةَ أَنَّ أَبَا الدَّرْدَاءِ حَدَّثَنِي [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَاءَ فَأَفْطَرَ [۳] قَالَ: فَلَقِيتُ ثَوْبَانَ فِي مَسْجِدِ دِمَشْقَ فَقُلْتُ: [۴] إِنَّ أَبَا الدَّرْدَاءِ حَدَّثَنِي أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَاءَ فَأَفْطَرَ [۵] قَالَ: صَدَقَ، وَأَنَا صَبَبْتُ لَهُ وَضُوءَهُ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د معدان بن طلحه په باره کې منقول دي چې ابو درداء هغه ته دا حديث بيان کړو [۲] چې رسول الله ﷺ د روژې په حالت کې قي اوکړو بيا يې روژه ماته کړه [۳] معدان وايي چې د دې خبرې روسته زه په دمشق کې د حضرت ثوبان رضي الله عنه سره ملاو شوم او هغه ته مې اوويل [۴] چې حضرت ابودرداء رضي الله عنه ما ته دا حديث بيان کړي دي چې نبي کريم ﷺ قي اوکړو او بيا يې روژه ماته کړه [۵] حضرت ثوبان رضي الله عنه وفرمايل چې ابو درداء بالکل رشتيا اوويل او په هغه موقع ما د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د اودس د پاره د اوبو انتظام کړي وو (ابوداؤد، ترمذي، دارمي)

**حل اللغات:** - ① صَبَبْتُ: أَيْ سَكَبْتُ: اړولې مې، اچولې مې ② وَضُوءَهُ: أَيْ مَاءَ وُضُوئِهِ: د اودس اوبه.

**تسهيلات:**

**قوله: قَاءَ فَأَفْطَرَ:**

**د نبی کريم د قئ کولو عذر:** - يعنی حضورپاك قئ اوکړو اود دې په ذريعه سره ئې روژه ماته

[۱] اخرجه ابوداود فی كتاب الصوم/باب الصائم يستقيء عامداً (رقم-۲۳۸۱) والترمذی كتاب الطهارة عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب الوضوء من القيء والرعاف (رقم-۸۷)

کړه مثلاً حضورپاك د څه بیمارئی یاکمزورئی یا د څه عذر د وجې نه نفلی روژه د ټې په ذریعه ماته کړه د حضورپاك دا عادت نه وو لیکن د څه مجبورئی د وجې نه به ئې دا سې کړې وی

**قوله: قَالَ: صَدَقَ:**

**د ابو درداء د قول تصدیق:** - یعني ابودرداء ﷺ چه کوم حدیث بیان فرمائیلې دې دا بالکل صحیح دې هم ما د حضورپاك د اودس اوبه د حضورپاك په مبارك اندامونو باندې بهیولې وې په دې سره معلومه شوه چه قې ناقض للوضوء دې اودا هم معلومه شوه چه په اودس کښې "استعانت من الغیر" یوحد پورې جائز دې کتاب الطهارة کښې تفصیل تیرشوې دې

**[۲۰۰۹] د روژې په حالت کښې د مسواك د استعمال جواز**

٢٠٠٩–(١)[١١]① وَعَنْ عَامِرِ بْنِ رَبِيعَةَ قَالَ: ②«رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَا لَا أُحْصِي يَتَسَوَّكُ وَهُوَ صَائِمٌ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① عامر ابن ربیعه ﷺ وایي② چې ما نبي کریم ﷺ د روژې په حالت کې په دومره زیات مسواك وهلو باندې لیدلې دي چې زه هغه شمیرلې نه شم (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① لَاأُحْصِي: زه نه شم شمیرلې. ② يَتَسَوَّكُ: مسواک به ئې وهلو

**تسهیلات:**

**قوله: يَتَسَوَّكُ وَهُوَصَائِمٌ:**

**د روژه دار دپاره د مسواك په استعمال کښې مذاهب:** -

① حضرت امام شافعی ﷫ فرمائی چه د روژه دار د پاره پس د زوال د نمر نه مسواك مکروه دې

② دامام مالك ﷫ او امام ابوحنیفه ﷫ په نیز مسواك که لوند وی اوکه اوچ وی که د زوال نه مخکښې وی اوکه د زوال نه پس وی هروخت د روزه دار دپاره د دې استعمال جائز دې

**داول فریق دلیل:** - مسواك سره د روژه دار د خلې خوشبوئی ختمیږی

**داول فریق د دلیل جواب:** - خوشبوئی په خله او غاښونو کښې نه وی بلکه د خالی خیټې د بخاراتو د وجې نه راوچتیږی مسواك کولو یا نه کولو سره په هغې باندې څه فرق نه پریوځی

**د دویم فریق دلیل:** - د روژې په حالت کښې مسواك کولوباندې دا حدیث واضح دلالت کوی

---

١) اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم . باب السواک للصائم (رقم - ٢٣٦٤)والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی السواک للصائم (رقم -٧٢٥)

[۲۰۱۰] په روژه کښې د رانجو لګولو جواز

(۱۲)[۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] اشْتَكَيْتُ عَيْنِي أَفَأَكْتَحِلُ وَأَنَا صَائِمٌ؟ [۳] قَالَ: "نَعَمْ"» [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، وَأَبُو عَاتِكَةَ الرَّاوِي يُضَعَّفُ.

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه وايي چې يو سړي د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو هغه اوويل چې يا رسول الله! ﷺ [۲] زما سترګې خوږيږي آيا زه د روژې په حالت کې (په سترګو کې) رانجه اچولي شم؟ [۳] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هو. [۴] امام ترمذي رحمه الله دا حديث نقل کړي دي او ويلي يې دي چې د دې حديث سند قوي نه دي او د دې يو راوي ابو عاتکه ضعيف شميرل کيږي.

**حل اللغات:** - ① أَفَأَكْتَحِلُ: آيا زه (په روژه کښې) رانجه لګولې شم؟

**تسهيلات:**

**قوله: أَفَأَكْتَحِلُ:**

**د روژې په باره کښې قاعده کليه:** - دلته مسئله داده چه دَ روژې په حالت کښې دَ بدن نه بهر کوم څيز دننه رسيږي دَ هغې دپاره دوه قسم لارې دي. يوه لار دَ خوله او سورې لکه پوزه خله غوږ او دبر دی دويمه لار دَ بدن دَمساماتو ده اوس چه کوم څيز دَمنافذ په ذريعه دننه لاړو په هغې سره روژه ماتيږي ليکن کوم څيزچه دَبدن دَمساماتو په لاره دننه لاړشي په هغې سره روژه نه ماتيږي لکه انجکشن يا رانجه يا دَ يخو اوبو يخوالې چه دې دا ټول څيزونه دَ مساماتو په ذريعه دننه ځي په کوم سره چه روژه نه ماتيږي خکه علماء ليکي چه په سترګه کښې رانجه اچولو سره دَدې چه په حلق کښې دَ هغې اثر محسوس وی بيا هم روژه نه ماتيږي خکه چه دا دَمساماتو په ذريعه دننه تلې دی

**دروژه دار دپاره د رنجو په استعمال کښې مذاهب:** -

① د جمهورو په نيزپه روژه کښې د رانجو لګول بغير د کراهته جائز دی

② ليکن امام احمد بن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهويه رحمه الله اوسفيان ثوری رحمه الله په نيز رانجه لګول مکروه دی بعضې ډاکټران وائی دَ سترګونه خيتې طرف ته منفذ او سورې دې په دې وجه په حلق کښې اثر محسوس کيږی که چرې منفذ دې نوبيا مسئله خطرناکه ده

---

) اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم/باب فی الصائم يحتلم نهاراً فی شهر رمضان باب فی الکحل عند النوم للصائم (رقم-۲۳۷۸) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الکحل للصائم (رقم-۷۲۶)

[۲۰۱۱] د روژې په حالت کښې په سر باندې د اوبو اچولو کراهت

۲۰۰۰-( )[۱۳] [۱] وَعَنْ بَعْضِ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«لَقَدْ رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِالْعَرْجِ [۳] يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ الْمَاءَ وَهُوَ صَائِمٌ [۴] مِنَ الْعَطَشِ أَوْ مِنَ الْحَرِّ» رَوَاهُ مَالِكٌ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] د نبي كريم ﷺ د بعضو اصحابو ﷺ څخه روايت دي [۲] چې مونږ په عرج مقام کې نبي كريم ﷺ وليدلو [۳] چې د روژې په حالت کې يې په سر مبارك اوبه اچولې [۴] د تندې د دفع كولو يا د ګرمې د دفع كولو د پاره (مالك ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① الْعَرْجِ: مَوْضِعٌ بَيْنَ مَكَّةَ وَالْمَدِينَةِ: دمكې اومدينې په مينځ كښې د يوځاى نوم دې ② يَصُبُّ: اوبه به ئې اچولې، ③ الْعَطَشِ: تنده، ④ الْحَرِّ: ګرمی

**تسهیلات:**

**قوله:** بِالْعَرْجِ يَصُبُّ عَلَى رَأْسِهِ الْمَاءَ:

**د روژه دار دپاره د اوبو ملابست کښې عدم کراهت:** - دا دمكې او د مدينې په مينځ كښې د يو ځاى نوم دې ابن الملك رحمه الله فرمائي چې دا په دې خبره باندې دلالت كوي چې صائم دپاره په سر اوبو اچول اوبه كښې ګرځيدل يا په دې بدن مالش كول وغيره مكروه نه دې اګر چې ددې تاثر د بدن دننه حصې ته اورسي (مرقاة ص/۲۶۸ ج/۴) خو داهم شرط دې چې دا د اوبو والا معامله د روژې نه د ويرې او پريشانۍ په وجه نه وي كه داسې وي نو بيا مكروه دې

[۲۰۱۲] په روژه کښې د ښکر لګولو حکم

۲۰۰۳-( )[۱۴] [۱] وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ [۲] «أَنَّ رَسُولَ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَتَى رَجُلًا بِالْبَقِيعِ [۳] وَهُوَ يَحْتَجِمُ وَهُوَ آخِذٌ بِيَدِي لِثَمَانِي عَشْرَةَ خَلَتْ مِنْ رَمَضَانَ، [۴] فَقَالَ: "أَفْطَرَ الْحَاجِمُ وَالْمَحْجُومُ" » [۵] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ. قَالَ الشَّيْخُ الْإِمَامُ مُحْيِي السُّنَّةِ - رَحْمَةُ اللَّهِ عَلَيْهِ -: [۶] وَتَأَوَّلَهُ بَعْضُ مَنْ رَخَّصَ فِي الْحِجَامَةِ [۷] أَيْ تَعَرَّضَا لِلْإِفْطَارِ: الْمَحْجُومُ لِلضَّعْفِ [۸] وَالْحَاجِمُ لِأَنَّهُ لَا يَأْمَنُ مِنْ أَنْ يَصِلَ شَيْءٌ إِلَى جَوْفِهِ بِمَصِّ الْمَلَازِمِ.

**ترجمه:** [۱] شداد بن اوس رضي الله عنه وايي [۲] چې د رمضان په اتلسم تاريخ رسول الله ﷺ (د مدينې قبرستان) په جنت البقيع کې يو داسې سړي خوا له تشريف راوړلو [۳] چې ډك ښكر يې رااوخکلو (وينه يې اوخکله) هغه وخت نبی كريم صلى الله عليه وسلم زما لاس نيولي وو [۴] وي وفرمايل چې وينه راخكونكي او د چا چې وينه وخكل شي خپلې روژې يې ماتې كړې. [۵] ابوداؤد ابن ماجه دارمي امام محي السنه رحمه الله فرمايي [۶] چې كوم علماء چې د روژې په حالت کې د ويني خكلو اجازت وركوي هغوئ د دې حديث تاويل كړي دي [۷]

---

( ) اخرجه ابوداود فى كتاب الصوم/باب الصائم يصب عليه الماء من العطش ويبالغ فى الاستنشاق (رقم-۲۳۶۵) ومالك فى الموطا كتاب الصيام/باب ما جاء فى الصيام فى السفر (رقم-۲۲)

( ) اخرجه ابوداود فى كتاب الصوم/باب فى الصائم يحتجم (رقم-۲۳۶۹) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فى الحجامة للصائم (رقم-۱۶۸۱)

يعني دا چې په دي ارشاد گرامي کې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم مراد دا دي چه. ويمه رخکونکي خو د ضعف په وجه د روژې ماتولو ته نږدې شي [٨] او وينه راوخکونکي په دې سبب افطار (د روژې ماتيدو) ته نږدې شي چې کيدې شي چې د وينې راخکلو د عمل سره د وينې څه حصه د هغه خيټې ته رسيدلې وي

**حل اللغات:-** ① الْبَقِيعِ : أَيْ بِمَقْبَرَةِ الْمَدِينَةِ: د مدينې منوره مقبره کومې ته چه جنت البقيع وائی. مخکښې به ورته بقيع الغرقد وئيلی شو ② يَحْتَجِمُ: ښکر ني لګولو. ③ خَلَتْ: أَيْ مَضَتْ: تيرې شوې وې. ④ الْحَاجِمُ: ښکر لګونکې. ⑤ يَمَصُّ الْمَلَازِمَ: اى قَارُورَةُ الْحَجَّامِ: د ښکر لګونکی هغه شيشه په کومه کښې چه وينه جمع کوی

**تسهيلات:**

**قوله: أَفْطَرَ الْحَاجِمُ:**

يعنې ښکرلګونکی او ښکرلګولووالا دواړو خپله روژه ماته کړه دَدې حديث دَدې نه وړاندې هم دَدې باب حديث نمبر...سره په ظاهره واضح تعارض دې په دې کښې په صف الفاظوسره ذکر دی چه حضورپاك هم دَ روژې په حالت کښې ښکرلګولې وو

**په ښکر لګولو سره د روژې په ماتيدو کښې مذاهب:-**

① دَ امام احمد رحمه الله مسلك دادې چه دَ ښکرلګولوپه عمل سره روژه ماتيږی

② دَ جمهور علماؤ په دې باندې اتفاق دې چه په ښکرلګولوسره روژه نه ماتيږی

**داول فريق دليل:-** زيربحث حديث د دوی مستدل دې

**داول فريق د دليل جوابونه:-** ①صاحب مصابيح محی السنة رحمه الله داسې وزکړې دې چه په اصل کښې دَافطر مطلب دادې چه دې دواړو خپلې روژې ماتولوته وړاندې کړې ښکرلګونکې سرې خو داسې روژې ماتولوته نيزدې شو چه وينه وتلوسره به کمزورې شی بيا به روژه ماتوی او ښکر لګولووالا روژه ماتيدوته داسې نيزدې شو چه کيدې شی په دې عمل کښې دَ وينې څه څاڅکې دَهغه په خله کښې ورشی

② دَ روژې په حالت کښې دا عمل دَ روژې فاسد کونکې خونه دې البته مکروه دې نودَ زير بحث حديث تعلق کراهت سره دې

③ حضورپاك دا کلام هغه وخت ارشاد فرمائيلې چه کوم وخت دَ روژې ماتی وخت شوې وو نو حضورپاك ارشاد اوفرمائيلوچه دَ دواړو روژه کولاؤشوه

④ حضرت ابن عباس رضي الله عنهما حديث سره داحديث منسوخ شوې دې په شروع کښې حکم هم داسې وو بيا منسوخ شو

⑤ دَ افطرنه مراد دَ اجر ختميدل دی چه دوی ته به دَ روژې ثواب نه ملاويږی خکه چه دَ حجامت په وخت دې دواړو دَ چا غيبت کولو.

**د دویم فریق دلائل:** - ① په دې باب کښې د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما حدیث نمبر ۲۰۰۲ د دوی مستدل دې کوم چه بخاري اومسلم شریف کښې نقل دې
② روستوراتلونکې حدیث نمبر ۲۰۰۵ هم د جمهورو مستدل دې د دواړو مضمون دې چه بنکرلګولوسره روژه نه ماتیږي

**[۲۰۱۲] بغیرد عذره د رمضان روژه ماتولو ګناه**

۲۰۰۳ — ()[۱۵] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «مَنْ أَفْطَرَ يَوْمًا مِنْ رَمَضَانَ مِنْ غَيْرِ رُخْصَةٍ وَلَا مَرَضٍ ③ لَمْ يَقْضِ عَنْهُ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ وَإِنْ صَامَهُ» " ④ رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ، ⑤ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: سَمِعْتُ مُحَمَّدًا يَعْنِي الْبُخَارِيَّ يَقُولُ: أَبُو الْمُطَوِّسِ الرَّاوِي لَا أَعْرِفُ لَهُ غَيْرَ هَذَا الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② کوم سړي چه بلا رخصته او بلا مرضه د رمضان روژه قصداً ونه نیسي ③ نو ټول عمر روژې نیول هم د دې بدل نشي کیدي (اګر که هغه ټول عمر روژه ونیسي) ④ (احمد ترمذي ابو داؤد ابن ماجه دارمي) امام بخاري دا روایت (د بخاري) په ترجمه الباب کې نقل کړي دي ⑤ او امام ترمذي ویلي دي چې ما د امام بخاري څخه اوریدلي دي چې زه ابو المطوس (د دې روایت) یو راوي د دې حدیث څخه علاوه د بل حدیث راوي نه پیژنم

**حل اللغات:** - ① غَيْرِ رُخْصَةٍ: بغیر د اباحت او اجازت نه یعني مسافر یا مریض نه وي

**تسهیلات:**

**قوله: وَإِنْ صَامَهُ:**

**د رمضان د روژې عظمت:** - یعني د رمضان روژه بغیرد عذر نه ماته کړه اوچه بیائي د کفارې په توګه ټول عمر روژې اوساتلې نوبیاهم دغه سړې د رمضان د روژې ثواب ته نه شي رسیدې په دې حدیث کښې د رمضان د روژو عظمت بیان کړې شوې دې اودا خبره ښکاره ده چه د رمضان په وختونوکښې د فرض روژو ساتلو ثواب په غیررمضان کښې نفل روژو سره څنګه حاصلیدې شي

**قوله: وَإِنْ صَامَهُ:**

**قصداً د رمضان روژې ماتولو قضاء او کفاره:** - جمله د ماقبل کلام د پاره تاکید دې ترکومې پورې چه د شرعي مسئلې تعلق دې نوعلماؤ لیکلي دي که یوسړي د رمضان روژه په قصد

[1] اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب إذا جامع في رمضان(تعليقا) وابوداود كتاب الصوم/باب التغليظ في من أفطر عمداً (رقم-۲۳۹۶) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الإفطار متعمداً(رقم-۷۲۳) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في كفارة من أفطر يوماً من رمضان (رقم-۱۶۷۲)

سره مه نه کړه او د هغه په ذمه کفاره راغله او هغه دوه میاشتې روژې ساتلو سره کفاره پوره کړی نو ذمه به ئې خلاصه شی یا په روژه ماتولو سره په هغه باندې قضا لازم وه او هغه قضا روژه اوساتله نو د رمضان د روژې نه داسې خلاص شو پاتې شوه د اصل ثواب ملاویدل نو د رمضان وخت او د هغې برکتونه خو نه شی حاصلیدلې

**[۲۰۱٤] بې روحه اوبې فائدې روژه**

(۱۲) ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«كَمْ مِنْ صَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ إِلَّا الظَّمَأُ ③ وَكَمْ مِنْ قَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ قِيَامِهِ إِلَّا السَّهَرُ» ". ④ رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَذُكِرَ حَدِيثُ لَقِيطِ بْنِ صَبْرَةَ فِي بَابِ سُنَنِ الْوُضُوءِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② ډیر روژه دار داسې دي چې هغوئ ته د خپلې روژې څخه سوا د تږې پاتې کیدو څخه نور هیڅ نه حاصلیږي ③ او د شپې په عبادت کې مشغول اوسیدونکې ډیر داسې دي چې د هغوئ د عبادت څخه سوا د بې خوابې څخه ورته نور هیڅ نه حاصلیږي. ④ ددې روایت دارمي کړې دې او د لقیط بن صبره حدیث بې په باب سنن الوضوء کښې ذکر کړې دې

**حل اللغات:** - ① كَمْ: دې ته کم خبری وائی معنی ئې ده ډیر. ② الظَّمَأُ: وَهُوَ الْعَطَشُ: تندې ته وائی ③ قَائِم: اودریدونکی، ددې نه مراد د شپې مونځ کونکی او تهجد کونکی دی ④ السَّهَرُ: بې خوابی. شوکیره

**تسهیلات:**

**قوله: لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ إِلَّا الظَّمَأُ:**

**دحدیث مطلب:** - مطلب دادې چه یو سړې روژه ساتی خو نه د هغه نیت صحیح دې نه اخلاص شته، نه ئې دروغ پریخودل او نه د بهتان او دروغو گواهنی نه منع شو او نه د هغه په باطن کښې په روژه سره څه بدلون راغلو او نه د هغه په ظاهری اعضاء کښې څه بدلون راغلو نو دې سړی ته به د اولګې او تندې نه سوا بل هیڅ هم حاصل نه شی سره د دې چه د فرض روژې نه د دې سړی غاړه خلاصه شوه خو د روژې د روح نه داسې محروم پاتې شو نو دې سړی بې روح او بې فائدې روژه اوساتله په کوم سره چه ده ته هیڅ حاصل نه شو دغه شان چه یو سړې د شپې په ریاکارئی سره عبادت کوی او د خان خودلو د پاره تهجد کوی نو ده ته صرف د بې خوابئی نه نو هیڅ نه ملاویږی

۱) اخرجه ابن ماجة في كتاب الصيام/باب ما جاء في الغيبة والرفث للصائم (رقم-۱۶۹۰)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۰۱۵] په احتلام سره د روژې نه ماتيدل**

۲۰۱۵ - ( )[۱۷] ① عَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «ثَلَاثٌ لَا يُفَطِّرْنَ الصَّائِمَ: ③ الْحِجَامَةُ وَالْقَيْءُ وَالِاحْتِلَامُ» ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَيْرُ مَحْفُوظٍ، وَعَبْدُ الرَّحْمَنِ بْنُ زَيْدٍ الرَّاوِي يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ.

**ترجمه:** ① ابوسعيد رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② درې څيزونه د روژه دار روژه نه ماتوي ③ ① وينه اوخكل ② قي كول چې پخپله راشي ③ احتلام. ④ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دي او ويلي يې دي چې دا حديث محفوظ نه دي د دې يو راوي عبدالرحمن بن زيد د حديث د روايت په سلسله كې ضعيف شميرل شوي دي

**حل اللغات:** - ① الْحِجَامَةُ: ښكر لګول (وينه ويستل)

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ أَبِي سَعِيدٍ:

**د روايت صحت:** - دا روايت دار قطني بيهقي او ابوداؤد هم نقل كړي دي دابو داؤد د حديث په باره كښې محدثينو ليكلي دي چې هغه (اشبه بالصواب) يعنى صحت ته زيات نژدې دي

**[۲۰۱٦] د ښكر لګولو كراهت**

۲۰۱٦ - ( )[۱۸] ① وَعَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ قَالَ: «سُئِلَ أَنَسُ بْنُ مَالِكٍ: ② كُنْتُمْ تَكْرَهُونَ الْحِجَامَةَ لِلصَّائِمِ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ ③ قَالَ: لَا، إِلَّا مِنْ أَجْلِ الضَّعْفِ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ثابت بناني رحمه الله وايي چې د انس بن مالك رضي الله عنه څخه پوښتنه وشوه ② چې آيا تاسو خلقو به د رسول الله صلى الله عليه وسلم په زمانه كې د روژه دار د پاره ښكر لګول (وينه اوخكل) مكروه ګڼل؟ ③ هغه اوويل چې نه، علاوه د خوف د كمزورې څخه (بخاري)

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ: لَا، إِلَّا مِنْ أَجْلِ الضَّعْفِ:

**داحنافو مستدل:** - دا حديث د احنافو مستدل دي چې په ښكر لګولو باندې روژه نه ماتى كه په ښكر لګولو باندې روژه ماتيدله نو بيا به نې ضرور ددې څخه منع كوله البته كه ضعف پيدا كوي نو بيا ښكر لګول مكروه دى

---

[1]) اخرجه الترمذي في كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الصائم يذرعه القيء (رقم-۷۱۹)
[2]) اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب الحجامة والقيء للصائم (رقم-۱۹٤۰)

**[۲۰۱۷] ابن عمر رضي الله عنه او په روژه کښې ښکر لګول**

۲۰۱۷-(¹)[۱۹] ① وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا قَالَ: ② كَانَ ابْنُ عُمَرَ يَحْتَجِمُ وَهُوَ صَائِمٌ، ثُمَّ تَرَكَهُ فَكَانَ يَحْتَجِمُ بِاللَّيْلِ.

**ترجمه:** ① امام بخاري رحمه الله بطريق تعليق نقل کړي دي ② چې ابن عمر رضي الله عنه به (مخکې خو) د روژې په حالت کې وينه اوخکله خو وروسته يې دا پرينښودل البته د شپې به يې ښکر لګولو (وينه به يې اوخکله)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَعَنِ الْبُخَارِيِّ تَعْلِيقًا

**د امام بخاري تعليقاً راوړلو مطلب:** - امام بخاري رحمه الله خيني احاديث بغير د سند نه نقل کړې دي لکه دا مذکوره بالاحديث شو بغير د سند نه د روايت نقل کولو ته بطريق تعليق نقل کول وئيلې کيږي ددې مذکوره بالا روايت په نقل کولو کښې مناسب دا وو چې د مشکوة مصنف حسب قاعده د معمول مطابق اول دا وئيلې وې چې عن ابن عمر رضي الله عنه الخ بيا به ئې روستو د رواه البخاري التعليق الفاظ نقل کړې وې.

**قوله:** ثُمَّ تَرَكَهُ فَكَانَ يَحْتَجِمُ بِاللَّيْلِ

**دابن عمر په روژه کښې دعدم احتجام دوه وجوهات:** - ① حضرت عبدالله ابن عمرو د روژې په حالت کښې ښکر لګول يا خو د احتياط په طور ترک کړې وو

② ابن عمر رضی الله عنه د ضعف په وجه ددې نه اجتناب کړي وو

**[۲۰۱۸] د لياري په تيريدو سره د روژې نه ماتيدل**

۲۰۱۸-(²)[۲۰] ① وَعَنْ عَطَاءٍ قَالَ: إِنْ تَمَضْمَضَ ② ثُمَّ أَفْرَغَ مَا فِي فِيهِ مِنَ الْمَاءِ ③ لَا يَضِيرُهُ أَنْ يَزْدَرِدَ رِيقَهُ، وَمَا بَقِيَ فِي فِيهِ ④ وَلَا يَمْضَغُ الْعِلْكَ فَإِنِ ازْدَرَدَ رِيقَ الْعِلْكِ ⑤ لَا أَقُولُ إِنَّهُ يُفْطِرُ وَلَكِنْ يُنْهَى عَنْهُ، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ فِي تَرْجَمَةِ بَابٍ.

**ترجمه:** ① عطاء (تابعي) رحمه الله وايي چې که روژه دار په خُله اوبه وګرخوی (کلی اوکړه) ② او بيا (بالکل) اوبه د خُلې څخه وباسي ③ نو د هغه روژې ته د دې سره نقصان نه رسيږي چې هغه خپلې لاړې او هغه څه چې په خُله کې باقی دی تير کړی ④ او روژه دار دې ژاولې نه ژويې او که چيرته روژه دار د ژاولی لاړې تيری کړي ⑤ نو زه خو دا نه وايم چې د هغه روژه ماته شوه ليکن د دې څخه به منع کول کيږی. دا روايت امام بخاري په ترجمة الباب کې نقل کړي دي

(¹) اخرجه البخاري في کتاب الصوم/باب الحجامة والقيء للصائم (تعليقا)

(²) اخرجه البخاري في کتاب الصوم/باب اغتسال الصائم

**حل اللغات:** - ① تَمَضْمَضَ: خُله كښې اوبه واچوى. ② أَلْزَمُ: أَيْ: صَبَّ: تونې كړى. ③ لَايَضُرُّ: أَيْ: لَايَضُرُّ صَوْمَهُ. يعنى دده روژې ته نقصان نه رسوى ④ يَزْدَرِدَ: أَيْ يَبْتَلِعَهُ: تيرنې كړى. د اودس نه پس د اوبو لوندوالې او توكانړې تيرولو ته از دراد وائى ⑤ رِيقَهُ: لعاب يعنى لاړې. ⑥ وَلَا يَمْضُغُ: اونه دې جوى. ⑦ الْعِلْكَ: جوله

**تسهيلات:**

**قوله: أَنْ يَزْدَرِدَ رِيقَهُ:**

**په خُله كښې د مضمضه په باقى پاتې اوبو د روژې نه ماتيدل: -**

مطلب دادې چه يوسړې دَ اودس دَپاره غرغرې كوى او اوبه بهر غورزوى دومره كافى دى دې نه پس چه په خله كښې لوندوالې او يخوالې محسوسيږى دَ هغې په تيريدو سره روژې ته نقصان نه كيږى خكه چه مسلسل توكولوسره به سړې دَ وهم ښكار شى اودَ هغه خله به اوچه شى لكه څنګه چه بعضې شكى مزاج خلق داسې كوى

**قوله: الْعِلْكَ:**

**د علك تفسير او حكم: -**

په غرونو كښې يوه ونه وى كوم ته چه بعضې علاقو كښې ديار وائى دې سره دَ ګوندو په شان يوڅيز لګيدلې وى لكه چه په نورو ونو كښې چير وى دغه شان يو ګوند دې كوم ته چه مصطګى رومى هم وائى دا په خله كښې اچولو سره چيلې شى دې سره غابنونه هم صفا كيږى اودَ غابنونو درد او ډيرې قسم بيمارئى ختميږى دا لوګه زياتوى او پنسارياڼوسره داڅيزملاويږى داچه كله په شروع كښې چيوى نودا په خله كښې ذره ذره كيږى ليكن روستودَ جاؤلې په شان بالكل يوځائى كيږى او په رابنكلوسره دې نه اوږد تار هم راوځى دا دوه نيمې ګهنټې نه پس خرابيدو سره ختميږى دا خلق په غرونو كښې چيوى په خله كښې دَ دې لاړې جوړيږى په كوم كښې چه معمولى شان خوشبوئى هم وى دلته په حديث كښې هم دَدې ذكر دې دا ګوند چه كله جوړشى نودَ هغې چيول په روژه كښې مناسب نه دى ليكن دا چا اوچيولو او دَدې څه ذره خيټې ته دننه لاړه نه شى نو په دې سره روژه نه ماتيږى. خو احتياط هم دې كښې دې چه دې نه منع شى پښتو كښې دې څيزته لاك وائى

# [۴] بَابُ صَوْمِ الْمُسَافِرِ

**دَمسافر روژه**

**خلاصة الباب:-**

**فيه عشرة احاديث مشتملة على على ثلاث مسائل:**

① رخصة الإفطار في رمضان للمسافر: ۱، ۲، ۳، ۵، ۶، ۸، ۱۰۔

② وجه جواز الإفطار للمسافر رفع الضرر عنه: ۳، ۸، ۹۔

③ فضيلة الصوم: ۷۔

**د مسافر د افطار ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ وَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَّرِيْضًا اَوْعَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ﴾ [سورت بقره الايه ۱۸۵] وقال الله تعالى ﴿ وَاَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ ﴾ [سورت بقره الايه ۱۸۵]

**د باب صوم المسافر خلاصه:-** په دې باب کښې ټول دَ لسو احاديثو ذکر دې په دې ټولو احاديثو کښې دَ مسافر دَ روژې باره کښې دَ مسائلو او احکامو ذکر دې چه آيا دَ سفر په حالت کښې روژه ساتل جائزدی که نه که چرې جائزوی نو ساتل ئې غوره دی که نه خلاصه داده که چرې دَ مسافر په سفر کښې سهولت اوراحت وی نو روژه ساتل پکاردی دَ رمضان دَ وختونو دَ برکتونو دَ وجې نه روژه ساتل غوره دی اوکه چرې په سفر کښې سخت مشقت وی اوبيا هم مسافر روژه ساتی او افطار جائزنه ګنړی نو دا سړې ګناهګار دې. دَ سفرنه مراد شرعی سفردې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۰۱۹] په سفر کښې دَ صوم او افطار حکم**

۲۰۱۹-(۱)[۱] ۱ عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ۲ «إِنَّ حَمْزَةَ بْنَ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيَّ قَالَ لِلنَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۳ أَصُوْمُ فِي السَّفَرِ؟ ۴ وَكَانَ كَثِيرَ الصِّيَامِ، ۵ فَقَالَ: "إِنْ شِئْتَ فَصُمْ وَإِنْ شِئْتَ فَأَفْطِرْ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي ۲ چې حمزه ابن عمرو اسلمي رضي الله عنه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم څخه پوښتنه وکړه ۳ چې آيا زه د سفر حالت کې روژه ونيسم؟ يعني که زه په رمضان کې سفر کوم نو روژه ونيسم او که يې ونه نيسم؟ په په دي باره کې څه حکم دي؟ ۴ او حمزه رضي الله عنه به ډيري زياتي روژي نيولي ۵ نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الصوم/باب الصوم فی السفر والإفطار (رقم-۱۹۴۳) ومسلم کتاب الصيام/باب أجر المفطر فی السفر إذا تولى العمل (رقم-۱۰۳ - (۱۱۲۱)) وابوداود کتاب الصوم. باب الصوم فی السفر (رقم-۲۴۰۲) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی الرخصة فی الصوم فی السفر(رقم-۷۱۱) والنسائی کتاب الصوم/سرد الصيام (رقم-۲۳۸۴) وابن ماجه کتاب الصيام/باب ما جاء فی الصوم فی السفر (رقم-۱۶۶۲) ومالک فی الموطا کتاب الصيام/باب ما جاء فی الصيام فی السفر (رقم-۲۴)

وفرمايل چې دا ستا په مرضئ منحصره ده كه يې نيسې يا يې نه نيسې (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: إِنْ شِئْتَ فَصُمْ:**

**په مطلق سفر كښې د افطار اجازت:-** په دې باندې دَ علماؤ اتفاق دې چه په سفر كښې روژه ساتل او نه ساتل دواړه جائز دي كه سفر دَ راحت او آرام سره وي يا مشقت او تكليف سره وى البته كه سهولت چرته وى نو روژه ساتل افضل دى په دې شرط چه روژه نه ساتل هم جائز گنړى دَ احنافو په نيز داحكم دَهرقسم سفردَ پاره دې كه دَ جائز امورو دَ پاره سفر وى يا دَ ناجائز امورو دَ پاره وى دَدې سهولت تعلق صرف سفر سره دې امام شافعي رحمه الله فرمائي دَدې سهولت تعلق صرف هغه سفرسره دې كوم چه جائز سفروى دَ معصيت والا سفر دَپاره دا شرعي سهولت نه شي وركولې لهذا كوم مسافر چه دَ غلا دَ پاره روان وى هغه به دَ دغه سهولت نه محروم وى.

**[٢٠٢٠] په رمضان كښې په مفطر او صائم باندې عدم اعتراض**

٢٠٢٠-(١)[٣] ١ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: ٢ «غَزَوْنَا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِسِتَّ عَشْرَةَ مَضَتْ مِنْ شَهْرِ رَمَضَانَ، ٣ فَمِنَّا مَنْ صَامَ وَمِنَّا مَنْ أَفْطَرَ، ٤ فَلَمْ يَعِبِ الصَّائِمُ عَلَى الْمُفْطِرِ، ٥ وَلَا الْمُفْطِرُ عَلَى الصَّائِمِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ١ ابو سعيد خدري رضي الله عنه فرمايي ٢ چې (يوځل) مونږ رسول الله صلى الله عليه وسلم سره د جهاد د پاره روان شو د رمضان شپاړسم تاريخ وو ٣ په مونږ كې څه خلقو (چې قوي وو) روژه ونيوله او څه خلقو (چې ضعيف وو يا دا چې د نورو خدمتګار وو) روژه ونه نيوله ٤ نو نه خو روژه دارو په روژه نه نيونكي باندې بد اوويل (ځكه چې په رخصت يعنى په اجازت باندې يې عمل كړي وو) ٥ او نه روژه نه نيونكو روژه دار بد وګڼل (ځكه چې هغوئ په عزيمت باندې عمل كړي وو) (مسلم)

**حل اللغات:-** ① فَلَمْ يَعِبْ: أَيْ: لَمْ يَلُمْ: نه ئې ملامته كولو. اعتراض ئې نه كولو ② الْمُفْطِرِ: روژه نه نيونكي

**تسهيلات:**

**قوله: فَمِنَّا مَنْ صَامَ وَمِنَّا مَنْ أَفْطَرَ**

**په سفر كښې د افطار او صوم جواز:-** د سفر په حالت كښې به څينو روژې نيولې او څينو به

---

(١) اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب: لم يعب أصحاب النبي صلى الله عليه وسلم بعضهم بعضاً في الصوم والإفطار (رقم-١٩٤٧) ومسلم كتاب الصيام/باب جواز الصوم والفطر في شهر رمضان للمسافر في غير معصية إذا كان سفره مرحلتين فأكثر. وأن الأفضل لمن أطاقه بلا ضرر أن يصوم. ولمن يشق عليه أن يفطر (رقم-٩٣ - (١١١٦)) وابوداود كتاب الصوم . باب الصوم في السفر (رقم-٢٤٠٥) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الرخصة في الصوم في السفر(رقم-٧١٢)

فطار کولو کومو حضراتو چې به روژې نیونکو هغوئ به افطار کوؤنکو باندې ملامتیا نه
ویله الحاصل په سفر کښې روژې نیولو عزیمت باندې او روژه نه ساتلو والا به په رخصت
باندې عمل کولو

**[۲۰۲۱] ذمشقت په وجه په سفر کښې د افطار افضلیت**

(۲۰۲۱)[۳] ① وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَفَرٍ ② فَرَأَى زِحَامًا وَرَجُلًا قَدْ ظُلِّلَ عَلَيْهِ ③ فَقَالَ: "مَا هَذَا؟" قَالُوا: صَائِمٌ ④ فَقَالَ: "لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصَّوْمُ فِي السَّفَرِ" »مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① جابر رضي الله عنه وايي چې (يو ځل) رسول الله ﷺ د سفر په حالت کې وو ② يو ځاي نبی کريم صلی الله عليه وسلم مجمع وليده او يو سړي يې وليدلو چې په هغه (د نمر څخه د ساتنې د پاره) سايه (سورې) کړل شوي وه ③ نبی کريم صلی الله عليه وسلم پوښتنه وکړه چې دا څه دي؟ هغوئ اوويل چې دا سړي روژه دار دي (چې د ضعف په وجه را ارتاؤ شوي دي) ④ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې د سفر په حالت کې روژه نيول نيکي نه ده (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① زِحَامًا: أَيْ: مُزَاحَمَةً فِي الِاجْتِمَاعِ: دخلقو ګڼه، دخلقو يو ځاى راجمع کيدل. ② ظُلِّلَ: سورې پرې کړې شوي وو.

**تسهیلات:**

**قوله: لَيْسَ مِنَ الْبِرِّ الصَّوْمُ فِي السَّفَرِ:**

**په سفر کښې د روژې ساتلو دوه صورتونه:** - ① د سفر په حالت کښې که مشقت او ستوماتيا زيانه وى نو روژه ساتل بهتر نه دى او که د جهاد سفر وى نو بيا خو بدرجه اولى بهتر نه دى او چې د چا حالت داشان شى نو هغه دې روژه نه ساتى ځکه چې دې سره کمزورتيا کښې اضافه کيږى لکه څنګه چې په حديث مبارك کښې د يو روژه دار قصه مشهوره ده

② چې چا ته کمزورى نه محسوسيږى نو هغه روژه ساتلې شى لکه څنګه چې دنبى کريم ﷺ په باره کښې دى چې نبى کريم ﷺ دفتح مکه په سفر کښې روژه ساتلې وه د دې نه معلومه شوه چې په سفر کښې که د مشقت ويره نه وى نو روژه ساتل جائز دى اګر چې دحديث نه معلوميږى چې روژه ساتل بهتر نه دى۔

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم لمن ظلل عليه واشتد الحر «ليس من البر الصوم في السفر» (رقم-۱۹۴۶) ومسلم كتاب الصيام/باب جواز الصوم والفطر في شهر رمضان للمسافر في غير معصية إذا كان سفره مرحلتين فاكثر. وأن الأفضل لمن أطاقه بلا ضرر أن يصوم ولمن يشق عليه أن يفطر (رقم) ۹۲ - (۱۱۱۵) وابوداود كتاب الصوم . باب اختيار الفطر (رقم-۲۴۰۷) والنسائي كتاب الجنائز/ذكر اسم الرجل (رقم-۲۲۶۲) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في الإفطار في السفر (رقم-۱۶۶۴)

**[۲۰۲۲] په صائمينو د مفطرينو سبقت**

۲۰۲۳ - (۱) [۳] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي السَّفَرِ ۲ فَمِنَّا الصَّائِمُ وَمِنَّا الْمُفْطِرُ ۳ فَنَزَلْنَا مَنْزِلًا فِي يَوْمٍ حَارٍّ فَسَقَطَ الصُّوَّامُونَ ۴ وَقَامَ الْمُفْطِرُونَ فَضَرَبُوا الْأَبْنِيَةَ وَسَقَوُا الرِّكَابَ ۵ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "ذَهَبَ الْمُفْطِرُونَ الْيَوْمَ بِالْأَجْرِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ۱ انس رضي الله عنه فرمايي چې (يو خل) مونږ د نبي كريم ﷺ سره په سفر كې ملګري وو ۲ په مونږ كې څه خلق خو روژه دار وو او څه بې روژې وو ۳ مونږ چې په يو منزل (پړاو) كې خكته شو نو د ګرمي ورځ وه د كومو خلقو چې روژه وه هغوئ خو راوغورځيدل (يعني د ضُعف او ناتواني په وجه د څه كار لايق پاتې نه شو) ۴ او د كومو خلقو چې روژه نه وه هغه تكړه وو (يعني په خپل كار او روزګار كې مشغول شو) نو خيمې يې ولګولې او اوبنان يې اوبه كړل ۵ نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې روژه نه نيونكو نن د ثواب ميدان وګټلو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ۱ الصَّائِمُ : روژه دار، ۲ الْمُفْطِرُ: روژه نه نيونكې. ۳ حَارٌّ : ګرمه. ۴ فَسَقَطَ : راوغورځيدل. فَضَرَبُوا : اى نَصَبُوا: اوني لګولې، ښخې نې كړې، ۵ الْأَبْنِيَةَ : اى الْخِيَامَ: خيمې، ۶ الرِّكَابَ: أي الإبل: اوبنان.

**تسهيلات:**

**قوله : ذَهَبَ الْمُفْطِرُونَ الْيَوْمَ بِالْأَجْرِ:**

**په سفر كښې د افطار د فضيلت صورت :-** كامل ثواب روژه نه ساتونكو يوړو يعنى هغوئ افطار اوكړو او د روژه دارو خدمت ئې اوكړو خيمې ئې اولګولې خلقو ته ئې اوبه وركړې وغيره ددې حديث پاك نه معلومه شوه چې د روژه دارو او د نيكو خلقو خدمت كول د هغه صائمينو نه افضل دى او اليوم سره څخه مراد دې خبرې طرفته اشاره ده چې د دې خبرې مطلب دا نه دې چې افطار كتونكو ته بهٔ اجر ملاويږى بلكه مقيد دې مذكوره قيوداتو سره چې په افطاركښې د روژه دارو خدمت اوكړى

**[۲۰۲۳] په جهادى سفر كښې روژه نه نيول**

۲۰۲۴ - (۲) [۵] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنَ الْمَدِينَةِ إِلَى مَكَّةَ ۲ فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ عُسْفَانَ ۳ ثُمَّ دَعَا بِمَاءٍ فَرَفَعَهُ إِلَى يَدِهِ لِيَرَاهُ النَّاسُ ۴ فَأَفْطَرَ حَتَّى قَدِمَ مَكَّةَ، وَذَلِكَ فِي

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الجهاد والسير /باب فضل الخدمة فى الغزو (رقم-۲۸۹۰) ومسلم كتاب الصيام /باب أجر المفطر فى السفر إذا تولى العمل (رقم) ۱۰۰ - (۱۱۱۹) والنسائى كتاب الجنائز /فضل الإفطار فى السفر على الصيام (رقم-۲۲۸۳)

[۲] اخرجه البخارى فى كتاب الصوم /باب من أفطر فى السفر ليراه الناس (رقم-۱۹۴۸) ومسلم كتاب الصيام /باب جواز الصوم والفطر فى شهر رمضان للمسافر فى غير معصية إذا كان سفره مرحلتين فاكثر. وأن الأفضل لمن أطاقه بلا ضرر أن يصوم. ولمن يشق عليه أن يفطر (رقم) ۸۸ - (۱۱۱۳) والنسائى كتاب الجنائز /ذكر الاختلاف على منصور (رقم-۲۲۹۰)

رَمَضَانَ، [٥] فَكَانَ ابْنُ عَبَّاسٍ يَقُولُ: قَدْ صَامَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَأَفْطَرَ، [٦] فَمَنْ شَاءَ صَامَ، وَمَنْ شَاءَ أَفْطَرَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ

**ترجمه:** [١] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې (د مكې د فتح په كال) نبي كريم ﷺ د مديني څخه مكې ته روان شو [٢] نبي كريم صلى الله عليه وسلم په دې سفر كې روژه ونيوله تر دې چې عسفان (د مكې څخه د دوه پړاونو په فاصله باندې د يو ځاي نوم دی) ته ورسيدلو [٣] نو اوبه يې وغوښتلې اول نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه اوبه په لاس كې آخستو سره ډيرې پورته كړې (چې خلق ورته وګوري) [٤] او نبي كريم صلى الله عليه وسلم روژه ماته كړه تردې چې مكې ته ي تشريف راوړو او دا سفر په رمضان كې شوي وو [٥] ابن عباس رضي الله عنهما به ويل چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم (د سفر په حالت كې) په رمضان كې روژه نيولې هم ده او ماته كړي يې هم ده [٦] نو څوك چې غواړي (د سفر په حالت كې) روژه دې ونيسي او څوك چې نه غواړي نه دې نيسي (بخاري مسلم)

**تسهيلات:** قوله: فَأَفْطَرَ:

**په جهادي سفر كښې د روژې د افطار فضيلت:**- دا دَ فتح مكه سفر وو په دې وجه حضورپاك ساتلې شوې روژه ماته كړه دې دَپاره چه دَامت دَپاره رهنمااصول وركړل خكه چه وړاندې دښمن سره مقابله وي اومجاهد په روژه سره وي نوهغه به په بهترتوګه باندې جنګ اونه كړې شي په دې وجه ئې دَ روژې ماتولو حكم ئې وركړو خكه چه كافران غالب راغله نو نه به روژه پاتې شي اونه به روژه دار پاتې شي ليكن دا خبره ياد ساتل پكاردي چه په سفركښې كومه روژه اوخوړلې شي نوكورته رسيدونه پس دَهغې قضا لازم ده

---()[٥] [١] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ جَابِرٍ أَنَّهُ شَرِبَ بَعْدَ الْعَصْرِ.

**ترجمه:** [١] او د مسلم په يو بل روايت كې چې د جابر رضي الله عنه څخه منقول دي دا الفاظ هم دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم د مازيګر څخه روسته اوبه وڅكلې

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [٢٠٢٥] بعضې كسانوته د افطار رخصت

٢٠٢٥-()[٢] [١] عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ الْكَعْبِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «إِنَّ اللهَ وَضَعَ عَنِ الْمُسَافِرِ شَطْرَ الصَّلَاةِ [٣] وَالصَّوْمَ عَنِ الْمُسَافِرِ وَعَنِ الْمُرْضِعِ وَالْحُبْلَى» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

---

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الصيام/باب جواز الصوم والفطر فى شهر رمضان للمسافر فى غير معصية إذا كان سفره مرحلتين فاكثر. وأن الأفضل لمن أطاقه بلا ضرر أن يصوم، ولمن يشق عليه أن يفطر (رقم) ٩١ - (١١١٤)

[٢] اخرجه ابوداود فى كتاب الصوم . باب اختيار الفطر (رقم-٢٤٠٨) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الرخصة فى الإفطار للحبلى والمرضع (رقم-٧١٥)

**ترجمه:** [١] انس بن مالك كعبي رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] الله تعالى ﷻ د مسافر د پاره نيم مونځ موقوف كړي دي [٣] دغه شان د مسافر او شيدي (پي) وركونكو اودحاملې ښځې دپاره يې روژه معاف كړي ده (ابوداؤد، ترمذي، نسايي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① وَضَعَ: أَيْ رَفَعَ: لرې كړي او موقوف كړي ئې دي، ② شَطْرَ: حصه، نيم ③ الْمُرْضِع: پي (شودې) وركونكې زنانه، ④ الْحُبْلَى: حامله زنانه

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللّٰهَ وَضَعَ عَنِ الْمُسَافِرِ شَطْرَ الصَّلٰوةِ:

**د مذكوره جملې مفهوم:** - ددې مطلب دا نه دې چې د مسافر مونځ اول څلور ركعته وو بيا نيم كړې شو بلكه ددې مطلب دادې چې د شروع نه د مسافر مونځ نصف فرض شوې دې دحضر په مقابله كښې نيم دې

**قوله:** وَالصَّوْمَ عَنِ الْمُسَافِرِ:

**د روژې د معافۍ مطلب:** - او د روژې دمعافۍ مطلب دادې چې په سفر كښې روژه ساتل معاف دی روستو به ددې قضا راوړی كله چې مقيم شی

**[٢٠٣٦] د عدم مشقت په صورت كښې په سفر كښې د روژې ساتلو افضليت**

(٤) [١] وَعَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْمُحَبَّقِ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَنْ كَانَ لَهُ حَمُوْلَةٌ تَأْوِي إِلَى شِبَعٍ [٣] فَلْيَصُمْ رَمَضَانَ حَيْثُ أَدْرَكَهُ». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه:** [١] سلمه ابن محبق رضي الله عنه روايت كوي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل [٢] د كوم سړي سره چې داسې سورلۍ وي چې هغه يې منزل ته په آساني او آرام سره ورسوي (يعني د هغه سفر بامشقت نه وي بلكه پرسكون او په راحت وي) [٣] نو هغه ته پكار دي چې چيرته هم د رمضان مياشت پرې راشي روژه دې ونيسي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① حَمُوْلَةٌ: أَيْ مَرْكُوْبٌ كُلُّ مَا يُحْمَلُ عَلَيْهِ: سورلۍ ته وائی هرهغه څيز چه انسان پرې سورلی كوی مثلاً اس، اوښ، خر وغيره، ② تَأْوِي: تُؤْدِي صَاحِبَهَا: چه رسوی خپل مالک لره، ③ شِبَع: مرخت مړيدل

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ كَانَ لَهُ حَمُوْلَةٌ تَأْوِي إِلَى شِبَعٍ:

**په آسان سفر كښې هم د افطار جواز:** - يعنی كوم كس چې په سورلۍ باندې سور وی دا سورلی كه په اوښ باندې وی اوكه په آس باندې او يا په بله آرام والا سورلۍ باندې وی نو هغه دې روژه نيسی علامه طيبی رحمه الله فرمانی چې دا حكم د استحباب اود فضيلت په طور دې گڼی

[1] اخرجه ابوداود فی كتاب الصوم، باب من اختار الصيام (رقم-٢٤١٠)

د نورو علماء کرامو په نزد هم دا مسئله ده چي د سفر په حالت کښې روژه نه نيول جائز دي که سفر هر څومره پرسکون او راحت والاولې نه وي

**په لږ سفر کښې د روژې نيولو فضيلت:** - حضرت مظهر رحمه الله فرمائي چي د چا سفر دومره وي چي په يو ورځ کښې خپل منزل مقصود ته رسيدي شي نو هغه لره روژه نيول پکار دي امام ابوداؤد فرمائي چي افطار جائز دي سفر که هر څومره وي دا حديث ضعيف دي ابن حجر رحمه الله فرمائي چي په دې حديث پاك کښې په هغه خلقو باندې رد دې چي دچا په نزد لږ سفر کښې روژه افطار کول جائز دي لکه څنګه چي په طويل سفر کښې افطار کول جائز دي (مرقاة ج ۴ص/۲۷۸)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۰۲۷] د مشقت په صورت کښې د عدم افطار ګناه**

۲۰۲۷-(۸) ①عَنْ جَابِرٍ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَرَجَ عَامَ الْفَتْحِ إِلَى مَكَّةَ فِي رَمَضَانَ ② فَصَامَ حَتَّى بَلَغَ كُرَاعَ الْغَمِيمِ فَصَامَ النَّاسُ، ③ثُمَّ دَعَا بِقَدَحٍ مِنْ مَاءٍ فَرَفَعَهُ ④حَتَّى نَظَرَ النَّاسُ إِلَيْهِ ثُمَّ شَرِبَ، ⑤ فَقِيلَ لَهُ بَعْدَ ذَلِكَ: إِنَّ بَعْضَ النَّاسِ قَدْ صَامَ ⑥فَقَالَ: "أُولَئِكَ الْعُصَاةُ أُولَئِكَ الْعُصَاةُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**توجمه:** ① جابر رضي الله عنه وايي چي رسول الله ﷺ د مکې د فتح په کال د رمضان په مياشت کې د مکې طرفته روان شو② نو روژه يې ونيوله تردې چې کراع الغميم ته اوريدلو د نورو خلقو هم روژه وه③ نبي کريم صلى الله عليه وسلم په پياله کې اوبه وغوښتلې او په لاس کې يې دومره پورته کړې ④ چې خلقو وليدلې بيا يې هغه اوبه وڅکلې ⑤ د هغې څخه روسته نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته عرض وشو چې بعضې خلقو روژه ونيوله (يعني هغوئ د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په متابعت کې روژه ماته نه کړه)⑥ حضور ﷺ وفرمايل چې هغه خلق پاخه ګنهګاران دي، هغه خلق پاخه ګنهګاران دي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① كُرَاعَ الْغَمِيمِ: د مکې او مدينې په منځ کې عسفان ته نږدې د يو ځاي نوم دي. ② بِقَدَحٍ: پيالې. ③ الْعُصَاةُ: أَيِ الْكَامِلُونَ فِي الْعِصْيَانِ: يعنى پوره ګناهګاران.

**تسهيلات:**

**قوله: أُولَئِكَ الْعُصَاةُ:**

**روژه دارو ته د ګناهګار نسبت وجه:** - دا خلق ئې ځکه ګناهګاران او ګرځول چه دَدوی عقيده دا نه وه چه په سفر کښې روژه ماتول جائز دي بلکه دَدوی عقيده داوه چه په هرحالت کښې

[1] اخرجه مسلم كتاب الصيام/باب جواز الصوم والفطر في شهر رمضان للمسافر في غير معصية إذا كان سفره مرحلتين فأكثر. وأن الأفضل لمن أطاقه بلا ضرر أن يصوم. ولمن يشق عليه أن يفطر (رقم) ۹۰ - (۱۱۱۴) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب باب ما جاء في كراهية الصوم في السفر (رقم-۷۱۰) والنسائي كتاب الجنائز/ذكر اسم الرجل (رقم-۲۲۶۳)

روژه ساتل دی دغه شان کولوسره د حضورپاك د سنتو خلاف ورزی اوشوه نو خکه حضورپاك خفه شو اوهغوی ته ئی گناهگاراوونیل

**[۲۰۲۸] د سفرد مفطر او د حضر د صائم برابری**

۲۰۲۸-( )[۹] [۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «صَائِمُ رَمَضَانَ فِي السَّفَرِ كَالْمُفْطِرِ فِي الْحَضَرِ» ". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] عبدالرحمن ابن عوف رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په سفرکې د رمضان روژې نيونکې په حضر کې (يعني په خپل کور باندي) د روژې نه نيونکی په شان دي (ابن ماجه)

**تسهيلات. قوله: كَالْمُفْطِرِ فِي الْحَضَرِ:**

**په رواياتو کښې تعارض:** - په رواياتو کښې تعارض دې. خکه چې روستو روايت کښې دی چې روژه به نيسی او داشان مخکښې روايت کښې دی چې افطار دې کوی او په دې روايت کښې ئې روژه ساتونکو او په حضر کښې نه ساتونکو ته برابر ونيلي دی نوپه دې رواياتو کښې تعارض دې ؟

**دتعارض درې جوابونه:** - ① دا حديث مبارك منسوخ دې

② دا په هغه حالت باندې محمول دې چې په سفر کښې روژه د تکليف اود نقصان باعث وی

③ دروژې په وجه د هلاکت انديښنه وی نو بيا د روژې نه نيولو اجازت دې

**[۲۰۲۹] د سفرپه عامو حالاتو کښې د افطار افضليت**

۲۰۲۹-( )[۱۰] [۱] «وَعَنْ حَمْزَةَ بْنِ عَمْرٍو الْأَسْلَمِيِّ أَنَّهُ قَالَ: [۲] يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ إِنِّي أَجِدُ بِي قُوَّةً عَلَى الصِّيَامِ فِي السَّفَرِ، فَهَلْ عَلَيَّ جُنَاحٌ؟ [۳] قَالَ: " هِيَ رُخْصَةٌ مِنَ اللّٰهِ - عَزَّ وَجَلَّ - فَمَنْ أَخَذَ بِهَا فَحَسَنٌ، [۴] وَمَنْ أَحَبَّ أَنْ يَصُوْمَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] د حمزه ابن عمرو اسلمي رضی الله عنه په باره کې روايت دې چې هغه عرض وکړو [۲] چې يا رسول الله ﷺ زه د سفر په حالت کې په خپل خان کې د روژې ساتلو قوت وينم آيا د روژې نيولو يا نه نيولو په صورت کې، په ما څه گناه شته؟ [۳] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې دا (يعني په سفرکې روژه نه نيول) د الله رب العزت د طرف څخه رخصت (آساني) نو ده کوم سړي چې رخصت قبول کړی هغه ښه وکړل [۴] او کوم سړي چې روژه نيول غواړي په هغه څه گناه نشته (مسلم)

**حل اللغات:** - ① جُنَاحٌ: أَيْ: إِثْمٌ أَوْ بَأْسٌ: گناه او باک

---

[۱] اخرجه النسائي في كتاب الجنائز /ذكر قوله: الصائم في السفر كالمفطر في الحضر (رقم-۲۲۸۵)

[۲] اخرجه مسلم كتاب الصيام/باب التخيير في الصوم والفطر في السفر (رقم-۱۰۷ - (۱۱۲۱)) والنسائي كتاب الصوم/ذكر الاختلاف على عروة في حديث حمزة فيه (رقم-۲۳۰۳)

تسهيلات:

**قوله: فَمَنْ أَخَذَ بِهَا فَحَسَنٌ:**

**په سفر کښې د روژې نه نيولو حکم:-** فحسن: په دې حديث کښې دې خبرې ته اشاره ده چه په سفر کښې روژه ساتل اونه ساتل سره دَدې چه دواړه جائزدی خوکه څوك ئې اونه ساتی نودغه بهتراو اولی عمل دې اوکه څوك ئې اوساتی نو په دې کښې څه ګناه نشته نتيجه دا شوه چه روژه نه ساتل اولی دی.

# [۵] بَابُ الْقَضَاءِ

## دَ قضاروژې بيان

**خلاصة الباب:-**

**فيه ستة أحاديث مشتملة على على أربع مسائل:**

① قضاء رمضان: ۱-

② قضاء النفل: ۲-

③ قضاء الحائض: ۳-

④حكم القضاء عن الميت : ۴، ۵، ۶-

**د فوت شوې روژې قضاء راوړلو ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ﴾ [سورت بقره الايه ۱۸۴]

**دروژې ماتولويانه ساتلو درې حکمونه:-** دَ روژې نه ساتلو يا ماتولوسره متعلق درې احکام دی.

① په هيره وغيره کښې که چرې څوك په هيره روژه ماته کړی په دې کښې نه قضا شته اونه کفاره شته

② په قصد اوعمدسره دَ رمضان روژه ماتولوپه صورت کښې به دوه مياشتې مسلسل روژه ساتلوکفاره واجب ده

③ دَ يوشرعی عذردَ وجې نه که روژه ماته کړه نو په دې کښې قضا لازم ده. په دې باب کښې زيات تر احاديث هم دې مسئلې سره متعلق دی شارحين حضرات ليکی چه راجح هم دادی چه دلته دَ قضا نه مراد هم دَ رمضان دَ روژو قضا مراد ده.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۰۲۰] دَ عائشې صديقې رضي الله عنها په شعبان کښې د قضاء شوو روژو قضاء راوړل**

۲۰۳۰-(۱)[۱] عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ يَكُونُ عَلَيَّ الصَّوْمُ مِنْ رَمَضَانَ [۲] فَمَا أَسْتَطِيعُ أَنْ أَقْضِيَ إِلَّا فِي شَعْبَانَ، [۳] قَالَ يَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ: تَعْنِي الشُّغْلَ مِنَ النَّبِيِّ أَوْ بِالنَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-. مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي چي زما په ذمه چي به د رمضان کومي قضاء روژي وي [۲] د هغي قضاء به ما يواځي د شعبان په مياشت کي کوله [۳] يحيي ابن سعيد رحمه الله وايي چي د نبي کريم ﷺ په خدمت کي مشغوليت يا وی ويل چي د نبي کريم ﷺ د خدمت سره مشغوليت به بي بي عايشه رضي الله عنها (د شعبان څخه علاوه په بله مياشت کي د رمضان د قضاء روژو نيولو څخه منع کوله (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① الشُّغْلَ: مشغوليدل، د نبی عليه السلام خدمت مراد دي

**تسهيلات:**

**قوله: قَالَتْ: كَانَ يَكُونُ عَلَيَّ الصَّوْمُ:**

**د مذکوره جملې نحوی ترکيب:** - علامه طيبی رحمه الله فرمائی چه دَ "يکون" کلمه زائده ده دَ ملاعلی قاری رحمه الله په انداز سره معلوميږی چه "کان" دَ شان په معنی کښې مستعمل دې او "يکون" په خپل خائی باندې قائم دې "ای کان الشان يکون علی الصوم" يعنی معامله داسې وه چه زما په ذمه باندې قضا روژې وې يعنی په وجه دَ ماهوارئی به دَ رمضان روژې قضا کيدلې نو زه به دَ حضورپاک دَ خدمت دَ وجې نه دَ روژو دَ قضا دَپاره فارغه کيدې نه شوم صرف دا چه دَ شعبان مياشت به کله راتله نو حضورپاک به هم روژې ساتلې اوزه به هم دَ ساتلو دَ پاره فارغ کيدلم [الکاشف ۲۰۶/۴]

**قوله: مِنَ النَّبِيِّ أَوْ بِالنَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:**

**په من النبی او بالنبی په مينځ کښې فرق:** دا دَ راوی کلام دې چه دَ حضرت عائشه رضي الله عنها دَ کلام تشريح او تفسير کول غواړی يعنی دَ حضرت عائشې رضي الله عنها "لا استطيع" دَ کلام نه مراد دادې چه حضرت عائشه رضي الله عنها به دَ حضورپاک په خدمت کښې مشغول وه يا دَ حضورپاک خدمت سره مشغول وه ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دلته "من" دَ تعليل دَپاره دې اوباء دَ سبب دَ پاره ده

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب: متى يقضى قضاء رمضان (رقم-۱۹۵۰) ومسلم في كتاب الصيام/باب قضاء رمضان في شعبان (رقم-۱۵۱ - (۱۱۴۶)) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في تأخير قضاء رمضان (رقم-۷۸۳)

**[۲۰۲۱ ] د ښځې دپاره د خاوند د اجازت څخه بغیر د نفلي روژې نیولو عدم جواز**

(۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- : [۲] "«لَا يَحِلُّ لِلْمَرْأَةِ أَنْ تَصُومَ وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ، [۳] وَلَا تَأْذَنَ فِي بَيْتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د یوې ښځې د پاره د خپل خاوند په موجودګۍ کې د هغه د اجازت څخه بغیر نفلي روژې نیول درست نه دي [۳] او یوه ښځه دې دخپل خاوند د اجازت څخه بغیرچاته خپل کورته د راننوتلواجازت نه ورکوي (مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله: وَزَوْجُهَا شَاهِدٌ إِلَّا بِإِذْنِهِ:**

**دخاوند د اجازت څخه بغیر د نفلي روژې نیولو حکم:** - په دې حدیث کښې دوه حکمونه بیان شوي دي رومبې حکم دادې چه کله خاوند په کورکښې موجودوی نود ښځې دپاره جائزنه دی چه هغه دې دخاوندد مرضئي او اجازت نه بغیرروژه اوساتي "لایحل" سره هم ددې حکم بیان شوې دې

**دخاوند اجازت څخه بغیر بل چا لره د کور ته داخلیدو حکم:** - دویم حکم دادې چه د یوښځې دپاره داجائزنه دی چه هغه دې دخپل خاوندنه بغیر یوسړي په خپل کورکښې پریږدی که هغه سړې ددوی دخاندان نه ولې نه وی او خپلوان ولې نه وی بیاهم دلته دومره ګنجائش شته چه د خاونداجازت کله په ژبه سره صراحةً وی اوکله دلالةً اشارةً وی ښځې ته پته وی چه خاوندمې دخپل فلانکي خپلوان په راتلو خفه کیږي بهرحال دخاوند په اجازت کښې سرو سره ښځې هم شامل دی چه د خاوندد مرضئي نه بغیر یوه ښځه دننه پریږدی

**[۲۰۲۲ ] په حائضه باندې د روژې د قضاء وجوب**

(۳) [۱] «وَعَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ قَالَتْ لِعَائِشَةَ: [۲] مَا بَالُ الْحَائِضِ تَقْضِي الصَّوْمَ وَلَا تَقْضِي الصَّلَاةَ؟ [۳] قَالَتْ عَائِشَةُ: كَانَ يُصِيبُنَا ذَلِكَ فَنُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّوْمِ وَلَا نُؤْمَرُ بِقَضَاءِ الصَّلَاةِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بي بي معاذه عدویه رحمها الله (چې د هغې کنیت أم الصهبا دي او یوه جلیل القدر تابعیه ده) په باره کې روایت دي چې هغې د بي بي عایشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه [۲] چې دا څه وجه ده چې په حایضه ښځه باندې د روژې قضاء واجب ده خو د مانځه قضاء پرې

(۱) اخرجه البخاري في كتاب النكاح/باب لا تأذن المرأة في بيت زوجها لأحد إلا بإذنه (رقم-۵۱۹۵) ومسلم كتاب الزكاة/باب ما أنفق العبد من مال مولاه (رقم) ۸۴ - (۱۰۲۶) وابوداود كتاب الصوم . باب المرأة تصوم بغير إذن زوجها (رقم-۲۴۵۸) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في كراهية صوم المرأة إلا بإذن زوجها (رقم-۷۸۲) وابن ماجة كتاب الصيام/باب في المرأة تصوم بغير إذن زوجها (رقم-۱۷۶۱)

(۲) اخرجه مسلم في باب وجوب قضاء الصوم على الحائض دون الصلاة (رقم-۶۹ - (۳۳۵)

واجب نه ده.[۳] بي بي عايشې ﷞ ورته وفرمايل چې د نبي کريم ﷺ په زمانه مبارکه کې چې مونږ ته به حيض راغې نو مونږ ته به د روژې د قضاء حکم کيدلو ليکن د مانځه د قضاء حکم به نه کيدلو (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: وَلَاتَقْضِي الصَّلَاةَ:**

**اعتراض او دهغې**:- دې ښځې دَحضرت عائشې صديقې ﷞ نه دَ مانځه دَ عدم قضا او روژې دَ قضادَ فرق سره متعلق سوال کړې وو ليکن حضرت عائشې ﷞ هغې ته جواب ورنه کړو بلکه اشاره ئې اوفرمائيله چه په دې فرق کښې پريوتلوسره هيڅ فائده نشته دې اونه څه اوچت مقصد دې بلکه دَ عبوديت دَ شان تقاضا داده چه شارع ﷺ کوم حکم ورکړې دې بغيردَ څه چانچوکولونه په هغې باندې عمل اوکړې شي. دَ صحابه کرامو ﷡ عادت هم دغه وو چه هغوی به دَ څه اوږدو قصو وغيره پوښتنې نه کولې اونه به ئې بيانولې اونه به دَ احکامو په حکمتونوپسې لګيدل بلکه ديخوا به حکم راغلو او اخوا به هغوی عمل کولو حضرت عائشې ﷞ هم دغه جواب ورکړو چه دَ حضورپاك په زمانه کښې به مونږ ته په بيمارئې کښې هم دغه حکم کيدلو چه دَ روژو قضا کوئې او په دې کښې دَ مانځه ذکرنه وو دغه ښځې کيدې شي دَ خوارج دَ وجې نه سوال کړې وو دَ چا په نيزچه مونځ پريخودل دکفرسبب دې. بعضې رواياتو کښې حضرت عائشې ﷞ فرمائيلي دي "احرورية انت" يعنی ولې ته دَ حرورا پارټئ سره تعلق لرې يعنی دَ خوارج نه ئې؟

**دَ مونځونو قضاء نه راوړلو کښې حکمت**:- بهرحال دَ مونځونودَ قضاپه حکم ورکولوکښې لوئی حرج دې خکه چه مونځونه هره ورځ وی اودَ رمضان مياشت خو په دولس مياشتو کښې يوځل راځی دَ دغه لسو ورځو قضاڅه ګرانه خبره نه ده دَدې حديث نه علماؤته لوئی سبق ملاويږی چه هغوی دَدې خبرې التزام اونه کړی چه دَ هرحکم حکمت دَ عوامو په وړاندې پيش کوی دَعمل کولوسره کار دې دَ مصلحت اوحکمت لټولوسره مطلب نه دې

**[۲۰۳۳] دَ مړی دَطرفه دَ روژې نيولو حکم**

۲۰۳۳-(۱)[۴] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] "«مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صَوْمٌ صَامَ عَنْهُ وَلِيُّهُ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**:[۱] بي بي عايشه صديقه ﷞ روايت کوي چې رسول ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې وفات شي او د هغه په ذمه روژې وي نو د هغه د طرف څخه دي وارثان روژه ونيسي

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الصوم باب من مات وعليه صوم (رقم-۱۹۵۲) ومسلم کتاب الصيام باب قضاء الصيام عن الميت (رقم)۱۵۳ - (۱۱۴۷) وابوداود کتاب الصوم باب فيمن مات وعليه صيام (رقم-۲۴۰۰) وابن ماجة کتاب الکفارات من مات وعليه نذر (رقم-۲۱۳۳)

بعني فديه دې ورکړي، (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① وَلِيُّهُ ولي نه مراد يا وارث دې يا هر يو نژدې رشته دار مراد دې

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صَوْمٌ:**

که يو سړې مړی شی او د هغه په ذمه باندې د رمضان روژې وی نو د هغې په قضا کښې د علماؤ د اسې اختلاف دې چه آيا فديه اداکړې شی يا د مړی د طرف نه روژه اوساتلې شی

**که په مړی روژې پاتې وی د هغې د فديه ورکولو حکم:** - د احناف علماء د اسې تفصيل بيانوی چه که مړی د خپلو روژو د فديه وصيت کړې وی او د مړی په ميراث کښې د ومره مال هم وی په کوم سره چه فديه اداکيدې شی نو په ورثاء باندې واجب دی چه هغوی دې د مړی د قضا روژو فديه ادا کړی اوکه چرې مړی نه څه مال نه وی پاتې نو په وارثانو باندې لازم نه دی چه هغوی د خپل طرف نه فديه ادا کړی اوکه څوك ئې اداکوی نو هغه تبرع او احسان دې د فديې د پاره مقدار د يوې روژې نصف صاع غنم دی.

وس پاتې شوه داخبره چه که څوك وارث د خپل مړی د طرف نه د مونځ فديه اداکوی نو د دې شرعی حيثيت څه دې؟ د دې باره کښې د ائمه احنافو نه امام محمد رحمه الله فرمائی که يو سړې د مړی د طرف نه د قضا شوی مونځونو فديه ادا کول غواړی نو مونځونه په روژو باندې قياس کولو سره وئيلې شی چه دا فديه به هم جائز وی او ان شاء الله په دې سره به فائده هم کيږی د احنافو په نيز د هر نفلی عبادت ثواب ايصال هم جائز دې

**د مړی د طرفه په روژه نيولو کښې مذاهب:** -

وس پاتې شو دا صورت چه يو سړې د خپل مړی د طرف نه د هغه د روژو په بدل کښې روژې ساتی فديه اداکول غواړی نو آيا دا جائزدی که نه. په دې کښې د علماؤ اختلاف دې

① د امام احمدبن حنبل رحمه الله په نيز وارث د خپل مړی د طرف نه په فديه کښې روژه ساتلې شی

② امام مالك رحمه الله امام ابوحنيفه رحمه الله او امام شافعی رحمه الله جمهور فرمائی چه څوك سړې د خپل مړی د طرف نه فديه کښې روژه نه شی ساتلې

**د اول فريق دليل:** - زيربحث حديث د دوی مستدل دې کوم چه بالکل واضح دليل دې

**د اول فريق د دليل جوابونه:** - ① "صام عنه وليه" مطلب دا نه دې چه وارث د هغه د طرف نه هم روژه اوساتی بلکه نورو احاديثو ته په کتلو سره تطبيق په غرض سره هم دغه وئيلی شی چه د دې حديث مطلب دا دې چه ورثاء د دغه مړی د قضا روژو ادا کولو څه نور څه انتظام اوکړی او هغه انتظام فديه ده

② د نورو احاديثو په رڼا کښې زير بحث حديث منسوخ او موقوف دې [الترمذی: ۹۶/۳]

**د دویم فریق دلائل:** - د فصل ثالث حضرت ابن عمر رضی الله عنهما روایت د دوی مستدل دي په کوم کښې چه دا الفاظ دی "لایصوم احد عن احد الخ"

② د حضرت نافع رحمه الله حدیث نمبر ۲۰۳۳ همد دوی مستدل دي په کوم کښې چه "اطعام الطعام" سره د فدیه اداکولو حکم دي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۰۳۳] د مړي د پاره د رمضان د روژو کفارې ورکولو جواز**

۲۰۳۳-( )[۵] ① عَنْ نَافِعٍ عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: ② "«مَنْ مَاتَ وَعَلَيْهِ صِيَامُ شَهْرِ رَمَضَانَ ③ فَلْيُطْعَمْ عَنْهُ مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينٌ» " ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ عُمَرَ.

**ترجمه:** ① نافع (تابعي) رحمه الله د ابن عمر رضی الله عنهما څخه او هغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم څخه نقل کوي چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل ② کوم سړي چې وفات شي او د هغه په ذمه د رمضان روژې وي ③ نو د هغه د طرف څخه د هري روژې په بدله کې په يو مسکين باندې طعام خوړل پکار دي. ④ امام ترمذي رحمه الله دا حديث نقل کړي دي او ويلي يي دي چې صحيح دا دي چې دا روايت په ابن عمر رضی الله عنهما باندې موقوف دي يعنی دا د نبی کريم صلی الله علیه وسلم ارشاد گرامي نه دي بلکه د ابن عمر رضی الله عنهما قول دي.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَلْيُطْعَمْ عَنْهُ مَكَانَ كُلِّ يَوْمٍ مِسْكِينٌ:

**د روژې فدیه:** - دهرې روژې په بدله کښې يو مسکين ته د خوراك ورکولو مطلب دادې چې د هرې روژې په بدله کښې پاؤ کم دوه کلو غنم يا درې نيم کلو اوربشې يا ددې مقدار قيمت ورکول دی او هم دا مقدار د مونځ د فديې هم دې چې دهر مونځ په بدله کښې دې دومره فديه ورکړې شي

**په روژه کښې عدم تخلف:** - دا حديث د جمهورو عالمانو دليل دې هغه دا که يوکس مرشي او د هغه په ذمه روژې وی نو بل څوک دې دهغه په ځاې روژې نه نيسی بلکه دهغه دپاره دې فديه ورکړی ددې څه وراندې چې کوم حديث تيرشوغالب گمان دا دې چې هغه حديث منسوخ دې او دا حديث ناسخ دې

[1] اخرجه الترمذی فی كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء من الكفارة (رقم-۷۱۸) وابن ماجة كتاب الصيام/باب من مات وعليه صيام رمضان قد فرط فيه (رقم-۱۷۵۷)

**قوله:** وَقَالَ: وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مَوْقُوفٌ عَلَى ابْنِ عُمَرَ:

**د روایت حکم:-** دا روایت اګر چې موقوف دې لکه څنګه چې امام ترمذي رحمه الله فرمائي لیکن په حکم کښې مرفوع دې ځکه چې داشان تشریعي امور بو صحابي د خپل عقل نه نشي بیانولې لهذا حضرت ابن عمر رضي الله عنه به دا مضمون د رسول کریم صلی الله علیه وسلم نه آوریدلې وی ځکه هغوی دا نقل کړو

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۰۲۵] د بل دپاره د روژې نیولو او مونځ کولو عدم جواز

(۲۰۳۵)[۲] [۱] عَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ ابْنَ عُمَرَ كَانَ يُسْأَلُ: [۲] هَلْ يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ؟ [۳] أَوْ يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ؟ [۴] فَيَقُولُ: لَا يَصُومُ أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ، [۵] وَلَا يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ، رَوَاهُ فِي الْمُوَطَّإِ.

**ترجمه:** [۱] د امام مالك رحمه الله په باره کې روایت دې چې هغه ته دا روایت رسیدلې دې چې د ابن عمر رضي الله عنه څخه به پوښتنه کیده [۲] چې آیا یو سړي د بل سړي په ځاي مونځ کولې شي [۳] یا د بل سړي په ځاي روژه نیولې شي؟ [۴] ابن عمر رضي الله عنه به د دې په جواب کې فرمایل چې نه دې څوك د چا په ځاي مونځ کوي [۵] او نه دې د بل د طرف څخه روژه نیسي. (مؤطا)

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا يُصَلِّي أَحَدٌ عَنْ أَحَدٍ:

**د غیر دپاره د بدني عبادت کولو عدم جواز:-** یعنی د یوسړي د طرف نه د هغه نه قضا شوي مونځونه د هغه د وارثانو نه یوسړي هم نه شي کولې او نه د چا د طرف نه څوك روژه ساتلې شي اوداخبره د احنافو په نیزمنلې شوې ده چه نفل مونځ کولوسره یا نفلي روژه ساتلوسره یا نفلي حج کولوسره د دې ثواب مړي ته بخښلې شي او ایصال کولې شي

---

[۲] اخرجه المالك في الموطا كتاب الصيام باب ما يفعل المريض في صيامه (رقم-۴۳)

# [۶] بَابُ صِيَامِ التَّطَوُّعِ

## ذ نفلي روژو بيان

**خلاصة الباب :-**

**فيه ثمانية وثلاثون حديثاً مشتملة على اثني عشرة مسئلة :**

① كيفية صيام النبي ﷺ : ۱، ۲.
② فضيلة صوم التطوع: ۱۸، ۲۹، ۳۰، ۳۶، ۳۸.
③ فضيلة صيام شهرشعبان: ۱، ۳.
④ أفضل الصيام: ۴، ۹، ۱۹.
⑤ النهي عن صوم يوم عرفة للحجاج: ۲۷، .
⑥ فضيلة صوم يوم عرفة: ۹.
⑦ فضيلة صوم عاشوراء والعشر من أول ذى الحجة وأيام البيض : ۵، ۶، ۹، ۳۱، ۳۳، ۳۵.
⑧ فضيلة صيام البيض في كل شهر: ۹، ۱۱، ۱۹، ۲۲، ۲۳، ۲۵، ۳۴، ۳۴.
⑨ فضيلة بعض أيام الأسبوع: ۱۰، ۲۰، ۲۱، ۲۴، ۲۳، ۲۵، ۲۶، ۳۲، ۳۷.
⑩ فضيلة صيام شوال: ۱۲، ۲۶.
⑪ الصيام المنهي عنها: ۱۳ ، ۱۴ ،۱۵، ۲۷، ۲۸.
⑫ النهي عن تخصيص صوم يوم الجمعة: ۱۶، ۱۷.

قال الله تعالى ﴿ وَمَا تُقَدِّمُوا لِأَنفُسِكُم مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوهُ عِندَ اللَّهِ ﴾ [سورت بقره الايه ۱۸۴]

الله تعالى ذهرفرض عبادت سره نفلي عبادت هم مشروع فرمائيلي دي دي دپاره چه ذ دغه نفل په ذريعه سره ددغه فرض پوره والي اوشي اوکه ذ چانه څه فريضه پاتي شي نو په نوافل سره ذهغي مخ نيوي شي په دي باب کښي ذ حضورپاك ذ نفلي روژو بيان دي بيا ذ عام امت دپاره په مياشت اوكال كښي په مختلف ورځوكښي مختلف تاريخونو كښي ذخاص نفلي روژو بيان دي اوپه بعضي ورځوكښي ذ ممانعت بيان دي اكثرذكر ذ ايام بيض دي ذ يوم عاشوره او عرفه ذكر دي اوذ صوم داؤدي ذكردي.

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۰۳۶] په نفلي روژوكښي ذ نبى عليه السلام معمول**

۲۰۳۶ –(۱)[۱] ①«عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصُومُ حَتَّى نَقُولَ لَا يُفْطِرُ②

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب صوم شعبان(رقم -۱۹۶۹) ومسلم في كتاب الصيام/باب صيام النبي صلى الله عليه وسلم في غير رمضان. واستحباب أن لا يخلي شهرا عن صوم (رقم-۱۷۵ - (۱۱۵۶)) وابوداود كتاب الصوم . باب كيف كان يصوم النبي صلى الله عليه وسلم (رقم- ۲۴۳۴) والترمذيّ كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في وصال شعبان برمضان (رقم-۷۳۶) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في صيام النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۱۷۱۰) ومالک في الموطا کتاب الصيام/باب جامع الصيام (رقم-۵۶)

يُفطِرُ حَتّى نَقُولَ لَا يَصُومُ [۲] وَمَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اسْتَكْمَلَ صِيَامَ شَهْرٍ قَطُّ إِلَّا رَمَضَانَ [۳] وَمَا رَأَيْتُهُ فِي شَهْرٍ أَكْثَرَ مِنْهُ صِيَامًا فِي شَعْبَانَ [۴] [۵] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَتْ: كَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ كُلَّهُ [۶] وَكَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ إِلَّا قَلِيلًا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] د مؤمنانو مور بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي چې نبي كريم ﷺ چې به نفلي روژې نيول شروع كړې نو مونږ به ويل چې اوس به روژې نيول نه ختموي [۲] او چې روژې به يې نه نيولې نو مونږ به ويل چې اوس به هيڅ كله روژه ونه نيسي [۳] ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم د رمضان څخه علاوه په بله يوه مياشت كې پوره مياشت روژې نيونكي نه دي ليدلي [۴] او ما نبي كريم صلى الله عليه وسلم د شعبان څخه علاوه په بله يوه مياشت كې زياتې روژې نيونكي نه دي ليدلي (يعني نبي كريم صلى الله عليه وسلم چې به د شعبان په مياشت كې څومره زياتې روژې نيولې دومره به يې په بله يوه مياشت كې سوا د رمضان څخه نه نيولې) [۵] د يو روايت الفاظ دا دي چې بي بي عايشې رضي الله عنها وفرمايل نبي كريم صلى الله عليه وسلم به ماسوا د څو ورځو د شعبان پوره مياشت روژې نيولې [۶] يعنى په مياشت د شعبان كښې څو ورځې پريخولو سره په بقيه ورځوكې به يې روژه وه (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: لَايُفْطِرُ:**

**د نبي كريم ﷺ د روژو او افطار عادت:-** يعنى د رسول الله ﷺ په نفلي روژو كښې دا عادت مبارك وو چه كله به حضورپاك داسې په تسلسل سره روژې ساتلې چه كتونكى به خيال كولو چه حضورپاك به كله هم روژه نه كولاووى اوكله به نى نفلي روژې بندولې نو كتونكى به گنړل چه حضورپاك به كله هم نفلي روژه نه ساتى

**قوله: وَكَانَ يَصُومُ شَعْبَانَ إِلَّا قَلِيلًا:**

**دحديث په عبارت باندې اشكال:-** دې جملې نه مخكښې چه كومه جمله ده هغه هم دغه شان ده ليكن په هغې كښې دَ كُلّه لفظ دې اودلته هم هغه جمله رادوباره كړې شوې ده ليكن "الا قليلاً" لفظ زائده دې نو په دې كلام كښې تضاد هم دې او تكرار هم؟

**د اشكال دوه توجيهات:-** ① په شارحينو كښې ملاعلي قاري رحمه الله دَدې كلام دوه توجيهات كړې دى اول توجيه داده چه حضورپاك به كله دَ پوره شعبان روژې ساتلې اوكله به نى پوره نه ساتلې يعنى يوكال به نى مكمل ساتلې او دويم كال كښې به نى څه ساتلې دويمه توجيه داده چه دلته سره دَدې حرف عطف نشته دې ليكن دويمه جمله په اول جمله باندې عطف ده اودا عطف تفسيرى دې لكه چه ② دويمه جمله دَ اولنۍ جملې وضاحت دې يعنى حضورپاك به دَ شعبان دَ مياشتې لږې ورځې روژې ساتلې

**[٢٠٣٧] د نبی علیه السلام د رمضان څخه علاوه د ټولې میاشتې روژې نیولو عدم ثبوت**

٢٠٣٧–(١)[٣][١] «وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَقِيقٍ قَالَ: قُلْتُ لِعَائِشَةَ: [٢] أَكَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَصُومُ شَهْرًا كُلَّهُ؟ [٣] قَالَتْ: مَا عَلِمْتُهُ صَامَ شَهْرًا كُلَّهُ إِلَّا رَمَضَانَ [٤] وَلَا أَفْطَرَهُ كُلَّهُ حَتَّى يَصُومَ مِنْهُ، حَتَّى مَضَى لِسَبِيلِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] عبدالله بن شقيق (تابعي) رحمه الله وايي چې ما د بي بي عايشي رضی الله عنها څخه پوښتنه وکړه [٢] چې نبي كريم ﷺ به پوره مياشت روژه نيوله؟ [٣] بي بي عايشي رضی الله عنها وفرمايل چې ماته نه ده معلومه چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم کله د رمضان څخه علاوه د پوره میاشتې روژې نیولې وی [٤] او ماته داسې میاشت هم نه ده معلومه چې په هغې کې نبی کریم صلی الله علیه وسلم بالکل روژې نه وي نیولي خکه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به په هره میاشت کې څه ورخې روژې نیولې (د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا معمول وو) تر دې چې د دې دنیا څخه یې تشریف یووړو. (مسلم)

**حل اللغات:** - ① مَضَى لِسَبِيلِهِ: په خپله لار ئې تشريف يوړلو، دا کنايه ده د مرګ نه. يعنی وفات شو

**تسهيلات:**

**قوله: قُلْتُ لِعَائِشَةَ:**

**د عائشې رضی الله عنها څخه د تپوس کولو وجه:** - حضرت رسول کريم ﷺ ته حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها ډيره محبوبه وه او دا د نبی کريم ﷺ همرازه هم وه په دې وجه به حضرات صحابه کرامو د نبی کريم ﷺ داخلی او بيرونی معاملات د حضرت عائشه صديقه رضی الله عنها نه پوښتل د ښځو متعلق اکثر دين د دوئ رضی الله عنها نه منقول دې په دې حديث مبارك كښې اول حَقّ د روژه نه نيولو غايت دې او دويم حَقّ د نبی کريم ﷺ د روژې د نيولو او د نه نيولو د حالت بيان باره كښې دې

**[٢٠٣٨] د شعبان د آخري ورځو روژې**

٢٠٣٨–(١)[٣][١] «وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ سَأَلَهُ [٢] أَوْ سَأَلَ رَجُلًا وَعِمْرَانُ يَسْمَعُ فَقَالَ: [٣] "يَا أَبَا فُلَانٍ أَمَا صُمْتَ مِنْ سَرَرِ شَعْبَانَ؟" قَالَ: لَا [٤] قَالَ: "فَإِذَا أَفْطَرْتَ فَصُمْ يَوْمَيْنِ"». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] عمران ابن حصين رضی الله عنه د نبي كريم ﷺ څخه نقل كوي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د عمران څخه پو[illegible]نه وکړه [٢] يا د يو بل سړي څ[illegible]ې پوښتنه وکړه او عمران

(١) اخرجه مسلم في - كتاب الصيام/باب صيام النبي صلى الله عليه وسلم في غير رمضان، واستحباب ان لا يخلى شهراً عن صوم رقم-١٧٣ - (١١٥٦)

(٢) اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب الصوم من آخر الشهر (رقم-١٩٨٣) ومسلم كتاب الصيام/باب صوم سرر شعبان (رقم) ١٩٩ - (١١٦١) والدارمي ومن كتاب الصوم/باب الصوم من سرر الشهر

اوريدل ③ چې اې د فلاني سړي پلاره! آيا تا د شعبان د آخري ورځو روژې ونه نيولې؟ هغه اوويل چې نا ④ نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل هر كله چې ته د رمضان د روژو څخه فارغه شې نو دوه ورځې روژې ونيسه (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① سَرَرِ شَعْبَانَ: دمياشت آخرى ورځو ته سَرَر وائى

**تسهيلات:**

**قوله: مِنْ سَرَرِ شَعْبَانَ:**

**د سرر شعبان د لفظ تحقيق:** - دهريو څيز آخرى سر ته سرر وائى د سرار لفظ هم په يوروايت كښې راغلې دې په قاموس كښې ليكلى دى چه سر اوسرار دمياشتې آخرى شپې ته وائى چونكه په دې شپه كښې سپوږمئى پټيږى په دې وجه دې ته سرر اوونيلې شو شاعر وائى

شُهُورٌ يَنْقَضِيْنَ وَمَا شَعَرْنَا لِأَنْصَافٍ لَهُنَّ وَلَا سِرَارِ

دلته په دې حديث كښې دحضورپاك نه خو يا عمران بن حصين رضي الله عنه سوال كړې دې يا بل يوصحابى رضي الله عنه تپوس كړې او عمران رضي الله عنه اوريدلو څه چه هم وى ليكن معلوميږى داسې چه دې سړى د شعبان د آخرى دوو ورځو روژې په خپل ځان باندې د نذر په توګه واجب كړې وې نوحضورپاك هغه ته اوفرمائيل چه كله د رمضان مياشت تيره شى نوتـه د خپل واجب روژو په بدله كښې دوه روژې اوساته

**[٢٠٣٩] په محرم كې د نفلى روژو فضيلت**

٢٠٣٩-(٣) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «أَفْضَلُ الصِّيَامِ بَعْدَ رَمَضَانَ شَهْرُ اللهِ الْمُحَرَّمِ ③ وَأَفْضَلُ الصَّلَاةِ بَعْدَ الْفَرِيضَةِ صَلَاةُ اللَّيْلِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.[1]

**ترجمه:** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② د رمضان د روژو څخه روسته بهترينې روژې د الله جل جلاله د مياشتې چې هغه ماه محرم ده روژې دي ③ او د فرض مانځه څخه روسته د ټولو څخه بهتر مونځ د شپې مونځ دي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: شَهْرُ اللهِ الْمُحَرَّمِ:**

**د شهر الله تعالى طرف ته د اضافت وجه:** - د حديث د ظاهرى الفاظونه معلوميږى چه د محرم په پوره مياشت كښې روژې ساتلو فضيلت دې ليكن عام علماء وائى چه په زيربحث حديث كښې د محرم د روژې نه مراد د يوم عاشورې روژه ده د محرم نسبت الله تعالى طرف ته

[1] اخرجه مسلم فى كتاب الصيام/باب فضل صوم المحرم (رقم-٢٠٢ - (١١٦٣) وابوداود كتاب الصوم/باب فى صوم المحرم (رقم-٢٤٢٩) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صوم المحرم (رقم-٧٤٠ وابن ماجة كتاب الصيام/باب صيام أشهر الحرم (رقم-١٧٤٢) والدارمى ومن كتاب الصوم/باب فى صيام المحرم

کړي شوي دي چه دا د الله تعالى مباشت ده دا د شرف او عزت د وحي نه ده ګنې ټولې مياشتې د الله تعالى دي

**قوله**: صَلَاةُ اللَّيلِ:

**يو اشكال او دهغي جواب**:- علما ؤ ليکلي دي چه سنن مؤکده د تهجد نه غوره دي مګر دلته تهجد د سنن مؤکده نه غوره ګرځولي شوي دی. د دې جواب دا دې چه دلته د فرائضو او سنن دواړو نه پس د تهجد د فضيلت بيان کړي شوي دې نو سنن مؤکده غوره دی

**[٢٠٤٠] د عاشورې د ورځې د روژې فضيلت**

(١) [٥] - «وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: مَا رَأَيْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَحَرَّى صِيَامَ يَوْمٍ فَضْلَهُ عَلَى غَيْرِهِ إِلَّا هَذَا الْيَوْمَ يَوْمَ عَاشُورَاءَ [٢] وَهَذَا الشَّهْرَ يَعْنِي شَهْرَ رَمَضَانَ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې ما نه دي ليدلي چې نبي کريم ﷺ يوه ورځ د روژې د دې کوي او هغه ورځ ته په بله ورځ فضيلت ورکوی [٢] مګر دغه ورځ يعنی د عاشورې ورځ او دې مياشت يعنی ماه رمضان ته به يې په بله ورځ او بلې مياشت فضيلت ورکولو بخاري مسلم

**حل اللغات**:- (١) يَتَحَرَّى: طَلَبُ الأَحْرَى وَالأَوْلَى: د ښه او اعلى څيز طلب کول. کوشش کول

**تسهيلات**:

**قوله**: إِلَّا هَذَا الْيَوْمَ يَوْمَ عَاشُورَاءَ:

علماء حضرات فرمائي چه دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما پوهه او خيال دې ګنې د عرفې د ورځې روژه د عاشورې د ورځې د روژې نه افضل ده

**تسهيلات**

**قوله**: يَتَحَرَّى صِيَامَ يَوْمٍ فَضْلَهُ عَلَى غَيْرِهِ:

**د مذکوره جملې مطلب**:- مطلب دا دې چې حضرت سيد المرسلين ﷺ به د يوې ورځې روژه د نورو ورځو د روژې نه افضل نه ګنړله البته د عاشورې د ورځې روژې ته به نې د نورو ورځو په روژو باندې فضيلت ورکولو او داشان د رمضان روژې به نې د ټولو نه افضل ګرځولې

**د ابن عباس رضي الله عنه د قول په نظر کتنې**:- علماء کرام ليکی چې دا د حضرت ابن عباس رضي الله عنه وهم او ګمان دې چې هغوی د حضرت رسول کريم ﷺ د اقوالو او احوالو نه داسې فهم کړي وی ګنې تر کومې چې د حقيقت تعلق دې نو يوم عرفه او د دې روژه د يوم عاشوره او د دې روژې نه افضل ده

[١] اخرجه البخاري في كتاب الصوم/باب صيام يوم عاشوراء (رقم-٢٠٠٦) ومسلم كتاب الصيام/باب صوم يوم عاشوراء (رقم) ١٣١ - (١١٣٢)

[٢٠٤١] [د محرم په نهمه اولسمه ورځ د روژې نيولو فضيلت

(٢)[٢]١ وَعَنْهُ «قَالَ: حِينَ صَامَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَوْمَ عَاشُورَاءَ وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ٢ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّهُ يَوْمٌ يُعَظِّمُهُ الْيَهُودُ وَالنَّصَارَى،٣ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "لَئِنْ بَقِيتُ إِلَى قَابِلٍ لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**:١ ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې څه وخت چې رسول الله ﷺ د عاشورې په ورځ روژه ونیوله او صحابه ؤ ته یې هم د دې ورځې د روژې نیولو حکم ورکړو ٢ نو صحابه ؤ عرض وکړو چې یا رسول الله! ﷺ دا خو هغه ورځ ده چې د یهودو او نصارې ؤ په نزد ډیره بعظمته ده [او د یهودو او نصارې مخالفت زمونږ طریقه ده نو مونږ روژه نیولو سره د دې ورځې په عظمت کولو کې د یهودو او نصارې موافقت څرنګه وکړو؟]٣ نبي کريم صلى الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې که زه راتلونکی کال ژوندي پاتې شوم نو په نهم تاریخ به ضرور روژه کوم (مسلم)

**تسهیلات**:

**قوله**: لَأَصُومَنَّ التَّاسِعَ:

**دعاشورې د روژې نیولو درې صورتونه**:- دعاشورې د ورځې ابتداء چې د کله نه شوې وه دهغې متعلق بحث ددې باب په فصل ثالث کښې راروان دې د عاشورې د ورځې روژه اول فرض وه د رمضان د فرضیت نه پس ددې فرضیت منسوخ شو اوس د روژې نیولو درې صورتونه دی

① د نهمې لسمې او یوولسمې ورځې روژه نیول افضل دی

② د نهمې لسمې یاد لسمې اویوولسمې ورځې روژې نیول دا درمیانی صورت دې

③ صرف د لسم محرم روژه نیول

**صرف د لسم محرم د روژې نیولو حکم**:-صرف د لسم محرم روژه نیول علامه ابن همام رحمه الله دې ته مکروه تنزیهي ونیلي دی اود مذکوره حدیث څخه هم دا معلومیږي خکه چې په دې کښې د یهودو سره مشابهت دې خو په موجوده زمانه کښې یهودیان دلسم تاریخ روژه نه نیسي نوصرف دا روژه نیول به هم مکروه نه وی خوبیا هم د لسم تاریخ سره د نهم یا یوولس تاریخ روژه نیول به غوره وی

(١) اخرجه مسلم فی کتاب الصیام/باب أی یوم یصام فی عاشوراء (رقم-١٣٣ - (١١٣٤) وابوداود کتاب الصوم . باب ما روی أن عاشوراء الیوم التاسع (رقم-٢٤٤٥)

**[۲۰٤۲] د عرفې د ورځې روژه**

۲۰۰۳–( ١)[٧] [١] «وَعَنْ أُمِّ الْفَضْلِ بِنْتِ الْحَارِثِ أَنَّ نَاسًا تَمَارَوْا عِنْدَهَا [٢] يَوْمَ عَرَفَةَ فِي صِيَامِ رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [٣] فَقَالَ بَعْضُهُمْ: هُوَ صَائِمٌ، وَقَالَ بَعْضُهُمْ: لَيْسَ بِصَائِمٍ [٤] فَأَرْسَلْتُ إِلَيْهِ بِقَدَحِ لَبَنٍ وَهُوَ وَاقِفٌ عَلَى بَعِيرِهِ بِعَرَفَةَ فَشَرِبَهُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [١] بي بي ام فضل رضي الله عنها بنت حارث وايي چې يو وخت زما په مخکې خلقو بحث اوکړو [٢] د عرفې په ورځ د نبي کريم ﷺ د روژې په باره کې [٣] بعضو خلقو ويل چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم روژه ده او بعضو خلقو ويل چې روژه يې نه ده [٤] (د دې په ليدو سره) ما د پيو يوه پياله نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته اوليږله، نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه وخت په ميدان عرفات کې په خپل اوښ ولاړ وو نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه شيدې (آخستو سره) هغه اوڅکلل (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① تَمَارَوْا: اى أَنْ شَكُّوا وَتَنَاخَوْا: يعنې خلقو شک کولو او بحث ني شروع کړو ② قَدَحٍ: پيالې. ③ وَاقِفٌ: ولاړ وو

**تسهيلات: نوټ:** - دعرفې ورځ د روژې په حکم کښې تفصيل د بل حديث په تسهيل کښې ذکر شوې دې

**[۲۰٤۳] ذوالحجې په اوله عشره کښې روژې نيول**

۲۰۰۴–( ٢)[٨] [١] «وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [٢] مَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- صَائِمًا فِي الْعَشْرِ قَطُّ»، رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] ام المومنين بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [٢] چې ما رسول الله ﷺ په عشره کې په روژه هيڅ کله نه دي ليدلي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله: صَائِمًا فِي الْعَشْرِ:**

**د ذوالحجې اولې او رمضان آخرى عشرې په فضيلت کښې اختلاف:** - دَ ذوالحجې رومبي عشره دَ ډيرو زياتو فضيلتونو والاده. په دې کښې يوم عرفه ده چه دَ ډيرو برکتونو والاده. دَ علماؤ په دې کښې اختلاف پيداشوې دې چه دَ رمضان آخرى عشره دَ ډيرو فضيلتونو والاده ځکه

---

(١) اخرجه مسلم فى كتاب الصيام/باب استحباب الفطر للحاج بعرفات يوم عرفة (رقم-١١٠ - (١١٢٣)) والبخارى فى كتاب الصوم/باب صوم يوم عرفة (رقم-١٩٨٨) وابوداود كتاب الصوم/باب فى صوم يوم عرفة بعرفة (رقم-٢٤٤١) والنسائى كتاب الصوم/الصيام فى السفر وذكر اختلاف خبر ابن عباس فيه (رقم-٢٢٨٩)

(٢) اخرجه مسلم فى باب صوم عشر ذى الحجة (رقم) ٩ - (١١٧٦) وابوداود كتاب الصوم/باب فى فطر العشر (رقم-٢٤٣٩) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صيام العشر (رقم-٧٥٦) وابن ماجة كتاب الصيام/باب صيام العشر (رقم-١٧٢٩)

د ذوالحجې ورځې عشره ډير فضيلتونه لري علماء وائي که چرې د رمضان آخرې عشرې نه ليلة القدر اخواکړې شي نو دې نه به د ذوالحجې عشره افضل شي بهرحال هر مسلمان له پکار دې چه په دې عشره کښې نهه ورځې اوساتي حضورپاك په دې کښې روژې ساتلې دي اوامت ته ئې د دې ترغيب ورکړې دې

**يو اشکال:-** په ترمذي شريف کښې د حضرت ابوهريره رضي الله عنه يو حديث ذکر دې په کوم کښې چه دا الفاظ دي "مامن ايام احب الى الله ان يتعبد له فيها من عشر ذي الحجة يعدل صيام كل يوم منها بصيام سنة الخ" امام ترمذي رحمه الله د دې حديث سند ته ضعيف ونيلې دې خو ملاعلي قاري رحمه الله په مرقات کښې د دې حديث نقل کولو نه وروستو ليکلي دي "دل الحديث المشهور وهو الخ" اوس سوال دا دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها په زير بحث حديث کښې دا ځنګه اوفرمائيل چه ما کله هم حضورپاك په دې عشره کښې په روژه ساتلوسره نه دې ليدلې؟

**د اشکال جواب:-** د دې جواب دا دې چه حضرت عائشه رضي الله عنها د خپل علم او د خپل نه ليدلو په اعتبار سره نفي فرمائيلې ده د دې مطلب دا نه دې چه په حقيقت کښې حضورپاك روژه نه ده ساتلې علماء کرام فرمائي چه د حضرت عائشه رضي الله عنها د عدم علم نه عدم ثبوت نه لازميږي دويم جواب دا دې چه فرض کړه رسول الله صلى الله عليه وسلم پخپله نه دي ساتلې لکه چه عائشه صديقه رضي الله عنها فرمائي ليکن حضورپاك امت ته د دې ترغيب ورکړې دې اودا ترغيب کافي وشافي دې لکه ځنګه چه پورته د ترمذي شريف په حديث کښې دي بل د يوم عرفه د روژې ترغيب خو ډير مشهور دې ورسره په حديث نمبر ۲۰۴۳ کښې صوم عرفه ډير لوئي فضيلت ذکر دې

**[۲۰۴٤] يوه ورځ روژه او يوه ورځ افطار**

۲۰۴۴-(۹) [۱] وَعَنْ أَبِي قَتَادَةَ «أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] فَقَالَ: كَيْفَ تَصُومُ؟ فَغَضِبَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مِنْ قَوْلِهِ، [۳] فَلَمَّا رَأَى عُمَرُ غَضَبَهُ قَالَ: [۴] رَضِينَا بِاللَّهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا، [۵] نَعُوذُ بِاللَّهِ مِنْ غَضَبِ اللَّهِ وَمِنْ غَضَبِ رَسُولِهِ، [۶] فَجَعَلَ عُمَرُ يُرَدِّدُ هَذَا الْكَلَامَ حَتَّى سَكَنَ غَضَبُهُ، [۷] فَقَالَ عُمَرُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَيْفَ مَنْ يَصُومُ الدَّهْرَ كُلَّهُ؟ [۸] قَالَ: "لَا صَامَ وَلَا أَفْطَرَ" [۹] أَوْ قَالَ: "لَمْ يَصُمْ وَلَمْ يُفْطِرْ" [۱۰] قَالَ: كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمَيْنِ وَيُفْطِرُ يَوْمًا؟

**ترجمه:** [۱] ابوقتاده رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) يو سړي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په خدمت کې حاضر شو [۲] او پوښتنه يې وکړه چې تاسو روژه څرنګه نيسي (د دې په اوريدو سره) د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په مخ مبارك د غصې آثار ظاهر شو [۳] حضرت عمر رضي الله عنه (چې

) اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب استحباب صيام ثلاثة أيام من كل شهر وصوم يوم عرفة وعاشوراء والاثنين والخميس (رقم) ۱۹۶ - (۱۱۶۲) وابوداود كتاب الصوم كتاب الصدقات/باب الحبس في الدين والملازمة (رقم-۲۴۲۵)

هغه وخت په مجلس کې حاضر وو، د نبی کريم صلى الله عليه وسلم د غصې کيفيت يې وليدلو نو سمدستي يې اوويل ۞ مونږ راضي يو د الله تعالی ﷻ په رب کيدو، د اسلام په دين کيدو او د محمد ﷺ په نبی کيدو ۞ او مونږ د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د غضب څخه د الله تعالی ﷻ پناه غواړو ۞ حضرت عمر ﷜ دا جمله بار بار ويله تردې چې د نبی کريم صلى الله عليه وسلم غصه سړه شوه ۞ د دې څخه روسته حضرت عمر ﷜ پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ د هغه سړي په باره کې څه حکم دی چې هميشه روژې نيسي؟ ۞ نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل نه هغه روژه ونيوله او نه هغه بغير روژې پاتې شو ۞ يا وي فرمايل چې نه يې روژه ونيوله او نه بغير د روژې دې (په دې موقع باندې راوي ته شك دی چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم لاصام ولا أفطر اوويل يا لم يصم ولم يفطر) ۞ بيا حضرت عمر ﷜ پوښتنه وکړه چې د هغه سړي په باره کې څه حکم دی چې دوه ورځې يې روژه وي او يوه ورځ يې روژه نه وي؟

۞ قَالَ: "وَيُطِيقُ ذَلِكَ أَحَدٌ؟" ۞ قَالَ: كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمًا؟ ۞ قَالَ: "ذَلِكَ صَوْمُ دَاوُدَ" ۞ قَالَ: كَيْفَ مَنْ يَصُومُ يَوْمًا وَيُفْطِرُ يَوْمَيْنِ؟ ۞ قَالَ: "وَدِدْتُ أَنِّي طُوِّقْتُ ذَلِكَ" ۞ ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ثَلَاثٌ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ وَرَمَضَانُ إِلَى رَمَضَانَ ۞ فَهَذَا صِيَامُ الدَّهْرِ كُلِّهِ ۞ صِيَامُ يَوْمِ عَرَفَةَ أَحْتَسِبُ عَلَى اللهِ ۞ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ وَالسَّنَةَ الَّتِي بَعْدَهُ ۞ وَصِيَامُ يَوْمِ عَاشُورَاءَ أَحْتَسِبُ عَلَى اللهِ أَنْ يُكَفِّرَ السَّنَةَ الَّتِي قَبْلَهُ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ"

**ترجمه:** ۞ نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې څوك د دې طاقت لري؟ ۞ بيا حضرت عمر ﷜ پوښتنه وکړه چې د هغه سړي په باره کې څه حکم دی چې يوه ورځ يې روژه وي او يوه ورځ يې روژه نه وي؟ ۞ نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دا د حضرت داؤد ﷺ روژه ده ۞ د دې څخه روسته حضرت عمر ﷜ پوښتنه وکړه چې بنه د هغه سړي په باره کې څه حکم دی چې يوه ورځ روژه نيسي او دوه ورځې روژه نه نيسي؟ ۞ نبی کريم صلى الله عليه وسلم اوويل چې زه دا خوښوم چې ماته دومره طاقت حاصل شي ۞ د دې څخه روسته نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د يو رمضان څخه دويم رمضان پورې او د هرې مياشتې درې روژې ۞ د هميشه روژو برابر دي (يعني د دې ثواب د هميشه روژو د نيولو سره برابر دی) ۞ او (د غير حج په حالت کې) د عرفې روژې خو ماته د الله ﷻ څخه اُميد دی ۞ (چې هغه به د دې روژې په وجه) د هغه تير کال گناه لرې کړي او د دې څخه د وروسته کال گناه به يې هم لرې کړي (يعني يا به يې الله تعالی ﷻ د آينده کال د گناهونو څخه محفوظ کړي يا دا که گناهونه خپني وشي نو معاف به کړل شي) ۞ او د يوم عاشورا د روژې په باره کې هم ماته د الله ﷻ څخه اُميد دی چې هغه به د دې روژې په بناء د تير کال گناه لرې کړي (مسلم)

**حل اللغات:-** ① يُطِيْقُ دلته استفهام تقدیری دې اصل کښې داسې دې اَتَقُوْلُ ذٰلِكَ وَيُطِيْقُ آیا ته داسې وې او ددې څوک طاقت لرلې شي؟ ② وَدِدْتُ: اَيْ اَحْبَبْتُ وَتَمَنَّيْتُ یعنی زه خوښوم او خواهش لرم ③ اُحْتَسِبُ امید لرم. ④ يُكَفِّرُ اورژوی. لرې کړی

**تسهیلات: قوله: كَيْفَ تَصُوْمُ:**

**دتپوس کولو په طریقه کښې غلطي:-** سائل له داسې سوال نه وو کول پکار څکه چه هغه دَ نبی پاك ﷺ دَ عبادت دَ کیفیت پوښتنه کړې ده حالانکه داسې نه وو کول پکار بلکه دَ هغه دپاره مناسب وه چه دَخپل احوال مطابق نی دَ روژې ساتلو سوال کړې وې څکه چه دَ رسول اکرم ﷺ معامله خو میلمنوسره هم وه او عامو مسلمانانوته دَ وحی امانت رسولو معامله هم ورسره مخې ته وه دَ وحی تحمل هم کول وو اودَ ازواج مطهرات معاملات هم وو الغرض دحضورپاك په عبادت کښې قلت هم دَ مصلحت لاندې وو اوپه کثرت کښې هم مصلحت وو دې دپاره چه په قلیل اوکثیر عبادت کښې دَ امت دَهریوکس دپاره نمونه جوړه شي هم په دې وجه حضورپاك خفه شو. بیا دَ دغه سائل سوال دَ نبوت دَ آدابو هم خلاف وو دَدې وجوهاتو په وجه حضورپاك سخت خفه شو.

**د حضرت عمر رضی الله عنه د تپوس کولو صحیح انداز:-** حالانکه حضرت عمر رضی الله عنه چه دَ حضورپاك نه کوم سوال کړې وو هغه بالکل هم دغه سوال دې کوم چه دې سړی تپوس کړې وو لیکن دَ سوال انداز بدل وو. انداز مناسب وو. دَ کوم جواب چه حضورپاك ورکړو "فَرَدَّدَهٰذَا الْكَلَامَ" یعنی حضرت عمر رضی الله عنه چه دَ دین کوم اقرار اودَ شیطان دَ پنډ کومه دغوښتلې اودابه نې یوشان لوستله تردې چه دَ حضورپاك غصه کمه شوه هم دغه طریقه په صحابه کرامو او خاص کر حضرت عمر رضی الله عنه اختیاروله.

**قوله: لَاصَامَ وَلَا اَفْطَرَ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:-** ① دَدې یومطلب خودادې چې دا بددعا ده ② دادَ دغه سړی دَ حالت متعلق خبردې چه نه هغه روژه اوساتله څکه چه دَ شریعت دَحکم مطابق دَ نه ساتلو دَ وجې نه به هغه ته نه ثواب ملاویږی اونه نې افطار اوکړو څکه چه په حقیقت کښې خوهغه روژه اوساتله او په ظاهره نې نه څه اوخوړل اونه نې څه اوڅکل.

**د مسلسل پوره کال روژو په ساتلو کښې دوه اقوال:-** ① احنافو محقق ابن همام رحمه الله فرمائی چه دَ ټول کال روژې ساتل مکروه تنزیهی دی څکه چه په دې سره دَ بدن کمزوری راځی دَ کوم دَ وجې نه چه سړې دَ نورو عبادتونو اوجهادنه پاتې کیږی. په کوم سره چه دا اشاره ملاویږی که یوسړې کمزورې کیږی نه نودَهغه دپاره دا روژې جائزدی. ډیرو زیاتو صحابه کرامو به د پوره کال روژې ساتلې او صرف پنځه ممنوعه ورځې به نې پریخودلې.

② شوافع حضرات فرمائی چه دَ عمل دا ضائع کیدل دَهغه سړی دپاره دی چه دَ پوره کال

روژوکښي دَ ایام ممنوعه روژې هم اوساتي یعنی دَ اخترونو اوایام تشریق روژې اوساتي که چرې داسې نه وي نودَ ټول کال روژه ساتل جائزدي

**قوله**: ثَلَاثٌ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ:

**د هرې روژو په مفهوم کښې دوه اقوال**:- ① دې نه مراد دَ ایام بیض روژې دی چه دَ میاشتې په دیارلسم څوارلسم اوپنځلسم تاریخونو کښې وی بعضې علماؤ لیکلی دی چه دَ ایام بیض ثواب هم په دې تاریخونو کښې ملاویږی گنی نه ملاویږی

② بعضې علماء فرمائی چه دَ دریوورځودا روژې دَ میاشتې په هرو دریوورځوکښې هم او په هریوتاریخ کښې هم نیولې کیدې شی راتلونکې دَ حضرت عائشې ﷞ یوروایت هم په دې باندې دلالت کوی.

[۲۰۴۵] دَ پیر دَ ورځې د روژې فضیلت

۲۰۴۵-()[۱۰] ۱ وَعَنْهُ قَالَ: «سُئِلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ صَوْمِ الِاثْنَيْنِ ۲ فَقَالَ: "فِيهِ وُلِدْتُ وَفِيهِ أُنْزِلَ عَلَيَّ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: ۱ ابو قتاده ﷜ وايي چې د رسول الله ﷺ څخه د دوشنبی [پیر] د ورځي د روژي په باره کې پوښتنه وشوه ۲ نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په دي ورځ زه پیدا شوي یم او په دي ورځ په ما دا کتاب (قرآن کریم) نازلیدل شروع شو (مسلم)

**تسهيلات**: **قوله**: فَقَالَ: "فِيهِ وُلِدْتُ وَفِيهِ أُنْزِلَ عَلَيَّ

**د دوشنبه په ورځ د روژې نیولو وجه**:- په مذکوره حدیث مبارك کښې د نبی کریم ﷺ نه د پیر یعنی د گل د ورځې دروژې نیولو سبب معلومول وو چې د پیر د ورځې روژه نیول مستحب ولې ده؟ ددې سبب دادې چې د رسول کریم ﷺ پیدائش په دې ورځ شوې وو او هم په دې ورځ دین فطرت دنیا ته نازلیدل شروع شوی وو په دې وجې دشکرانې په طور د پیر دورځې روژه نیولې کیږی

[۲۰٤٦] هره میاشت کښې درې ورځې روژه ساتل

۲۰٤٦-()[۱۱] ۱ «وَعَنْ مُعَاذَةَ الْعَدَوِيَّةِ أَنَّهَا سَأَلَتْ عَائِشَةَ: ۲ أَكَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصُومُ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ؟ قَالَتْ: نَعَمْ ۳ فَقُلْتُ لَهَا: مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ كَانَ يَصُومُ؟ ۴ قَالَتْ: لَمْ يَكُنْ يُبَالِي مِنْ

() اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب استحباب صيام ثلاثة أيام من كل شهر وصوم يوم عرفة وعاشوراء والاثنين والخميس (رقم) ۱۹۸ - (۱۱۶۲)

() اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب استحباب صيام ثلاثة أيام من كل شهر وصوم يوم عرفة وعاشوراء والاثنين والخميس (رقم) ۱۹٤ - (۱۱۶۰) وابوداود كتاب الصوم . باب من قال: لا يبالي من أي الشهر(رقم-۲٤۵۳) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في صوم ثلاثة أيام من كل شهر (رقم-۷۶۳) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في صيام ثلاثة أيام من كل شهر (رقم-۱۷۰۹)

أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ يَصُومُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] د بي بي معاذه عدويه په باره منقول دي چې هغې د بي بي عايشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه [٢] چې آيا رسول الله ﷺ به هره مياشت درې ورځې (نفلي) روژې نيولې؟ هغه وفرمايل چې هو [٣] (بي بي معاذه وايي) بيا ما د هغې څخه پوښتنه وکړه چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د مياشتي په کومو ورځو کې روژه نيوله؟ [٤] هغې وفرمايل چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم به د مياشت په څه خاص ورځ کې د روژې نيولو اهتمام نه کولو يعني په کومه ورځ چې به يې غوښتل روژه به يې نيوله. څه خاص ورځ مقرره نه وه. (مسلم)

**حل اللغات:** - لَمْ يَكُنْ يُبَالِي: پرواه به نې نه کوله

**تسهيلات:**

**قوله** لَمْ يَكُنْ يُبَالِي مِنْ أَيِّ أَيَّامِ الشَّهْرِ يَصُومُ:

**په مياشت کښې د درې روژو نيولو تاريخونه:** دَدې حديث نه معلومه شوه چه دَ ايام بيض دپاره د تاريخونو تعين مناسب نه دي بلکه دَ مياشتې په هريو تاريخ کښې روژې ساتلو سره به د ايام بيض حق اداشي. خو بياهم دَ ډيرو زياتو احاديثو نه تعين هم ثابت دي اودَ ايام بيض نوم هم مشهور دي او په امت کښې ايام بيض يوپيخواني اصطلاح هم ده لهذا دا په عمل سره ژوندي ساتل ډير مناسب دي.

**[۲۰۴۷] دَ شوال شپږ روژې نيول**

۲۰۴۷-( )[۱۳] [١] وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ أَنَّهُ حَدَّثَهُ [٢] «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "مَنْ صَامَ رَمَضَانَ [٣] ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ كَانَ كَصِيَامِ الدَّهْرِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [١] د ابو ايوب انصاري رضي الله عنه څخه روايت دي چې هغه د خپل راوي څخه (چې د هغه نوم عمرو بن ثابت دي) دا حديث بيان کړو [٢] چې رسول الله ﷺ وفرمايل کوم سړي چې د رمضان روژې ونيسي [٣] بيا د هغې څخه روسته د شوال په مياشت کې شپږ روژې (هم) ونيسي نو هغه به د هميشه روژو نيونکو په شان وي (مسلم)

**تسهيلات:** **قوله**: ثُمَّ أَتْبَعَهُ سِتًّا مِنْ شَوَّالٍ:

**د شوال روژو په تسلسل او انقطاع کښې دوه اقوال:** - دَشوال شپږ روژې په دې صحيح اوصريح حديث سره ثابتې دی

① دَ وړوکی اخترنه پس دا په شوال کښې په جدا جدا توګه هم ساتلې شی بعضې فقهاؤ

---

) اخرجه مسلم فی کتاب الصيام/باب استحباب صوم ستة أيام من شوال إتباعًا لرمضان (رقم) ۲۰۴ - (۱۱۶۴) وابوداود کتاب الصوم/باب فی صوم ستة أيام من شوال (رقم-۲۴۳۳) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی صيام ستة أيام من شوال(رقم-۷۵۹) وابن ماجة کتاب الصيام/باب صيام ستة أيام من شوال(۱۷۱۶) والدارمی ومن کتاب الصوم/باب فی صيام الستة من شوال

جدا جدا ساتل اولي گرځولي دي

② او منصلاً ساتل هم جائزدي بعضي اتصال اولي گرځولې دي

**تطبيق:** - تطبيق داسې کيدې شي چه کوم خاني خلق اتصال رمضان سره ګډوډوالي ګنړي او نوبت نردې راورسي چه بعضي نادانان د روژې اختر په ورځ واني "نحن الى الآن لم يأت عيدنا" نوپه داسې صورت کښې جداوالي اولي دې او که چرې د اختلاط صورت نه پيدا کيږي او خلق په شك کښې نه راځي نواتصال اولي دې

**د شوال روژو نيولو کښې د کراهت قول:** - امام مالك رحمه الله د شوال شپږ روژې ساتل مکروه ګڼلي دي په موطا کښې فرمائي "مارئت احدامن اهل العلم يصومها" يعنې په عواموکښې خو مشهوره ده ليکن ما په علماؤ کښې دا روژې ساتل نه دي ليدلي د احنافو د علماؤ نه علامه ابن همام رحمه الله په حواله د امام ابويوسف رحمه الله او ابوحنيفه رحمه الله دا مکروه ليکلي دي.

**د کراهت د قول تطبيق:** - ملاعلي قاري رحمه الله داسې فيصله فرمائي "قالوايکره لئلايظن وجوبها" کذا في المرقات ج۴ص۵۴۵،

بهرحال د صحيح اوصريح حديث په موجودګۍ کښې د شوال د روژو نه انکار کول خو ډيرلوئي جرات دې چه د يوعالم دپاره هم مناسب نه ده ليکن عوام الناس دې روژو سره د التزام معامله شروع کړې ده لکه چه پورته د ملا علي قاري رحمه الله نقل کړې شوې عبارت نقل کړې دې چه يونادان واني "نحن الى الآن لم يأت عيدنا" نوداسې خارجي عوارض اوخارجي منکرتود وجې نه کيدې شي چه امام مالك رحمه الله او ابن همام رحمه الله دې ته مکروه وئيلي دي

**په حرمينو کښې د شوال د روژو اهتمام:** - نن صبا په حرمين شريفين کښې د دې روژو دومره اهتمام کيږي چه يوسړي ته داخيال هم نه راځي چه د رمضان مياشت ختمه شوې ده د پيشمنی اوروژې ماتي هم دغه شان بندوبست اوهم هغه شان اهتمام کيږي لکه څنګه چه په رمضان کښې کيږي دې ته په کتوسره د احناف فقهاء او امام مالك رحمه الله په اقوالو پوهيدې شي بهرحال دا غلو يوعارضي اوخارجي معامله ده. د صريح اوصحيح حديث حکم په خپل خاني دي

**[۲۰٤۸]په اخترونو او ايام تشريق کښې د روژې نيولو ممانعت**

۲۰۴۸-( )[۱۳] ① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: ② «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ صَوْمِ يَوْمِ الْفِطْرِ وَالنَّحْرِ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] اخرجه البخاري في كتاب الصوم /باب صوم يوم الفطر (رقم -۱۹۹۱) ومسلم كتاب الصيام /باب النهي عن صوم يوم الفطر ويوم الأضحى (رقم) ۱٤۱ - (۱۱۳۸) وابوداود كتاب الصوم /باب في صوم العيدين (رقم -۲٤۱۷) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في كراهية الصوم يوم الفطر والنحر (رقم -۷۷۲) وابن ماجة كتاب الصيام /باب في النهي عن صيام يوم الفطر والأضحى (رقم ۱۷۲۱) والدارمي ومن كتاب الصوم /باب النهي عن الصيام يوم الفطر ويوم الأضحى

**ترجمه:** ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي ② چې رسول الله ﷺ د فطر او نحر ورځې (کوچنی اختر او لوی اختر) په ورځ د روژې نيولو څخه منع فرمايلې ده (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ صَوْمِ يَوْمِ الْفِطْرِ وَالنَّحْرِ:

**په پنځوو ورځو کښې د روژې نيولو ممانعت:** – په دې ورځو روژه نيولو سره د الله ﷻ د طرفه چې کومه ميلمستيا شوې وی د هغې نه اعراض لازميږی په دې وجه دا ممنوع ده حاصل دا دی چې پنځې ورځې داسې دی چې په هغې کښې روژه نيول حرام دی د عيد الفطر په ورځ يوم النحر او ددې نه پس درې ورځې لقوله عليه الصلاة السلام (لاتصوموا فی هذه الأيام فإنها أيام أکل وشرب وبعال)

**په ايام ممنوعه کښې د نذر په منلو کښې اختلاف:** – په دې ورځو کښې چا د روژې نيولو نذر او منلو

① د امام صاحب رحمه الله په نزد به دده نذر صحيح شی البته دا کس دې په دې ورځ روژه نه ساتی بلکه په بله ورځ دې روژه اوساتی

② د امام شافعی رحمه الله په نزد په دې ورځو کښې نذر منل صحيح نه دی

**[۲۰٤۹] د اخترونو په ورځ د روژې نيولو ممانعت**

> ۲۰٤۹ – ( ) [۱۳] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «لَا صَوْمَ فِي يَوْمَيْنِ الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابو سعيد خدري رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② دوه ورځې (يعنی دوه موقع) داسې دی چې په هغې کې روژه (جائز) نه ده د وړوکي اختر په ورځ او د لوئ اختر (څلور) ورځې (يعنی د ذی الحجه دلسم تاريخ څخه تر ديارلسم تاريخ پورې) (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا صَوْمَ فِي يَوْمَيْنِ الْفِطْرِ وَالْأَضْحَى:

**په دوؤ ورځو کښې د روژې نيولو ممانعت:** – دوؤ ورځو نه مراد دوه قسمه ورځې دی لهذا بقر عيد نه مراد يوم النحر او د ذی الحجې يوؤلسمه دولسمه او ديارلسمه ورځې روژه نيول هم ممنوع دی

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الصوم/باب صوم يوم النحر (رقم-۱۹۹۵) ومسلم فی کتاب الصيام/باب النهی عن صوم يوم الفطر ويوم الأضحی (رقم) ۱٤۰ - (۸۲۷) کتاب الصوم/باب فی صوم العيدين (رقم-۲٤۱۷) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی کراهية الصوم يوم الفطر والنحر (رقم-۷۷۱) وابن ماجة کتاب الصيام/باب فی النهی عن صيام يوم الفطر والأضحی (رقم-۱۷۲۲)

**[٢٠٥٠] ايام تشريق او خوراک څکاک**

٢٠٥٠-(١)[١٥][١] وَعَنْ نُبَيْشَةَ الْهُذَلِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[٢] "«أَيَّامُ التَّشْرِيقِ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ وَذِكْرِ اللهِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:**[١] نبيشه هذلي وايي چه رسول الله ﷺ وفرمايل[٢] چي ايام تشريق د خوراك څښـك او د الله تعالى جل جلاله د يادولو ورځي دي (مسلم)

**حل اللغات:** - ① التَّشْرِيق : دا د شرق نه دي، شرق دَ نمر راختلوته وائى اى كَانُوا يُشَرِّقُونَ فِيهَا لُحُومَ الْأَضَاحِي عرب خلقو به دَ قربانئ دَ غوښي ټكړې جوړولوسره په نمركښې اوچولې هم په دې مناسبت سره دا دې ورځونوم ايام تشريق شو

**تسهيلات:**

**قوله: أَيَّامُ التَّشْرِيقِ أَيَّامُ أَكْلٍ وَشُرْبٍ:**

په لوئى اختر او وړوكي اختركښې الله تعالى دَ مسلمانانودَپاره دَ ميلمستيا انتظام كړې دې لهذا دَالله تعالى دَ دسترخوان نه خوراك خوړلونه ډډه كول ډير زيات نامناسب دى په دې وجه شريعت په دې ورځ روژه ساتل منع كړل.

**قوله: أَيَّامُ التَّشْرِيقِ:**

**دايام التشريق مصداق اووجه تسميه:** -دادَ ذوالحجې يولسم دولسم اوديارلسم تاريخونوته وائى

**د بعضې رواياتو زيادت:** -په يوروايت كښې دَ "وبعال" الفاظ هم دى كوم چه دَ جماع په معنى كښې دى په يوروايت كښې "وذكرالله تعالى" الفاظ دى په كوم سره چه اشاره ملاويږى چه مسلمان له پكاردى چه هغه دې په خپله ډيره خوشحالئى كښې هم دَالله تعالى دَ ذكر نه غافل پاتې نه شى

**[٢٠٥١] دَ نفلى روژو دَپاره دَ جمعې دَ ورځې دَتخصيص حكم**

٢٠٥١-(٢)[١٦][١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[٢] "«لَا يَصُومُ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ[٣] إِلَّا أَنْ يَصُومَ قَبْلَهُ أَوْ يَصُومَ بَعْدَهُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:**[١] د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله ﷺ (د نهى تنزهى په طور)

[١] اخرجه مسلم فى كتاب الصيام/باب تحريم صوم أيام التشريق (رقم) ١٤٤ - (١١٤١) وابوداود كتاب الصوم . باب النهى أن يخص يوم الجمعة بصوم (رقم-٢٤٢٠) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية الصوم يوم الفطر والنحر (رقم-٧٧١) وابن ماجة كتاب الصيام/اب فى النهى عن صيام يوم الفطر والأضحى (رقم-١٧٢٢)

[٢] اخرجه البخارى كتاب الصوم/باب صوم يوم [ص:٤٢] الجمعة (رقم:١٩٨٥) ومسلم كتاب الصيام/باب كراهة صيام يوم الجمعة منفرداً (رقم) ١٤٧ - (١١٤٤) وابوداود كتاب الصوم . باب النهى أن يخص يوم الجمعة بصوم (رقم-٢٤٢٠) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى كراهية صوم يوم الجمعة وحده (رقم-٧٤٢) وابن ماجة كتاب الصوم . باب النهى أن يخص يوم الجمعة بصوم (رقم-٢٤٢٠)

وفرمایل [۲] په تاسو کې دې څوك د جمعې په ورځ روژه نه نیسي [۳] البته داسې روژه نیولې شي چې د هغې څخه یوه ورځ مخکې یا یو ورځ وروسته هم روژه اونیسي (بخاري مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَصُومُ أَحَدُكُمْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ

**د جمعې ورځ په روژې سره د خاص کولو کراهت:** - مطلب دادې چې صرف د جمعې په ورځ دې روژه نه ساتي بلکه د جمعې ورځ سره دې زیارت یاد خالي ورځ هم یو ځاې کړي او که ددې دواړو ورځو یعنې زیارت او خالي او ورسره د جمعې روژه هم اوساتي نو دا بهتر دی په حدیث کښې صرف د جمعې د ورځې د روژې نیولو د ممانعت ذکر فرمائیلې شوې دې دا د نهي تنزیهي په طور دی.

**[۲۰۵۲] د جمعې په ورځ روژه نیول**

۲۰۵۰ - (۱۷) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «لَا تَخْتَصُّوا لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ بِقِيَامٍ مِنْ بَيْنِ اللَّيَالِي [۳] وَلَا تَخْتَصُّوا يَوْمَ الْجُمُعَةِ بِصِيَامٍ مِنْ بَيْنِ الْأَيَّامِ [۴] إِلَّا أَنْ يَكُونَ فِي صَوْمٍ يَصُومُهُ أَحَدُكُمْ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په ټولو شپو کې یواځې د جمعې شپه د عبادت خداوندي د پاره مه مخصوص کوئ [۳] دغه شان په ټولو ورځو کې یواځې د جمعې ورځ د روژې نیولو د پاره مه مخصوص کوئ [۴] هو که په تاسو کې د چا د روژې په مینځ کې چې هغه یې د مخکې څخه نیسي جمعه راشي نو بیا یواځې د جمعې د ورځې په روژه نیولو کې څه حرج نشته. (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَا تَخْتَصُّوا لَيْلَةَ الْجُمُعَةِ:

**د جمعې ورځ د عبادت دپاره د مخصوصو کولو د ممانعت وجوهات:** - یعنې یو سړې دې دَ جمعې ورځ دَ روژې دَ پاره نه خاص کوی اوکه دَ جمعې نه وړاندې یا روستو والا ورځې هم روژه ساتي نو بیا صحیح ده څکه چه په دې صورت کښې تخصیص پاتې نه شو

شیخ توربشتي رحمه الله فرمائي شریعت په دوو وجوهاتو سره جمعه دَ عبادت دَپاره مخصوص کولو ممانعت کړې دې

① نصاریٰ دَهفتې ورځ دَ تعظیم عبادت او روژې دَپاره خاص کړې ده او یهودو دَ اتوار ورځې دَ عبادت او خاص کر دَ روژې دَپاره خاص کړې ده. اسلام دَ جمعې ورځ دَ روژې دَپاره دَ خاص کولو ممانعت اوکړو دې دَپاره چه یهودا ونصاریٰ سره مشابهت رانه شي

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الصیام/باب کراهة صیام یوم الجمعة منفرداً (رقم) ۱۴۸ - (۱۱۴۴)

② چه کله الله تعالی د جمعې ورځ د یوځو عبادتونو سره خاص کړه او د هفتې نورې ورځې نی هم د څه نه څه خصوصي اعمالو سره خاص کړې نو بالکل مناسب نه وه چه دَالله تعالی تخصیص سره بو انسان تخصیص اوکړی ،یعنی د تخصیص عباداتو حق صرف الله تعالی جل شانه ته حاصل دی.

**د ملا علي قاري وائي:** – ملاعلي قاري رحمه الله داکلام نقل کړې دې اودَدې نه پس نی فرمائیلی دی چه د یوحکمه حکمت یا مصلحت پیژندل د بنده کار نه دې د بنده شان سره خو دا ښائی چه هغه دا اعتراف او اعلان اوکړی چه زمونږ کار هریوحکم منل او په هغې عمل کول دی

**قوله**: يَوْمَ الْجُمُعَةِ:

**په حديثونو کښې د تعارض اشکال:** – دلته دا سوال راپیدا کیږی چه دَحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه یوروایت دې چه صاحب مشکوة په فصل ثانی کښې ذکرکړې دې کوم چه حدیث نمبر ۲۰۰۰ دې په هغې کښې په واضح توګه دَ جمعې په ورځ دَ روژې ساتلو دَتخصیص بیان دې "وقلما كان يفطر يوم الجمعة" اوس په دې دوارو احاديثوکښې تعارض دې دَدې څه جواب دې؟

**د اشکال جوابونه:** – ① دَدې سوال دوه جوابونه دی رومبی جواب دادې چه ائمه احناف فرمائی چه دا سوال خو په هغه خلقودې چه دَ جمعې دَ تخصیص نه منی احناف خودَ جمعې تخصیص منی ملاعلي قاری رحمه الله په مرقات کښې دَ علامه ابن همام رحمه الله په حواله سره دا سې لیکی "قال ابن الهمام ولا بأس بصوم يوم الجمعة منفردًا عند ابي حنيفة ومحمد رحمهما الله"

ملاعلي قاری رحمه الله هم لیکی چه دانهی تنزیهی ده

② ملاعلي قاری رحمه الله دا جواب هم ورکړې دې چه حضورپاك کوم ممانعت فرمائیلې دې هغه دَ شفقت اورحمت په بنیاد باندې دې چه په جمعه کښې نور عبادتونه مثلاً غسل دې سعی ده خطبه اوجمعه ده اوس که چرې روژه هم دې عبادتونوسره یوځائی کړې شی نو په مشقت کښې به پریوځی

③ ملاعلي قاری داجواب هم ورکړې دې چه حضورپاك په دې وجه ممانعت اوفرمائیلو چه هسې نه خلق دَ جمعې دورځې روژه واجب اونه ګنړی ملاعلي قاری رحمه الله دَ حضرت ابن مسعود رضی الله عنه روایت ته ترجیح ورکوی په هغې کښې دَ تاویل انکارکولوسره لیکی چه "بل ظاهره الاطلاق المؤيد لمذهبنا انه لا يكره افراده صومه" [اشعة المعات]

④ د عبادت دَپاره دَ جمعې دَ تخصیص ممانعت اوکراهت په دې صورت کښې دې چه یوسړې یونیك عمل دَ جمعې دَ فضیلت دَپاره روستوکوی مثلاً صدقه ده یا څوك روژه ساتی هغه په نورو ورځوکښې شاته کوی اودَ جمعې دَ ورځې پورې رسولوسره دغه نیك عمل په جمعه کښې دَثواب دَ زیاتوالی دَ پاره خاص کوی داپه دې وجه منع دې چه په دې

کښې د عقيدې د خرابئ خطره ده

⑤ بهرحال نور ائمه حضرات د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په روايت کښې تاويل کوي او وائي چه په دې کښې ځان له د جمعې روژه مراد نه ده بلکه دې سره دويمه ورځ يو ځائي کول مراد دي

⑥ شيخ عبد الحق رحمه الله په اشعة اللمعات کښې ليکلي دي چه: د جمعې د تخصيص ممانعت وجه دا ده چه په نورو ورځو کښې عبادت پرېښودې شي ځکه چه عبادت خو هر وخت کول پکار دي صرف د جمعې پورې خاص کول مناسب نه دي [اشعة اللمعات]

**[۲۰۵۲] د جهاد په سفر کښې د روژې ساتلو حکم**

| |
|---|
| ۲۰۵۲—( )[۱۸] ⑴ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑵ «مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللهِ ⑶ بَعَّدَ اللهُ وَجْهَهُ عَنِ النَّارِ سَبْعِينَ خَرِيفًا» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |

**ترجمه:** ⑴ د ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ⑵ کوم سړي چې د الله تعالى په لار کې (يعني د جهاد په وخت يا دا چې خالص د الله رب العزت د پاره) يوه ورځ روژه ونيوله ⑶ الله تعالى به د هغه مخ يعني د هغه ذات د دوزخ د اور څخه د اويا کالو د مسافت په اندازه لرې وساتي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① بَعَّدَ اللهُ: لرې به ئې کړي الله پاک (په لحاظ د مسافت سره) ② خَرِيفًا: خريف د خزان موسم ته وائي. دلته ترې کال مراد دي.

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللهِ:**

**د صوم په مصداق کښې دوه اقوال:-** ① يعنې دې دوه مشقتونه برداشت کړي يو د جهاد مشقت او بل د روژې مشقت نو دې ځکه د جهنم څخه لرې کولې شي

② يا د دې نه مراد هغه روژه ده کومه چې د الله جل جلاله د رضا د پاره اوساتلې شي (مرقاة ج ۴ ص ۲۹۶)

**قوله: سَبْعِينَ خَرِيفًا:**

**د خريف ذکر کولو کښې نکته:-** د اوياؤ کالو د مسافت بقدر به دده مخ د جهنم نه لرې کړې شي دلته ئې صرف خريف په دې وجه خاص کړو چې په دې کښې ميوې او پټي وغيره پخېږي او هم په دې باندې د کال خاتمه کيږي (مرقاة)

[1]) اخرجه البخاري كتاب الجهاد والسير/باب قول الله عز وجل: {قل هل تربصون بنا إلا إحدى الحسنيين} [التوبة: ۵۲] والحرب سجال (رقم: ۲۸۰٤)ومسلم كتاب الصيام/باب فضل الصيام في سبيل الله لمن يطيقه. بلا ضرر ولا تفويت حق (رقم) ۱۶۷ - (۱۱۵۳) والترمذي في كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء في فضل الصوم في سبيل الله (رقم-۱۶۲۳) والنسائي كتاب الجنائز/باب: ثواب من صام يومًا في سبيل الله عز وجل وذكر الاختلاف على سهيل بن أبي صالح في الخبر في ذلك (رقم) ۲۲٤٤ وابن ماجة كتاب الصيام/باب صيام ستة أيام من شوال(رقم-۱۷۱۷)

## [۲۰۵٤] په اعمالوکښې اعتدال اختیارول

۲۰۵٤ - (۱۹) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«يَا عَبْدَ اللهِ أَلَمْ أُخْبَرْ أَنَّكَ تَصُومُ النَّهَارَ وَتَقُومُ اللَّيْلَ؟" فَقُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللهِ [۳] قَالَ: "فَلَا تَفْعَلْ: صُمْ وَأَفْطِرْ، وَقُمْ وَنَمْ، [۴] فَإِنَّ لِجَسَدِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، [۵] وَإِنَّ لِعَيْنِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، [۶] وَإِنَّ لِزَوْجِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، [۷] وَإِنَّ لِزَوْرِكَ عَلَيْكَ حَقًّا، [۸] لَا صَامَ مَنْ صَامَ الدَّهْرَ، [۹] صَوْمُ ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ صَوْمُ الدَّهْرِ كُلِّهِ، [۱۰] صُمْ كُلَّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، [۱۱] وَاقْرَأِ الْقُرْآنَ فِي كُلِّ شَهْرٍ" [۱۲] قُلْتُ: إِنِّي أُطِيقُ أَكْثَرَ مِنْ ذَلِكَ، [۱۳] قَالَ: "صُمْ أَفْضَلَ الصَّوْمِ، صَوْمَ دَاوُدَ صِيَامَ يَوْمٍ وَإِفْطَارَ يَوْمٍ، [۱۴] وَاقْرَأْ فِي كُلِّ سَبْعِ لَيَالٍ مَرَّةً، وَلَا تَزِدْ عَلَى ذَلِكَ»" مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن عمرو بن عاص رضي الله عنه وایي چې (یوه ورځ) رسول الله ﷺ ماته وفرمایل [۲] اې عبدالله! آیا ماته دا اطلاع نه ده رسیدلې؟ (یعنې ماته دا معلومه شوې ده) چې ته روزانه (د ورځې) روژې نیسې او (په هره شپه کې) پوره شپه د الله تعالی په عبادت او ذکر او تلاوت کې مشغول اوسې؟ ما عرض وکړو چې هو یا رسول الله ﷺ دغه شان ده [۳] نبی کریم صلی الله علیه وسلم راته وفرمایل چې داسې مه کوه بلکه روژه هم نیسه او بغیر روژې هم اوسه د شپې عبادت خداوندي هم کوه او اوده کیږه هم [۴] ځکه چې ستا بدن هم په تا حق لري (نو خپل بدن په ډیر مشقت او ریاضت کې مه مبتلا کوه چې په بیمارۍ او هلاکت کې پریو نه ځي) [۵] ستا د سترګو هم په تا حق دي (نو د شپې اوده کیږه هم چې سترګې آرام او سکون بیامومي) [۶] ستا د ښځې هم په تا حق دي (نود هغې سره شب باشي او صحبت او مباشرت هم کوه) [۷] ستا میلمه هم په تاحق لري (نو د هغه سره مجلس کوه، د هغه خاطر او مهمانداری کوه او د هغه سره په خوراک څښاک کې شریك کیږه) [۸] کوم سړي چې همیشه روژه ونیوله هغه (لکه چې) روژه ونه نیوله [۹] (البته) په هره میاشت کې درې ورځې روژې د همیشه روژو برابري دي [۱۰] نو په هره میاشت کې درې ورځې (یعنې د ایام بیض یا مطلقاً درې ورځې) روژې نیسه [۱۱] او دغه شان په هره میاشت کې قرآن وایه (یعنې په یوه میاشت کې یو ځل قرآن ختموه، یوه سپاره د ورځې شوه) [۱۲] ما عرض وکړو چې زه د دې ځنه زیات همت لرم [۱۳] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې بیا بهترینه روژه چې روژه د داؤد (علیه السلام) ده هغه نیسه د هغې طریقه دا ده چې یوه ورځ روژه نیسه او یوه ورځ روژه مه نیسه [۱۴] او په اووه ورځو (یعنې په یوه هفته) کې قرآن ختموه او په دې کې اضافه مه کوه (یعنې په نفل روژو نیولو او په قرآن شریف ختمولو کې د مذکوره بالا تعداد او مقدار ځنه زیاتوالی مه کوه) (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① أُطِيقُ: طاقت او همت لرم

---

[۱] اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب حق الجسم في الصوم (رقم -۱۹۷۵) ومسلم كتاب الصيام/باب النهي عن صوم الدهر لمن تضرر به أو فوت به حقا أو لم يفطر العيدين والتشريق. وبيان تفضيل صوم يوم. وإفطار يوم (رقم) ۱۸۲ - (۱۱۵۹) وابو داود كتاب الصوم/باب في صوم الدهر تطوعًا (رقم ۲٤۲۷) كتاب الصدقات/باب الحبس في الدين والملازمة (رقم) ۲٤۲۷

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَاتَفعَلْ : صُمْ وَأَفطِرْ:**

**د مذكور حديث پس منظر:** - دَ حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما چه كله واده اوشو نوځه موده پس دَهغوی پلار حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه دَ خپلې اينګور نه تپوس اوكړو زما خونی څنګه دي؟ اينګور جواب وركړو ډير ښه نيك سړي دي تول ورځ روژه ساتي او تول شپه تهجد كوي په دې اشاره سره حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه پوهه شو چه په حقوق زوجيت كښې مې خوني كوتاهي كوي هغه لاړو دَدې خبرې شكايت ئې حضورپاك ته اوكړو دې دَپاره چه حضورپاك دَهغه خوني پوهه كړي چنانچه رسول الله ﷺ حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما ته اوفرمائيل ولې ماته دَدې خبر نشته چه ته تول ورځ روژه ساتې او تول شپه تهجد كوې؟ هغه اقرار اوكړو په دې باندې حضورپاك هغه په اعتدال باندې دَ راوستو دَپاره اوفرمائيل چه دَ اعتدال لار اختيار كړه ځكه چه ستا په ذمه ډير زيات حقوق دی دَهغې ادا كول هم ضروري دی. لهذا په عبادت كښې خو نه دومره كوتاهي كول پكار دی چه عملی ژوندون ته دې نقصان وی او نه دومره زياتي او سختي پكار ده چه دَ انسان تول طاقتونه مفلوج پاتې شی. رسول الله ﷺ دَ هر يو څيز نوم اخستو سره دَ هغې لارخودنه اوكړه

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۰۵۵]دَ دوشنبې او زيارت دَ ورځې دَ روژو فضيلت**

۲۰۵۵-()[۲۰]① عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَصُومُ الإِثْنَيْنِ وَالْخَمِيسَ»[1] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① ام المؤمنين بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي ② چه رسول الله ﷺ به د دوشنبې او جمعرات په ورځ نفلي روژې نيولې (ترمذي نسايي)

**حل اللغات:** - ① الإِثْنَيْن : د ګل ورځ (پير، دوشنبه) ② الْخَمِيسَ : د زيارت ورځ (جمعرات، پنج شنبه)

**تسهيلات:**

**قوله: يَصُومُ الإِثْنَيْنِ وَالْخَمِيسَ:**

**په هفته كښې د دوو ورځو د روژې نيولو فضيلت:** - په دې حديث پاك كښې د زيارت او د دوشنبه د ورځې د روژې نيولو فضيلت بيان شوې دي

[1] اخرجه الترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى صوم يوم الاثنين والخميس (رقم-۷۴۵)والنسائى كتاب الصوم/باب صوم النبى صلى الله عليه وسلم بأبى هو وأمى. وذكر اختلاف الناقلين للخبر فى ذلك(رقم-۲۳۶۱) وابن ماجة كتاب الصيام/باب صيام يوم الاثنين والخميس (رقم-۱۷۳۹)

**[٢٠٥٦] د نبی علیه السلام خوښی روژی**

٢٠٥٦—( )[٢١]① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:② " «تُعْرَضُ الْأَعْمَالُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ،③ فَأُحِبُّ أَنْ يُعْرَضَ عَمَلِي وَأَنَا صَائِمٌ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① د ابوهريره رضي الله عنه څخه روایت دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د دوشنبی او جمعرات په ورځ (د الله رب العزت په بارګاه کی) عمل پیش کول کیږی ③ څکه زه خوښوم چې کله زما عمل پیش کیږي نو چه زما روژه وي. (ترمذي)

**حل اللغات:-** ① تُعْرَضُ: پیش کولې شی

**تسهیلات:**

**قوله: تُعْرَضُ الْأَعْمَالُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ:**

**د کل اوزیارت په ورځ دالله تعالی په دربار کښې د اعمالو پیشی:-** فرښتې دَ انسان دَ هرې ورځې اعمال لیکی او پورته ئی اوړی. بیا دَ زیارت او پیر په ورځ دَ الله تعالی دربار کښې هغه اعمال پیش کولې شی. لهذا داحدیث هغه حدیث سره معارض نه دې په کوم کښې چه ونیلی شوی دی چه دَ انسان روزانه اعمال دَ الله تعالی مخکښې پیش کولې شی

**[٢٠٥٧] د ایام البیض روژې**

٢٠٥٧—( )[٢٢]① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:② " «يَا أَبَا ذَرٍّ إِذَا صُمْتَ مِنَ الشَّهْرِ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ③ فَصُمْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ وَأَرْبَعَ عَشْرَةَ وَخَمْسَ عَشْرَةَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** ① ابو ذر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② اي ابو ذره! که ته په میاشت کې درې روژې نیول غواړې ③ نو په دیارلسم [١٣] څوارلسم [١٤] پنځلسم [١٥] په دغو ورځو کې روژه نیسه (ترمذي نسايي)

**تسهیلات:**

**قوله فَصُمْ ثَلَاثَ عَشْرَةَ...الخ:**

په هره میاشت کښې درې ورځې دَ نفل روژې ساتلو ډیرې طریقې نقل دی لیکن بهتر او افضل هم دغه دی چه دغه دې دَ ایام بیض روژې وی دکوم مصداق چه دَ هرې میاشتې دیارلسم څوارلسم او پنځلسم ورځ ده لکه چه زیربحث حدیث کښې دَدې تصریح او وضاحت کړې شوې دې دَ ایام بیض معنی ده سپینه او روښانه ورځ چونکه په هره میاشت

---

) اخرجه الترمذی فی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی صوم یوم الاثنین والخمیس (رقم-٧٤٧) والدارمی فی ومن کتاب الصوم /باب الصوم فی السفر

) اخرجه الترمذی فی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم رقم الحدیث ٧٦١ والنسائی فی السنن رقم الحدیث ٢٤٢٢

کښي به دي تاریخونو کښي سپوږمۍ ښه ترقي ته رسیدو سره ښه روښانه وي په دې وجه دي ته ایام بیض اوونیلي شو لهذا هرمسلمان له پکار دی چه هغوی دي د استحباب په توګه ددې روژي اهتمام اوکړی د اهل تصوف اود هغوی خانقاهی نظام کښي د دي روژو ډیر لوئی اهتمام وی مدرسو کښي طالبان او عالمان هم دا روژي ساتی په کلو کښي کورونو کښي ښځي ددي ډیر اهتمام کوی لیکن د تبلیغی جماعت لوئي لوئي خلق په عام توګه دا روژي نه پیژنی ځکه چه هغوی د اعمالو دنورو ډیره غړه وی او عمل کم کوی

**[۲۰۵۸] د جمعې په ورځ د نفلي روژي ساتلو جواز**

۲۰۵۸–( )[۲۳] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصُومُ مِنْ غُرَّةِ كُلِّ شَهْرٍ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ، [۳] وَقَلَّمَا كَانَ يُفْطِرُ الْجُمُعَةَ»، رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ، وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ إِلَى ثَلَاثَةِ أَيَّامٍ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن مسعود رضي الله عنه فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د هري میاشتی په شروع کې په دري ورځو کې روژه نیوله [۳] او داسې به ډیر کم کیدل چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به د جمعې په ورځ روژه نه وه نیولې (ترمذي نسايي) او ابوداؤد دا روایت تر ثلثة ایام پورې نقل کړي دي

**حل اللغات:-** ① غُرَّةِ: أَيْ أَوَّلِهِ: د میاشتې رومبنۍ ابتدائی ورځې ② قَلَّمَا: ډیر کم

**تسهیلات:**

**قوله: وَقَلَّمَا كَانَ يُفْطِرُ الْجُمُعَةَ:**

**د تعارض اشکال:** –مخکې احادیث تیر شویدی چې د جمعې په ورځ نفلی روژه نیول نه دی پکار حالانکه دا حدیث د هغه احادیثو برعکس معلومیږی ؟

**د اشکال دوه جوابونه:-** ① ددې حدیث مبارك تاویل دادې چې نبی کریم ﷺ به د جمعې نه یوه ورځ مخکښې روژه نیوله او یوه ورځ به ئې روستو روژه نیوله

② دا چې صرف د جمعې په ورځ روژه نیول نبی کریم ﷺ سره خاص وو لکه څنګه چې د وصال روژې نبی کریم ﷺ د پاره مخصوص وې خو د تاویل د هغه حضراتو د مسلك پیش نظر دې کوم چې صرف د جمعې په ورځ نفلی روژه نیول مکروه ګڼړی

**[۲۰۵۹] د هفتې او میاشتې په مختلفو ورځو کښې د روژو نیولو مسنونیت**

۲۰۵۹–( )[۲۴] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصُومُ مِنَ الشَّهْرِ السَّبْتَ وَالْأَحَدَ وَالِاثْنَيْنِ، [۳] وَمِنَ الشَّهْرِ الْآخَرِ الثُّلَاثَاءَ وَالْأَرْبِعَاءَ وَالْخَمِيسَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

---

) اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم/باب فی صوم الثلاث من کل شهر (رقم-۲۴۵۰) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صوم یوم الجمعة(رقم-۷۴۲) والنسائی کتاب الصلوم/صوم النبی صلی الله علیه وسلم بأبی هو وأمی. وذکر اختلاف الناقلین للخبر فی ذلک(رقم-۲۳۶۸)

) اخرجه الترمذی فی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی صوم یوم الجمعة(رقم-۷۴۶)

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چي رسول الله ﷺ به په خيني مياشت كي د هفتي، يكشنبي، دوشنبي په ورځ [۳] او خيني مياشت كي د سه شنبي (منگل) چهارشنبي (بدها) او زيارت (جمعرات) په ورځ روژه نيوله (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① السَّبْتَ: دخيالي ورځ (هفته، شنبه)، ② الْأَحَدَ: اتوار (يک شنبه) ③ الِاثْنَيْنِ: د گل ورځ (پير، دوشنبه) ④ الثُّلَاثَاءَ: د نهي ورځ (منگل، سه شنبه) ⑤ الْأَرْبِعَاءَ: د چارشنبي ورځ ⑥ الْخَمِيسَ: د زيارت ورځ (جمعرات، پنج شنبه)

**تسهيلات: قوله (يَصُومُ مِنَ الشَّهْرِ السَّبْتَ:**

**د خالي (شنبه) په ورځ نفلي روژه نيول:** - ماقبل حديث كښي د جمعي په ورځ د روژي نيولو ذكر وو او په دي حديث مبارك كښي د هفتي د باقي ورځو باره كښي ذكر كړي شوي دي نو ددي نه معلومه شوه چي رسول اكرم ﷺ به د هفتي د ټولو ورځو روژي نيولي چونكه ټولي د الله ﷻ ورځي دي په دي وجه رسول اكرم ﷺ دا مناسب نه گڼړل چي په خينو ورځو روژه كړي او په خينو روژه او نه ساتي يادي باره كښي رسول اكرم ﷺ د عدل او عتدال لاره اختيار كړي وه

**[۲۰۶۰] د نفلي روژو ابتداء د دوشنبي يا د زيارت د ورځي ځخه**

٢٠٦٠ - (١)[٢٥] [١] وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: [٢] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْمُرُنِي أَنْ أَصُومَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ [٣] أَوَّلُهَا الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسُ»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بي بي أم سلمه رضي الله عنها وايي [۲] چي رسول الله ﷺ به ماته حكم كولو چي په هره مياشت كي دري روژي نيسم [۳] او دهغي شروع د دوشنبي يا د زيارت د ورځي ځخه كوم (ابوداؤد نسايي)

**تسهيلات: قوله: وَالْخَمِيسُ:**

جمعرات يعني زيارت ورځي ته وائي دلته لفظ (واو) (او) په معنى كښي دي يعني چه شروع د كومي ورځي نه هم وي كه د پير دورځي نه وي يا د زيارت دورځي نه وي مگر په مياشت كښي دري ورځي روژه ساتل پكار دي

**[۲۰۶۱] د كمزورلي د ويري د صوم الدهر نيولو ممانعت**

٢٠٦١ - (١)[٢٦] [١] «وَعَنْ مُسْلِمٍ الْقُرَشِيِّ قَالَ: سَأَلْتُ أَوْ سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ صِيَامِ الدَّهْرِ [٢] فَقَالَ: "إِنَّ لِأَهْلِكَ عَلَيْكَ حَقًّا. [٣] صُمْ رَمَضَانَ وَالَّذِي يَلِيهِ [٤] وَكُلَّ أَرْبِعَاءَ وَخَمِيسٍ [٥] فَإِذَا أَنْتَ قَدْ

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الصوم، باب من قال الاثنين والخميس (رقم-٢٤٥٢) والنسائي كتاب الصوم باب كيف يصوم ثلاثة أيام من كل شهر، وذكر اختلاف الناقلين للخبر في ذلك (رقم-٢٤١٩)
(٢) اخرجه ابوداود في كتاب الصوم باب في صوم شوال (رقم-٢٤٣٢) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في صوم يوم الأربعاء والخميس (رقم-٧٤٨)

صُمْتَ الدَّهْرَ كُلَّهُ» "رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [١] مسلم قرشي رضي الله عنه وايي چې ما يا بل سړي د رسول الله ﷺ څخه د همیشه روژو په باره کې پوښتنه وکړه [٢] نو نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په تا ستا د اهل وعيال هم حق دي [٣] نو په رمضان کې او په هغه ورځو کې چې د رمضان سره متصل دي يعنی د شش عید اشوال شپږ روژې؛ روژې نیسه [٤] او (زيات څخه زيات) په هره چهارشنبه او زيارت روژه نيسه [٥] كه تا دا روژې ونيولې نو پوهه شه چې همیشه روژې دي ونيولې (ابوداؤد ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الدَّهْرَ: زمانه، همیشه

**تسهيلات:**

**قوله:** عَنْ صِيَامِ الدَّهْرِ:

**د صوم الدهر په حکم کښې دوه صورتونه:** - ① مطلب دادې چې د همیشه روژې ساتلو سره ضعف راځی او په دې سره نه صرف دا چې د حقوقو په ادا کولو کښې خلل راځی بلکه دنورو عباداتو په ادا کولوکښې هم نقصان او حرج راځی هم په دې وجه همیشه روژه ساتل مکروه دی

② چې کوم کس ته ضعف نه راځی نو هغه دپاره همیشه روژه ساتل مکروه نه دی بلکه مستحب دی داشان د همیشه روژې ساتلو دممانعت باره کښې چې کوم احاديث منقول دی په هغې کښې اوهغه مشائخو او سلفو په عمل کښې چې د همیشه روژې ئې ساتلې په هغې کښې دا مذکوره بالاتاويل سره تطبيق راځی.

**یو بل تاویل:** - داهم کیدیشی چې دې خائې کوم حدیث مبارك نقل شوې دې هغه رسول کریم ﷺ ددې نه وړاندې فرمائیلې وی او په هغې کښې دا وئیلې شوی وو چې په هره میاشت کښې درې روژې ساتلو باندې د همیشه روژوثواب ملاويږی

**د بزرګانو په عمل او احادیثو کښې تطبیق:** - د همیشه روژې نيولو ممانعت باوجود بعضې بزرګانو همیشه دپاره روژې نیولې دی کوم چې په ښکاره د احادیثو مخالفت دې خود دې په مينځ کښې به تطبيق داسې کولې شی چې د همیشه روژې نیولوممانعت په هغه صورت کښې دې چې دضعف سبب ګرځی اوهغه ضعف په حقوق واجبه کښې د کوتاهی سبب ګرځی اوکه يوکس همیشه دپاره روژې نیسی خو په هغه کښې ضعف نه پيدا کيږی اوپه حقوق واجبه کښې د کوتاهی سبب نه ګرځی نو په داسې صورت کښې په کښې څه کرهت نشته.

**[۲۰۶۲] په عرفات کښې د روژې نیولو کراهت**

۲۰۰۲-( )[۲۷] ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ [۲]«أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- نَهَى عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضي الله عنه وایي [۲] چې رسول الله ﷺ په عرفات کې د عرفې په ورځ د روژې نیولو څخه منع فرمایلې ده (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① يَوْمِ عَرَفَةَ: د ذی الحجې نهمې ورځ ته عرفه وائی

**تسهیلات:**

**قوله نَهَى عَنْ صَوْمِ يَوْمِ عَرَفَةَ بِعَرَفَةَ:**

**په عرفات کښې د عرفې په ورځ د روژې نیولو د کراهت وجه:** - دعرفات په میدان کښې حاجیان صاحبان راجمع کیږی په دې ورځ په ډیر محنت اومشقت سره دَ الله تعالی په وړاندې په ژړا وزارئ سره دعا کول ذکرکول او په تلبیه کښې مشغول کیدل الله تعالی ته ډیرزیات خوښ دی لهذا که په دې ورځ حاجی روژه اوساتی نودغه اعمالوته به نقصان اورسی حاجی کمزورې کیدوسره دَ الله تعالی په وړاندې عاجزی او زاری اونه کړې شی په دې وجه په دغه ورځ دَ حاجیانو دَپاره روژه ساتل مکروه تنزیهی دی دَ حاجیانونه علاوه دَنورو مسلمانانو دَپاره دَ عرفې دَ ورځې دَ روژې ډیر زیات ثواب دې په دې کښې ستی نه دی کول پکار او دَ حاجی دَپاره دا کراهت تنزیهی دې.

**[۲۰۶۳] د خپالی ورځ د روژې دپاره د خاص کولو ممانعت**

۲۰۰۳-( )[۲۸] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ عَنْ أُخْتِهِ الصَّمَّاءِ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "[۲]«لَا تَصُومُوا يَوْمَ السَّبْتِ إِلَّا فِيمَا افْتُرِضَ عَلَيْكُمْ [۳] فَإِنْ لَمْ يَجِدْ أَحَدُكُمْ إِلَّا لِحَاءَ عِنَبَةٍ أَوْ عُودَ شَجَرَةٍ فَلْيَمْضُغْهُ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله بن بسر رضي الله عنه د خپلې خور بي بي چې د هغې نوم صماء رضي الله عنها دې، څخه نقل کوې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو خلق (یواځې) د خالې په ورځ روژه مه نیسئ خو دا چې په دې ورځ روژه نیول ضروري وي [۳] که په تاسو کې یو سړي (د روژې د ماتولو د پاره) د انګورو د پوستکې یا د ونې د لرګي څخه سوا څه بیا نه مومی نو هغه دې وژویي (احمد، ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم/باب فی صوم یوم عرفة بعرفة (رقم-۲۴۴۰) وابن ماجة کتاب الصیام/باب صیام یوم عرفة (رقم-۱۷۳۲)

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم، باب النهی أن یخص یوم السبت بصوم(رقم: ۲۴۲۱) والترمذی فی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی کراهیة صوم یوم السبت(رقم-۷۴۴) وابن ماجة کتاب الصیام/باب ما جاء فی صیام یوم السبت(رقم-۱۷۲۶)

**حل اللغات:** - ① لَحَاءَ: أي قِشْرَ د ونې پوستکی ته لحاء وائی ② عِنَبَةٍ: أي شَجَرَةُ العِنَبِ: دَ عِنَبة نه د انګور ونه مراد ده ③ عُودَ: لرګي، چوکه. ④ فَلْيَمْضُغْهُ: أي لِأكُهُ بِأَسْنَانِهِ يعنى په غاښونو كښې دې اوچوى

**د راوي مختصر تعارف:** - د راوى نوم عبدالله بن بسر دې اود مازن قبيلې سره تعلق ساتى دوى د دوى پلار، مور، رورور حضرت على ﷺ اوخورحضرت صحماء تولو ته د نبى كريم ﷺ د ليدو شرف حاصل شوې دې

نبى كريم ﷺ دوى ته د اوږد عمر دعا كړې وه د دوى نه ۵۰ روايات منقول دى بخارى او مسلم يو يو روايت نقل كړې دې

**وفات:** د سير علمان فرمائى چه دوئ ناڅاپه د اودس كولو په دوران كښې وفات شوې وو چونكه نبى كريم ﷺ د دوى دپاره د اوږد عمر دعا كړې وه نوپه شام يا په حمص كښې په ۸۸ هجرى كښې وفات شوې وو په دغه وخت كښې د دوى عمر ۹۴ كاله وو بعضې تذمانو سل كاله ليكلى دى نور حالات به د سير په كتابونو كښې اوګورئ (۱)

**تسهيلات:**

**قوله:** إِلَّالِحَاءَعِنَبَةٍ:

**د تعارض اشكال:** - دې نه مخكښې روايت نمر ۲۴ نه معلوميږى چه دَهفتې په ورځ روژه منع نه ده بلكه راتلونكى حديث نمبر۲۰۶۸ كښې خودَ روژې ساتلو حكم دې دې دَپاره چه دَيهودو مخلفت اوشى ليكن دلته په دې روايت كښې دَ ممانعت ذكر دې چه په ظاهره تعارض دې

**د تعارض د اشكال جوابونه:** - ① دې نهى اوكراهت نه مكروه تنزيهى مراد دې چه په حقيقت كښې دَ اولى او غير اولى خبره ده يعنى دَ هفتې په ورځ روژه ساتل اولى نه دى كه څوك ئې ساتى نو جائز ده

② دا ممانعت دَامت دَپاره دې چه په روژه ساتلوسره دَدې ورځې دَ تعظيم احتمال دې ځكه چه دا دَ يهوديانودَ عبادت ورځ ده يهوديان سره دَدې چه په دې كښې عبادت نه كوى بلكه په دې ورځ اختر كوى ليكن بياهم ممانعت په دې وجه دې چه په روژه ساتلوسره دَدې ورځې دَتعظيم احتمال دې اودا احتمال دَ حضورپاك په روژه نيولو كښې نه وو نوروژه ساتل دَ حضورپاك خصوصيت دې او نه ساتل دَدې امت خصوصيت دې

**[۲۰۶٤] دالله ﷻ په لاركښې د يوې ورځې روژې نيولو فضلت**

**۲۰۶۳ - (۲۹) ① وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللهِ جَعَلَ اللهُ بَيْنَهُ وَبَيْنَ النَّارِ خَنْدَقًا ③ كَمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.**

---

(۱) مثلاً التهذيب (۱۵۱۵) والبداية والنهاية (۷۵۱۹) وشذرات الذهب (۱۱۱۱۱) اسد الغابة (۱۸۳۱۳) ومرآة الجنان (۷۸۱۱ وغيره)
(۲) اخرجه الترمذى فى كتاب فضائل الجهاد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/ ما جاء فى فضل الصوم فى سبيل الله (رقم-۱۶۲٤)

**ترجمه:** ۱ ابو امامه رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كوم سړي د الله جل جلاله په لار كې يوه ورځ روژه ونيسي الله تعالى جل جلاله به د هغه او د دوزخ د اور په مينځ كې يو داسې خندق حائل كړي ۳ چې د آسمان او زمكې د درميانى فاصلې برابر به وي (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① خَنْدَقًا أَيْ حِجَابًا شَدِيدًا: خندق كندې ته وائي، مراد ترې مانع او پرده ده، او لرې والى ترې مراد دى

**تسهيلات:**

**قوله مَنْ صَامَ يَوْمًا فِي سَبِيلِ اللهِ:**

**د فى سبيل الله اول مصداق:** - د فى سبيل الله لفظ د حج د سفر د پاره ونيلې شى او د علم سفر ىندې ډير ثواب هم د دې نه مراد كيدې شى ليكن د دې اول مصداق جهاد دې "اي في سبيل الله الجهاد".

### [۲۰٦۵] په ژمى كښې د روژې نيولو غنيمت

۲۰۶۵ - ( ) [۳۰] ۱ وَعَنْ عَامِرِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : ۲ " «الْغَنِيمَةُ الْبَارِدَةُ الصَّوْمُ فِي الشِّتَاءِ» ۳ " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ مُرْسَلٌ.

**ترجمه:** ۱ د عامر ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ يخ غنيمت (يعني بغير سترېا او مشقته ثواب موندل) په ژمى كې روژې نيول دي، ۳ (احمد ترمذي) امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث مرسل دي (ځكه چې د بعضې حضراتو په نزد عامر ابن مسعود صحابي نه دي بلكه تابعي دي)

**حل اللغات:** - ① الْغَنِيمَةُ: گټه . فائده. ② الْبَارِدَةُ: يخنى، يخه. ③ الشِّتَاءِ: يخنى، د يخنۍ موسم

**تسهيلات:**

**قوله الْغَنِيمَةُ الْبَارِدَةُ..الخ:**

**د غنيمت بارده وضاحت:** - د غنيمت بارده نه هم دغه مراد دې چه محنت كم دې اوثواب زيات دې ځكه چه په يخننى كښې تنده كمه لگى نو روژه په آسانتى سره نيولې كيدې شى ورځې هم وړې وى نوكم خرچ بالا نشين روژه ده

۲۰۶۶ - [۰] ۱ وَذُكِرَ حَدِيثُ أَبِي هُرَيْرَةَ مَا مِنْ أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ فِي بَابِ الْأُضْحِيَّةِ.

**ترجمه:** ۱ او د ابوهريره رضي الله عنه روايت مَا مِنْ أَيَّامٍ أَحَبُّ إِلَى اللهِ د قرباني په باب كې ذكر شوي دي

---

(۱) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۷۹۷. واحمد فى المسند ۴ / ۳۳۵

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[٢٠٦٧] د عاشورې د ورځې د روژې پس منظر**

(٢٠٦٧-[٣١] ١) عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَدِمَ الْمَدِينَةَ ٢ فَوَجَدَ الْيَهُودَ صِيَامًا يَوْمَ عَاشُورَاءَ ٣ فَقَالَ لَهُمْ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "مَا هَذَا الْيَوْمُ الَّذِي تَصُومُونَهُ؟" ٤ فَقَالُوا: هَذَا يَوْمٌ عَظِيمٌ أَنْجَى اللهُ فِيهِ مُوسَى وَقَوْمَهُ ٥ وَغَرَّقَ فِرْعَوْنَ وَقَوْمَهُ فَصَامَهُ مُوسَى شُكْرًا، فَنَحْنُ نَصُومُهُ، ٦ فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "فَنَحْنُ أَحَقُّ وَأَوْلَى بِمُوسَى مِنْكُمْ" ٧ فَصَامَهُ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: ١ ابن عباس رضي الله عنهما فرمايي چې رسول الله ﷺ مديني ته تشريف راوړو ٢ نو يهوديان يې د عاشورې په ورځ په روژه نيولو باندې وليدل ٣ رسول الله ﷺ د هغوئ څخه پوښتنه وكړه چې د دې ورځې څه خصوصيت دې چې تاسو روژه نيسئ؟ ٤ يهوديانو وويل چې دا ډيره عظيمه (لويه) ورځ ده په دې ورځ الله تعالى جل جلاله موسى عليه السلام او د هغه جماعت ته نجات وركړې وو ٥ او فرعون او د هغه قوم يې غرق كړل نو حضرت موسى عليه السلام د شكر په طور په دې ورځ روژه نيولې وه او مونږ هم په دې ورځ روژه نيسو ٦ نبى كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې ستاسو په مقابله كې مونږ موسى عليه السلام ته زيات نژدې يو د هغه د طرف څخه په طور د شكر د روژې نيولو) زيات حقدار يو ٧ نو نبى كريم صلى الله عليه وسلم پخپله هم د عاشورې په ورځ روژه ونيوله او نورو ته يې هم د روژې نيولو حكم وفرمايلو (بخاري مسلم)

**حل اللغات**: - ① عَاشُورَاءَ: د محرم لسمه ورځ

**تسهيلات**:

**قوله**: فَصَامَهُ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- وَأَمَرَ بِصِيَامِهِ:

**د حديث پس منظر**: -دا واقعه د هجرت د ابتدائي ورځو ده په هغه وخت كښې صحابه كرامو ته نبى كريم ﷺ د عاشورې د ورځې د روژې حكم وركړې وو هغه حكم وجوبي وو بيا د رمضان فرضيت سره دا منسوخ شوه بيا صحابه كرامو ددې روژې متعلق تپوس اوكړو نو نبى كريم ﷺ اوفرمائيل چې كه راتلونكي كال ژوند وو نو د نهمې ورځې روژه به ساتو ددې نه مراد دا كيدې شي چې د نهمې او لسمې دواړو روژه به نيسم

**د نبى عليه السلام د موسى عليه السلام سره موافقت**: -سواضحه دې وي چې د حضرت رسول كريم ﷺ د عاشورې دورځې روژه نيول د موسى عليه السلام سره د موافقت په وجه دې د

---

) اخرجه البخاري كتاب الصوم/باب صيام يوم عاشوراء (رقم-٢٠٠٤) ومسلم كتاب الصيام/باب صوم يوم عاشوراء (رقم) ١٢٧ - (١١٣٠) وابوداود كتاب الصوم/باب في صوم يوم عاشوراء (رقم-٢٤٤٤) وابن ماجة كتاب الصيام/باب صيام يوم عاشوراء (رقم-١٧٣٤) والدارمي في ومن كتاب الصوم/باب في صيام يوم عاشوراء

متابعت په وجه نه دی زمونږ د نبی کریم ﷺ شان د بر اوچت دي هم په دي وجه رسول کریم ﷺ ته د انبیاء کرامو علیهم السلام د موافقت کولو فرمانیلی شوی دی او نورو انبیاء کرامو علیهم السلام ته د رسول کریم ﷺ سره د متابعت کولو فرمانیلی شوی دی لکه څنګه چې حضرت رسول کریم ﷺ فرمانیلی دی چې که موسی علیه السلام ژوندې وې نو هغه سره بل هیڅ صورت نه وې صرف دا چې زما متابعت به نې کولو

**[۲۰۶۸] د شنبه او یکشنبه په ورځ د روژې نیولو مسنونیت**

٢٠٦٨-( )[٣٢] ١ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَصُومُ يَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ أَكْثَرَ مَا يَصُومُ مِنَ الْأَيَّامِ، ٣ وَيَقُولُ: "إِنَّهُمَا يَوْمَا عِيدٍ لِلْمُشْرِكِينَ ٤ فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أُخَالِفَهُمْ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه:** ١ بي بي ام سلمه ﷺ فرمايي ٢ چې رسول الله ﷺ به په نورو ورځو کې د روژو نیولو په نسبت د خالي او اتوار په ورځ زیاتي روژې نیولي ٣ او فرمایل به یې چې دا دواړه ورځي د مشرکانو د پاره د اختر د ورځي دي (چې په دي کې هغوئ روژه نه نیسي) ٤ نو زه دا خوښوم چې زه په دي ورځو کې د روژې نیولو سره د هغوئ مخالفت وکړم (احمد)

**تسهیلات:**

**قوله يَصُومُ يَوْمَ السَّبْتِ وَيَوْمَ الْأَحَدِ..الخ:**

**په حدیثونو کښې تعارض:**- سوال دادې چه دې نه وړاندې حدیث نمبر ۲۰۶۳ کښې په واضحه توګه سره د هفتې د ورځې د روژې ممانعت دې نودلته د دې څنګه اجازت دې؟

**تطبیق:**- د دې جواب دادې چه د حدیث نمبر ۲۰۶۳ تعلق امت سره دې اودلته د جواز تعلق د حضور پاك د ذات اقدس سره دې. هلته د امت خصوصیت دې اودلته د نبی کریم ﷺ خصوصیت دې

**قوله: إِنَّهُمَا يَوْمَا عِيدٍ لِلْمُشْرِكِينَ:**

**په یهودیانو د مشرکانو د اطلاق وجه:**- یهودیان په دې وجه مشرکان اوګرځولي شو چه هغوی حضرت عزیر ﷺ د الله تعالی خوئی ګرځولې او اوعیسایان په دې وجه مشرکان دی چه هغوی حضرت عیسی ته د الله تعالی خوئی واني

**[۲۰۶۹] د رمضان نه وړاندې د عاشورې د روژې تاکید**

٢٠٦٩-( )[٣٣] ١ وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ: ٢ «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَأْمُرُ بِصِيَامِ يَوْمِ عَاشُورَاءَ، ٣ وَيَحُثُّنَا عَلَيْهِ، ٤ وَيَتَعَاهَدُنَا عِنْدَهُ، ٥ فَلَمَّا فُرِضَ رَمَضَانُ لَمْ يَأْمُرْنَا وَلَمْ يَنْهَنَا عَنْهُ ٦ وَلَمْ يَتَعَاهَدْنَا عِنْدَهُ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

---

[١] اخرجه احمد في المسند ٦/٣٢٤.

[٢] اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب صوم يوم عاشوراء (رقم) ١٢٥ - (١١٢٨)

**ترجمه:** [۱] جابر ابن سمره رضي الله عنه فرمايي [۲] چي رسول الله ﷺ به ، مخکي، مونږ ته د عاشوري په ورځ د روژي نيولو حکم راکولو [۳] او د دې ترغيب به يې راکولو [۴] او د دې ورځې د راتلو په وخت به يې زمونږ خبر ګيري کوله ،يعنې د عاشوري ورځ چې به راتلونکي شوه نو د دې د روژي نيولو نصيحت به يې راته کولو [۵] خو کله چې د رمضان روژي فرض شوي نو نه نبی کريم صلی الله عليه وسلم مونږ ته د دې روژي د نيولو حکم وکړو او نه يې د دې څخه منع کړلو [۶] او نه يې د دې ورځې د راتلو په وخت زمونږ خبر ګيري وکړله. مسلم

**حل اللغات:** - ① وَيَحُثُّنَا: أَيْ يُرَغِّبُنَا: مونږته به ئي ترغيب راکولو، راتيزولو به ئي ② يَتَعَاهَدُنَا: أَيْ يَحْفَظُ وَيُرَاعِي حَالَنَا: زمونږ خبر ګيری به ئې کوله او زمونږ دحال لحاظ به ئې ساتلو

**تسهيلات:**

**نوټ:** - د دې حديث شرح په د بل حديث په تسهيل کښې ذکر ده

**[۲۰۷۰] سنت مؤکده روژي**

> ۲۰۷۰ -()[۳۴] [۱] وَعَنْ حَفْصَةَ قَالَتْ: [۲] «أَرْبَعٌ لَمْ يَكُنْ يَدَعُهُنَّ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۳] صِيَامُ عَاشُورَاءَ وَالْعَشْرِ [۴] وَثَلَاثَةُ أَيَّامٍ مِنْ كُلِّ شَهْرٍ [۵] وَرَكْعَتَانِ قَبْلَ الْفَجْرِ»، رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه:** [۱] بي بي حفصه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې څلور څيزونه داسې دي چې رسول الله ﷺ به نه ترک کول (څکه چې سنت مؤکده دي) [۳] اول د عاشوري د ورځې روژه، دويم د عشرهٔ ذي الحجه يعني د ذي الحجه د ابتدايي نهه [۹] ورځو روژي [۴] دريم د هري مياشتې دري روژي [۵] څلورم د فجر (سحر) څخه مخکې دوه رکعاته (د فجر دوه سنتونه) (نسايي)

**حل اللغات:** - ① لَمْ يَكُنْ يَدَعُهُنَّ: أَيْ لَمْ يَتْرُكْهُنَّ: يعنی نبی کريم صلی الله عليه وسلم به نه پريخودل ② عَاشُورَاءَ: دمحرم د مياشت لسمه ورځ، ③ الْعَشْرِ: وَالْمُرَادُ مِنَ الْعَشْرِ تِسْعَةُ أَيَّامٍ مَجَازًا: د عشر نه مجازاً د ذی الحجه رومبی لس ورځې دی

**تسهيلات:**

**قوله: وَالْعَشْرِ:**

**د يوم النحر د روژي حکم:** - دلته اګرچې په حديث کښې د ذوالحجې د لسو ورځو د روژو ترغيب دې په کومو کښې چې يوم النحر يعنی د لوئي اختر ورځ هم شامله ده خو د نورو نصوصو څخه ثابته ده چې د کال په پنځو ورځو کښې روژي نيول مکروه تحريمی دی چې په هغې کښې د لوئي اختر ورځ هم شامله ده نو دا به اووايو چې دلته يوم النحر تغليباً ذکر شوي دې نور په حقيقت کښې په کښې يوم النحر شامل نه ده

---

[۱] اخرجه النسائی فی کتاب الصوم /باب کيف يصوم ثلاثة أيام من کل شهر، وذکر اختلاف الناقلين للخبر فی ذلک /رقم-۲۴۱۶

**د رمضان د آخری عشرې الفضليت:-** د ذی الحجه عشره افضل ده ځکه چې په دې کښې د عرفې ورځ ده او په شپو کښې د رمضان د آخری عشرې شپې بهترینې دی ځکه چې په دې کښې شب قدر دې او دا حدیث پاك د هغه حدیث مبارك معارض نه دې کوم کښې چې داسې دی «ماراًیت رسول الله ﷺ صائما فی العشر» ځکه چې چا څه او کتل نو هغه ئې بیان کړی دی

**[۲۰۷۱] د ایام بیض روژې**

| ۲۰۷۱–( ۱)[۳۵] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يُفْطِرُ أَيَّامَ الْبِيضِ فِي حَضَرٍ وَلَا سَفَرٍ». رَوَاهُ النَّسَائِيُّ. |
|---|

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما وايي ② چې رسول الله ﷺ به په ايام بيض کې بغير د روژې نه پاتې کيدلو نه په کور [حضر] کې او نه په سفر کې (نسايي)

**حل اللغات:-** ① أَيَّامَ الْبِيضِ: ایام د یوم جمع ده، او بیض سپینوالی ته وائی معنی دا شوه چه: خوارلسمې شپې دَ سپوږمنی دَ ورځو روژې ② حَضَرٍ: اقامت، موجودگی

**تسهيلات: قوله: لَا يُفْطِرُ أَيَّامَ الْبِيضِ...الخ:**

**په پوره کال کښې د نفلی روژو شمار:-** ایام بیض یعنی دَ خوارلسمې شپې دَ سپوږمنی دَ ورځو روژې ایام جمع ده دامضاف دې اوبيض مضاف اليه دې مگر دا مضاف اليه صفت دې دَدې موصوف لیالی محذوف دې اصل عبارت داسې دې "ایام اللیالی البیض" دَ هرې میاشت دیارلسم خوارلسم او پنځلسم اسلامی تاریخ باندې دا روژې ساتلې کیږی پوره کال کښې دَ نفلی روژو شمیر یو پنځوس (۵۱) ورځې دی

| | | |
|---|---|---|
| یوولس میاشتو کښې هره میاشت درې ورځې | درې دیرش روژې | ۳۳ |
| د ذو الحجې رومبنۍ ورځې | نهه روژې | ۹ |
| د عاشورې | دوه روژې | ۲ |
| د پنځلسم شعبان | یوه روژه | ۱ |
| د شوال | شپږ روژې | ۶ |
| د ټول کال نفلی روژې | یو پنځوس روژې | ۵۱ |

**[۲۰۷۲] روژه او د بدن زکات**

| ۲۰۷۲–( ۲)[۳۶] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «لِكُلِّ شَيْءٍ زَكَاةٌ وَزَكَاةُ الْجَسَدِ الصَّوْمُ». رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ. |
|---|

[1] اخرجه النسائي في كتاب الصوم/صوم النبي صلى الله عليه وسلم بأبي هو وأمي. وذكر اختلاف الناقلين للخبر في ذلك رقم- ۲۳۴۵

[2] اخرجه ابن ماجه في كتاب الصيام/باب في الصوم زكاة الجسد (رقم-۱۷۴۵)

ترجمه: [۱] د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] د هر شي د پاره زكات دي او د بدن زكات روژه نيول دي (ابن ماجه)

تسهيلات:

**قوله: وَزَكَاةُ الْجَسَدِ الصَّوْمُ**

**په روژه د زكات الجسد د اطلاق وجه:** - يعني د هرڅيز د پاره زياتوالي او پاكوالي وي د بدن زياتوالي په روژه سره كيږي ځكه چه په روژه كښې د خوراك د كموالي دوجې نه ډيرې زياتې بيمارۍ لرې كيږي يوماهرډاكټر ماته اووئيل چه د ايام بيض د روژو پابندۍ سره سړی د شوګرنه محفوظ كيږي هم دغه شان په دې روژوسره سړې د ګناهونودنجاست نه محفوظ پاتې كيږي نو پاكوالي د ګناهونونه راځي لهذا د زكوة د پاكوالي پوره مفهوم په روژه باندې صادق دې په دې وجه دې ته زكوة الجسد اووئيلې شو

بيهقي كښې يو روايت دې چه حضورپاك اوفرمائيل الله تعالى د بنى اسرائيلو يونبي ته وحي راوليګله چه خپل قوم ته خبرورکړه چه كوم سړې زماد خوشحالولود پاره په يوه ورځ كښې روژه ساتي نوزه صرف دا نه چه د هغه بدن صحت مند ساتم بلكه هغه ته ډيرزيات ثواب هم وركوم

**[۲۰۷۲] د ګل او زيارت (دوشنبه او جمعرات) د ورځې فضيلت**

(۲۰۶۰) [۳۷] [۱] وَعَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ، [۲] فَقِيلَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ تَصُومُ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ، [۳] فَقَالَ: "إِنَّ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ يَغْفِرُ اللَّهُ فِيهِمَا لِكُلِّ مُسْلِمٍ إِلَّا ذَا هَاجِرَيْنِ، [۴] يَقُولُ: دَعْهُمَا حَتَّى يَصْطَلِحَا» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ.

ترجمه: [۱] د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم به د ګل او د زيارت په ورځ روژه نيوله [۲] نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته عرض وشو چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ته اكثر د ګل او زيارت په ورځ روژې نيسې؟ [۳] نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ګل او زيارت هغه ورځې دي چې په هغې كې الله رب العزت هر مسلمان ته بخښنه كوي علاوه د هغه دوو كسانو څخه چې ترك تعلقات يې كړي وي [۴] نو الله تعالى جل جلاله (د هغوی په باره كې فرښتو ته چې د آثارو د ظاهريدو په وخت د بديو په ختمولو ماموري وی) فرمايي چې دوی پريږدئ ترڅو چې دوی (په خپلو كې) صلح اوكړی د هغې څخه روسته به د دوی مغفرت كيږي (احمد، ابن ماجه)

حل اللغات: - (۱) هَاجِرَيْنِ: أَيْ قَاطِعَيْنِ. د تثنيه صيغه ده. تعلق پريخودونكى (۲) دَعْهُمَا: أَيِ اتْرُكْهُمَا يعنى پريږده دواړه. (۳) يَصْطَلِحَا: چه دواړه خپلو كښې صلح اوكړي

اخرجه ابن ماجة في كتاب الصيام باب في الصوم زكاة الجسد (رقم-۱۷۴۵) واحمد في المسند ۲/ ۲۲۹

تسهيلات:

**قوله: إِنَّ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَالْخَمِيسِ يَغْفِرُ اللهُ فِيهِمَا لِكُلِّ مُسْلِمٍ**

**د ګل اوزيات په ورځ د ورژه نيونکي مغفرت:** -صاحب د مرقاة فرمائي چې د ګل دوشنبه او د جمعرات په ورځ د هغه مسلمانانو بخښنه کيږي کوم چې په دې دواړو ورځو کښې د روژې نيولو عادي وي

**قوله إِلَّا ذَا هَاجِرَيْنِ، يَقُولُ: دَعْهُمَا حَتَّى يَصْطَلِحَا**

**په ديني غرض د مسلمان سره د ترک تعلق حکم:** -يعني بې د څه وجې نه تعلق قطع کونکي او که تعلق قطع کول د دين په وجه وي نو په دې کښې ګنجائش شته دې په دې وجه به د وعيد نه وي او که قطع تعلق د دنياوي امورو په وجه وي نو درې ورځو نه زيات جائز نه دي حرام دي

**[٢٠٧٤] دَ الله تعالى دَ خوشحالولو دَپاره نفلى روژې نيول**

| |
|---|
| -٢٠٧٤-( )[٣٨] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَنْ صَامَ يَوْمًا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللهِ ③ بَعَّدَهُ اللهُ مِنْ جَهَنَّمَ كَبُعْدِ غُرَابٍ طَائِرٍ ④ وَهُوَ فَرْخٌ حَتَّى مَاتَ هَرِمًا»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ فِي (شُعَبِ الْإِيمَانِ) عَنْ سَلَمَةَ بْنِ (قَيْسٍ) -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-. |

**ترجمه:** ① د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دې چې رسول ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې د الله رب العزت د رضا او خوښئ د خاطره يوه ورځ روژه نيسي ③ نو الله تعالى جل جلاله هغه د دوزخ څخه د هغه الوتونکي کارغه د مسافت په اندازه لرې ساتي ④ چې بچي وي او د بوډا کيدو سره مړ شي (احمد، بيهقي)

**حل اللغات:** - ① بَعَّدَهُ اللهُ: لرې ني ساتى الله تعالى، ② غُرَاب: کارغه ③ فَرْخٌ: أَيْ صَغِيرٌ يعنى وړوکي بچي وي ④ هَرِمًا: بوډا

تسهيلات:

**قوله: كَبُعْدِ غُرَابٍ طَائِرٍ**

**د کارغه سره د تشبيه نکته:** -ونيلى شي چه دَ کارغه عمر زر کاله وي بل دَهغه الوت هم تيزوي اوس غور اوکړئ چه دَ عمر دَ شروع نه واخله تر آخر بوډاوالي پورې چه کله کارغه يو شان الوزي نو هغه به څومره فاصله اووهي؟ څومره فاصله چه هغه وهي هم دَهغې دَ اندازې برابر الله تعالى روژه دار دَ دوزخ نه لرې ساتي

---

[1]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان عن سلمة بن قيس

**د روژه دار خوب عبادت:-** بيهقي كښې يو روايت دې حضور پاك فرمائيلي دي چه د روژه دار ويده كيدل عبادت دي د هغه خاموشي تسبيح ده د هغه عمل دوچند كيږي د هغه دعا قبوله ده او د هغه گناهونه معاف دي

د طبراني نه نقل دى د كوم خلاصه چه داده الله تعالى سره يوه خوانچه ده په كوم كښې چه قسم قسم نعمتونه دى كوم چې د چا په خيال كې هم نه ده راغلې اون نه چا د هغې صحيح تعريف اوريدلى دى اونه چا (په ستركو) كتلى دى د غه خوانچې ته به صرف روژه دار كينى

(اللهم ارزقنا ماتمنى رسولك من النعم)

# [۷] بَابٌ (فِي الإِفْطَارِ مِنَ التَّطَوُّعِ)

# باب د نفلي روژې ماتول

**خلاصة الباب:-**

**فيه سبعة أحاديث مشتملة على ثلاث مسائل:**

① جواز نية الصوم قبل نصف النهار: ۱

② عدم الإفطار عند وجود الطعام : ۲، ۳، ۶، ۷.

③ جواز الإفطار لعذر : ۱، ۴، ۵.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

**[۲۰۷۵] په ورځ كښې د نفلي روژې د نيت كولو صحت**

۲۰۷۵-(۱)[۱] ⑴ عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا- قَالَتْ: ⑵ «دَخَلَ عَلَيَّ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ذَاتَ يَوْمٍ ⑶ فَقَالَ: (هَلْ عِنْدَكُمْ شَيْءٌ؟) فَقُلْنَا: لَا ⑷ قَالَ: (فَإِنِّي إِذًا صَائِمٌ). ثُمَّ أَتَانَا يَوْمًا آخَرَ ⑸ فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللَّهِ! أُهْدِيَ لَنَا حَيْسٌ، ⑹ فَقَالَ: (أَرِينِيهِ فَلَقَدْ أَصْبَحْتُ صَائِمًا) فَأَكَلَ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ⑴ د مؤمنانو موربې بي عايشه رضي الله عنها فرمايي ⑵ چې (يوه ورځ) نبي كريم ﷺ ماكره تشريف راوړو ⑶ او وي فرمايل چې آيا ستا سره (د خوراك) څه شته ؟ ما عرض وكړو چې نا ⑷ نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ما اوس روژه نيولي ده بيا د دې څخه روسته په بله ورځ يي تشريف راوړو (او پوښتنه يي وكړه چې ستا سره د خوراك څه شي شته ؟) ⑸ نو ما اوويل چې يا رسول الله! ﷺ مونږ ته حيس (حلوا) په هديه كې راغلي دي ⑹ نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې راوړه ماته يي اوښايه [په ما يي وخوروه] ما سحر

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الصيام/باب جواز صوم النافلة بنية من النهار قبل الزوال. وجواز فطر الصائم نفلًا من غير عذر (رقم) ۱۷۰ - (۱۱۵۴) وابوداود فى كتاب الصوم/باب فى الرخصة فى ذلك (رقم-۲۴۵۵) والنسائى كتاب الصوم/النية فى الصيام والاختلاف على طلحة بن يحيى بن طلحة فى خبر عائشة فيه (رقم-۲۳۲۲).

روژه نيولي وه بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه ښېره چې قجوري په پنير او غوړو كښې گړې كړې شي، وخوړله. مسلم

**حل اللغات:** - ① حَيْسٌ اى تَمْرٌ مَخْلُوطٌ بِسَمْنٍ وَأَقِطٍ كجوري چه غوړي او پنير سره يو ځائ كړې شي او حلوه ترې جوړه شي هغې ته حيس وائي

**تسهيلات:**

## قوله: فَإِنِّي إِذًا صَائِمٌ:

**د ورځې د نفلي روژې نيت كولو جواز:** - د دې جملې نه دا مسئله ثابته شوه چه د نفل روژې نيت د ورځې د زوال د وخت نه وړاندې كول جائز دي په دې كښې د ټولو ائمه حضراتو اتفاق دې صرف امام مالك رحمه الله فرمائي چه د نفل روژې د پاره هم ضروري دي چه د دې نيت د شپې نه وي. د دې پوره تفصيل وړاندې تيرشوې دې

## قوله: أَصْبَحْتُ صَائِمًا فَأَكَلَ:

### د عذر په وجه د نفلي روژې د ماتولو په حكم كښې مذاهب -

د حديث په دې جملې سره د يوې بلې اختلافي مسئلې طرف ته اشاره وكړې شوه هغه د چه نفل روژه د څه عذر د وجې نه ماتولې شي كه نه؟

① د جمهور علماؤ دغه مسلك دې چه ماتولې شي

② خو امام ابوحنيفه رحمه الله فرمائي چه نفلي روژه نيولو نه پس واجب شي نهذا د څه عذر نه بغير د نه شي ماتولې او دعذر په صورت كښې هم د ماتولو گنجائش دې خو بيا هم قضا لازمي ده. اختلاف او دلائل په راتلونكي حديث نمبر ۲۰۷۸ كښې راخي اوگورئي

**[۲۰۷۶] بلاعذره د نفلي روژې نه ماتول**

۲۰۷۶ - [۲] [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «دَخَلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى أُمِّ سُلَيْمٍ فَأَتَتْهُ بِتَمْرٍ وَسَمْنٍ [۳] فَقَالَ: (أَعِيدُوا سَمْنَكُمْ فِي سِقَائِهِ [۴] وَتَمْرَكُمْ فِي وِعَائِهِ، فَإِنِّي صَائِمٌ) [۵] ثُمَّ قَامَ إِلَى نَاحِيَةٍ مِنَ الْبَيْتِ فَصَلَّى غَيْرَ الْمَكْتُوبَةِ [۶] فَدَعَا لِأُمِّ سُلَيْمٍ وَأَهْلِ بَيْتِهَا». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] انس رضي الله عنه فرمايي [۲] چه يو ځل نبي كريم صلى الله عليه وسلم بي بي ام سليم رضي الله عنها كره تشريف يوړلو نو هغې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د پاره غوړي او كجوري راوړي چې نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغه وخوري [۳] نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې خپل غوړي د غوړو په مشك كې واچوئ [۴] او كجوري د هغې په لوښي كې كيږدئ ځكه چې زه روژه ده [۵] بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم د كور په يو گوټ كې ودريدو سره د فرض څخه علاوه مونځ اوكړو [۶] او بي بي أم سليم رضي الله عنها او د هغې د كور والا د پاره يې دعا وكړه. بخاري

[۱] اخرجه البخاري كتاب الصوم باب من زار قوما فلم يفطر عندهم (رقم ۱۹۸۲)

**حل اللغات** - ① سمې: غوړي. ② أعيدوا: واپس کړئ. ③ سقائه: سقاء، مشک ته وائي ④ وعاء: لوښي ⑤ رحبة: ظرف، کوب

**تسهيلات**

**قوله: فإني صائم:**

**د ميلمه د پاره د روژې ماتولو حکم:-** که چرته د چا نفلي روژه ده او په هغه ورځ د هغه خوا ته ميلمه راغلو نو آيا د هغه ميلمستيا کول عذر دي چه دا سړي روژه مات کړي که عذر نه دي؟ په دې باره کښې د علماؤ په مينځ کښې معمولي شان اختلاف دي ليکن راجح هم دا دي چه که ميلمه د هغه د روژې د وجې نه په خوراک کښې حرج محسوس کوي يا د هغه نه بغير خوراک نه کوي يا د هغه زړه آزاريږي يا د هغه ناخوښه کيږي نو په دې صورت کښې ميلمستيا عذر دي روژه ماتولې شي

**د ميلمه د پاره په روژې ماتولو دوه اجرونه:-** د ائمه احناف په کتابونو کښې ليکلي دي په داسې صورت کښې به روژه دار ته دوه اجرونه ملاويږي يو خو په دې بندې چه د ميلمنو خاطر داري نې اوکړه او دويم په دې وجه چه روستو به روژه نيسي ليکن که د ميلمه د وجې نه د غه پورته مشکلات نه پيښيږي نو بيا د افطار د پاره ميلمستيا عذر نه دي حضرت ام سليم رضي الله عنها کره هم د غه صورت وو په دې وجه حضور پاك روژه افطار نه کړه بلکه چرته بزرګ سړي وي نو هغه له پکار دي چه هلته دې نفل اوکړي او د کور والو د پاره دې دعا اوکړي لکه چه حضور اکرم صلى الله عليه وسلم د ام سليم رضي الله عنها د پاره اوکړه

**[۲۰۷۷] د روژه دار او غير روژه دار د پاره د دعوت په قبلولو کښې حکم**

> ---- ) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] ( «إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ إِلَى طَعَامٍ وَهُوَ صَائِمٌ فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ) . [۳] وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: (إِذَا دُعِيَ أَحَدُكُمْ فَلْيُجِبْ [۴] فَإِنْ كَانَ صَائِمًا فَلْيُصَلِّ [۵] وَإِنْ كَانَ مُفْطِرًا فَلْيَطْعَمْ» ) رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] د ابوهريره رضي الله عنه نه روايت دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] په تاسو کښې هر کله چې څوك د طعام د پاره وبلل شي او هغه روژه دار وي نو هغه ته پکار دي چې دا ورته ووائي چې زما روژه ده [۳] او په يو روايت کې دا دي چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې که په تاسو کې د چا دعوت وکړل شي نو هغه ته پکار دي چې د هغه دعوت قبول کړي [۴] او که هغه روژه دار وي نو ادوه رکعاته مونځ دې اوکړي! [۵] او که روژه دار نه وي نو هغه ته پکار دي چې په طعام کې شريك شي (مسلم)

---

[۱] أخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب الصائم يدعى لطعام فليقل: إني صائم (رقم) ۱۵۹ - (۱۱۵۰) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إجابة الصائم الدعوة(رقم ۷۸۱) وابن ماجة كتاب الصيام/باب من دعي الى طعام وهو صائم (رقم ۱۷۵۰) والدارمي في باب ما جاء في إجابة الوليمة

**حل اللغات:** - ① دُعِيَ: دعوت ورکړې شي، راوبللې شي ② فَلْيُجِبْ: جواب دې ورکړي يعني دعوت دې قبول کړي

**تسهيلات:**

## قوله: فَلْيَقُلْ: إِنِّي صَائِمٌ:

**د نفلي روژې ښکاره کولو حکم:** - ابن الملك رحمه الله فرمائي چې روژه دار دپاره ضروري نه دي چې کله دې دعوت دپاره مدعو کړې شي نو دې دې اووائي (إني صائم) بلکه دا خبره دې نه ظاهروي دې دپاره چې کوربه ته تکليف ملاؤ نشي

**د دعوت په وجه د نفلي روژې ماتولو دوه صورتونه:** - ① دې دې دعوت قبول کړي د هغه کور ته دې لاړ شي او دبرکت او مغفرت دپاره دې دعا اوکړي که د دعوت کوونکي د طرفه د تشويش ويره وي نو بيا نفل روژه ماتول واجب دي او روستو دې ددې قضا ادا کړي
② که د تشويش ويره نه وي نو د داعي د خوشحالئ دپاره نفلي روژه ماتول مستحب دي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۲۰۷۸] د نفلي روژې په فساد باندې عدم قضاء

۲۰۷۸–( )[۳] [۱] عَنْ أُمِّ هَانِئٍ قَالَتْ: [۲] «لَمَّا كَانَ يَوْمُ الْفَتْحِ فَتْحِ مَكَّةَ [۳] جَاءَتْ فَاطِمَةُ فَجَلَسَتْ عَلَى يَسَارِ رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۴] وَأُمُّ هَانِئٍ عَنْ يَمِينِهِ، [۵] فَجَاءَتِ الْوَلِيدَةُ بِإِنَاءٍ فِيهِ شَرَابٌ فَنَاوَلَتْهُ فَشَرِبَ مِنْهُ، [۶] ثُمَّ نَاوَلَهُ أُمَّ هَانِئٍ فَشَرِبَتْ مِنْهُ، [۷] فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ! لَقَدْ أَفْطَرْتُ وَكُنْتُ صَائِمَةً، [۸] فَقَالَ لَهَا: (أَكُنْتِ تَقْضِينَ شَيْئًا؟) قَالَتْ: لَا. [۹] قَالَ: (فَلَا يَضُرُّكِ إِنْ كَانَ تَطَوُّعًا») [۱۰] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالدَّارِمِيُّ. وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَالتِّرْمِذِيِّ نَحْوُهُ. [۱۱] وَفِيهِ: «فَقَالَتْ: يَا رَسُولَ اللهِ! أَمَا إِنِّي كُنْتُ صَائِمَةً، [۱۲] فَقَالَ: (الصَّائِمُ الْمُتَطَوِّعُ أَمِيرُ نَفْسِهِ إِنْ شَاءَ صَامَ، وَإِنْ شَاءَ أَفْطَرَ»).

**ترجمه:** [۱] بي بي أم هاني رضي الله عنها څخه روايت دي [۲] کوم وخت چې مکه فتح شوه [۳] نو په هغه ورځ بي بي فاطمه رضي الله عنها راغله او د نبي کريم ﷺ چپ (ګس) طرف ته کيناسته [۴] او بي بي أم هاني رضي الله عنها د نبی کريم صلی الله عليه وسلم ښي طرف ته ناسته وه [۵] په دې کې يوه وينځه د يو لوښي سره راغله چې په هغې کې د څکلو څه شي وو وينځې هغه لوښي نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته ورکړو نبی کريم صلی الله عليه وسلم د هغې څخه لږ وڅکل [۶] بيا يې هغه لوښي بي بي أم هاني رضي الله عنها ته ورکړو بي بي أم هاني رضي الله عنها هم د هغې څخه لږ وڅکل [۷] او هغې اوويل چې يا رسول الله! ﷺ ما روژه ماته کړه څکه چې زما روژه وه [۸] نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغې ته اوويل چې آيا تا (د رمضان) څه قضاء [يا د نذر روژه] نيولې وه؟ هغې اوويل چې نا [بلکه نفلي روژه وه] [۹] نبی کريم صلی الله عليه وسلم

[۱] اخرجه ابوداود في كتاب الصوم/باب في الرخصة في ذلك (رقم-۲۴۵۶) والترمذي كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في إفطار الصائم المتطوع (رقم-۷۳۱)

وفرمايل چې که دا نفلي روژه وه نو څه حرج نشته.[۱۰] ابوداود، ترمذي، دارمي، په يو بل روايت کې چې امام احمد او ترمذي د هغې په شان نقل کړي دي[۱۱] هغې کې دا الفاظ هم دي چې بي بي ام هاني رضي الله عنها اوويل چې يا رسول الله ﷺ تا ته دي معلومه وي چې زما روژه ده [۱۲] نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې د نفل روژې والا د خپل نفس مالك دي که روژه ونيسي او که يې ماته کړي

**حل اللغات:-** ① الْوَلِيدَةُ: أَيِ: الْأَمَةُ: وينزه ② فَنَاوَلَتْهُ: نو ورمې کړو دا لوښي نبي عليه السلام ته، ③ تَقْضِينَ: ته قضاء راګرځوې، ④ الْمُتَطَوِّعُ: نفل ادا کونکې، ⑤ أَمِيرُ نَفْسِهِ: أَيْ: حَاكِمُهَا: يعنى دخپل نفس حاکم او مالک وی، اختيار مند وی

**تسهيلات:**

**قوله** فَلَا يَضُرُّكِ إِنْ كَانَ تَطَوُّعًا:

**د نفلي روژې په قضا کښې مذاهب:-**

که چا نفل روژه اونيوله اوبيائی ماته کړه نو په هغه باندې قضا شته که نه؟ دې باره کښې دّ علماؤ اختلاف دې

① امام احمد رحمه الله او امام شافعي رحمه الله په نيز نفل روژه ماتولوسره قضا لازم راځى

② امام مالك رحمه الله او امام ابوحنيفه رحمه الله په نيز قضا لازم ده. اصل اختلاف دّ شوافع او احناف دې

**داول فريق دليل:-** زير بحث دّ حضرت ام هانى رضي الله عنها حديث د دوى مستدل دې په کوم کښې چه دا الفاظ دى "فلايضرك ان كان تطوعا" په يوروايت کښې دا الفاظ دى "الصائم المتطوع اميرنفسه" "ان شاء صام وان شاء افطر".

**د دويم فريق دلائل:-**

① دّ قرآن پاك آيت دې ﴿ وَلَا تُبْطِلُوٓا أَعْمَالَكُمْ ﴾ [محمد الايه ۳۳] د دوى مستدل دې

② دې حديث سره حديث نمبر۲۰۷۹ دې د دوى مستدل دې کوم کښې چه دا الفاظ دى "فقال اقضيا يوما اخر مكانه" دّدې په ډيرو طريقو کښې اتصال دې که بعضې کښې انقطاع او ارسال وى نودا مضر نه دې

③ دّ حضرت عائشه رضي الله عنها حديث دې ((عن عائشة قالت دخل على النبي صلى الله عليه وسلم فقلت له يارسول الله انا خبأنا لك حيسا فقال اما اني كنت اريد الصوم ولكن قربيه سأصوم يوما اخر مكانه)) [طحاوى بيهقى دارقطنى]

**داول فريق د دليل جوابونه:-** حضرت ام هانى رضي الله عنها حديث کښې دّ نفل روژې ماتولو باندې صرف عدم مضرت حکم اولګولې شو دّدې مطلب دا کيدې شي چه دّ روژې دّ قضا کولو نه پس هيڅ مضرت نشته دې دا حديث دّ قضا نه کولو نه بالکل ساکت دې اودّ احنافو دلائل په قضا کولو باندې ناطق دى او ناطق دّ ساکت نه راجح وى.

⑥ دحدیث دا حصه هم د قضا نه ساکت ده او زمونږ دلیل ناطق دې او ناطق د ساکت نه راجح دې تاویلات سره ددې چه زور بستی ده مګر احنافو د نورو معیارحق روایتو د وجې نه دا تاویلات کړی دی

⑦ د ام هانی رضی الله عنها په روایت کښې ډیر ضعف دې چنانچه علامه منذری رحمه الله فرمانی "لا یثبت وفي اسناده اختلاف کثیر" مرقات، امام ترمذی رحمه الله هم ددې سند کمزورې ګرځولې دې ددې حدیث د دویم جزء جواب دادې چه نفل روژه نیونکې د روژې په وخت کښې اختیار مند دې که غواړی اودې نیسی اوکه غواړی نو نه دې نیسی لهذا دا قطعی دلیل نه دې

**[۲۰۷۹] په نفلی روژې ماتولو باندې وجوب قضاء**

۲۰۷۹ـ( )[۵] ①وَعَنِ الزُّهْرِيِّ، عَنْ عُرْوَةَ، «عَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَتْ: ②كُنْتُ أَنَا وَحَفْصَةُ صَائِمَتَيْنِ، ③فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ، فَأَكَلْنَا مِنْهُ، ④فَقَالَتْ حَفْصَةُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! إِنَّا كُنَّا صَائِمَتَيْنِ، ⑤فَعُرِضَ لَنَا طَعَامٌ اشْتَهَيْنَاهُ، فَأَكَلْنَا مِنْهُ. ⑥قَالَ (اقْضِيَا يَوْمًا آخَرَ مَكَانَهُ)» ⑦رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَذَكَرَ جَمَاعَةً مِنَ الْحُفَّاظِ رَوَوْا عَنِ الزُّهْرِيِّ عَنْ عَائِشَةَ مُرْسَلًا ⑧وَلَمْ يَذْكُرُوا فِيهِ عَنْ عُرْوَةَ، وَهَذَا أَصَحُّ.

**ترجمه:** ① زهري د عروه رحمه الله څخه او هغه د بي بي عايشي رضی الله عنها څخه نقل کوي چې بي بي عايشي رضی الله عنها وفرمايل ② چې يوه ورځ زما او د بي بي حفصي رضی الله عنها دواړو روژه وه ③ زمونږ مخې ته طعام (روټی وغیره) راوړل شو زمونږ ورته خواهش وشو نو مونږ وخوړلو ④ د هغې څخه روسته بي بي حفصي رضی الله عنها عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زمونږ روژه وه ⑤ زمونږ مخې ته طعام راوړل شو زمونږ ورته خواهش وشو نو مونږ وخوړلو (اوس زمونږ په باره کې څه حکم دي؟) ⑥ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې د دې په بدله کې د قضاء په طور يوه روژه ونيسي. ⑦ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړي دي او د حفاظ حديث د يو داسې جماعت ذکر يې کړي دي چې هغوئ دا روايت د زهري څخه او زهري د بي بي عايشي رضی الله عنها څخه بطريق ارسال نقل کړي دي ⑧ په دي کې د عروه واسطه مذکوره نه ده او دا زيات صحيح دي

۲۰۸۰ـ [۶] وَرَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، عَنْ زُمَيْلٍ مَوْلَى عُرْوَةَ، ②عَنْ عُرْوَةَ، عَنْ عَائِشَةَ.

**ترجمه:** ① او دا روايت امام ابی داؤد د زُميل څخه هم نقل کړي دي چې د عروه رحمه الله آزاد کړي غلام وو ② زُميل د عروه رحمه الله څخه او عروه رحمه الله د بي بي عايشي رضی الله عنها څخه نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① مَوْلَى: آزاد کړي شوي غلام

( ) اخرجه ابوداودفی کتاب الصوم ، باب من رأى عليه القضاء (رقم-۲۴۵۷) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في إيجاب القضاء عليه (رقم-۷۳۵) ومالک في الموطا كتاب الصيام باب قضاء التطوع (رقم-۵۰)

**[۲۰۸۱] د روژه دار په حضور کښې په خوراک کولو ثواب ملاویدل**

۲۰۸۰-( )[۲] [۱] وَعَنْ أُمِّ عُمَارَةَ بِنْتِ كَعْبٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا، [۲] أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا فَدَعَتْ لَهُ بِطَعَامٍ [۳] فَقَالَ لَهَا: كُلِي فَقَالَتْ: إِنِّي صَائِمَةٌ. [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِنَّ الصَّائِمَ إِذَا أُكِلَ عِنْدَهُ صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ حَتَّى يَفْرُغُوا. رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د بي بي أم عماره بنت كعب په باره كې روايت دي [۲] چې يوه ورځ نبي كريم ﷺ د هغې كره تشريف يوړو نو هغې د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د پاره طعام راوغوښتلو [۳] نبي كريم صلى الله عليه وسلم هغې ته وفرمايل چې ته يې هم خوره هغې عرض وكړو چې زه خو روژه ده [۴] نبي كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې هر كله د يو روژه دار مخې ته طعام خوړل كيږي او د هغه زړه د خوړلو خواهش كوي چې د هغې په بناء د هغه د پاره روژه ډيره سخته وي، نو تر څو چې خوړونكي د خوراك څخه فارغ شوي نه وي فرښتې په هغه رحمت ليږي (احمد، ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:-** ① فَدَعَتْ : أَيْ: طَلَبَتْ: راؤ ئې غوښتلو ② صَلَّتْ : أَيْ: اسْتَغْفَرَتْ: د رحمت دعګانې او بخښنه ورله غواړي

**تسهيلات: قوله:** فَقَالَتْ: إِنِّي صَائِمَةٌ:

**د مذكوره روژه دار دپاره د دوچنده اجروجه:-** په روژه كښې د اولږې وغيره شدت وي او كه د روژه دار په وړاندې خوراك اوكړې شي نو په دې سره روژه كښې نور هم شدت راځي نو روژه دار دوه عبادتونه كوي، يوه روژه او بل خوراك كتلو سره صبر په دې وجه به دده اجر او ثواب هم زيات وي په دې وجه نبي كريم ﷺ ددې كس دپاره دا فضيلت بيان كړې دې

**قوله:** صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ حَتَّى يَفْرُغُوا

**د مذكوره روژه دار دپاره د فرشتو دعا:-** داشان د فرښتو نه مراد د اعمالو ليكونكې او محافظت كوونكې فرښتې دي

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۰۸۲] د روژه دار د اندامونو تسبيح ويل**

۲۰۸۲-( )[۷] [۱] عَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ، قَالَ: [۲] «دَخَلَ بِلَالٌ عَلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ يَتَغَدَّى، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (الْغَدَاءَ يَا بِلَالُ!) قَالَ: إِنِّي صَائِمٌ يَا رَسُولَ اللهِ! [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (نَأْكُلُ رِزْقَنَا، وَفَضْلُ رِزْقِ بِلَالٍ فِي الْجَنَّةِ، [۵] أَشَعَرْتَ يَا بِلَالُ أَنَّ الصَّائِمَ تُسَبِّحُ عِظَامُهُ، [۶] وَتَسْتَغْفِرُ لَهُ الْمَلَائِكَةُ مَا أُكِلَ عِنْدَهُ؟») رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

---

[۱] اخرجه الترمذي في كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل الصائم إذا أكل عنده (رقم-۷۸۵) وابن ماجة في كتاب الصيام/باب في الصائم إذا أكل عنده (رقم-۱۷۴۸)

[۲] اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم الحديث ۳۵۸۶

**ترجمه:** [۱] بریده رضی الله عنه فرمايي [۲] چې (يو ځل) بلال رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم د سحر طعام خوړلو [۳] رسول الله ﷺ بلال رضی الله عنه ته وفرمايل چې بلاله! راځه طعام (روټی) وخوره بلال رضی الله عنه عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زما روژه ده [۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې مونږ خو خپل رزق (دلته) خورو او د بلال بهترين رزق په جنت کې دی [۵] اې بلاله (رضی الله عنه)، تاته معلومه ده چې هر کله د روژه دار په مخکې طعام خوړل کيږي نو د روژه دار هډوکي تسبيح وايي [۶] او فرښتې د هغه د پاره بخښنه غواړي تر څو پورې چې د هغه په مخکې طعام خوړل کيږي. (بيهقي)

**حل اللغات:-** ① يَتَغَدّٰى: وَهُوَ طَعَامُ أَوَّلِ النَّهَارِ: د سحر طعام خوړلو ته وائی ② أَشْعَرْتَ: دا استفهام انکاري دې. يعنی أَمَا عَلِمْتَ: تاته معلومه ده، تاته پته شته

**تسهيلات:**

**قوله: نَأْكُلُ رِزْقَنَا وَفَضْلُ رِزْقِ بِلَالٍ فِي الْجَنَّةِ:**

**دوروژې په وجه په لوږې د صبر کولو فضيلت:-** د کومې وجې نه چې بلال دلته مونږ سره خوراك نه کوی د هغې په بدله کښې دده خوراك په جنت کښې دې او ده ته په اولږه باندې د صبر کولو په بدله کښې فضيلت آورولې شوې دې چې د هډوکی د هر جوړ تسبيح بيانوی دده نه د ناشتې کولو ثبوت ملاويږی

## [۸] بَابُ لَيْلَةِ الْقَدْرِ

**دَليلة القدر بيان**

**خلاصة الباب:-**

**فيه ثلاث عشر حديثاً مشتملة على ثلاث مسائل:**

① محل ليلة القدر: ۱، ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۸، ۹، ، ۱۱، ۱۲.

② الذكر المخصوص في ليلة القدر: ۸.

③ فضيلة قيام ليلة القدر: ۱۳.

**د شب قدر ثبوت:-** قال الله تعالى ﴿ إِنَّآ أَنزَلْنَٰهُ فِى لَيْلَةِ ٱلْقَدْرِ ۝ وَمَآ أَدْرَىٰكَ مَا لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ ۝ لَيْلَةُ ٱلْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ۝ ﴾ [سورت القدر الايه ۱]

**د شب قدر وجه تسميه:-** په دې باب کښې دَ ليلة القدر دَعظمت او فضيلت بيان دې دې ته ليلة القدر په دې وجه وائی چه قدر اندازه کولوته وائی او په دې شپه کښې هم رزق او اجل اندازه کولوسره ليکلې کيږی يادالفظ دَ قدر اوعظمت شان په معنی کښې دې

**شب قدر د امت محمدی خصوصيت:-** بهرحال دَ ليلة القدر شپه دې امت مرحومه سره خاص ده څکه چه دَ دوی عمرونه مختصردی نوالله تعالی دَ ليلة القدر په ذريعه سره په اجراوثواب

کښې د دوی عمرونه اوږده کړل په یوحدیث کښې دی کوم چه ابن ابی حاتم رحمه الله نقل کړې دې د کوم خلاصه چه داده یوخل صحابه کرام رضي الله عنهم ناست وو چه حضورپاك د بنی اسرائیلو د څلورو کسانو ذکر اوکړو ونی فرمائیل چه هغوی اتیا اتیاکاله د الله تعالی عبادت اوکړو صحابه کرامو رضي الله عنهم چه دا واؤریده نو تعجب ئی هم اوکړو او خواهش ئی هم اوکړو چه په دې کښې حضرت جبرائیل علیه السلام راغلو ونی فرمائیل تاسوحیران شوي او د اوږدعمرد عبادت ارزو مواوکړه نو واؤرنی الله تعالی دې امت ته ددې نه زیاته ښیګړه ورکړه بیا جبرائیل امین علیه السلام سورت القدر تلاوت کولوسره واؤرولو یادساتنی چه د یوزر میاشتو نه ۸۳ کاله جوړیږی او څلور میاشتې زیاتی پاتې کیږی هم دغه څلورو میاشتوته نی اوفرمائیل ﴿ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ ﴾ [سورة القدر الایه ۵]

**د شب قدر فضائل:-** علماء کرامو لیکلی دی چه په لیلة القدرکښې د الله تعالی دخاص رحمت تجلی د دنیا په آسمان باندې وی. په دغه شپه په زمکه باندې د فرښتو ګڼرشمیر راکوزیږی هم په دغه شپه قرآن پاك د لوح محفوظ نه د دنیاآسمان ته نازل شوې وو هم په دې شپه د ملائکوپیدائش شوې دې. هم په دې شپه د حضرت آدم علیه السلام ماده جمع کړې شوې وه هم په دې شپه په جنت کښې ونې لګولې شوې وې. هم په دې شپه د عبادت درجې د نورو وختونوپه نسبت زیاتې کیږې شوې وې. اوهم په دې شپه دعا قبلیږی

**د شب قدر د پټ ساتلو وجه:-** الله تعالی دا شپه د خلقونه پټه ساتلې ده دې دپاره چه خلق دهرې شپې قدراوکړی اوصرف د لیلة القدر په عبادت باندې اکتفااونه کړی لکه څنګه چه د جمعې په ورځ کښې د دعاد قبلیدو یوساعت الله تعالی پټ ساتلې دې لیلة القدرهم ددې په شان دې

علماء کرامو لیکلی دی چه کوم سړې د پوره کال عبادت دپاره تهجدو ته پاسی هغه ته خامخا لیلة القدر ملاویږی څکه چه کوم سړې د شپې د عبادتونوقدرکوی هغه ته لیلة القدرملاویږی

**د شب قدر په تعیین کښې اقوال :-** بهرحال ملاعلی قاری رحمه الله مرقات کښې لیکی چه قاضی عیاض رحمه الله فرمائی چه علماء د لیلة القدر دمحل تعین کښې په خپل مینځ کښې اختلاف لری

① د بعضې خیال دې چه دا شپه بدلیږی رابدلیږی په یوکال کښې په یوه شپه کښې راځی او بل کال کښې په بله شپه کښې دا راځی ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی په دې قول سره د لیلة القدر باره کښې به په ټولو مختلفو احادیثوکښې تطبیق پیداشی د امام مالک رحمه الله احمد او نوروعالمانو هم دا مسلک دې

② د بعضې علماؤ خیال دې چه لیلة القدرد رمضان د میاشتې آخری عشره په شپو کښې

کرخي راکرخي د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه رائې داده چه لیلة القدر په پوره کال کښې کرخي راکرخي د امام ابوحنیفه رحمه الله هم دغه خیال دې

④ دحضرت ابن عمر رضي الله عنهما خیال دادې چه شب قدر د پوره رمضان په شپو کښې یوه شپه ده

⑤ د اکثرصحابه کرامو اواکثرو علماؤ رائې داده چه د رمضان ۲۷ شپه د لیلة القدر شپه ده د دې شپې څه خصوصي علامات هم دی کوم چه په احادیثوکښې ذکردی د دې نه علاوه چه کوم علامات بیانولې شی چه ونې په سجده وی بیا اودریږی دا ټول غیر مستند او غیرمتعمد څیزونه دی

**شب قدر په مختلفو ملکونو کښې څنګه یو کیدې شی؟:-** دلته یومشهورسوال دې چه دعامو خلقو او بعضې خواصو په ذهنونوکښې راځي هغه سوال دادې چه د لیلة القدر شپه خو هم یوه ده چه کله دا په یوځائی کښې راغله او لاړه نوبل ځائی کښې به څنګه راځي اوکه چرې راهم شی نو په طاق شپوکښې به څنګه راځي؟

**داشکال جواب:-** ددې ساده شان جواب دادې چه د لیلة القدر دټولو اتلو تعلق اختلاف مطالع اودزمانې تقدیم اوتاخیرسره دې دا شپه مثلاً په سعودی کښې د زمانه دتقدیم د وجې نه اول راؤرسیدله بیائې سفرشروع کړو اوپاکستان ته راؤرسیدله اوس داهم هغه د پرون والاشب قدر دې لیکن د زمانې په تاخیرسره اود اختلاف مطالع سره مونږ ته روستو راؤرسیدله نوکه دغه تیرشوې ورځ په سعودی کښې ۲۷شپه وه نوهم دغه شپه مونږ ته بله ورځ کښې راؤرسیدله په کوم کښې چه شب قدردې بهرحال دادزمانې د تقدیم اوتاخیرد وجې نه ده شپه هم یوه ده او شب قدر هم یوه ده.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۰۸۲]په آخری عشره کښې د شب قدر وجود

۲۰۸۳-([1])[۱] ① عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا- قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② (( تَحَرَّوْا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْوِتْرِ مِنَ الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ )). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① د مؤمنانو مور بي بي عایشه رضي الله عنها څخه روایت دې چه رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② چې شب قدر د رمضان د آخري عشرې طاق شپو کې تلاش کوئ (بخاري)

**حل اللغات:-** ① تَحَرَّوْا: أي: اطْلُبُوا: تلاش کوئ

[1]) اخرجه البخاری کتاب صلاة التراویح/باب تحری لیلة القدر فی الوتر من العشر الأواخر فیه عن عبادة (رقم- اخرجه البخاری) ومسلم فی کتاب الصیام/باب فضل لیلة القدر، والحث علی طلبها، وبیان محلها وأرجی أوقات طلبها (رقم) ۲۱۹ - (۱۱۶۹) وابوداود فی کتاب الصلاة،باب من روی: فی السبع الأواخر(رقم-۱۳۸۵) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی لیلة القدر(رقم-۷۹۲) ومالک فی الموطا کتاب الاعتکاف/باب ما جاء فی لیلة القدر(رقم-۱۰)

تسهيلات

**قوله**: مِنَ الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ

**دآخری عشرې د شپو څخه مراد**:- دآخری عشرې د شپو څخه مراد طاق شپې دی یویشتمه درویشتمه ،پنځویشتمه اوویشتمه او یوکم دیرشمه ۲۱ ۲۳ ۲۵ ۲۷ ۲۹

**[۲۰۸٤] په اوویشتمه شپه کښې د شب قدر وجود**

٢٠٨٤-( )[٣] [١]عَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا-قَالَ: [٢]«إِنَّ رِجَالًا مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-أُرُوا لَيْلَةَ الْقَدْرِ فِي الْمَنَامِ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ [٣] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: (أَرَى رُؤْيَاكُمْ قَدْ تَوَاطَأَتْ فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ [٤] فَمَنْ كَانَ مُتَحَرِّيهَا فَلْيَتَحَرَّهَا فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ»). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه**: [١] ابن عمر ﷺ فرمايي [٢] چه د رسول الله ﷺ څو اصحابو ﷺ ته په خوب کې شب قدر د رمضان په آخري اوو شپو کې وښودل شوه [٣] رسول الله ﷺ وفرمايل چې زه د خبره وينم چې ستاسو د ټولو خوب په آخري اووه [٧] شپو باندې متفق دي [٤] کوم سړي چې شب قدر موندل غواړي نو هغه ته پکار دي چې آخري اووه [٧] شپو کې دي تلاش کړي بخاري مسلم

**حل اللغات**:- ① تَوَاطَأَتْ : اى التَّوَاطُؤُ التَّوَافُقُ: تواطؤ توافق ته وائي، يعنى موافق ده ② مُتَحَرِّيهَا: أي: طَالِبِهَا: طلب كونكي او تلاش كونكي

**تسهيلات**:

**قوله**: فِي السَّبْعِ الْأَوَاخِرِ

**په آخري اووه شپو کښې د شب قدر تلاش**:- يعنى شب قدر د رمضان په آخرى عشره آخرى اووو شپو کښې اولټونى ددې حديث مطابق شب قدر ۲۳ رمضان نه آخره پورې په يوه شپه کښې کيدې شى اسلامى مياشت يقيناً د ۲۹ ورځو وى کله د ديرشو کيږى ليکن په دې کښې احتمال دې لهذا ۲۹ په حساب سره دا اووه ورځې جوړيږى اود حديث هم دغه مطلب اختلاف روايات صحيح دى

**[۲۰۸۵] د ليلة القدر موندلو د پاره د رمضان آخرى عشره**

٢٠٨٥-( )[٣] [١]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا، أَنَّ النَّبِيَّ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-قَالَ: [٢]« الْتَمِسُوهَا فِي

---

( ) اخرجه البخارى كتاب صلاة التراويح/باب التماس ليلة القدر فى السبع الأواخر (رقم: ٢٠١٥)ومسلم فى كتاب الصيام/باب فضل ليلة القدر. والحث على طلبها. وبيان محلها وأرجى أوقات طلبها (رقم) ٢٠٥ - (١١٦٥) ومالك فى الموطا كتاب الاعتكاف/باب ما جاء فى ليلة القدر(رقم-١٤)

( ) اخرجه البخارى كتاب صلاة التراويح/باب تحرى ليلة القدر فى الوتر من العشر الأواخر فيه عن عبادة (رقم-٢٠٢١) وابوداود كتاب الصلاة/باب فيمن قال: ليلة إحدى وعشرين (رقم-١٣٨٣) والترمذى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى ليلة القدر(رقم-٧٩٤) ومالك فى الموطا كتاب الاعتكاف/باب ما جاء فى ليلة القدر (رقم-١٣)

الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ، لَيْلَةَ الْقَدْرِ: [۳] فِي تَاسِعَةٍ تَبْقَى، فِي سَابِعَةٍ تَبْقَى، فِي خَامِسَةٍ تَبْقَى»). رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دي چې نبي کریم ﷺ وفرمایل [۲] شب قدر د رمضان په آخري عشره (په لسو ۱۰ کې) تلاش کړئ [۳] په باقي مانده نهمه شپې کې چې هغه یویشتمه شپه ده، په باقي مانده اوومه کې (چې هغه درویشتمه شپه ده) او په باقي مانده پنځمه شپه کې (چې هغه پنځوویشتمه (۲۵) شپه ده) (بخاري)

**حل اللغات:** - ① اَلْتَمِسُوهَا: اولټوئ، تلاش کړئ

**تسهيلات:**

**قوله: فِي تَاسِعَةٍ تَبْقَى:**

**د في تاسعة تبقى تشريح:** - يعنې چه کله د آخري عشرې نهه شپې باقي پاتې شي هغه وخت شب قدر اولټوئ دا د یویشتمې شپې طرف ته اشاره ده "سابعة تبقى" سره د دیرشمې شپې طرف ته اشاره ده "خامسة تبقى" په دې کښې پینځویشتمې شپې طرف ته اشاره ده ددې حدیث د حساب مطابق د رمضان میاشت د ۳۰ ورځو کیدل پکار دي او د پورته شمیر طریقه که د رمضان د آخر نه واخستې شي نو بیا به مطلب داشي چه شب قدر په ۲۹ شپه بندې اولټوئ ۲۷ شپه او ۲۵ شپه باندې اولټوئ [الکاشف ۵۸۳/۴.]

**[۲۰۸٦] د نبی علیه السلام په خوب کښې شب قدر لیدل**

۲۰۸٦-(۱)[۳] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ، [۲] «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - اعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ مِنْ رَمَضَانَ، [۳] ثُمَّ اعْتَكَفَ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ فِي قُبَّةٍ تُرْكِيَّةٍ، [۴] ثُمَّ أَطْلَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: "إِنِّي أَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَّلَ أَلْتَمِسُ هَذِهِ اللَّيْلَةَ، [۵] ثُمَّ أَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوْسَطَ ثُمَّ أُتِيتُ فَقِيلَ لِي: [٦] إِنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ [۷] فَمَنْ كَانَ اعْتَكَفَ مَعِي فَلْيَعْتَكِفِ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ، [۸] فَقَدْ أُرِيتُ هَذِهِ اللَّيْلَةَ، ثُمَّ أُنْسِيتُهَا،

**ترجمه:** [۱] د ابو سعید الخدري رضي الله عنه څخه روایت دي [۲] چې رسول الله ﷺ د رمضان په اولنې عشره کې اعتکاف وکړو [۳] بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم په یوه ترکي خیمه کې دننه په درمیانی لسو ورځو کې اعتکاف وکړو [۴] د دې څخه روسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل سر مبارک (د خیمې) څخه بهر راویستلو سره وفرمایل چې ما د شب قدر د تلاش کولو د پاره په اولنې لسو ورځو کې اعتکاف وکړو [۵] بیا ما درمیانی عشره کښې اعتکاف اوکړو د دې څخه روسته ماته (ددې شپې علم) راکړې شو اوماته اوئیلو شو [٦] چې شب قدر د رمضان په آخري شپو کې راځي [۷] نو کوم سړي چې ما سره اعتکاف کول غواړي هغه ته پکار دي چې هغه په آخري لسو شپو کې اعتکاف اوکړی [۸] او ماته په خوب

---

۱) اخرجه البخاري كتاب صلاة التراويح /باب التماس ليلة القدر في السبع الأواخر (رقم: ۲۰۱٦) ومسلم في كتاب الصيام/ باب فضل ليلة القدر، والحث على طلبها، وبيان محلها وأرجى أوقات طلبها (رقم) ۲۱۳ - (۱۱٦۷) وابوداود كتاب الصلاة/ باب فيمن قال: ليلة إحدى وعشرين (رقم-۱۳۸۲) ومالك في الموطا كتاب الاعتكاف /باب ما جاء في ليلة القدر (رقم-۹)

کي شب قدر متعين کولو سره وښودل شو خو وروسته زما د ذهن څخه محوه کړل شو يعني حضرت جبرايل علیه السلام ماته وښودل چې په فلانۍ شپه باندې شب قدر دي خو هغه زما څخه هير شو چې هغه د کومې ورځې تعين کړې وو.

[۱] «وَقَدْ رَأَيْتُنِي أَسْجُدُ فِي مَاءٍ وَطِينٍ مِنْ صَبِيحَتِهَا [۲] فَالْتَمِسُوهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ [۳] وَالْتَمِسُوهَا فِي كُلِّ وِتْرٍ». [۴] قَالَ: فَمَطَرَتِ السَّمَاءُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ [۵] وَكَانَ الْمَسْجِدُ عَلَى عَرِيشٍ، فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ [۶] فَبَصُرَتْ عَيْنَايَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعَلَى جَبْهَتِهِ أَثَرُ الْمَاءِ وَالطِّينِ مِنْ صَبِيحَةِ إِحْدَى وَعِشْرِينَ». [۷] مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ فِي الْمَعْنَى. وَاللَّفْظُ لِمُسْلِمٍ إِلَى قوله: (فَقِيلَ لِي: إِنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ) وَالْبَاقِي لِلْبُخَارِيِّ.

**ترجمه:** [۱] ما (په خوب) کې خپل ځان وليدلو چې زه د هغې په سحر (يعني د ليلة القدر په سحر) په خټو کې سجده کوم [او زما څخه دا هير شوي دي چې هغه کومه شپه وه] [۲] نو تاسو د (رمضان) په آخري لسو ورځو کې تلاش کوئ [۳] او ليلة القدر په طاق شپو کې (يعني د آخري لسو طاق شپو کې) تلاش کوئ [۴] راوي وايي چې په کومه شپه چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم خوب ليدلی وو په هغه شپه باران شوی وو [۵] او د مسجد چت (بام) د کجورو د څانگو څخه جوړ شوي وو نو مسجد وڅڅيدلو [۶] او زما سترگو وليدل چې د يويشتمې شپې په سحر د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په مخ مبارك د اوبو او خټو نښه وه. [۷] د دې حديث د نقل په سلسله کې معنوي طور سره بخاري او مسلم دواړه متفق دي البته تر فقيل لي انها في العشر الاواخر پورې ددې روايت الفاظ خو مسلم نقل کړي دي او د روايت باقي الفاظ بخاري نقل کړي دي

**حل اللغات:** - ① قُبَّةٍ تُرْكِيَّةٍ: وَهِيَ قُبَّةٌ صَغِيرَةٌ مُسْتَدِيرَةٌ مِنْ لُبُودٍ: دا وړه شان گول خيمه وه چه د وړۍ نه جوړه شوې وه. دې ته خرقان هم وائي کومې ته چه فارسي کښې خرگاه وائي. د ترک علاقې جوړه شوې وه څکه نې ورته ترکي وئيلي. ② أُتِيتُ: أَيْ أَتَانِي آتٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ: دا د مجهول صيغه ده يعني ماله يوه راتلونکي فرښته راغله ③ أَطْلَعَ: أَيْ أَخْرَجَهُ مِنَ الْقُبَّةِ: يعني سرنې د خيمې نه رابهر کړو ④ رَأَيْتُنِي: يعني ما په خوب کښې خپل ځان داسې اوليدلو ⑤ أَلْتَمِسُ: أَيْ أَطْلُبُ: ما تلاش کولو. لټولو مې ⑥ طِينٍ: خټه. لمده زمکه. ⑦ صَبِيحَتِهَا: په سحر ددغه شپې (يعني د ليلة القدر) ⑧ وِتْرٍ: طاق. چه جوړه نې نه وی ⑨ فَمَطَرَتْ: باران شوې وو ⑩ عَرِيشٍ: يعنى د هغې چت د کهجورو د ښاخونو نه جوړ شوې وو ⑪ فَوَكَفَ: أَيْ قَطَرَ سَقْفُهُ وَنَزَلَ مَاءُ الْمَطَرِ مِنْ سَقْفِهِ: يعنى د جمات چت راؤڅڅيدو. د باران د وجې نه اوبه څڅيدو سره ښکته راغلې

**تسهيلات:**

**قوله: فَوَكَفَ الْمَسْجِدُ:**

**د خوب مطابق صبا کيدل:** - راوی د حضورپاك د خوب مطابق بيان اوکړو چه څنگه په خوب کښې حضورپاك خپل ځان ليدلې وو هم هغه شان د سحر وخت د مونځ نه پس هم

حضور ياك اوليدلو دا شپه ۲۳ رمضان وو

۲۰۸۷ - (۲) [۵] [۱] وَفِي رِوَايَةِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُنَيْسٍ قَالَ: [۲] («لَيْلَةُ ثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ») رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] او په يو دويم روايت كې چې د عبدالله بن انيس رضي الله عنه څخه منقول دي [۲] د يويشتمي شپې د سحر په ځاي، د درويشتمي [۲۳] د سحر الفاظ دي دا روايت مسلم نقل كړي دي

### [۲۰۸۸] د شب قدر يوه علامه

۲۰۸۸ - (۱) [۵] [۱] وَعَنْ زِرِّ بْنِ حُبَيْشٍ قَالَ: «سَأَلْتُ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ فَقُلْتُ: [۲] إِنَّ أَخَاكَ ابْنَ مَسْعُودٍ يَقُولُ: مَنْ يَقُمِ الْحَوْلَ يُصِبْ لَيْلَةَ الْقَدْرِ، [۳] فَقَالَ - رَحِمَهُ اللهُ - أَرَادَ أَنْ لَا يَتَّكِلَ النَّاسُ [۴] أَمَا إِنَّهُ قَدْ عَلِمَ أَنَّهَا فِي رَمَضَانَ، [۵] وَأَنَّهَا فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ [٦] وَأَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ، [۷] ثُمَّ حَلَفَ لَا يَسْتَثْنِي أَنَّهَا لَيْلَةُ سَبْعٍ وَعِشْرِينَ، [۸] فَقُلْتُ: بِأَيِّ شَيْءٍ تَقُولُ ذَلِكَ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ؟ [۹] قَالَ بِالْعَلَامَةِ أَوْ بِالْآيَةِ الَّتِي أَخْبَرَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۱۰] أَنَّهَا تَطْلُعُ يَوْمَئِذٍ لَا شُعَاعَ لَهَا» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] زربن حبيش (تابعي) رحمه الله وايي چې ما د حضرت أبي بن كعب رضي الله عنه څخه پوښتنه كولو سره اوويل [۲] چې ستاسو (ديني) ورور حضرت ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې كوم سړي چې ټول كال د عبادت د پاره شب بيداري وكړي نو هغه به شب قدر بيامومي [۳] أبي بن كعب رضي الله عنه اوويل چې الله تعالى جل جلاله دي په ابن مسعود رضي الله عنه باندې رحم وكړي هغه دا خبره په دې بناء كړې ده چې خلق بهروسه كولو سره سستي شروع نه كړي [۴] ګينې ترڅو پورې چې د حقيقت تعلق دې ابن مسعود رضي الله عنه پوهيدلو چې شب قدر په رمضان كې راځي [۵] او دا ورته هم پته ده چې د رمضان په آخري لسو شپو كې يوه ورځ شب قدر ده [٦] او هغه اوويشتمه [۲۷] شپه ده [۷] بيا ابي ابن كعب رضي الله عنه داسې قسم اوكړو چې د هغې سره يې انشاء الله ونه ويله او هغه اوويل چې بلا شبه ليلة القدر اوويشتمه شپه ده [۸] ما عرض وكړو اې ابو منذر! (داد أبي بن كعب رضي الله عنه كنيت دي) تاسو دا خبره په څه بناء كوئ؟ [۹] هغه وفرمايل چې د هغه علامت يا نښې په بناء چې مونږ ته رسول الله صلى الله عليه وسلم ښودلي ده [۱۰] چې د دې شپې په سحر كې چې نمر راخيژي نو په هغې كې رڼا نه وي (نو ما ليدلي دي چې په اوويشتمه شپه د سحر نمر را وختلو نو په هغې كې رڼا نه وه) (مسلم)

**حل اللغات:** - ① يَقُمِ الْحَوْلَ - أَيْ مَنْ يَقُمْ لِيَتَعَبَّدَ: څوك چه ټول كال د شپې عبادت كوي. ② يُصِبْ: أَيْ يُدْرِكْ: پيدا به كړي. بيا به مومي ③ لَا يَتَّكِلَ - أَيْ لَا يَعْتَمِدُوا: اعتماد او باور دې نه كوي ④ حَلَفَ: قسم ئې اوخوړلو

---

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب فضل ليلة القدر، والحث على طلبها، وبيان محلها وأرجى أوقات طلبها (رقم) ۲۱۸ (۱۱٦۸)

[۲] اخرجه مسلم في كتاب الصيام/باب فضل ليلة القدر، والحث على طلبها، وبيان محلها وأرجى أوقات طلبها (رقم) ۲۲۰ - (۷٦۲)

تسهیلات

**قوله:** أَنْ لَا يَتَّكِلَ النَّاسُ

یعنی صرف په ۲۷ رمضان باندې یقین کولو سره مه کینئی ځکه ابن مسعود رضي الله عنه ته به معلومه ده چه شب قدر د رمضان په آخری عشره کښې دے او په ۲۷ رمضان کښې دے

**قوله:** ثُمَّ حَلَفَ یعنی داسې قسم ئې اوخوړلو کوم چه پوخ وو په هغې کښې د ان شاء الله ستثنی هم نه وه

**د شب قدر په تعیین کښې د امام رازی قول:**- امام رازی رحمه الله په تفسیر کبیر کښې لیکلی دی چه د قرآن په سورت قدر کښې الله تعالی درې ځل د لیلة القدر لفظ استعمال کړې دې او په دې لفظ کښې ۹ حروف د کوم نه چه ټول حروف ۲۷ جوړیږی لهذا لیلة القدر په ۲۷ رمضان کښې ده دا قرآنی اشاره ده دلته د سلطان العارفین محی الدین ابن العربی رحمه الله یو عبارت نقل کوم د فائدې نه به خالی نه وی هغه په فتوحات مکیه کښې لیکی

واختلف الناس فی لیلة القدر اعنی فی زمانها فمنهم من قال هی فی السنة کلها تدور وبه اقول فانی رئیتها فی شعبان وفی شهر ربیع وفی شهر رمضان واکثر ما رئیتها فی شهر رمضان وفی العشر الاخر منه ورئیتها مرة فی العشر الوسط من رمضان فی غیر لیلة وتر وفی الوتر منها فانا علی یقین من انها تدور فی السنة فی وتر وشفع من الشهر انتهی [زجاجة المصابیح ج۱ص۵۸۴]

**[۲۰۸۹] د رمضان په آخری عشره کښې په عبادت کښې مجاهده کول**

۲۰۸۹-(۲)[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ [۳] مَا لَا يَجْتَهِدُ فِي غَيْرِهِ». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** [۱] بی بی عائشه صدیقه رضي الله عنها فرمایي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د رمضان په آخري عشره کې څومره ریاضت او مجاهده کوله [۳] دومره مجاهده به یې په بله یوه میاشته کې نه کوله (مسلم)

**حل اللغات:**- ① یَجْتَهِدُ: أَيْ يُبَالِغُ: یعنی په دغه شپه به نې د شب قدر موندلو دپاره په عبادت کښې ډیر کوشش کولو

**تسهیلات:** **قوله:** یَجْتَهِدُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ:

**په آخری عشره کښې په عبادت کښې مبالغه کول:**- یعنی نبی کریم ﷺ به په آخری عشره کښې زیات عبادت کولو ځکه چې هم په دې عشره کښې لیلة القدر راځی لهذا ددې په تلاش کښې عبادت کښې به ډیر کوشش پکار دې

[۱] اخرجه مسلم فی باب الاجتهاد فی العشر الأواخر من شهر رمضان(رقم) ۸ - (۱۱۷۵) وابن ماجة کتاب الصیام /باب فی فضل العشر الأواخر من شهر رمضان (رقم-۱۷۶۷)

**[۲۰۹۰] په آخری عشره کښې د نبی علیه السلام معمول**

۲۰۹۰-( )[۷] ① وَعَنْهَا قَالَتْ: ②«كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ الْعَشْرُ ③ شَدَّ مِئْزَرَهُ ④ وَأَحْيَا لَيْلَهُ، ⑤ وَأَيْقَظَ أَهْلَهُ»، مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① بي بي عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي ② چې د رمضان آخري لس ورځي چې به راغلي ③ نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم به خپل تهبند (لنګ) مضبوط اوتړلو ④ شپه به يې ژوندئ کوله ⑤ او خپل اهل وعيال به يې بيدارولو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① شَدَّ: کلک او مضبوط به ئې تړلو، ② مِئْزَرَهُ: أي إزاره: لنګ (لنګ مضبوط تړل عبارت دي د مضبوطې ارادې او پوره توجه او مشقت نه) ③ أَحْيَا: ژوندئ ئې کړه يعنی مونځ. ذکر. تلاوت وغيره ئې پکښې اوکړل ④ أَيْقَظَ: رابيداره ئې کړه (چه مونځ عبادت اوکړی او دليلة القدر ثواب حاصل کړی)

**تسهيلات:**

**قوله: شَدَّ مِئْزَرَهُ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال: -**

① دا ددې خبرې نه کنايه ده چې نبی کريم ﷺ بهٔ په آخری عشره کښې د خپل عادت او خپل معمول مبارك نه زيات په عبادت کښې مجاهده کوله

② دا کنايه ده چې د ښځو نه به جدا شو يعنی خپلو بيبيانو سره به ئې صحبت او مباشرت نه کولو

**قوله - وَأَحْيَا لَيْلَهُ:**

**د شپې دنبی عليه السلام د عبادت معمول:** - او شپې به ئې ژوندی کولې يعنی دشپې به ئې عبادت اوتلاوت او ذکر کولو امام نووی رحمه الله فرمائی چې حضور نبی کريم ﷺ به ټوله شپه شوګيره کوله باقی چې کوم روايت کښې راځی چې (أنه عليه السلام ما سهر جميع الليل) کله چې نبی کريم ﷺ به پوره شپه شوګيره نه کوله نو ددې جواب دادې چې نبی کريم ﷺ به په دوام سره شوګيره نه کوله څه حصه به ئې په عبادت کښې او څه حصه به ئې په آرام کښې تيروله

**دشپې ژوندی کولو دوه صورته:** - علامه طيبی رحمه الله فرمائی چې شپه ژوندی کول په دوه قسمه دی

① که د ...ه..ضمير مرجع عبادت وی چې کله دشپې په عبادت کښې مشغول وی نو هغه خوب چې د مرګ سره مشابه دې دهغه پريښودو ګويا چې ده خپل نفس ژوندې کړو کما

---

() اخرجه البخاری کتاب صلاة التراويح /باب العمل فی العشر الأواخر من رمضان (رقم - ۲۰۲٤) ومسلم باب الاجتهاد فی العشر الأواخر من شهر رمضان(رقم) ۷ - (۱۱۷٤) والنسائی کتاب قيام الليل وتطوع النهار /بالاختلاف علی عائشة فی إحياء الليل (رقم - ۱٦۳۹) وابن ماجة کتاب الصيام /باب فی فضل العشر الأواخر من شهر رمضان (رقم - ۱۷٦۸)

في قوله تعالى ﴿اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا﴾ [الزمر ۴۲].

(۲) که د «ه» ضمیر مرجع صرف لیل وی چې لیل په عبادت کښې د مشغولیدو په وجه بمنزله د ورځې شوه چې ده شپه ژوندی کړه او دا شپه ئې عبادت او طاعت سره مزین کړه نو کوم کس چې پوره شپه په عبادت او ریاضت کښې تیره کړی نو هغه ټوله شپه ژوندی کړه او دې سره پوره حصه د ثواب حاصلوی او څوك چې د شپې په څه حصه کښې عبادت کوی نو هغه دشپې هم دومره حصه ژوندی کوی اوهغه ته به ددې په قدر ثواب ملاویږی تعلیق الصبیح.

قوله وأيقظ أهله یعنی نبی کریم ﷺ به خپلو ازواج مطهرات لونړو او وینځو وغیره ته د شب بیدارۍ تلقین کولو او هغوی ته به ئې په عبادت کښې د مشغول اوسیدو حکم کولو لقوله تعالى ﴿وَاْمُرْ اَهْلَكَ بِالصَّلٰوةِ وَاصْطَبِرْ عَلَيْهَا﴾.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۰۹۱] دلیلة القدر دعا**

(۲۰۹۱-۸) [۱] «عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قُلْتُ: [۲] يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ إِنْ عَلِمْتُ أَيُّ لَيْلَةٍ لَيْلَةُ الْقَدْرِ [۳] مَا أَقُوْلُ فِيْهَا؟ قَالَ: قُوْلِي: [۴] "اَللّٰهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ فَاعْفُ عَنِّيْ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَابْنُ مَاجَهْ وَالتِّرْمِذِيُّ وَصَحَّحَهُ.

**ترجمه:** [۱] بی بی عایشه رضي الله عنها څخه روایت دې چې ما عرض وکړو [۲] چې یا رسول الله ﷺ ما ته وښ یه که زه شب قدر بیاموم [۳] نو په هغې کې کومه دعاء وغواړم؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې دا دعا غواړه [۴] اي الله ﷻ ته معاف کونکي یي او معافي خوښوي نو ما ته معافي وکړي. (احمد، ابن ماجه، ترمذي)

**حل اللغات:** - (۱) عَفُوٌّ: أَيْ كَثِيْرُ الْعَفْوِ: یعنی ډیر معاف کونکي

**تسهیلات:**

**قوله:** اَللّٰهُمَّ إِنَّكَ عَفُوٌّ تُحِبُّ الْعَفْوَ:

**دعافیت فضلیت:** - علماء کرام لیکی چې دا دعا ددنیا او آخرت ټولو نیکو لره جامع دي ځکه چې د الله ﷻ د طرفه په دې معامله کښې معافی او مغفرت او بخښش هغه لوې سعادت دې چې هغه دهرې نیکۍ د عروج ترقۍ راز دې په یو روایت کښې فرمائیلی شوی دی چې د بنده د طرفه د الله ﷻ په دربار کښې د عافیت او بخښش سوال نه بل هیڅ افضل نشته دي

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم: ۳۵۱۳) وابن ماجة کتاب الدعاء باب الدعاء بالعفو والعافیة(رقم-۳۸۵۰)

## [۲۰۹۲] د شب قدر شپې

۲۰۹۳ - ( )[۹] [۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] "«الْتَمِسُوهَا - يَعْنِي لَيْلَةَ الْقَدْرِ - فِي تِسْعٍ يَبْقَيْنَ، [۳] أَوْفِي سَبْعٍ يَبْقَيْنَ، أَوْفِي خَمْسٍ يَبْقَيْنَ، أَوْثَلَاثٍ أَوْآخِرِ لَيْلَةٍ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابو بکره رضي الله عنه راوي دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي [۲] چې شب قدر (د رمضان) د باقي مانده نهمی [۹] شپې (یعني په یو کم دیرشمه کې) تلاش کوئ [۳] یا باقي اومه شپه (یعني په اوویشتمه شپه) کې یا په باقي مانده پنخمه شپه (یعني په پنځویشتمه [۲۵] شپه) کې یا په باقي مانده دریمه شپه (یعني درویشتمه [۲۳] شپه) کې یا په آخري شپه کې (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① الْتَمِسُوهَا: اولټوئ، تلاش کړئ (لیلة القدر)

**تسهيلات:**

**قوله:** الْتَمِسُوهَا - يَعْنِي لَيْلَةَ الْقَدْرِ - فِي تِسْعٍ يَبْقَيْنَ....الخ:

**د شب قدر تعين:** - په دې حدیث مبارك کښې د لیلة القدر د شپود تعیین ذکر دی

## [۲۰۹۲] شب قدر په رمضان کښې راځي

۲۰۹٤ - ( )[۱۰] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] «سُئِلَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَنْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ [۳] فَقَالَ: " هِيَ فِي كُلِّ رَمَضَانَ» ". [۴] رَوَاهُ أَبُودَاوُدَ، وَقَالَ: رَوَاهُ سُفْيَانُ وَشُعْبَةُ عَنْ أَبِي إِسْحَاقَ مَوْقُوفًا عَلَى ابْنِ عُمَرَ.

**ترجمه:** [۱] د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دي [۲] چې د رسول الله ﷺ څخه د شب قدر په باره کې پوښتنه وشوه [۳] نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل هغه په هر رمضان کې راځي. [۴] امام ابوداؤد رحمه الله دا روایت نقل کړي دي او ویلي یې دي چې دا روایت سفیان او شعبه د ابي اسحاق څخه او هغه د ابن عمر رضي الله عنه څخه موقوفاً نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله** هِيَ فِي كُلِّ رَمَضَانَ:

**د مذکوره جملې دوه مطلبه:** - د دې جملې د علامه طیبی رحمه الله دوه مطلبونه بیان کړی دی

① چې شب قدر هم په رمضان کښې راځی رمضان نه علاوه په بله میاشت کښې نه راځی

② چې شب قدر د رمضان په ټوله میاشت کښې په یو شپه کښې راتلې شی د آخری عشرې څه تخصیص نشته (مرقاة ج۴ ص ۳۲۲)

---

( ) اخرجه الترمذي في كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء في ليلة القدر (رقم - ۷۹٤)
( ) اخرجه ابوداود كتاب الصلاة، باب من قال- هي في كل رمضان (رقم -۱۳۸۷)

**[۲۰۹٤] دروېشتمه شپه د شب قدر ده**

[۲۰۹٤](۱) وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُنَيْسٍ قَالَ: «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ لِي بَادِيَةً أَكُونُ فِيهَا وَأَنَا أُصَلِّي فِيهَا فَمُرْنِي بِلَيْلَةٍ أُنْزِلُهَا إِلَى هَذَا الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: "انْزِلْ لَيْلَةَ ثَلَاثٍ وَعِشْرِينَ" فَقِيلَ لِابْنِهِ: كَيْفَ كَانَ أَبُوكَ يَصْنَعُ؟ قَالَ: كَانَ يَدْخُلُ الْمَسْجِدَ إِذَا صَلَّى الْعَصْرَ فَلَا يَخْرُجُ مِنْهُ لِحَاجَةٍ حَتَّى يُصَلِّيَ الصُّبْحَ، فَإِذَا صَلَّى الصُّبْحَ وَجَدَ دَابَّتَهُ عَلَى بَابِ الْمَسْجِدِ فَجَلَسَ عَلَيْهَا وَلَحِقَ بِبَادِيَتِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن انيس رضي الله عنه وايي چې ما عرض وکړو [۲] چې يا رسول الله ﷺ زما مکان په ځنګل کې دي زه هلته وسيږم او هلته مونځ کوم. د الله تعالى ﷻ شکر دي [۳] نو تاسو د هغه شپې په باره کښې ماته ونبايي چې زه دي مسجد ته راځم (يعني راونبايي چې شب قدر په کومه شپه ده چې زه په هغه شپه مسجد نبوي ﷺ ته ځم او عبادت کوم [۴] نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې (د رمضان) په دروېشتمه شپه راځه [۵] (د دي ځخه پس د حضرت عبدالله رضي الله عنه د زوي ځخه (چې د هغه نوم صمره وو) پوښتنه وشوه چې په دي سلسله کې ستا د پلار بزرګوار څه معمول وو؟ [۶] نو هغه اوويل چې د رمضان په دروېشتم تاريخ به زما پلار بزرګوار د مازيګر د مانځه کولو د پاره په مسجد نبوي (ﷺ) کې داخليدلو [۷] او د سحر تر مانځه پورې به د هيڅ کار د پاره هم (چې د اعتکاف خلاف به وو) د مسجد ځخه به بهر نه وتلو [۸] د سحر مونځ چې به يې وکړو نو د مسجد په دروازه به يې د خپلي سورلي ځاروی ولاړ بياموندلو [۹] چې په هغې به سورشو او ځنګل ته به لاړو (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① بَادِيَةً: کلي. بانده. ② أُنْزِلُهَا: راکوز شم، راشم. ③ لَحِقَ: اوبه رسيدلو

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ لِي بَادِيَةً:

**د باديه وضاحت:** - د ښاريود خلقونه علاوه کوم چه د کلي اوسيدونکی خلق دی د هغوی د اوسيدوځايونوته باديه وائی د عربود هريوخاندان به جدا جدا باديه وه دا به په حقيقت کښي د ځرن ځايونه او صحرائی علاقې وې

**اشکال:** - دلته اشکال دادې چه د شب قدر علم الله تعالی پټ اوساتلو حضورپاك هم اوفرمائيل د دې تعين زمانه اوچت کړې شو نوبيا دلته حضورپاك دغه صحابی ته په متعين توګه ځنګه اوخودله چه په دروېشتمه شپه جمات ته راشه دا شب قدر دې؟

**دا شکال جواب:** - د دې اشکال جواب دادې چه حضورپاك صرف هم د دغه کال تعين فرمائيلي وو الله تعالی حضورپاك ته اوخودل چه دې کال کښي به شب قدر په دروېشتمه شپه راځي حضورپاك د هميشه د پاره تعين نه وو فرمائيلي هغه تعين صحابی پخپله اوګنړلو

(۱) اخرجه ابوداود کتاب الصلاة/باب في ليلة القدر(رقم-۱۳۸۰)

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۰۹۵] رسول الله ﷺ ته د شب قدر علم اوبیا هیر یدل**

۲۰۹۵ - ( ) [۱۲] [۱] عَنْ عُبَادَةَ بْنِ الصَّامِتِ قَالَ: [۲] «خَرَجَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِيُخْبِرَنَا بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ [۳] فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ [۴] فَقَالَ: " خَرَجْتُ لِأُخْبِرَكُمْ بِلَيْلَةِ الْقَدْرِ فَتَلَاحَى فُلَانٌ وَفُلَانٌ [۵] فَرُفِعَتْ وَعَسَى أَنْ يَكُونَ خَيْرًا لَكُمْ [۶] فَالْتَمِسُوهَا فِي التَّاسِعَةِ وَالسَّابِعَةِ وَالْخَامِسَةِ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عباده ابن صامت رضی الله عنه وايي [۲] چې (يوه ورځ) نبي کريم ﷺ بهر تشريف راوړو چې مونږ ته د شب قدر په باره کې اووائي [۳] چې په مسلمانانو کې دوه سړي سره په دعوه وو [۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې زه بهر راوتلي وم چې تاسو ته د شب قدر په باره کې اووايم (چې هغه کومه شپه ده) خو فلاني او فلاني په دعوه وو [۵] نو د شب قدر تعين پورته کړل شو او شايد ستاسو د پاره دا بهتره وي [۶] نو تاسو شب قدر په يو کم ديرشمه [۲۹] او اوويشتمه [۲۷] او پنځويشتمه [۲۵] شپه کې لټوئ (بخاري)

**حل اللغات:** - ① فَتَلَاحَى: أَيْ تَنَازَعَ وَتَخَاصَمَ: خپل مينځ کښې دوه کسانو جګړه لګولې وه يويل ته نې بدې ردې ونيلې ② فَرُفِعَتْ: پورته کړې شو (يعنی تعين او خاص شپه د ليلة القدر واپس واخستې شو)

**تسهيلات:**

**قوله: فَتَلَاحَى رَجُلَانِ مِنَ الْمُسْلِمِينَ:**

**د رجلان مصداق:** - د هغه دوو کسانو په خپل مينځ کښې د مال څه لين دين وو د کوم په وجه چه ځوخل د هغوی خپل مينځ کښې تکرار شوې وو د يونوم حضرت کعب بن مالک رضی الله عنه وو او دويم نوم حضرت عبد الله بن ابی حَدْرَدْ رضی الله عنه وو په يوبله موقع باندې حضورپاک د هغوی فيصله کړې وه

**قوله: فَرُفِعَتْ:**

**د جګړې سپيره والې:** - يعنی د دغه دواړو کسانو د جګړې دومره خراب اثر اوشو چه زمانه د ليلة القدر تعيين واپس واخستې شو په دې سره مسلمانانوله سوچ کول پکار دی چه د خپل د منافرت او جګړې او فساد څومره لوئی روحانی اثر پريوځی سوچ اوکړنی د هغوی د جګړې اثر په رسول الله ﷺ باندې پريوتلو نويخپله به په هغوی باندې څه اثرشوې وی او د مسلمانانو په معاشره باندې به د دې څومره اثر پريوتلې وی

**د يوې غلط فهمې ازاله:** - دلته په دې خبره باندې خان پوهه کړنی چه د ليلة القدر د اوچتيدو مطلب دا نه دې چه دا شپه ختمه کړې شوه اود دې فضيلت باقی پاتې نه شو بلکه مطلب نی دادې چه کوم تعيين حضورپاک ته حاصل شوې ووهغه تعيين ختم شو شب قدر نه دې ختم

[1] اخرجه البخاری کتاب صلاة التراويح باب رفع معرفة ليلة القدر لتلاحی الناس (رقم-۲۰۲۳)

شوي "وعسی ان یکون" په دې جمله کښې حضور پاك امت ته تسلي ورکړه چه اوچتیدل ستاسو د پاره بهتر دی مه غم کوئی او مه پریشانه کیږئی بلکه ددې په لتون کښې نور محنت اوکړئی نونور ثواب ملاویږی [الکاشف ۲۴۸/۴.]

**[۲۰۹۶] د شب قدر فضیلت**

۲۰۹۶-(۱)[۱۳] ① وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «إِذَا كَانَ لَيْلَةُ الْقَدْرِ نَزَلَ جِبْرِيلُ فِي كَبْكَبَةٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ ③ يُصَلُّونَ عَلَى كُلِّ عَبْدٍ قَائِمٍ أَوْ قَاعِدٍ يَذْكُرُ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ ④ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدِهِمْ - يَعْنِي يَوْمَ فِطْرِهِمْ - ⑤ بَاهَى بِهِمْ مَلَائِكَتَهُ ⑥ فَقَالَ: يَا مَلَائِكَتِي مَا جَزَاءُ أَجِيرٍ وَفَّى عَمَلَهُ؟

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هرکله چې شب قدر راخي نو په هغه شپه کې حضرت جبرئيل علیه السلام د فرشتو د جماعت سره راخکته کيږی ③ او د هر بنده د پاره د بخشش (بخښني) دعاء کوي چې ولاړ وي (مونځ کوي، طواف کوي يا يو بل عبادت کوي) يا ناست وي (او د الله عزوجل په ياد او د هغه په ذکر کې مشغول وي) ④ بيا چې د هغه (مسلمانانو) د عيد الفطر (يعني د وړوکي اختر) ورځ شي ⑤ نو الله تعالی جل جلاله د خپلو هغه بنده ګانو په وجه د هغه فرشتو په مخکې فخر کوي (چې هغه د آدم علیه السلام د تخليق يعنی پيدائش په وخت بني آدم مطعون کړي وو يعنی طعن يې پرې کړي وو) ⑥ او فرمايي چې اې زما فرشتو دهغه مزدور دپاره څه اجر دي چې هغه خپل کار پوره کړي وی؟

① قَالُوا: رَبَّنَا جَزَاؤُهُ أَنْ يُوَفَّى أَجْرَهُ ② قَالَ: مَلَائِكَتِي، عَبِيدِي وَإِمَائِي قَضَوْا فَرِيضَتِي عَلَيْهِمْ ③ ثُمَّ خَرَجُوا يَعُجُّونَ إِلَى الدُّعَاءِ ④ وَعِزَّتِي وَجَلَالِي وَكَرَمِي وَعُلُوِّي وَارْتِفَاعِ مَكَانِي لَأُجِيبَنَّهُمْ ⑤ فَيَقُولُ: ارْجِعُوا قَدْ غَفَرْتُ لَكُمْ ⑥ وَبَدَّلْتُ سَيِّئَاتِكُمْ حَسَنَاتٍ " ⑦ قَالَ: " فَيَرْجِعُونَ مَغْفُورًا لَهُمْ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① فرشتي عرض کوي چې اې زمونږ پروردګاره! د هغه اجر دا دي چې هغه ته د هغه د کار پوره مزدوري ورکړې شي ② الله تعالی جل جلاله فرمايي فرشتو ! تاسو واورئ چه، زما بندګان او وينځو زما هغه فرض ادا کړو چې د هغوئ په ذمه وو (يعني روژه) ③ بيا هغوئ د خپلو کورونو څخه د عيدګاه طرف ته د دعا کولو د پاره عاجزي او زاري کولو سره اووتل ④ زما دې په خپل عزت، خپل جلال، خپل کرم، بلند قدرئ او په خپلې اوچتې مرتبې قسم وي چې زه به د هغوئ دعا ضرور قبلوم ⑤ بيا الله تعالی جل جلاله خپلو بنده ګانو ته فرمايي چې خپلو کورونو ته واپس لاړ شئ ما تاسو وبخښلئ ⑥ او ما ستاسو بدي په نيکيو بدلي کړي دي ⑦ ستاسو په اعمال نامه کې د هري بدئ په بدله کښ يوه نيکي ليکل شوي ده د دې څخه روسته نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل نو مسلمانان د عيدګاه څخه خپلو کورونو ته په داسې حالت کې واپس کيږي چې د هغوئ ګناهونه بخښل شوي وي. (بيهقی)

---

(۱) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان حديث رقم :۳۱۱۷

**حل اللغات:-** ① كَبْكَبَةٌ: اى جَمَاعَةٌ مُتَضَامَّةٌ: هغه مختصر ډلې ته وائی چه خپل مينځ کښې يوبل سره جوخت اونيږدې اوسيږی. ددې جمع کباکب ده کوم چه فوجی دستې ته هم وئيلې شی ② يُصَلُّونَ أَيْ يَدْعُونَ لِكُلِّ عَبْدٍ بِالْمَغْفِرَةِ: د هر بنده د پاره د بخشش بخښنې دعاء کوی ③ بَاهَى: الْمُفَاخَرَةُ. فخر کوی. ④ وَفَّى: پوره کړې ئې وی. ⑤ عَبِيدِي: زما غلامان بنده ګان. ⑥ وَإِمَائِي: جَمْعُ أَمَةٍ بِمَعْنَى الْجَارِيَةِ د امَةٍ جمع ده، وينځې ته وائی ⑦ يَعُجُّونَ: أَيْ يَرْفَعُونَ أَصْوَاتَهُمْ وَأَيْدِيَهُمْ: لاسونه پورته کوی او ژړا انګولا سره دعا کوی.

**تسهيلات:**

**قوله: فَإِذَا كَانَ يَوْمُ عِيدِهِمْ:**

**د مذکوره جملې متعلق:-** دَ حديث دا حصه دَ ليلة القدر سره متعلق نه ده ليکن چونکه په ليلة القدر کښې دَ فرښتو دَ نازليدوذکر راغلو نوهم دَ فرښتو سره متعلق وړوکی اختر بره کښې هم کلام اوکړې شو اودَ يوبل حديث حصه ئې دې حديث سره يوځائې کړه

**د بعضې کلماتو وضاحت**

**قوله: يَامَلَائِكَتِي:** دامنادیٰ دې. په دې حديث کښې دَدې نه وړاندې دَ ملائکتی الفاظ حرف نداء سره راغلی دی دلته اضافت تشريفيه دې.

**قوله: عَبِيدِي وَإِمَائِي:** دا جدا کلام دې کوم چه مبتداء ده اوقضوافريضتی دَدې دَپاره جزدې

**قوله: يَعُجُّونَ:** لکه چه په يوحديث کښې دی الحج العج الثج، "وعزتی" دَخپل ذاتی عظمت قسم دَدې تعلق دَالله تعالی ذات بابرکات سره دې

**قوله: وَجَلَالِي:** دَ خپلې لوئی اوعظمت قسم دَدې جملې تعلق دَالله تعالی صفاتوسره دې

**قوله: وَكَرَمِي:** دَخپل عزت او سخاوت قسم، دَدې جملې تعلق دَالله تعالی افعال سره دې نودَ ذات صفات اوافعال ذکر راغلو

**قوله: وَعُلُوِّي:** دَدې تعلق پورتنو ټولو جملوسره دې

**قوله: مَغْفُورًا لَهُمْ:** يعنی دَ ټولو مغفرت کيږی په دې کښې اشاره ده چه هرسړې دَ مغفرت محتاج دې که هغه نيک وی اوکه بدوی دَ الله تعالی ارشاد دې ﴿ وَتُوبُوا إِلَى اللَّهِ جَمِيعًا أَيُّهَ الْمُؤْمِنُونَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ۝ ﴾ [سورت نور الايت ۳۱]

# [۱۰] بَابُ الِاعْتِكَافِ

## داعتکاف بیان

**خلاصة الباب:-**

**فيه أحد عشر حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① أيام الإعتكاف: ۱، ۳، ۶.
② فوائد الإعتكاف: ۲، ۳، ۱۱.
③ ما يجوز في الإعتكاف ومالا يجوز: ۴، ۸، ۹.
④ وجوب الإعتكاف بالنذر: ۵.
⑤ وقت إبتداء الإعتكاف: ۷.
⑥ الأمور الغير المناسبة للمعتكف: ۱۰.

قال الله تعالى ﴿ وَلَا تُبَاشِرُوهُنَّ وَأَنتُمْ عَاكِفُونَ فِي الْمَسَاجِدِ ﴾ [سورت بقره الايه ۱۸۷]

دَ اعتکاف لغوی معنی داده "وهوالحبس على الشئ ولزومه" دَ شریعت په اصطلاح کښې دَ اعتکاف تعریف داسې دې "وهوالمكث في المسجد ولزومه على وجه مخصوص"

**داعتکاف قسمونه:-**

① **واجب اعتکاف:** داهغه اعتکاف دې کوم چه دَ نذر دَ وجې نه واجب شوې وی دَدې اعتکاف دَپاره امام مالك رحمه الله امام شافعی رحمه الله او دَامام ابوحنیفه رحمه الله په نیز دَهغوی دَ راجح اقوالو مطابق روژه ساتل شرط دې اودَ یوشپې اوبوې ورځې کیدل هم شرط دی اوکه چرې فاسد شی نوقضاهم واجب ده دا اعتکاف په هره زمانه کښې کیدې شی یو زمانې سره خاص نه دې

② **سنت مؤکده اعتکاف:** داهغه اعتکاف دې کوم چه دَ رمضان په آخری عشره کښې لس ورځې وی دا سنت مؤکده على الكفايه دې که چرته پوره محلې پریخودو نوټول به ګناهګار شی که چرې یوسړې نی اوکړی نودَ ټولودَ طرف نه به کافی شی

③ **مستحب اعتکاف:** دَ رومبودوو قسمونو نه علاوه هرقسم اعتکاف مستحب دې دَ اعتکاف مستحب کمه موده کښې دَ فقهاء اقوال مختلف دی دَ امام مالك رحمه الله په نیز اعتکاف مستحب کمه موده یوه ورځ ده دَدې نه دَ کمې مودې اعتکاف نه وی دَ امام ابویوسف رحمه الله په نیز دَ دې موده دَ ورځې اکثرحصه ده دَ امام محمد رحمه الله اوامام شافعی رحمه الله په نیزدکمې مودې څه تعیین نشته دې دَ یوې ګهړئی هم کیدې شی. دَ امام ابوحنیفه رحمه الله ظاهری روایت هم دغه دې اوهم په دې باندې فتوی ده

**دَ اعتکاف په مشروعیت کښې حکمت:** - په دین اسلام کښې دَ رهبانیت ګنجائش نشته او په پخوانو ادیانو کښې به خلقو دَ رهبانیت ژوندون تیرولو یعنی دَ کورونښځې اوبچونه به لاتعلق شو او په قوت لایموت بانديې ګذاره کولوسره پوره عمرخان له په عبادت کښې مشغول کیدوسره ډیر په مشقت سره تیرولو په دین اسلام کښې قطعًا ګنجائش نشته دې لیکن دَ نمونې په توګه دَ رهبانیت په شان لس ورځې ژوندون تیرولوحکم شوې دې دې دَپاره چه یومسلمان ته دااحساس ورکړې شي چه دغه دَ لسو ورځو دَ مشقتونواو محنتونو ژوندون ته اوګوري اوبیا سوچ اوکړي چه دَ پخوانوادیانو یوه لویه طبقه دَهمیشه دَپاره داسې دَ سختئی ژوند تیرولو. او په تاسوباندې دَالله تعالی احسان اوشو بهرحال دَ معتکف مثال دَهغه سړي په شان دې چه دَ بادشاه په دروازه کښې پروت وي اوخپل درخواست یوشان دَ قبولیت په غرض سره پیش کوي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۰۹۷] دښځودپاره په کورونو کښې داعتکاف جواز

۲۰۹۷-()[۱] [۱]عَنْ عَائِشَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] كَانَ يَعْتَكِفُ الْعَشْرَ الْأَوَاخِرَ مِنْ رَمَضَانَ [۳] حَتَّى تَوَفَّاهُ اللَّهُ [۴] ثُمَّ اعْتَكَفَ أَزْوَاجُهُ مِنْ بَعْدِهِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عایشه صدیقه ﷺ فرمایي [۲] چې نبي کریم ﷺ به د رمضان آخري لس ورځي اعتکاف کولو [۳] تردي چې الله تعالى ﷻ د دې دنیا څخه پورته کړلو [۴] بیا د حضور ﷺ څخه روسته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم بیبیانو مبارکو اعتکاف وکړو (بخاري مسلم)

**تسهیلات:**

**قوله:** ثُمَّ اعْتَكَفَ أَزْوَاجُهُ مِنْ بَعْدِهِ:

**د ښځو دپاره په جمات کښې د اعتکاف عدم جواز:** - دَ ښځودَپاره جمات ته راتلوسر اعتکاف کول جائز نه دي هغوی که چرې اعتکاف کول غواړي نو په خپلو کورونو کښې دې یوځائی خاص کړي په هغې کښې دې کیني اودَ هغه ځائی پورې دې خاص کړي ټول کورکښې دې نه ګرځي ازواج مطهرات سنت اعتکاف برقرار ساتلودَپاره اعتکاف کړې وو.

[۱]) اخرجه البخاری كتاب صلاة التراويح/باب رفع معرفة ليلة القدر لتلاحی الناس (رقم-۲۰۲۳)ومسلم كتاب الاعتكاف/باب اعتكاف العشر الأواخر من رمضان (رقم) ۵ - (۱۱۷۲) وابوداود كتاب الصلاة/باب فى تخفيف الصلاة (رقم-۷۹۰) وابن ماجة كتاب الصيام/باب فى المعتكف يلزم مكانًا من المسجد(رقم-۱۷۷۳) والترمذی كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الاعتكاف (رقم-۷۹۰)

**[۲۰۹۸] په رمضان کښې د خیر په کارونو کښې اضافه کول**

۲۰۹۸-(۱) [۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ، [۳] وَكَانَ أَجْوَدَ مَا يَكُونُ فِي رَمَضَانَ، [۴] كَانَ جِبْرِيلُ يَلْقَاهُ كُلَّ لَيْلَةٍ فِي رَمَضَانَ [۵] يَعْرِضُ عَلَيْهِ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْقُرْآنَ، [۶] فَإِذَا لَقِيَهُ جِبْرِيلُ كَانَ أَجْوَدَ بِالْخَيْرِ مِنَ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عباس ؓ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ په ټولو خلقو کې د خير ښيګړې په معامله کې ډير سخي وو [۳] او خصوصاً په رمضان کې خو به يې ډير زيات سخاوت کولو [۴] د رمضان په هره شپه کې به حضرت جبرئيل علیه السلام رسول الله ﷺ ته راتلو [۵] او نبی کريم صلی الله علیه وسلم به دهغه په مخکې په تجويد سره، قرآن کريم ويلو [۶] نو حضرت جبرئيل علیه السلام سره د ملاقات په وخت به دنبی کريم صلی الله علیه وسلم سخاوت د هو د چپو څخه هم زياتيدلو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:**- ① أَجْوَدَ: ډير زيات سخي وو. ② يَعْرِضُ: أي يَقْرَأُ: د وړاندې کولو او پيش کولو نه مراد تلاوت کول اولوستل دی (دور به ئي کولو) ③ الرِّيحِ الْمُرْسَلَةِ: د هوا چپې چه خلقو ته فائده ورکوی

**تسهيلات:**

**قوله: أَجْوَدَ النَّاسِ بِالْخَيْرِ:**

**په رمضان کښې د نبی کريم ﷺ سخاوت:**- يعني حضورپاك په نيکی کونکو کښې د ټولو نه زيات فيض اوسخی وو بيا چه کله به د ښيګړې سيزن راتلو لکه رمضان وغيره نو په هغې کښې به حضورپاك د تيزې هوانه زيات سخی کيدلو څکه چه يو به د برکتونو والا ميشت په سر راتله او بل به حضرت جبرائيل علیه السلام مسلسل راتلو په دې وجه به د رسول الله ﷺ فياضی نوره هم زياتيدله بهرحال عرب چه کله د يوڅيز تيزيدل بيانوی نو هوا سره دهغې تشبيه ورکوی دلته هم دغه تشبيه ده ددې حديث د باب اعتکاف سره هيڅ تعلق نشته دې ليکن چه کله د رمضان د شپو ذکر راغلو نو لامحاله داخبره په ذهن کښې راغله چه اعتکاف به هم شوې وی څکه چه اعتکاف هم په رمضان کښې کيږی

**[۲۰۹۹] په رمضان کښې د رسول الله ﷺ او د حضرت جبرائيل علیه السلام د قرآن دور**

۲۰۹۹-(۲) [۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [۲] «كَانَ يَعْرِضُ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْقُرْآنَ كُلَّ عَامٍ مَرَّةً [۳] فَعُرِضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ، [۴] وَكَانَ يَعْتَكِفُ كُلَّ عَامٍ عَشْرًا فَاعْتَكَفَ عِشْرِينَ فِي الْعَامِ

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الصوم/باب: أجود ما كان النبي صلى الله عليه وسلم يكون في رمضان (رقم ۱۹۰۲) ومسلم كتاب الفضائل/باب كان النبي صلى الله عليه وسلم أجود الناس بالخير من الريح المرسلة(رقم) ۵۰ - (۲۳۰۸) والنسائی كتاب الجنائز/باب الفضل والجود في شهر رمضان (رقم-۲۰۹۵)

(۲) اخرجه البخاری كتاب تفسير القرآن/باب كان جبريل يعرض القرآن على النبي صلى الله عليه وسلم (رقم-۴۹۹۸) وابوداود كتاب الصوم . باب أين يكون الاعتكاف؟ (رقم-۲۴۶۶) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في الاعتكاف(رقم-۱۷۶۹)

الَّذِي قُبِضَ». رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه**:[۱] ابوهریره ﷺ وایي [۲] چې هر کال به یو ځل د حضور ﷺ په مخکې قرآن کریم اولوستلې شو (یعنی جبرئیل ﷺ به ویلو)[۳] خو په کوم کال چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د دې دنیا څخه تشریف یوړو نو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مخکې دوه ځله قرآن کریم اوویل شو[۴] دغه شان نبی کریم صلی الله علیه وسلم په هر کال کې لس ورځې اعتکاف کولو خو په کوم کال چې وفات کیدلو نو په هغه کال یې شل ورځې اعتکاف وکړو (بخاري مسلم)

**حل اللغات**:- ① فَعَرَضَ: أَيْ قَرَأَ الْقُرْآنَ: یعنی د قرآن تلاوت نې واورولو

**تسهیلات**: **قوله**: كَانَ يَعْرِضُ عَلَى النَّبِيِّ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-الْقُرْآنَ كُلَّ عَامٍ مَرَّةً:

**په روایاتو کښې تعارض**:- ددې روایت نه معلومیږی چې حضرت جبریل علیه السلام به دنبی کریم ﷺ په وړاندې قرآن وئیلو او ددې نه وړاندینی حدیث نه معلومیږی چې نبی کریم ﷺ به د جبرائیل علیه السلام په وړاندې دقرآن پاك تلاوت کولو ،په دواړو روایاتو کښې په ظاهره تعارض دې ؟

**دتعارض جواب**:- د نبی کریم ﷺ په وړاندې به حضرت جبرائیل علیه السلام تلاوت کړې وی . بیا د حضرت جبریل علیه السلام په وړاندې نبی کریم ﷺ تلاوت کړې وی لکه څنګه دوه حافظان دقران کریم دور کوی نبی کریم ﷺ آخری کال باندې شل ورځې اعتکاف کړې وو او دوه ځل نې قرآن کریم ختم کړې وو

**قوله**: فَعَرَضَ عَلَيْهِ مَرَّتَيْنِ فِي الْعَامِ الَّذِي قُبِضَ:

**په آخری کال کښې دوه ځله د دور کولو حکمتونه**:-

① ددې وجه ابن العربی ﷫ دا فرمائی چې یو کال نې د ازواج مطهرات په وجه اعتکاف او نه کړې شو نو د قضاء په طور یې د په وفات کال باندې شل ورځې اعتکاف اوکړو

② امت ته تاکید وو چې هر انسان دې دخپل ژوندی آخری ایامو کښې د نیکو عملونو زیات نه زیات اهتمام اوکړی

**[۲۱۰۰] دانسانی ضرورت دپاره د معتکف د جمات څخه د وتلو جواز**

۲۱۰۰-( )[۳] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ:[۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا اعْتَكَفَ أَدْنَى إِلَيَّ رَأْسَهُ [۳] وَهُوَ فِي الْمَسْجِدِ فَأُرَجِّلُهُ،[۴] وَكَانَ لَا يَدْخُلُ الْبَيْتَ إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

( ) اخرجه البخاری کتاب الاعتکاف/باب باب: لا یدخل البیت إلا لحاجة (رقم-۲۰۲۹) و مسلم فی باب جواز غسل الحائض رأس زوجها وترجیله وطهارة سؤرها والاتکاء فی حجرها وقراءة القرآن فیه(رقم) ۶ - (۲۹۷) والترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب المعتکف یخرج لحاجته أم لا(رقم-۸۰۴) وابن ماجة کتاب الصیام/باب فی المعتکف یعود المریض. ویشهد الجنائز(رقم-۱۷۷۶)

**ترجمه:** [۱] بي بي عايشه صديقه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ چې به د اعتکاف په حالت کې وو نو په مسجد کې په ناسته ناسته خپل سر مبارك به يې زما طرف ته کړو [۳] او ما به د نبی کريم صلی الله عليه وسلم ويښتان (ږمنزول) [۴] او حضور ﷺ به د حاجت انساني څخه علاوه په کور کې نه داخليدو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:-** ① أَدْنَى: أَيْ قَرَّبَ: رانژدې به يې کړو. ② فَأُرَجِّلُهُ: التَّرْجِيلُ تَسْرِيحُ الشَّعْرِ وَهُوَ اسْتِعْمَالُ الْمُشْطِ فِي الرَّأْسِ: يعنی ترجيل په ږمنزسره سر ږمنزولو ته وائی ③ لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ: أَيْ مِنْ بَوْلٍ وَغَائِطٍ بشری حاجت او تقاضا مثلاً تش يا ډک اودس ماتې وغيره

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا لِحَاجَةِ الْإِنْسَانِ:**

د انساني حاجت د الفاظولاندې ډير څه راځي هم دا لفظ بنياد جوړولوسره فقهاؤ او شارحين د حديث د اعتکاف دپاره دسخت نه سختې پابندئ راويستې دی

**د انسانی ضرورت قسمونه:-** دحاجت او ضرورت دوه قسمونه دی

① اول طبعی حاجت لکه غټې او وړې متيازې غسل جنابت يا غسل جمعه

② دويم شرعی حاجت دې

**د شرعی حاجتونو صورتونه:-**

① لکه د اختر دمونځ دپاره وتل د اذان دپاره وتل که معتکف مؤذن وی او که غيرمؤذن وی

② دغه شان دجامع مسجد طرف ته د جمعې دپاره وتل وغيره

**د جمعې د مانځه دپاره د معتکف په خروج کښې مذاهب:-**

① شوافع او مالکيه حضرات فرمائی چه معتکف د جمعې دپاره جامع مسجد ته نه شی وتلې بلکه هغه له پکاردی چه هم په هغه مسجد کښې اعتکاف اوکړی چرته چه جمعه کيږی په دې وجه امام مالك رحمه الله فرمائی چه اعتکاف د جامع مسجد نه علاوه چرته په بل يو جمات کښې هډو جائز نه دې

② د احنافو په نيزد جمعې د مانځه دپاره معتکف لره تلل ضروری دی البته د تلو په وخت کښې تفصيل دې چې دجمعې دپاره دنمر د زوال وخت کښې وتل پکاردی خوکه جامع مسجد لرې وی نو په داسې وخت کښې وتل پکاردی چه هلته په رسيدو سره تحية المسجد اول اداکړې شی او دجمعې نه پس چه کوم سنت دی دهغې دپاره هم په جامع مسجد کښې حصاريدل جائز دی دا تفصيلات د احنافو په نيز دی

## [۲۱۰۱] د جاهلیت په حالت کښې د منلې شوې نذر حکم

۲۱۰۱-( )[۵] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ «أَنَّ عُمَرَ سَأَلَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] كُنْتُ نَذَرْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ [۳] أَنْ أَعْتَكِفَ لَيْلَةً فِي الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ [۴] قَالَ: "فَأَوْفِ بِنَذْرِكَ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] ابن عمر رضي الله عنه وايي چې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته عرض وکړو [۲] چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم، ما په جاهليت کې دا نذر منلي وو [۳] چې يوه شپه (او يوه ورځ په خرنګه چې په دويم روايت کې يې وضاحت دې) په مسجد حرام کې اعتکاف کوم نو آيا هغه نذر زما د پاره پوره کول ضروري دي؟ [۴] نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې خپل نذر پوره کړه (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** - ① نَذَرْتُ: ما نذر يعني منخته منلي وه. ② فَأَوْفِ: نو پوره نې کړه

**تسهيلات:**

**قوله: فَأَوْفِ بِنَذْرِكَ:**

**دحضرت عمر د اعتکاف نذر منل:** - دجاهليت اطلاق د اسلام نه په مخکښې زمانه باندې کيږي دلته دحضرت عمر رضي الله عنه نذر يا خود اسلام نه مخکښې د جاهليت په زمانه کښې وو په کوم چه حديث په واضحه توګه باندې دلالت کوي په دې صورت کښې د امام شافعي رحمه الله مسلك داسې دې که چا د اسلام قبلولو نه مخکښې جائز نذر منلې وي نود اسلام قبلولو نه پس دهغې پوره کول واجب دي لکه چه حضورپاك دحضرت عمر رضي الله عنه ته "اوف بنذرك" حکم ورکړو داحکم د وجوب دپاره دې

امام ابوحنيفه رحمه الله فرماني د اسلام قبلولو نه مخکښې منلي شوې نذر پوره کول ضروري نه دې خکه چه دا اتفاقي مسئله ده په کافر کښې دنذر منلو اهليت نشته دې لهذا د هغه نذر پوره کول واجب نه دې شوافع دزير بحث حديث نه استدلال کوي چه امر د وجوب دپاره دې امام ابوحنيفه رحمه الله فرماني داحکم دحضرت عمر رضي الله عنه د تسلئې د خاطر په توګه د استحباب وو يا د جاهليت نه مراد د جاهليت سره نيزدې زمانه ده يعنې د اسلام قبلولو د شروع حالت دې

**قوله: أَعْتَكِفَ لَيْلَةً:** يعنې ما په جاهليت کښې دا نذر منلي وو چه زه به يوه شپه اعتکاف کوم

---

) اخرجه البخاري كتاب الاعتكاف باب باب الاعتكاف ليلا (رقم ۲۰۳۲) ومسلم في كتاب الأيمان باب نذر الكافر وما يفعل فيه إذا أسلم (رقم) ۲۷ - (۱۶۵۶) وابوداود كتاب الأيمان والنذور باب من نذر في الجاهلية ثم أدرك الإسلام (رقم -۳۳۲۵) والترمذي كتاب النذور والأيمان عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب ما جاء في وفاء النذر (رقم ۱۵۳۹) والنسائي كتاب الأيمان والنذور باب إذا نذر ثم أسلم قبل أن يفي (رقم - ۳۸۲۰)

## د نذر اعتكاف دپاره د روژې په شرطيت كښې مذاهب

په دې نقطه سره د فقهاؤ په مينځ كښې اختلافي مسئله پيدا شوې ده هغه دا چه آيا دا نذر اعتكاف دپاره روژه نيول شرط ده كه نه؟

① علامه بدرالدين عينى رحمه الله فرمائي چه امام شافعى رحمه الله امام احمد رحمه الله او اسحق بن راهويه رحمه الله په نيز د اعتكاف د نذر دپاره روژه لازم نه ده

② امام ابوحنيفه رحمه الله او امام مالك رحمه الله فرمائي چه د اعتكاف د نذر دپاره روژه شرط ده بغير د روژې اعتكاف جائز نه دې دامام شافعى رحمه الله قديم قول هم دغه شان دې

**داول فريق دليل:-** زيربحث حديث د دوى مستدل دې طرز د استدلال دا سې دې چه په دې كښې ليلة د شپې د نذر خبره ده او د شپې روژه نه وي لهذا د نذر د اعتكاف دپاره روژه شرط نه دې

**داول فريق د دليل جوابونه:-** ① ابن بطال رحمه الله فرمائي دحضرت عمر رضي الله عنه د نذر والاحاديث كه نور طرق اولتولې شى نو په دې كښې د اصل روايت الفاظ "يوما وليلة" دي

② دا د جاهليت نذر وو د استحباب په توگه حضورپاك د پوره كولو دپاره اوفرمائيل لهذا په دې كښې د روژې هډو ضرورت نه وو

**د دويم فريق دلائل:-** ① د دوى هغه روايت مستدل دې په كوم كښې چه حضورپاك فرمائي "اعتكف وصم" (د ابوداؤد او نسائي) يعنى اعتكاف كوني او روژه نيسني

② راتلونكې حديث نمبره ۲۱۰۵ دې په كوم كښې چه "لااعتكاف الابصوم" واضح الفاظ راغلي دي

### [۲۱۰٤] د صبا مانځه څخه روسته اعتكاف ته كيناستل

۲۱۰٤-(۱)[۷] ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الْفَجْرَ [۳] ثُمَّ دَخَلَ فِي مُعْتَكَفِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به د اعتكاف اراده وكړه نو د سحر مونځ چې يې به وكړو [۳] د هغې څخه روسته به د اعتكاف په خاي كې داخل شو ابوداؤد ابن ماجه.

**حل اللغات:-** ① مُعْتَكَفِهِ: أَيْ مَكَانِ اعْتِكَافِهِ: د اعتكاف خاى ته مُعتكف وائي

---

۱) اخرجه مسلم فى كتاب الاعتكاف/باب متى يدخل من أراد الاعتكاف فى معتكفه (رقم-۶ - (۱۱۷۲) وابوداود فى كتاب الصوم . باب الاعتكاف (رقم-۲۴۶۱) والترمذى فى كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى الاعتكاف (رقم-۷۹۱) والنسائى كتاب المساجد/باب ضرب الخباء فى المساجد (رقم-۷۰۹) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فيمن يبتدئ الاعتكاف. وقضاء الاعتكاف (رقم-۱۷۷۱)

**تسهیلات:**

**قوله: ثُمَّ دَخَلَ:**

**د معتکف دپاره په اعتکاف کښې د کیناستو په وخت کښې مذاهب:-**

یعنی کله چه به رسول الله ﷺ دَ اعتکاف اراده فرمائیله نو دَ سحر مونځ کولو سره به یې دَ خپل اعتکاف په خائی کښې داخلیدلو

① دَ فقهاء کرامو په دې کښې معمولی شان اختلاف دې چه اعتکاف کونکې په جمات کښې کوم وخت راشی او دَ اعتکاف په خائی کښې کینی امام اوزاعی رحمه الله او سفیان ثوری رحمه الله او په یو قول کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله مسلك دا دې چه دَ اعتکاف والا سړې دې دَ رمضان په یویشتم تاریخ دَ سحر دَ مونځ نه پس جمات ته راشی او اعتکاف کښې دې کینی

② ائمه ثلاثه او په یو قول کښې امام احمدبن حنبل رحمه الله جمهور ائمه حضرات فرمائی چه معتکف دې دَ شپې دَ نمر ډوبیدو نه پس جمات ته داخل شی او شپه دې په جمات کښې تیره کړی دا دَ یویشتم رمضان شپه ده

**داول فریق دلیل:-** زیر بحث حدیث حضرت عائشه صدیقه رضی الله عنها دَ حدیث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه دَ سحر دَ مونځ نه پس په اعتکاف کښې دَ کیناستو طریقه خودلې ده

**د دویم فریق دلیل:-** جمهور هم دَ دې حدیث نه استدلال کوی لیکن په دې کښې داسې معنی بیانوی چه حضور اکرم په مسجد نبوی کښې دَ اعتکاف دپاره دَ شپې نه تشریف راوړې وو شپه نې په عبادت کښې هم په جمات کښې تیره کړې وه لیکن دَ خپلې ناستې په خاص خائی کښې تشریف هغه وخت راوړلې وو کوم وخت نې چه دَ سحر مونځ ورکړو نو دَ اعتکاف شروع دَ مابنام دَ وخت نه شوې وه لیکن دَ اعتکاف دپاره چه کوم خاص خائی جوړ شوې وو په هغې کښې دَ سحر په وخت داخل شوې وو نو دَ اختلاف خبره هډو ختمه شوه

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۱۰۲] دَ اعتکاف قضا راوړل**

۲۱۰۴-(۱)[۲] ① عَنْ أَنَسٍ قَالَ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعْتَكِفُ فِي الْعَشْرِ الْأَوَاخِرِ مِنْ رَمَضَانَ ② فَلَمْ يَعْتَكِفْ عَامًا، ③ فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ اعْتَكَفَ عِشْرِينَ»» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه:** ① حضرت انس رضی الله عنه وایې چې نبي کریم ﷺ به د رمضان په آخري لس ورځو کې اعتکاف کولو ② یو کال (غالباً د څه عذر په بناء) نبی کریم صلی الله علیه وسلم اعتکاف

[1] اخرجه الترمذی کتاب الصوم عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب ما جاء فی الاعتکاف إذا خرج منه (رقم-۸۰۳)

ونه کړو [۳] هر کله چې دويم کال راغلونو حضور ﷺ په هغه رمضان کې شل [۲۰] ورځې اعتکاف وکړو (ترمذي)

**حل اللغات:** - ① عَامُ الْمُقْبِلِ: راروان کال

**تسهيلات:**

**قوله فَلَمَّا كَانَ الْعَامُ الْمُقْبِلُ اعْتَكَفَ عِشْرِينَ:**

**د سنت اعتکاف د قضا حکم:** - دَ واجب اعتکاف چه څنګه قضا واجب ده دغه شان د سنت مؤکده اعتکاف قضاهم ده لیکن واجب نه ده سنت ده په دې حدیث سره دَ سنت مؤکد اعتکاف قضا ثابتيږي

| سـ-()[۰] [۱] وَرَوَاهُ أَبُودَاوُدَوَابْنُ مَاجَهْ عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] ابوداؤد او ابن ماجه دا روايت د ابي بن کعب ﷺ څخه نقل کړي دي

**[۲۱۰٤] اعتکاف کښې دَ کيناستو وخت**

| سـ-()[۷] [۱] وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَرَادَ أَنْ يَعْتَكِفَ صَلَّى الْفَجْرَ [۳] ثُمَّ دَخَلَ فِي مُعْتَكَفِهِ». رَوَاهُ أَبُودَاوُدَوَابْنُ مَاجَهْ. |
|---|

**ترجمه:** [۱] بي بي عايشه ﷺ فرمايي چې رسول الله ﷺ چې به د اعتکاف اراده وکړه نو د سحر مونځ چې به وکړو [۲] د هغه څخه روسته به د اعتکاف په ځاي کې داخل شو. ابوداؤد ابن ماجه

**حل اللغات:** - ① مُعْتَكَفِهِ: أَيْ مَكَانِ اعْتِكَافِهِ: د اعتکاف ځاي ته مُعتکَف وايي

**تسهيلات:**

**قوله: صَلَّى الْفَجْرَ ثُمَّ دَخَلَ فِي مُعْتَكَفِهِ:**

**د معتکف دپاره په اعتکاف کښې د کيناستو په وخت کښې مذاهب:** -

يعني کله چه به رسول الله ﷺ دَ اعتکاف اراده فرمانيله نو دَ سحر مونځ کولو سره به بيا دَ خپل اعتکاف په ځائي کښې داخليدلو

① دَ فقهاء کرامو په دې کښې معمولي شان اختلاف دې چه اعتکاف کونکي په جمات کښې کوم وخت راشي او دَ اعتکاف په ځائي کښې کيني امام اوزاعي ﷫ اوسفيان ثوري ﷫ او په يوقول کښې امام احمدبن حنبل ﷫ مسلك دادې چه دَ اعتکاف والاسړې دې د

[۱] اخرجه ابوداود كتاب الصوم . باب الاعتكاف (رقم-۲٤۶۳) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء في الاعتكاف (رقم-۱۷۷۰)

[۲] اخرجه مسلم في كتاب الاعتكاف/باب متى يدخل من أراد الاعتكاف في معتكفه (رقم-۶ - (۱۱۷۲) وابوداود في كتاب الصوم . باب الاعتكاف (رقم-۲٤۶٤) والترمذي في كتاب الصوم عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في الاعتكاف (رقم-۷۹۱) والنسائي كتاب المساجد/باب ضرب الخباء في المساجد (رقم-۷۰۹) وابن ماجة كتاب الصيام/باب ما جاء فيمن يبتدئ الاعتكاف. وقضاء الاعتكاف (رقم-۱۷۷۱)

رمضان په يويشتم تاريخ د سحر د مونځ نه پس جمات ته راشي او اعتکاف کښې دې کښي ② ائمه ثلاثه او په يو قول کښې امام احمد بن حنبل رحمه الله جمهور ائمه حضرات فرمائي چه معتکف دې د شپې د نمر ډوبيدو نه پس جمات نه داخل شي او شپه دې په جمات کښې تيره کړي داد يويشتم رمضان شپه ده.

**داول فريق دليل:-** زير بحث حديث حضرت عائشه صديقه رضي الله عنها د حديث د دوی مستدل دې په کوم کښې چه په واضحه توګه د سحر د مونځ نه پس په اعتکاف کښې د کيناستو طريقه خودلې ده.

**د دويم فريق دليل:-** جمهور هم د دې حديث نه استدلال کوی ليکن په دې کښې داسې معنی بيانوی چه حضور اکرم په مسجد نبوی کښې د اعتکاف د پاره د شپې نه تشريف راوړې وو شپه نې په عبادت کښې هم په جمات کښې تيره کړې وه ليکن د خپلې ناستې په خاص خانې کښې تشريف هغه وخت راوړلې وو کوم وخت نې چه د سحر مونځ ورکړو نو د اعتکاف شروع د مابنام د وخت نه شوې وه ليکن د اعتکاف د پاره چه کوم خاص خانې جوړ شوې وو په هغې کښې د سحر په وخت داخل شوې وو نو د اختلاف خبره هم ختمه شوه.

[۲۱۰۵] د اعتکاف په حالت کښې د بيمار تپوس کول

(۸)[۱] وَعَنْهَا قَالَتْ: [۲] «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعُودُ الْمَرِيضَ وَهُوَ مُعْتَكِفٌ [۳] فَيَمُرُّ كَمَا هُوَ فَلَا يُعَرِّجُ يَسْأَلُ عَنْهُ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عايشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د اعتکاف په حالت کې (هر کله چې به د حاجت د پاره بهر وتلو) نو د مريض پوښتنه به يې کوله (چې د مسجد څخه به بهر ځاي کښې به وو) [۳] نو حضور ﷺ به چې څرنګه وو هغه شان به تيريدلو د هغه سره به دريدلو نه (يواځې) پوښتنه به يې وکړله (ابوداود)

**حل اللغات:-** ① يَعُودُ: عيادت يعنی د بيمار تپوس به نې کولو ② فَيَمُرُّ: نو تيريدلو به. ③ يُعَرِّجُ: أي لا يُمكُث: يعنی اودريده يا ايساريدلو به ورسره نه.

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَا يُعَرِّجُ.**

**د تعريج صورت:-** يعنی د يو بيمار د پوښتنې د پاره به د لارې نه نه اخواکيدلو د دې صورت به داسې وو چه مثلاً حضور پاك د خپل طبعی حاجت د پاره د جمات نه بهر تللو او واپس به راتللو نو په دې تلو راتلو کښې به حضور پاك په لاره کښې د بيمار پوښتنه کوله هم دغه مطلب دې د دې حديث چه حضور پاك به د لارې نه اخوا ديخوا نه کيدلو په مستقل توګه د

---

[۱]) اخرجه ابوداود في كتاب الصوم، باب المعتكف يعود المريض (رقم-۲۴۷۲)

یو بیمار پوښتنې له نللو سره اعتکاف باطل کیږی اوکه یو سړی د نذر په اعتکاف کښې د[1] شرط اولګوی چه زه به د بیمار پوښتنه کوم یا جنازې له به ځم نو بیا به جائز وی

**[۲۱۰٦] د اعتکاف منهیات**

۲۱۰۰-( )[۹] [۱] وَعَنْهَا قَالَتْ: [۲] «السُّنَّةُ عَلَى الْمُعْتَكِفِ أَنْ لَا يَعُودَ مَرِيضًا [۳] وَلَا يَشْهَدَ جِنَازَةً [۴] وَلَا يَمَسَّ الْمَرْأَةَ وَلَا يُبَاشِرَهَا [۵] وَلَا يَخْرُجَ لِحَاجَةٍ إِلَّا لِمَا لَا بُدَّ مِنْهُ [٦] وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا بِصَوْمٍ [۷] وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] بي بي عایشه رضي الله عنها فرمایي [۲] چه په اعتکاف کونکي باندې دا سنت (یعني ضروري) دي چې هغه دی نه خو (بالقصد او ایساریدو سره) د مریض پوښتنه کوي [۳] او نه دې (د مسجد ځخه بهر مطلقًا) د جنازې په مانځه کې شریك کیږي [۴] او نه دې ښځه مسه کوي او نه دی د ښځې سره مباشرت کوي [۵] او نه دی علاوه د ضروریاتو ځخه (مثلاً د لوي او کوشني بولو ځخه علاوه) د یو بل کار د پاره بهر وځي [٦] او روژه اعتکاف د پاره ضروري ده [۷] او اعتکاف په جامع مسجد کې صحیح کیږي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** - ① السُّنَّةُ: شرعی طریقه، ② لَا يَعُودَ: أَيْ بِالْقَصْدِ وَالْوُقُوفِ: یعنی د بیمار د تپوس او هغه سره د ایساریدلو په اراده به نې عیادت نه کولو ③ لَا يَشْهَدَ: نه به حاضریدو (جنازې ته) ④ لَا يَمَسَّ: نه به نې مس کوله (بی بی په شهوت سره)، ⑤ وَلَا يُبَاشِرَهَا: أَيْ لَا يُجَامِعُهَا: مجامعت به نې نه کولو (بی بی سره)، ⑥ مَسْجِدٍ جَامِعٍ: په کوم جمات کښې چه جماعت سره مونځ کیږی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا بِصَوْمٍ:

**د اعتکاف دپاره د روژې شرطیت:** - دَدې توضیح او دَ علماؤ اختلاف دې نه وړاندې په حدیث نمبر ۲۰۹۰ کښې بیان شوې دې دا دَ جمهورو دَ مسلك دَپاره واضح دلیل دې دَعلامه شامی رحمه الله رجحان دې طرف ته دې چه که اعتکاف واجب وی او که مسنون وی دَدې دَپاره روژه ساتل شرط دی.

**قوله:** وَلَا اعْتِكَافَ إِلَّا فِي مَسْجِدٍ جَامِعٍ:

**د اعتکاف دپاره د جامع مسجد په شرطیت کښې مذاهب:** -

دَ حضرت حسن بصری رحمه الله امام زهری رحمه الله او عروه عطاء رحمه الله په نیز دَ صحت اعتکاف دَپاره داسې جمات ضروری دې په کوم کښې چه جمعه کیږی یعنی چه جامع مسجد وی. دَ امام مالك رحمه الله یو روایت هم داسې دې

② جمهور ائمه په نیز دَ اعتکاف دَپاره دَ جمعې جمات ضروری نه دې بلکه په هر هغه

[1]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصوم ، باب المعتکف یعود المریض (رقم-۲٤۷۳)

جماعت کښې اعتکاف صحیح دې چرته چه پنځ وخته مونځونه په جمع سره کیږي

**داول فریق دلیل:** - زیربحث دلیل د اول فریق مستدل دې په کوم کښې چې ښکاره د جامع مسجد د شرطیت ذکر دې

**داول فریق د دلیل جواب:** - په حدیث کښې دَ مسجد جامع نه مراد دَ جمعې والاجماعات نه دې بلکه دَ جمع والاجماعات مراد دې په کلوکښې چه په کومو جماتونوکښې پنځ وخته مونځونه په جمع سره نه کیږي په هغې کښې اعتکاف ضروری نه دې که یو سړې په خپله توګه د ثواب په نیت کوی نو جائز دې

**د دویم فریق دلیل:** - جمهور فرمائی چه دَ قرآن کریم آیت ﴿ وَأَنْتُمْ عٰكِفُوْنَ فِي الْمَسٰجِدِ ﴾ کښې مساجد عام دی دَجامع مسجد تخصیص نشته دې [سورت بقره الایه ۱۸۷]

**داعتکاف د فضیلت معیار:** - البته علماء کرامو دَ اعتکاف دَ فضیلت باره کښې په مساجد کښې فرق بیان کړې دې چه دَ ټولو نه غوره اعتکاف مسجد حرام مکه کښې دې بیا مسجد نبوی ﷺ کښې اعتکاف دې بیا دَ مسجد اقصیٰ اعتکاف دې اوبیا دَ جامع مسجد اعتکاف افضل دې.

بهرحال دَمعتکف دَپاره جمات ته خوراك راوړل اوبیا خوړل جائزدی مګر دَ خوراك دَ جائز کولودَپاره اعتکاف کول څه عبادت شرعی نه دې لکه څنګه چه تبلیغی حضرات کوی بیا هغوی له پکاردی چه کله اعتکاف په خپل خان باندې لازم کوی نوروژه دې هم ساتی اوکه چرې یووختی اعتکاف وی نو په هغې کښې روژه نشته دې یعنی "نویت سنة الاعتکاف مادمت فی هذاالمسجد" دَڅه وخت دَپاره نیت وی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۱۰۷]په مسجد نبوی کښې د نبی علیه اسلام معتکف**

٢١٠٧-(¹)[١٠] [١] عَنِ ابْنِ عُمَرَ «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ كَانَ إِذَا اعْتَكَفَ [٢] طُرِحَ لَهُ فِرَاشُهُ [٣] أَوْ يُوضَعُ لَهُ سَرِيرُهُ [٤] وَرَاءَ أُسْطُوَانَةِ التَّوْبَةِ»، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [١] ابن عمر رضی الله عنهما نقل کوي چې نبي کریم ﷺ چې به اعتکاف کولو [٢] نو د حضور ﷺ د پاره به په (مسجد نبوي ﷺ کي ، د حضور ﷺ بستره وغوړول شوه [٣] یا د حضور ﷺ کټ (چارپایی) به اینبودل کیده [٤] د توبي ستني مخکي یا وروسته. (ابن ماجه)

**حل اللغات:** - ① طُرِحَ : أي وُضِعَ أو فُرِشَ : خوره کړي شوه ② فِرَاشُهُ : بستره (د رسول الله ﷺ) ③ أُسْطُوَانَةِ التَّوْبَةِ : د توبي ستن

¹) اخرجه ابن ماجه فی کتاب الصیام/باب فی المعتکف یلزم مکانًا من المسجد (رقم-١٧٧٤)

**تسهيلات:**

**قوله أَنَّهُ كَانَ إِذَا اعْتَكَفَ...الخ:**

دحضرت ابولبابه رضي الله عنه نه د بنوقريظه باره کښې يولغزش شوې وو هغوی رضي الله عنه خپل خان په مسجدنبوی ﷺ يوې ستنې پورې تړلې وو بيا دهغوی توبه قبوله شوه هم دغه ستن ته اسطوانه توبه وائی د کومې ذکرچه په دې حديث کښې دې

**[۲۱۰۸] معتکف ته د خارجی نيکو اعمالو ثواب ملاويدل**

۲۱۰۸-( )[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ فِي الْمُعْتَكِفِ: [۲] "هُوَ يَعْتَكِفُ الذُّنُوبَ [۳] وَيُجْرَى لَهُ مِنَ الْحَسَنَاتِ كَعَامِلِ الْحَسَنَاتِ كُلِّهَا»، رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** [۱] د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دې چې رسول الله ﷺ د اعتکاف کونکي په باره کې وفرمايل [۲] چې هغه د ګناهونو څخه محفوظ وي [۳] او د هغه د پاره د نيکيو سلسله د ټولو نيکي کونکو په شان جاري وي. (ابن ماجه)

**حل اللغات:-** ① الْمُعْتَكِفُ: اعتکاف کونکی ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله: كَعَامِلِ الْحَسَنَاتِ كُلِّهَا:**

يعنی د کومو نيکو کارونود پاره چه معتکف بهرنه شی تللې اوعام مسلمان په دغه نيکوکښې شريکيدوسره ثوابونه حاصلوی نوالله تعالی دغه معتکف ته د شرکت کولونه بغير د ټولو نيکوثواب ورکوی.

د معتکف ترجمه هم دغه ده چه سردې ښکته وی د الله تعالی په دروازه کښې دې پروت وی اود ټولو ګناهونونه غاړې ته کيدوسره د ذوالجلال په وړاندې د مغفرت درخواست وړاندې کوی چونکه معتکف د ټولو خلقو د طرف نه د اعتکاف ذمه واری پوره کوی په دې وجه د خلقو په نيکوکښې هغه شريک کړې شوې دې

[۳] اخرجه ابن ماجه فی کتاب الصيام/باب فی ثواب الاعتکاف (رقم-۱۷۸۱)

# [۸] كِتَابُ فَضَائِلِ الْقُرْآنِ

## د قرآن کریم فضائل

**خلاصة الباب فيه ستة وسبعون حديثاً مشتملة على على ست مسائل**

① خيرية تعلم القرآن وتعليمه وقرائته: ۱، ۳، ۵، ۶، ۱۲، ۲۷، ۲۵، ۲۸، ۲۹، ۳۰، ۳۲، ۳۴، ۵۶، ۵۷.

② أجر الماهر بالقرآن وغيره: ۴.

③ عقوبة من ليس معه شي من القرآن وتركه بعد حفظه: ۲۶، ۳۴،

④ البركات في القرآن: ۷، ۲۴، ۲۹، ۳۱، ۳۲، ۵۸.

⑤ فضائل القرآن والآيات المخصوصة: ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۳، ۱۲، ۱۴، ۱۵، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۱۲، ۲۲، ۲۳، ۳۳، ۳۵، ۳۶، ۳۷، ۳۸، ۳۹، ۴۰، ۴۳، ۴۴، ۴۵، ۴۶، ۴۷، ۴۸، ۵۰، ۴۹، ۵۱، ۵۲، ۵۳، ۵۴، ۵۹، ۶۰، ۶۱، ۶۲، ۶۳، ۶۴، ۶۵، ۶۷، ۶۸، ۶۹، ۷۰، ۷۱، ۷۲، ۷۳، ۷۴، ۷۵.

⑥ الحكم بإعراب القرآن واتباعه: ۵۵.

**د فضائل معنی:** فضائل جمع د فضیلة ده دا د «نقیصة» ضد دې د فضل او فضیلت دواړو یوه معنی ده (۱)

**د قرآن په خپل مینځ کښې په تفاضل کښې د اختلاف تاریخ:** په دې مقام کښې د فضائل قرآن د مناسبت په وجه یو بحث کیږي چه د قرآن کریم بعضې حصه د بعضې نورو حصو نه افضله وی که نه ؟ په دې مسئله کښې اختلاف دې او دا اختلاف د دویمې هجرئ صدئ نه پس هغه وخت پیدا شو چه د خلق القرآن مسئله رااوچته شوه د دې نه مخکښې په دې مسئله کښې هیڅ قسم اختلاف نه وو د قرآن کریم د بعضې سورتونو او خاص آیاتونو متعلق چه فضائل راغلی دی په هغې کښې هیڅ قسم تاویل ته ضرورت پیښ شوې نه وو خو په دویمه هجری صدئ کښې چه کله د خلق القرآن مسئله رااوچته شوه او جمهور اهل سنت او ائمو د معتزله فرقې په رد کښې د کلام الله د غیر مخلوقیت عقیدې وضاحت اوکړو هغه وخت دا مسئله مخې ته راغله (۲)

د معتزلو په نیز کلام الله چونکه مخلوق دې او د مخلوق په ما بین کښې د تفضیل نه انکار نشی کیدې په دې وجه د قران د یوې حصې افضل کیدل د بلې حصې نه دهغوی په نیزځه د اشکال خبره نه ده خودمره ده چه اهل سنت په نیز په دې مسئله کښې دوه مذهبه پیدا شول.

---

۱) عمدة القاري (۲۰\۱۱)_

۲) فتاوی ابن تیمیة کتاب التفسیر (۱۷\۵۳)_

① د امام ابو الحسن اشعري ،قاضي ابو بکر باقلاني ، احمد بن کلاب او د متاخرینو شافعیه مذهب دا دي چه قرآ کریم کښې تفاضیل نشته یعنی دا اوونیل چه د قرآن کریم بعضي حصه د بعضې نورې نه افضله ده صحیح خبره نه ده (۱)

② دویم مسلك د جمهورو امت او ائمه اربعه دې چه د قرآن کریم بعضي حصه د بعضې بلې حصې نه افضل ده (۲)

**داول فریق دلائل:**

① که یوحصه د بلې نه افضله ومنلې شي نو د مفضل علیه د ناقصیت وهم پیدا کیږی او قران خو د هر قسم نقصان نه پاك دې (۳)

② کلام الله د الله تعالی صفت قدیمه دې اوپه صفات قدیمه کښې تفاضل جائز نه دې پهدې وجه د تاضل قول صحیح نه دې بلکه ابوعبدالله دراج په دې موضع باندې مستقله رساله تفاصل لیکلې ده او په هغې کښې په امتناع د تفاضل باندې د اهل سنت اجماع نقل کړې ده لکه هغه لیکی: «أجمع أهل السنة على أن ما ورد في الشرع مما ظاهره المفاضلة بين آي القرآن وسوره ليس المراد به تفضيل ذوات بعضها على بعض إذ هو كله كلام الله وصفة من صفاته بل هو كله لتفاضل كسائر صفاته الواجب لها نعت الكمال»(۳)

**د دویم فریق ددلائلو جواب:** باقی کومو کومو آیاتونو یا سوتونو ته چه افضل یا اعظم ونیلې شوې دی‌دا حضرات ئې دوه مطلبه بیانوی

① یو دا چه د افضل او اعظم نه مراد عظیم او فاضل والې مراد دې یعنی ددې نه مقصود نفس فضیلت او عظمت دې د بل څیز په مقابله کښې اعظم او افضلیت مراد نه دې (۲) یا افضل او اعظم ئې ورته په اعتبار د ثواب او جزاء ونیلې دې یعنی دغه حصه د بلې حصې نه د ثواب په اعتبار سره افضله او غوره ده او د ثواب په اعتبا سره په تفاضل کښې د چا اختلاف نشته ځکه چه ثواب او جزاء مخلوق دې او په مخلوق کښې تفاضل د ټولو په نیز صحیح دې (۴)

**د دویم فریق دلائل:** د دې حضراتو مستدلات هغه نصوص دی په کومو کښې چه د مختلفو آیاتونو او سورتونو فضیلت او عظمت او خاص اهمیت بیان شوې دې چه منجمله د هغې نه څو فضائل راروان دی مثلا آیة ا لکرسیٔ ته د قرآنی آیاتونو سردار

۱) التعليق الصبيح (۳۲۱۳)_
۲) فتاوی شيخ الإسلام ابن تيمية (۶۹\۱۷)_
۳) فتاوی شيخ الإسلام ابن تيمية كتاب التفسير (۶۹\۱۷)_
۴) فتاوی شيخ الإسلام ابن تيمية (۷۳\۱۷)_

ونيلې شوې ده سورة يسين ته قلب القرآن ونيلې شوی دی سورة اخلاص د ثلث القرآن مساوی گڼړلې شوې دې دا ټول نصوص په دې خبره دلالت کوی چه د قرآن یوه حصه په بله حصه افضلیت لری

پاتې شوه دا خبره چه بعضو لره په بعضو فضيلت ورکړې شی نو د مفضل عليه د نقص وهم لازمیږی دا څه وزنی دلیل نه دې یو څیز که د بل څیز په مقابله کښې افضل اوگڼړلې شی د هغې مطلب هیڅکله دا نه وی چه گویا دا بل څیز ناقص دې بعضې انبیاء د نورو انبیاؤ نه افضل دی خو ددې مطلب دا نه دې چه مفضل عليه کښې نقص یا کمې او کوتاهی موجود ده بیا که چا ته دا وهم واقع کیږی نو د هغه د وهم په وجه خو دا صحیح او صریح روایات نشی رد کولې دا د جمهورو عالمانو مسلك دې (۱)

لکه علامه ابن تیمیه رحمه الله چه لیکی: ((والقول بأن كلام الله بعضه أفضل من بعض هو القول المأثور عن السلف وهو الذى عليه أئمة الفقهاء من الطوائف الأربعة وغيرهم))(۲)

مثلاً قل هو الله احد او ((تبت يدا أبي لهب)) دا دواړه دا لله تعالی کلام دې خو د متکلم فیه په اعتبار سره دواړو کښې تفاضل دې یو کښې متکلم فیه د الله تعالی جل شانه ذات او صفات دی اوپه دویم کښې یوکافر متکلم فیه دې په دې اعتبار سره په دواړو کلامونو کښې تفاوت او تفاضل دې (۳)

**د كلام الله د تفاضل د اختلاف بنياد:** په قرآن کریم کښې د تفاضل دا اختلاف په حقیقت کښې په یو بل مشهور اختلاف باندې مبنی دې او هغه دا چه کلام الله شئ واحد دې که شئ متعدد . د اشاعرو په نیز کلام الله شئ واحد دې په دې کښې هیڅ قسم تنوع او تعدد نشته او کله چه تنوع او تعدد نشته نو خپل مینځ کښې د تفاضل سوال نه پیدا کیږی لیکن د نورو عالمانو په نیز کلام الله شئ واحد نه دې لکه علامه قسطلانی چه تقدیم وتاخیر لیکی:

((ولعل الخلاف فى هذه المسئلة يلتفت إلى الخلاف المشهور أن كلام الله شئ واحد أم لا وعند الأشعرى أنه لا يتنوع فى ذاته بل بحسب متعلقاته وليس لكلام الله الذى هو صفة ذاته بعض لكن بالتأويل والتعبير وفهم السامعين اشتمل على أنواع المخاطبات ولولا تنزله فى هذه المواقع لما وصلنا إلى فهم شئ منه))(۴)

۱) مجموع فتاوى شيخ الإسلام ابن تيمية (۱۳/۱۷ . التعليق الصبيح :۲۲/۳)_
۲) مجموع فتاوى شيخ الإسلام احمد بن تيمية كتاب التفسير (۱۳/۱۷)_
۳) فتاوى شيخ الإسلام ابن تيمية (۶۷/۱۷،۶۸)_
۴) ارشاد السارى (۲۵۴/۱۱)_

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[٢١٠٨] د قرآن د تعليم او تعلم خيريت**

٢١٠٨-(١)[١] ① عَنْ عُثْمَانَ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «خَيْرُكُمْ مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ وَعَلَّمَهُ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ① حضرت عثمان رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② په تاسو كې بهتر سړى هغه دى چې قرآن زده كي او نورو ته يې وروښايي، بخاري

**تسهيلات: قوله: خَيْرُكُمْ:**

**ليره انسان:** تاسو كښې افضل كس هغه دې يعنى د خير نور كارونه هم دى ليكن په دې كښې بهتر د قرآن زده كول او ښودل دى

**قوله: مَنْ تَعَلَّمَ الْقُرْآنَ**

**طالب علم ته اشاره:** يعنى هغه دقرآن په زده كولو كښې حق ادا كړى دلته دقرآن او حديث طالب طرفته يوه جامع اشاره ده (العاقل تكفيه الإشارة) چې د قرآن د زده كولو حق دې په ونيلو كښې په يادولو كښې په مطالعه كولو كښې د حاضرى په دوام كښې ادا كړى داشان د قرآن د علم د حصول دپاره چې د كومو علومو حاصلول ضرورى دى دهغې په حاصلولو كښې دې هم حق ادا كړى

**قوله: وَعَلَّمَهُ**

**دقرآن د عالم او متعلم د افضليت وجوهات:**

① چې ددې په خودلو كښې د خودلو حق ادا كړى نو دا كس بهتر دې خكه چې څنګه قرآن كريم او ددې علوم ددنيا د ټولو كتابونو او علومو نه افضل او ارفع او اعلى دى داشان قرآنى علوم باندې پوهيدونكى هم ددنيا دټولو خلقو نه ممتاز او د هر يو علم لرونكى نه اعلى او افضل دې

② دغه شان څنګه چې د الله جل جلاله كلام دټولو كلامونو نه بهتر دې نو داشان ددې كلام د زده كولو والا او بل ته ښودلو والا د انبياؤ عليهم السلام او د صحابه كرامو نه پس د ټولو خلقو نه بهتر دى ليكن دا په هغه وخت كښې چې كله تعليم او تعلم د قرآن كريم په اخلاص سره وى

[١] اخرجه البخاري فى كتاب فضائل القرآن/باب باب: خيركم من تعلم القرآن وعلمه(رقم-٥٠٢٧) وابوداود فى كتاب الصلاة/باب فى ثواب قراءة القرآن (رقم-١٤٥٢)والترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى تعليم القرآن (رقم-٢٩٠٩) كتاب فى الإيمان وفضائل الصحابة والعلم/باب باب فضل من تعلم القرآن وعلمه (رقم-٢١١) باب: خياركم من تعلم القرآن وعلمه (رقم-٣٣٨٠) واحمد فى المسند ٥٧/١

## [۲۰] د قرآن د يو آيت د قيمتي اوښې څخه افضليت

٢٠ـــ ( ) [٢] ١) «وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: [٢] خَرَجَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَنَحْنُ فِي الصُّفَّةِ فَقَالَ: [٣] " أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنْ يَغْدُوَ كُلَّ يَوْمٍ إِلَى بُطْحَانَ أَوِ الْعَقِيقِ [٤] فَيَأْتِيَ بِنَاقَتَيْنِ كَوْمَاوَيْنِ [٥] فِي غَيْرِ إِثْمٍ وَلَا قَطْعِ رَحِمٍ؟ " [٦] فَقُلْنَا: يَا رَسُولَ اللهِ كُلُّنَا نُحِبُّ ذَلِكَ، [٧] قَالَ: " أَفَلَا يَغْدُو أَحَدُكُمْ إِلَى الْمَسْجِدِ [٨] فَيَعْلَمُ أَوْ يَقْرَأُ آيَتَيْنِ مِنْ كِتَابِ اللهِ [٩] خَيْرٌ لَهُ مِنْ نَاقَتَيْنِ، [١٠] وَثَلَاثٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثٍ، [١١] وَأَرْبَعٌ خَيْرٌ لَهُ مِنْ أَرْبَعٍ [١٢] وَمِنْ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْإِبِلِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] عقبه ابن عامر ﷺ وايي [٢] چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ بهر تشريف راوړی نو موږ په صفه (دنكاچه) باندی ناست وو نبی كريم صلی الله عليه وسلم موږ ته وفرمايل [٣] چې په تاسو كې كوم سړی دا خوښوی چې هغه هره ورځ د بطحان يا د عقيق طرف ته لاړ شي [٤] و د هغه ځخه دوه وښې لوی قُب والا راولي؟ [٥] بغير د څه ګناه او بغير د انقطاع (قطع) صله رحمی ځخه [٦] موږ عرض وكړی چې يا رسول الله ﷺ موږ ټول دا خوښوو [٧] نبی كريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې (نو بيا واوری چه) په تاسو كې چې كوم سړی مسجد ته ځي [٨] او هلته دكتاب الله دوه آيتونه چاته وښايي يا يې خپله اووائي [٩] نو هغه دهغه د پاره د دوه اوښانو ځخه بهتر دی، [١٠] دری آيتونه د هغه د پاره د دری اوښو ځخه بهتر دی [١١] او څلور آيتونه د هغه د پاره د څلورو اوښو ځخه بهتر دی [١٢] حاصل دا چې د آياتونو تعداد د اوښو د تعداد ځخه بهتری دی (يعنی پنځه آيتونه د پنځو اوښو ځخه بهتر دی، او شپږ آيتونه د شپږو وښو ځخه بهتر دی (دغه شان تر مخكې پوری دی قياس كړل شي. مسلم

**حل اللغات**: ① الصُّفَّة: مسجد نبوی سره نزدې يوه چبوتره وه چه غريبانان صحابه كرام به پكښې اوسيدل او علم دين به ئې حاصلولو ② يَغْدُوَ: أَيْ يَذْهَبُ فِي الْغُدْوَةِ وَهِيَ أَوَّلُ النَّهَارِ: سحر وختی يعنی د ورځې په اوله حصه كښې تللو ته وائی ③ بُطْحَانَ: مدينې منورې سره دَ يوې خوږ نوم وو بَطح فراخوالی ته وآئی دا خوړ هم ډير وسيع وو ④ الْعَقِيق: دمدينې منورې نه په دوه ميله يا درې ميله فاصله باندې دَ يوخاني نوم دې ⑤ كَوْمَاوَيْنِ: دَ كَوْمَاءَ تثنيه ده اوكوما اوچت مقام ته وائی

**تسهيلات**: **قوله**: فِي الصُّفَّةِ:

**د صفه تعارف**: مسجد نبوی سره نيزدې دَ اسلام دَټولونه رومبې مدرسې نوم الصفة دې دكوم مشرچه پخپله رسول الله ﷺ مبارك وو اودكوم طالبان چه خپله صحابه كرام ﷺ وو تراوسه پورې په مسجد نبوی كښې دَدې نښانات قائم دی

---

[١] ) اخرجه مسلم فی كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل قراءة القرآن فی الصلاة وتعليمه(رقم-٢٥١ - (٨٠٣) كتاب الصلاة/باب فی ثواب قراءة القرآن (رقم-١٤٥٦)

**قوله التحقیق**

**د مطیق تعلق:**

په دغه دوارو مقاماتو کښې په هغه وخت کښې تجارتی مندیانې لګیدلې په کوم کښې چه په د اوښانو خرخول او اخستل کیدل عربو کښې اوښان یو ښکلې مال وو او خاص کر د لونی قب والا اوښان به ډیره قیمتی سرمایه وه په دې وجه حضور پاك د عربو د مزاج او طبیعت مطابق په یو بلیغ اسلوب سره د قرآن پاك د تلاوت ترغیب ورکړو

**د حدیث د بعضو جملو وضاحت:**

**قوله** كَوْمَاوَيْنِ: دې نه هغه غټې اوښې مراد دی د کومو قبونه چه ډیر اوچت وی د عربو دا یو ښکلې مال وو

**قوله** فِي غَيْرِ اِثْمٍ: یعنی په کوم کښې چه سرقه او غصب په شان څه ګناه نه وی "ولاقطع رحم" یعنی په کوم کښې چه د ګناه خاص صورت قطع رحم نه وی یا څه ډاکه او ظلم نه وی د تخصیص بعد تعمیم دی

**قوله** وَمِنْ أَعْدَادِهِنَّ مِنَ الْإِبِلِ:

**د آیاتونو تعداد زیاتیدو سره ثواب زیاتیدل:** یعنی څومره چه د آیاتونو شمیر زیاتیږی هم دغه شان به اوښان زیاتیږی یعنی پنځه آیاتونه د پنځو اوښانونه بهتر او شپږ د شپږو اوښانونه بهتر الی آخره په دې دوارو مذکوره احادیثو کښې قرآن لوستونکو او بل ته د خودونکو د لونی ثواب ذکرکړې شوې دې د اوښانو ملاوید لو مطلب دادې لکه چه دې سړی یو اوښ د الله تعالی په لار کښې صدقه کړو او د هغې ثواب ئې حاصل کړو یا دوه اوښان یا څلور اوښان یا لس اوښان ئې صدقه کړل او ثواب ئې اوګټلو

**[۲۰] د درې آیاتونو د درې قیمتی اوښو څخه افضلیت**

۲۰۰۰-[۲] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] "أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ إِذَا رَجَعَ إِلَى أَهْلِهِ [۳] أَنْ يَجِدَ فِيهِ ثَلَاثَ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ؟) قُلْنَا: نَعَمْ [۴] قَالَ: "فَثَلَاثُ آيَاتٍ يَقْرَأُ بِهِنَّ أَحَدُكُمْ فِي صَلَاةٍ [۵] خَيْرٌ لَهُ مِنْ ثَلَاثِ خَلِفَاتٍ عِظَامٍ سِمَانٍ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضی الله عنه روایې دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] آیا په تاسو کی یو څوك دا خبره خوښوی چې هغه کور ته واپس راشی [۳] دری بلاربې اوغټی څربې اوښې ولاړې بیاموې؟ عرض وشو چې هو. [۴] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې په تاسو کی چې کوم څوک په مانځه کی د قرآن دری آیتونه اووائي [۵] نو هغه د هغه د پاره د دری حاملو او غټو څربو اوښو څخه بهتر دی مسلم

() اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها /باب فضل قراءة القرآن فی الصلاة وتعلمه (رقم-۲۵۰ - (۸۰۳) کتاب الأطعمة /باب فی أكل الدباء (رقم-۳۷۸۴) واحمد فی المسند ۲/۳۹۷

**حل اللغات** ① خَلِفَاتٍ د خَلِفَةٍ جمع ده مراد حامله اوښې دی ② عِظَامٍ چه د بدن په اعتبارسره غټې وی ③ سِمَانٍ چه د كيفيت په اعتبارسره چاقې وی

**تسهيلات: نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**[۲۳] د قرآن پاک د ماهر فضيلت**

۲۳-(۱)[۳] ① وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «الْمَاهِرُ بِالْقُرْآنِ مَعَ السَّفَرَةِ الْكِرَامِ الْبَرَرَةِ، ③ وَالَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ وَيَتَتَعْتَعُ فِيهِ ④ وَهُوَ عَلَيْهِ شَاقٌّ لَهُ أَجْرَانِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① بی بی عائشه ﷞ روایت کوی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د قرآن ماهر د هغه فرښتو سره دی چې لیکونیکی بزرگی او نیکوکاری دی ③ او کوم سړی چې قرآن نښتو نښتو سره وایي ④ او قرآن ویل دهغه دپاره مشکل وی نو د هغه د پاره دوه ثوابه دی. بخاری مسلم

**حل اللغات:** ① الْمَاهِرُ: أَيِ الْحَاذِقُ مِنَ الْمَهَارَةِ: چاته چه قرآن پخپله یاد وی او په مکمل روانۍ سره ئې الفاظ ادا کوی ② السَّفَرَةِ: د سَافِرٍ جمع ده. قاصد او پیغام رسونکی ته وائی چه د الله تعالی پیغامات خلوق ته رسوی ③ الْكِرَامِ: د كَرِيمٍ جمع ده. عزت مند او مقرب ته وائی (دلته فرښتې مراد دی) ④ الْبَرَرَةِ: د بَارٍّ جمع ده، وَهُوَ الْمُحْسِنُ: نیکوکار او ښه سلوك کونکې ⑤ يَتَتَعْتَعُ: أَيْ يَتَرَدَّدُ وَيَتَبَلَّدُ عَلَيْهِ لِسَانُهُ: چه په قرآن لوستلو کښې ژبه اینخلی یعنی الفاظ صحیح نه شی اداکولې ⑥ شَاقٌّ: أَيْ شَدِيدٌ: سخت مشکل

**تسهيلات:**

**قوله:** الْمَاهِرُ بِالْقُرْآنِ مَعَ السَّفَرَةِ:

**د سفرة لغوی تحقيق:** د سافر جمع ده چه قاصد او پیغام رسونکی ته وائی یا السفرة د کتبة په معنی کښې دې دې نه مراد هغه فرښتې دی چه د لوح محفوظ نه قرآن عظیم نقل کوی. د قرآن عظیم ماهرین به هغه فرښتو سره په دې وجه وی چه د دواړو کار د قرآن عظیم عام کول او خوړول او مخکښې وړاندې کول دی

**قوله:** "أَجْرَانِ"

یعنی دوچند اجر او ثواب دي یوثواب خود قرآن کریم د ویلو اودویم ثواب د دې مشقت د وجې نه دې چه کوم ویونکې د اینختو د وجې نه برداشت کوی

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب تفسیر القرآن/باب سورة والنازعات (رقم-۴۹۳۷) ومسلم فی کتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب فضل الماهر فی القرآن والذی يتتعتع فيه(رقم-۲۴۴ - (۷۹۸) کتاب الصلاة/باب فی ثواب قراءة القرآن (رقم-۱۴۵۴) کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل قارئ القرآن (رقم-۲۹۰۴) کتاب الأدب/باب ثواب القرآن (رقم-۳۷۷۹) واحمد فی المسند ۴۸/۶

**د ماهر هغه د غير ماهر د اجر زياتوالي ولې؟** آيا د دې حديث دا مطلب شو چه كوم سړې د قرآن ماهر دې هغه ته به اجر ملاويږي او څوك ئې چه په اينختو سره وائي هغه ته به دوه ثوابونه ملاويږي نو د ماهر نه د غيرماهر اجر زيات شو؟

**جواب:** داسې نه ده چه د ماهر ثواب زيات دې خو غيرماهر ته د هغه د ځپل كوشش نه دوه ثوابونه ملاويږي د هغه دواړه ثوابونه يوځائې كولو سره د ماهر يوثواب ته نه شي رسيدې ځكه د ماهر ثواب د سرو زرو په شان دې چه په وزن كښې كم او قيمت كښې زيات دې او د غير ماهر ثواب د سپينو زرو په شان دې سپين زر چونكه په وزن كښې زيات وي ليكن په قيمت كښې د سرو زرو نه كم وي.

**[۳] دوه قسمه خلق د پسخيدو قابل**

٢١٠٦-(٥) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [٢] «لَا حَسَدَ إِلَّا عَلَى اثْنَتَيْنِ: [٣] رَجُلٌ آتَاهُ اللهُ الْقُرْآنَ فَهُوَ يَقُومُ بِهِ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ، [٤] وَرَجُلٌ آتَاهُ اللهُ مَالًا فَهُوَ يُنْفِقُ مِنْهُ آنَاءَ اللَّيْلِ وَآنَاءَ النَّهَارِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.[1]

**ترجمه:** [١] ابن عمر ﷺ رواي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] يواځې د دوو خلقو په باره كې حسد (جائز) دى [٣] يو خو هغه سړى چې هغه ته الله تعالى ﷻ د قرآن نعمت وركړى وى او هغه سړى (د بعضو اوقاتو څخه علاوه) د ورځې او شپې په اكثره حصه كې په قرآن كې مشغول وى [٤] دويم هغه سړى چې هغه ته الله تعالى ﷻ مال وركړى وى او هغه د ورځې او شپې په اكثره حصه كې خرچ كوى، بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① آنَاءَ: أَيْ فِي سَاعَاتِهِمَا: آناء د إِنًى نه دې په وزن د مِعًى سره، د وخت لړې حصې ته وائي (يعني د قرآن لوستلونه غافل كيږي مګر څه لږ شان وخت)

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا حَسَدَ:

**په غبطه او حسد كښې فرق:** د حسد معنى د نعمت د ختميدو خواهش نه كول دې حسد كونكى ته ملاؤ شي يا نه؟ او د غبطه معنى د بل نعمت حاصليدلو خواهش بغير د هغه د نه ختميدو سره لهذا حسد ناجائز دې او غبطه جائز ده په دې حديث كښې د حسد نه غبطه مراد دې ځكه چه حسد حرام دې او غبطه جائز ده په دې باندې دا اعتراض دې چه كله غبطه جائز ده نو بيا په دې حديث كښې دلته د حصر څه ضرورت وو غبطه خو په هرڅيز كښې جائز ده نو اصل جواب دادې چه دا كلام په توګه د فرض والتقدير دې چه كه

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب فضائل القرآن /باب اغتباط صاحب القرآن(رقم-٥٠٢٥) ومسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل من يقوم بالقرآن. ويعلمه. وفضل من تعلم حكمة من فقه. أو غيره فعمل بها وعلمها(رقم-٢٦۶ - (٨١٥)

حسد په يو ځيز کښې جائز وي نو په دې دوو ځيزونو کښې به جائز وی چه کله په دې کښې جائز نه دې نو بيا په هيڅ ځيز کښې جائز نه دې يا جواب دادې چه دا دوه ځيزونه په وجه داهم کيدو دحسد دعام ضابطه نه مستثنی دی (توضيحات ج۱ص۴۲۲) که چرې دحسد نه غبطه واخستې شی اود غبطه ترجمه فخرکول اونه کرې شی بلکه د دې ترجمه د يوبل نه مخکښې کيدل او ريس اوکرې شی نو هيڅ اشکال به پاتې نشی په پښتو کښې دې ته سيالی وائی دا ډير ښکلې دې

## [۳۴] د قرآن ويونکی او نه ويونکی مثال

۲۱۱۴ - (۱)[۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ [۳] مَثَلُ الْأُتْرُجَّةِ [۴] رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا طَيِّبٌ، [۵] وَمَثَلُ الْمُؤْمِنِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ [۶] مَثَلُ التَّمْرَةِ [۷] لَا رِيحَ لَهَا وَطَعْمُهَا حُلْوٌ [۸] وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ [۹] كَمَثَلِ الْحَنْظَلَةِ [۱۰] لَيْسَ لَهَا رِيحٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ [۱۱] وَمَثَلُ الْمُنَافِقِ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ [۱۲] مَثَلُ الرَّيْحَانَةِ رِيحُهَا طَيِّبٌ وَطَعْمُهَا مُرٌّ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابوموسی رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم وفرمايل [۲] هغه مسلمان چې قرآن کريم وايي [۳] د هغه مثال د سنتروزی (سنگتره، نارنج) په شان دی [۴] چې د هغه خوشبو هم ډيره لطيفه او د هغه مزه هم ډيره ښه ده [۵] او هغه مسلمان چې قرآن کريم نه وايي [۶] د هغه مثال د کجوري په شان دی [۷] چې په هغه کی خوشبويي نشته او د هغه مزه شرينه (خوږه) ده [۸] او هغه منافق چې قرآن کريم نه وايي [۹] د هغه مثال د مرغونی (ترخه منړه) په شان دی [۱۰] چې په هغه کی نه خوشبو شته او د هغه خوند هم ډير تريخ دی [۱۱] او هغه منافق چې قرآن کريم وايي [۱۲] د هغه مثال د هغه خوشبوداره بوټي په شان دی چې د هغه خوشبويي ښه وی خو د هغه خوند ډير تريخ وی. مسلم.

**حل اللغات:** ① الْأُتْرُجَّةِ: نارنج، ليمبو، سنگترې وغيره ټول ته وائی ② حُلْوٌ: خوږ. ③ الْحَنْظَلَةِ: اندرائن يعنی مره غونی ته وائی چه ډير يخ هم دې او بدبونی دار هم دې ④ مُرٌّ: تريو، تريخ. ⑤ الرَّيْحَانَةِ: گل ريحان د خوشبونی په اعتبار سره ښه وی مگر تريو وی

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ: "«الْمُؤْمِنُ الَّذِي يَقْرَأُ الْقُرْآنَ [۲] وَيَعْمَلُ بِهِ كَالْأُتْرُجَّةِ [۳] وَالْمُؤْمِنُ الَّذِي لَا يَقْرَأُ الْقُرْآنَ [۴] وَيَعْمَلُ بِهِ كَالتَّمْرَةِ» ".

**ترجمه** [۱] په يو دويم روايت کی داسی دی او هغه مؤمن چې قرآن هم وايي [۲] او عمل هم په کوی د هغه مثال د سنتری په شان دی [۳] او هغه مسلمان چې قرآن وايې نه [۴] خو عمل پری کوی د هغه مثال د کجوري په شان دی

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الأطعمة /باب ذكر الطعام (رقم-۵۴۲۷) ومسلم في كتاب صلاة المسافرين

**تسهیلات:**

**قوله:** الأُتْرُجَّةِ

**د اترجة معنی او د تشبیه وجه:** نارنج لیمبو او سنګترې ته وائي په پښتو کښې د دې لفظ ترجمه لیمبو سره کړې شوې ده لیکن دَلغت په کتابونو کښې چه منجد کوم تصویر لیکلی دې هغه دَ لیمبو په شان دې او منجد او مصباح اللغات کښې دې ته لیمبو وئیلې شوې دې بهرحال دا دَ لوني لیمبو، سنګتره، کینو او مالټې تولو دپاره استعمالیدې شي علامه طیبي رحمه الله لیکلي دي چه دې میوې سره دَ انساني تولو قوتونو لذت حاصلیږي دَغتیدو د وجې نه لاسونو ته بنه لګي په کتلو کښې سترګو ته ښائسته لګي په بوني کولو سره قوت شامه دَدې نه خوندونه اخلي او په څکلو سره قوت ذائقه نه خوند اخلي هم دغه شان قرآن عظیم دې دکوم په وئیلو اوبل ته دَ خودلو او په اورولو سره پخپله قاري هم خوند اخلي او نور خلق هم پرې خوشحالیږي.

**قوله:** الحَنْظَلَةِ: دَمنافق هم دغه مثال دې چه تریو هم دې بدبوني دار هم دې په کوم کښې چه دَ هر طرف نه ضرر او ضرر دې

**قوله:** الرَّيْحَانَةِ: منافق هم په اصل کښې دَ دننه نه تریو دې لیکن قرآن کریم وئیلو نه ظاهری خوشبوني پیدا کیږي کوم چه ډیر زر ختمیږي دا "تشبیه الهیئة المرکبة بالهیئة المرکبة" ده کوم ته چه تمثیل وائي

**دحدیث مطلب:** دَحدیث مطلب دا شو چه قرآن ویونکې مؤمن دَ قرآن وئیلو سره نوره روحاني ترقي کوي او نه ویونکې دَ دغه ترقئي نه محروم پاتې کیږي

**[۲۰۰] دقومونو په ترقي او بربادي کښې دقرآن کردار**

۲۰۰-( )[۷] [۱] وَعَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ اللّٰهَ يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ أَقْوَامًا [۳] وَيَضَعُ بِهِ آخَرِينَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] حضرت عمر ابن خطاب رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] یقینا الله تعالی جل جلاله د دی کتاب په ذریعه ډیر خلق بلندوی [۳] او د دی په ذریعه ډیر خلق پست کوی. مسلم

**حل اللغات:** ① يَرْفَعُ: اوچتوي په درجه او مرتبه کښې ② يَضَعُ: ښکته کوي (ذلیل کوي).

---

[1] ) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها /باب فضل من یقوم بالقرآن. ویعلمه. وفضل من تعلم حکمة من فقه. او غیره فعمل بها وعلمها(رقم-۲۶۹ - (۸۱۷) کتاب فی الایمان وفضائل الصحابة والعلم /باب باب فضل من تعلم القرآن وعلمه (رقم-۲۱۸)

**تسهيلات:**

**قوله: يَرْفَعُ بِهٰذَا الْكِتَابِ:**

**په قرآن باندې د ترقئ وعده کله ده؟:** د حديث مطلب دانه دې چه صرف تلاوت كول او نه کولو سره د قومونو ترقي او بربادي متعلق ده بلکه د دې حديث يوجامع مفهوم دې د دې په طرف کښې صرف اشاره کوی یعنې داکتاب چه کوم قومونه خپلوی اودا په معاشره کښې د قانون په حیثیت سره نافذ کوی د دې اوامر او نواهی ته د جائز مقام ورکوی د دې تلاوت کوی او په دې باندې عمل کوی داخپل مقتدی جوړوی د خپل سیاست مدار هم په دې کتاب باندې ایږدی اوخپل داخله او خارجه پالیسنی هم د دې کتاب په رڼا کښې جوړوی اودې کتاب ته د اعزاز اوچت مقام ورکوی نوداسې قومونه الله تعالی په دنیا موډې سره، او په آخرت کښې د دې کتاب په برکت سره د ترقئ آسمان ته رسوی اوکوم قومونه چه داسې نه کوی الله تعالی هغوی د ذلت په کندو کښې ښکته راګذاروی نن صبا داکار ښه ښکاره دې د هیچانه پټ نه دې

**د مکې ګورنرې د قرآن مهارت په وجه ملاويدل:** امام بغوی رحمه الله په معالم تنزيل کښې سند سره يو واقعه ليکلې ده چه د مکې ګورنر نافع بن حارث رضي الله عنه عسفان مقام کښې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه سره ملاؤشو حضرت عمرفاروق رضي الله عنه نافع رضي الله عنه د مکې ګورنر مقرر کړې وو په دې وجه نې د هغه نه پوښتنه اوکړه چه تا په مکه مکرمه کښې دې وخت څوك خپل نائب ګورنر مقرر کړې دې؟ حضرت نافع بن حارث رضي الله عنه په جواب کښې اوفرمائيل چه ما ابن ابزی (عبدالرحمن بن ابزی) ګورنر مقرر کړې دې حضرت عمر رضي الله عنه د حيرانتيا په انداز کښې اوفرمائيل چه تا يو غلام په دغه (اشراف قريشو) باندې ګورنر مقرر کړې دې؟ (دا دې څه غضب اوکړو) حضرت نافع رضي الله عنه اوفرمائيل اې اميرالمؤمنين داسړې د ټولونه زيات د قرآن پاك لوستونکې عالم دې او د قرآن فرائض د ټولونه زيات پيژنی او د قرآن پاك په رڼا کښې فيصلې کونکو کښې د ټولونه زيات ماهر دې حضرت عمر فاروق رضي الله عنه اوفرمائيل (واقعی هم داسې کيدل پکار وو دې د ګورنرد جوړيدو زيات اهل دې) واؤرئ ستاسو نبی مکرم ﷺ فرمائيل "ان الله يرفع بهذا الكتاب اقواما ويضع به آخرين"

**[۲۳] د قرآن پاک تلاوت سره د سکينه نازليدل**

۲۳۳- (۸) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ «أَنَّ أُسَيْدَ بْنَ حُضَيْرٍ قَالَ: [۲] بَيْنَمَا هُوَ يَقْرَأُ مِنَ اللَّيْلِ سُورَةَ الْبَقَرَةِ [۳] وَفَرَسُهُ مَرْبُوطَةٌ عِنْدَهُ [۴] إِذْ جَالَتِ الْفَرَسُ فَسَكَتَ فَسَكَنَتْ [۵] فَقَرَأَ فَجَالَتْ، فَسَكَتَ فَسَكَنَتْ [۶] ثُمَّ قَرَأَ فَجَالَتِ

) اخرجه البخاري في كتاب فضائل القرآن/باب نزول السكينة والملائكة عند قراءة القرآن(رقم-۵۰۱۸) ومسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب نزول السكينة لقراءة القرآن (رقم-۲۴۲-(۷۹۶)

الْفَرَسُ فَانْصَرَفَ ﴿٧﴾ وَكَانَ ابْنُهُ يَحْيَى قَرِيبًا مِنْهَا ﴿٨﴾ فَأَشْفَقَ أَنْ تُصِيبَهُ ﴿٩﴾ وَلَمَّا أَخَّرَهُ رَفَعَ رَأْسَهُ إِلَى السَّمَاءِ ﴿١٠﴾ فَإِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ فِيهَا أَمْثَالُ الْمَصَابِيحِ،

**ترجمه** ﴿١﴾ ابو سعيد خدري رضي الله عنه د اسيد بن حضير رضي الله عنه په باره کې روايت کوی ﴿٢﴾ چې (يو ورځ) چې اسيد رضي الله عنه د شپې سورة بقره ويله ﴿٣﴾ د هغه آس چې خان ته يې نزدې ترلی وو ﴿٤﴾ ناساپه هغه په تو پونو شو هغه ويل بند کړل (چې وګوری چې هغه آس ولې تو پونه وهي) آس هم توپونه بند کړل (اسيد رضي الله عنه سوچ وکړ چې هسې توپونه وهي) ﴿٥﴾ بيا يې د (قرآن) ويل شروع که آس هم توپونه شروع کړل بيا هغه ويل بند کړل نو آس هم توپونه بند کړل (اوس هغه ته احساس وشو چې د آس توپونه وهل هسې نه دی بلکه د دې څه خاص وجه ده اتفاقي خبره نه ده) ﴿٦﴾ بيا هغه قراءت شروع کړلو نواس توپونه شروع کړل نودې (هغه اس طرف ته) اوګرځيدلو ﴿٧﴾ د هغه وړوکي چې د هغه نوم يحيى وو آس ته نزدې وو ﴿٨﴾ د هغه سره خوف شو چې چيرته آس توپونو وهلو سره د هغه وړوکي ته تکليف ونه رسوی (نو هغه پاسيدو آس ته ورغلی چې خپل وړوکي د هغه ځايه څخه ليری کی) ﴿٩﴾ هر کله چې هغه وړوکي د هغه ځايه څخه ليری کی او هغه د آسمان طرف ته وکتل ﴿١٠﴾ ناساپه څه ګوری چې د وريځې په شان څه شی دی چې په هغه کې ډيوی بل دی

**حل اللغات:** ① مَرْبُوطَةٌ: ترلي شوي وو، ② جَالَتْ: أَيْ دَارَتْ وَتَحَرَّكَتْ: په توپونو شو او حرکت ني شروع کړو ③ أَشْفَقَ: أَيْ خَافَ: اويريدلو ④ الظُّلَّةِ: مَا يَقِي الرَّجُلَ مِنَ الشَّمْسِ: هرهغه خيز چه په انسان سورې جوړوی مثلا اوريخ، چت وغيره ⑤ الْمَصَابِيحِ: د مصباح جمع ده ډيوي ته واني، (يعنی څه نوراني رڼاګانې وې)

﴿١﴾ فَلَمَّا أَصْبَحَ حَدَّثَ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ﴿٢﴾ فَقَالَ: "اقْرَأْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ اقْرَأْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ" ﴿٣﴾ قَالَ: فَأَشْفَقْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ أَنْ تَطَأَ يَحْيَى ﴿٤﴾ وَكَانَ مِنْهَا قَرِيبًا فَانْصَرَفْتُ إِلَيْهِ ﴿٥﴾ وَرَفَعْتُ رَأْسِي إِلَى السَّمَاءِ ﴿٦﴾ فَإِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ ﴿٧﴾ فِيهَا أَمْثَالُ الْمَصَابِيحِ ﴿٨﴾ فَخَرَجَتْ حَتَّى لَا أَرَاهَا ﴿٩﴾ قَالَ: "وَتَدْرِي مَا ذَاكَ؟" قَالَ: لَا ﴿١٠﴾ قَالَ: تِلْكَ الْمَلَائِكَةُ دَنَتْ لِصَوْتِكَ ﴿١١﴾ وَلَوْ قَرَأْتَ لَأَصْبَحَتْ يَنْظُرُ النَّاسُ إِلَيْهَا ﴿١٢﴾ لَا تَتَوَارَى مِنْهُمْ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ،

**ترجمه** ﴿١﴾ کله چې سحر شو نو اسيد رضي الله عنه دا واقعه د نبی کريم صلى الله عليه وسلم په مخکې بيان کړه، ﴿٢﴾ نبی کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې اې ابن حضيره رضي الله عنه تا به ويلاې، ﴿٣﴾ اسيد رضي الله عنه عرض وکړی چې يا رسول الله صلى الله عليه وسلم زه د دې خبرې څخه ويرېدم چې آس چيرته زما خوې يحيى په پښو کې لاندې نه کړي ﴿٤﴾ ځکه چې يحيى آس ته نزدې وو بيا چې زه د يحيى طرف ته راغلم ﴿٥﴾ او خپل نظر مې د آسمان طرف ته اوچت کړو ﴿٦﴾ نو څه ګورم چې يو شی د وريځې په شان دی ﴿٧﴾ چې په هغه کې ډيوی بليږی ﴿٨﴾ بيا زه (د تحقيق حال د پاره د کور څخه) بهر را ووتم خو هغه (چراغان) ماته په نظر رانغلل ﴿٩﴾ نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ته پوهيږی چې هغه څه وو؟ هغه اوويل چې نا، ﴿١٠﴾ نبی کريم صلى الله عليه

وسلم وفرمايل چي هغه فرشتي وى چي ستا د قراءت د آواز د اوريدو د پاره درته نزدې راغلې وې ⑪ كه تا دغه شان ويلى (تلاوت دې جارى ساتلى وي) نو دغه شان به صبا شوى وو او خلقو به فر شتي ليدلى وې ⑫ او هغه فرشتې به د خلقو د نظر څخه پټې نه وې. دا روايت بخارى او مسلم نقل كړى دى

**حل اللغات:** ⑨ دَنَتْ : أَيْ نَزَلَتْ وَقَرُبَتْ: نزدې راغلې وې ⑥ لَا تَتَوَارَى : أَيْ لَا تَغِيبُ وَلَا تَخْفَى: غائب شوې او پټې شوې به نه وې دا فرشتي

① وَاللَّفْظُ لِلْبُخَارِيِّ، ② وَفِي مُسْلِمٍ: عَرَجَتْ فِي الْجَوِّ بَدَلَ فَخَرَجْتُ عَلَى صِيغَةِ الْمُتَكَلِّمِ.

**ترجمه:** ① خو الفاظ د بخارى دى ② او د مسلم په روايت كى د خَرَجْتُ په ځاى عَرَجَتْ فِي الْجَوِّ، يعنى هغه څيز چي د زمكى او آسمان په منځ كى په هوا كى اوختلو. الفاظ دى

**حل اللغات:** ⑧ عَرَجَتْ : أَيْ صَعَدَتْ: يعنى پورته اوختلې فرشتي. ⑨ الْجَوّ : أَيْ فِي الْهَوَاءِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ: د زمكې او آسمان منځ كښې هوا او خلا يعنى خالى ګاه ته وائى

**تسهيلات:**

**قوله:** فَإِذَا مِثْلُ الظُّلَّةِ فِيهَا أَمْثَالُ الْمَصَابِيحِ...الخ:

**د اسيد بن حضير د تلاوت په وجه د فرښتو نزول:** مطلب دا چه حضرت اسيد بن حُضير رضی الله عنه كله تلاوت كولو نو دَ قرآن دَ اوريدو دَپاره دَ آسمان نه ډلې ډلې فرښتې نازليدلې دكوم په وجه سره چه به اس تو پونه وهل نيزدې ورسره دَحضرت اسيد بن حضير رضی الله عنه وړوكې خونى يحيى وو صحابى ته خطره شوه تلاوت پريخودو سره خو فرښتې هم غائب شوې چه دَ سكينې په صورت كښې په اوريخو كښې ښكاره كيدلې

**قوله:** اقْرَأْ يَا ابْنَ حُضَيْرٍ: دَدې جملې ترجمه حضرت انورشاه كشميرى رحمه الله نه داسې نقل ده وايه اې ابن حضير وايه علامه طيبى رحمه الله فرمانى چه اقرأ امر دې زمان ماضى دَ استمرار الحال په توګه پيش كړې شوې دې هم دَدې ترجمه حضرت شاه صاحب رحمه الله په اردو كښې كړې ده

**[۲۰۸] د قرآن تلاوت او د رحمت نزول**

۲۰۸ - (۱)[۹] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ قَالَ: «كَانَ رَجُلٌ يَقْرَأُ سُورَةَ الْكَهْفِ ② وَإِلَى جَانِبِهِ حِصَانٌ مَرْبُوطٌ بِشَطَنَيْنِ ③ فَتَغَشَّتْهُ سَحَابَةٌ ④ فَجَعَلَتْ تَدْنُو وَتَدْنُو ⑤ وَجَعَلَ فَرَسُهُ يَنْفِرُ ⑥ فَلَمَّا أَصْبَحَ أَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ ⑦ فَقَالَ: "تِلْكَ السَّكِينَةُ تَنَزَّلَتْ بِالْقُرْآنِ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① حضرت براء رضی الله عنه وائى چې (يو خل) يو سړى سورة كهف ويلى ② د هغه نزدې يو

[1] اخرجه البخارى فى كتاب فضائل القرآن/باب فضل سورة الكهف (رقم-۵۰۱۱) ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب نزول السكينة لقراءة القرآن (رقم-۲٤۰) - (۷۹۵) كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل سورة الكهف (رقم-۲۸۸۵) واحمد فى المسند ۲۸۱/٤

س به دوو ۲ رسیو سره ترلی وو۲ چې د وریخی بوه ټکره به راخوره شوه.۴ چې د نږدې څخه نږدې کیدله ۵ تر دې چې آس توپونه وهل شروع کړل ٦ کوم وخت چې صبا شو نو هغه سړی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کی حاضر شو نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته یې پوره واقعه واو روله ۷ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې هغه سکینه وه چې د قرآن ویلو په وجه نازله شوی وه. بخاری مسلم

**حل اللغات:** ① حِصَانٌ: نر اس ته وائی دا دتحصین نه دې صیانت او حفاظت ته وانی خکه چه دوی به ددې قیمتی اس ډیر حفاظت کولو ② مَرْبُوطٌ: ترلې شوې دا اس. ③ شَطَنَيْنِ: الْحَبْلُ الطَّوِيلُ الشَّدِيدُ: دا دَ شطن تثنیه ده اوږدې مضبوطې رسۍ ته وائی ④ تَغَشَّتْهُ: نو راخوره شوه پرې. ⑤ سَحَابَةٌ اوریخ. ⑥ تَدْنُو: أَيْ تَقْرُبُ قَلِيلًا: لږه لږه رانږدې کیدله. ⑦ يَنْفِرُ: أَيْ يَثِبُ: توپونه نې وهل ⑧ السَّكِينَةُ: دا د تسکین او سکون نه دې دَ تسلۍ په معنی کښې دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** تِلْكَ السَّكِينَةُ

**دسکینه مفهوم:** یعنی هغه دَ زړه سکون، خاطرجمعی اودَ الله رحمت په کوم سره چه زړه پاکیزه او منور کیږی. سکینه سره ددې چه په عام توګه مشاهده کښې نه راځی لیکن کله کله اوریځې وغیره دَ سورې په صورت کښې ښکاره کیږی دَ جنګ په میدان کښې دَ ږغ په صورت کښې ښکاره کیږی.

**[۲۸] دَ سورت فاتحې اهمیت او فضیلت**

۲۸ـ( )[۱۰] ۱ «وَعَنْ أَبِي سَعِيدِ بْنِ الْمُعَلَّى قَالَ: ۲ كُنْتُ أُصَلِّي فِي الْمَسْجِدِ فَدَعَانِي النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَلَمْ أُجِبْهُ، ۳ ثُمَّ أَتَيْتُهُ فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي كُنْتُ أُصَلِّي ۴ قَالَ: " أَلَمْ يَقُلِ اللَّهُ ﴿اسْتَجِيبُوا لِلَّهِ وَلِلرَّسُولِ إِذَا دَعَاكُمْ﴾ [الأنفال: ۲۴] ؟ ". ۵ ثُمَّ قَالَ: " أَلَا أُعَلِّمُكَ أَعْظَمَ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ قَبْلَ أَنْ تَخْرُجَ مِنَ الْمَسْجِدِ؟ "

**ترجمه** ۱ سعید ابن المعلی ﷺ وایې ۲ چې (یوه ورځ) ما په مسجد کی مونځ کولی چې نبی کریم ﷺ زه وبللم هغه وخت ما څه جواب ورنه کړلی ۳ بیا (د مانځه څخه د فارغه کیدو وروسته) د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کی حاضر شوم عرض مې وکړو چې یا رسول الله! ﷺ هغه وخت ما مونځ کولو (ځکه جواب مې درنه کړی شو)۴ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې آیا الله تعالی ﷻ دا نه دی فرمایلي چې دالله تعالی ﷻ اود رسول ﷺ قبلونه وکړئ کله چې رسول الله ﷺ تاسو وبلی او د هغه د حکم اطاعت

( ) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن/باب فضل فاتحة الکتاب(رقم-۵۰۰۶) کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل فاتحة الکتاب (رقم-۲۸۷۵) کتاب الافتتاح/باب تأویل قول الله عز وجل: ﴿ولقد آتیناک سبعا من المثانی والقرآن العظیم﴾ [الحجر: ۸۷] (رقم-۹۱۳) واحمد فی المسند ۲۱۱/۴

کوی. [۵] بیا د دی څخه روسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې قبل د دی څخه چې مونږ د دی مسجد څخه ووزو آیا زه تاته د قرآن کریم ډیر لوی (یعنی افضل) سورة در ونه ښایم؟

[۱] فَأَخَذَ بِيَدِي فَلَمَّا أَرَدْنَا أَنْ نَخْرُجَ [۲] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّكَ قُلْتَ لَأُعَلِّمَنَّكَ سُورَةً مِنَ الْقُرْآنِ. [۳] قَالَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ هِيَ السَّبْعُ الْمَثَانِي [۴] وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُوتِيتُهُ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم زما لاس ونیولی کوم وخت چې مونږ د مسجد څخه په وتلو شو [۲] نو ما عرض وکړو یا رسول الله! ﷺ تاسو ﷺ ماته فرمایلی وو چې زه تاته د قرآن یو ډیر لوی سورت ونه ښیم؟ [۳] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هغه سورت اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِیْنَ دی هغه اوه آیتونه دی چې په مانځه کی بار بار ویل کیږی [۴] او هغه قرآن عظیم دی چې ماته راکړل شوی دی، بخاری

**حل اللغات:** ① السَّبْع: سبع اووه ته وائی په دې سورت کښې اووه آیاتونه دی خکه ورته السبع وائی ② الْمَثَانِي: دوه ځل نازل شوې وه خکه ورته مثانی وائی یا بار بار په مونځ کښې د لوستلو په وجه ورته مثانی وائی.

**تسهیلات:**

**قوله:** وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ:

دا عطف عام علی الخاص دَ قبیل نه دې "ولقد اتیناك شیئا یقال له السبع المثانی ویقال له القرآن العظیم" دَ یوڅیز دوه جدا جدا صفتونه دی.

**قوله:** لِتَجِيبُوا لِلَّهِ:

**د مانځه په دوران کښې د رسول ﷺ بلنې اجابت:** یعنی کوم وخت چه رسول الله ﷺ تاسو راغواړی نو په هرحالت کښې اجابت او اطاعت کونی مونځ پریږدنی او راشنی تپوس اوکړنی څه خدمت دې؟ دا خبره خو په خپل ځائی فیصله شوې ده چه دَ رسول الله ﷺ په راغوښتو باندې بغیردَ تاخیرکولو دَمونځ نه وتل پکاردی

**په مانځه کښې په اجابة الرسول د مونځ په بطلان کښې مذاهب:**

بحث په دې کښې دې چه آیا دا مونځ باقی پاتې کیږی یا مونځ باطل کیږی؟

① علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه دَ ظاهر حدیث واضح دلالت په دې باندې دې چه مونځ نه باطلیږی [الکاشف ۲۷۱/۴]

علامه بیضاوی رحمه الله فرمائی چه بعضې علماء فرمائی چه مونځ نه باطلیږی مګر بعضې فرمائی چه باطلیږی دَ حدیث نه واضح کیږی چه مونځ نه باطل کیږی

② ملاعلی قاری رحمه الله چه اجابت رسول ﷺ خو لازم دې حدیث هم په دې باندې دلالت کوی

ليکن دمونځ باطل کيدو يا نه باطل کيدو نه حديث خاموش دی البته دعام دلائلو په رنړا کښې دمونځ باطل کيدل زيات ښکاره دي

**قوله**: المَثَانِي:

**سورة فاتحې ته د سبع ويلو وجه**: سورت فاتحه ته السبع ځکه اوونيلې شو چه دا په اتفاق سره په اووه آياتونو باندې مشتمل ده

**د مثاني په وجه تسميه کښې احتمالات**: په المثاني کښې څو احتمالات دي

① ښکاره دا ده چه دا سورت چونکه دَ مونځ په هر رکعت کښې بيا بيا ونيلې شي په دې وجه دې ته المثاني اوونيلې شو

② يا دَ نزول په اعتبار سره المثاني اوونيلې شو ځکه چه دا سورت يو ځل په مکه کښې نازل شو او دوباره په مدينه کښې نازل شو

**سورة فاتحې ته د قرآن عظيم ويلو وجه**: سورت فاتحه ته قرآن عظيم ځکه اوونيلې شو چه دَ قرآن کريم ټول مضامين په سورت فاتحه کښې په اجمالي توګه باندې درج دي

**[۳] دَ سورت بقره فضيلت**

| |
|---|
| ـــ()[۳][۱]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«لَا تَجْعَلُوا بُيُوتَكُمْ مَقَابِرَ، [۳] إِنَّ الشَّيْطَانَ يَنْفِرُ مِنَ الْبَيْتِ الَّذِي تُقْرَأُ فِيهِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ. |

**ترجمه** [۱] د ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د خپل کورو څخه مقبرې مه جوړوی [۳] (ياد لرئ چې) شيطان د هغه کور څخه تښتي چې په هغه کې سورة بقره ويل کيږي، مسلم

**حل اللغات**: ① مَقَابِرَ: مقبرې، قبرستان

**تسهيلات**:

**قوله**: مَقَابِرَ:

دَدې لفظ دوه مفهوم دی. رومبې مفهوم چه خپل کورونه قبرستان مه جوړوئ چه په دې کښې نه تلاوت وی نه عبادت وی نه دَالله تعالى ذکروی دويم مفهوم دا چه خپل مړی په کورونو کښې مړی مه ښخوئ، کورونه قبرستان مه جوړوئ رومبئ معنى زياته واضحه ده يعنى په کورونو کښې سورت بقره لولئ.

[۱]) اخرجه مسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب استحباب صلاة النافلة فى بيته، وجوازها فى المسجد (رقم ۲۱۲ - (۷۸۰) كتاب فَضَائِلِ القرآنِ عن رسولِ الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضلِ سورةِ البقرةِ وآيةِ الكرسي (رقم-۲۸۷۷)

## [۳۰] د سورت بقره او آل عمران شفاعت

۳۰-( )[۱۳]۱ وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ۲ "«اقْرَأُوا الْقُرْآنَ ۳ فَإِنَّهُ يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ شَفِيعًا لِأَصْحَابِهِ ۴ اقْرَأُوا الزَّهْرَاوَيْنِ: الْبَقَرَةَ، وَسُورَةَ آلِ عِمْرَانَ ۵ فَإِنَّهُمَا تَأْتِيَانِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ، ۶ أَوْ غَيَايَتَانِ، ۷ أَوْ فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ ۸ تُحَاجَّانِ عَنْ أَصْحَابِهِمَا، ۹ اقْرَأُوا سُورَةَ الْبَقَرَةِ، ۱۰ فَإِنَّ أَخْذَهَا بَرَكَةٌ ۱۱ وَتَرْكَهَا حَسْرَةٌ ۱۲ وَلَا تَسْتَطِيعُهَا الْبَطَلَةُ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ۱ ابو امامه رضی الله عنه وايي چې ما د نبی كريم ﷺ څخه واوريدل ۲ چې قرآن كريم وايي ۳ خكه چې دا به د قيامت په ورځ د خپلو ويونكو سفارش كوی ۴ خاص طور سره پړقيدونكی دوه سورتونه چې هغه سورة بقره او سورة ال عمران دی وايي، ۵ خكه چې دا دواړه به د قيامت په ورځ داسی ظاهر شی لكه چې د وريځی دوی ټكړی دی ۶ يا دوه سايي كونكی خيزونه دی ۷ يا د مارغانو صف تړلی دوی ټولی دی ۸ او دوی به د خپلو ويونكو د طرف څخه جګړه كوی ۹ او سورة بقره وايي ۱۰ خكه چې د دی په ويلو باندی مداومت (هميشګی) د دی په مفهوم او معانی كی غور او فكر او د دی په احكامو باندی عمل كول بركت (يعنی نفع عظيم) دی ۱۱ او د دی ترک كول به د قيامت په ورځ د حسرت (يعنی د ندامت) باعث وی ۱۲ او يا دلری چې د سورة بقره د اوريدو په وجه د دی د ويلو طاقت هغه خلق نه لری چې اهل باطل او سست دی، مسلم

**حل اللغات:** ① شَفِيعًا: شفارس كونكې به وی. ② الزَّهْرَاوَيْنِ: دَ الزهراء تثنيه ده كوم چه دَ ازهرتانيث دې دَ ډير روښانه او پړقيدونكی په معنی كښې دې ③ غَمَامَتَانِ: أَيْ سَحَابَتَانِ: دَ اوريځې دوه ټكړې چه سورې به ئې جوړ كړې وی. ④ غَيَايَتَانِ: يَكُونُ أَدْوَنَ مِنْهُمَا فِي الْكَثَافَةِ وَأَقْرَبَ إِلَى رَأْسِ صَاحِبِهِمَا: دا هم دَ اوريځو د سوری (سايه) په معنی كښې دې خو دا به درنې وی او سر ته به نژدې وی ⑤ فِرْقَانِ: أَيْ طَائِفَتَانِ: دَ فرقة تثنيه ده، دَ فرق وفرقة تثنيه فرقان دې، دَ مرغو دوه سيلونه مراددی دَ كوم په وجه چه په سرباندې سورې كيږی ⑥ صَوَافَّ: دَ صافة جمع ده. مرغوسره چه كله مرغی قطار جوړ كړی په هوا كښې اودريږی يا وزرې خورې كړی يوبل سره نژدې نو هغې ته صواف وانی ⑦ تُحَاجَّانِ: أَيْ تُدَافِعَانِ الْجَحِيمَ أَوْ تُجَادِلَانِ وَتُخَاصِمَانِ: يا دا معنی چه دواړه سورتونه به د جهنم نه بچ كول كوی يا دا معنی چه دوی به جګړه كوی دالله سره په باره ددې بنده كښې ⑧ الْبَطَلَةُ: باطله خلق يعنی فاسقان فاجران يا جادوګران وغيره

**تسهيلات:**

**قوله:** الزَّهْرَاوَيْنِ: خكه چه په دې كښې دَ هدايت زبردست نوردې لكه چه دا دوه سورتونه په پورته آسمان باندې دَ نمر او سپوږمۍ په شان دی او باقی ستوری دی.

[۱] اخرجه مسلم فی كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل قراءة القرآن، وسورة البقرة (رقم-۲۵۲ - (۸۰٤) واحمد فی المسند ٤/ ۱۵٤

**قوله**: تَأتِيَانِ: یعنی د دې اجر او ثواب به راځی یا پخپله دا دواړه سورتونه به یو خاص جوسې سره شکل جوړ کړی

**د تشبیهاتو وجوهات**: علامه طیبی رحمه الله فرمانی چه دلته اود شك دپاره نه دې بلکه د مختلف اقسام او انواع بیانولو دپاره دې بیا په دې کښې ترتیب ور کولو سره فرمانی چه اول صفت د هغه خلقو دې څوك چه قرآن لولی لیکن معانی باندې نه پوهیږی دویم صفت د هغه خلقو دې چه معلم جوړیدو سره د نورو پوهه کولو صلاحیت لری بیا علامه رحمه الله د دې تشبیه تقسیم وضاحت داسې فرمانی چه د اوریځو سورې د چترئی یا خیمې د سوری نه کم وی بل خیمه نیزدې هم وی او اوریځ د عوام الناس دپاره عام دې لیکن سائبان یا خیمه د بادشاهانو سره خاص وی اود مرغود وزرو سورې خو عام بادشاهانو ته هم نصیب نه وی دا خو د حضرت سلیمان علیه السلام په شان د اخص الخواص دپاره دې چه فرمائیلی دی ﴿ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَا يَنْبَغِي لِأَحَدٍ مِنْ بَعْدِي ﴾ الکاشف ۴/۲۷۳.

**قوله**: الْبَطَلَةُ:

**د بطله په مصداق کښې اقوال**:

① دې نه خو یا جادوګر خلق مراد دی چه د خپلې ګمراهئ د وجې نه نه دا دوه سورتونه لوستلې شی اونه په دې باندې عمل کولې شی

② یا دې نه هغه باطل خلق مراد دی چه په خپله بې لارې کیدو فسق اوفجور او سستئ او مستئ کښې پراته وی د دوی د اوریدو سورتونو توفیق چرته وی.

**[۳۱] د قرآن پاك خپلو نیونکو دپاره شفاعت**

۳۱-(۱)[۱۳] [۱] وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سَمْعَانَ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] "«يُؤْتَى بِالْقُرْآنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۳] وَأَهْلِهِ الَّذِينَ كَانُوا يَعْمَلُونَ بِهِ [۴] تَقْدُمُهُ سُورَةُ الْبَقَرَةِ وَآلِ عِمْرَانَ [۵] كَأَنَّهُمَا غَمَامَتَانِ، [۶] أَوْ ظُلَّتَانِ سَوْدَاوَانِ بَيْنَهُمَا شَرْقٌ، [۷] أَوْ كَأَنَّهُمَا فِرْقَانِ مِنْ طَيْرٍ صَوَافَّ [۸] تُحَاجَّانِ عَنْ صَاحِبِهِمَا»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه**: [۱] نواس ابن سمعان رضی الله عنه وايي چې ما د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه اوريدلی دی [۲] چې د قيامت په ورځ به قرآن راوستل شي [۳] او هغه خلق چې قران يې ويلی او په هغه يې عمل کولی [۴] د قرآن په مخکی به دوه سورتونه سورة بقره او سورة آل عمران وی [۵] داسی لکه چې هغه د وريځی دوی ټکری دی [۶] يا د وريځی دوی توری ټکری دی او په هغه کی به روښنايي وي [۷] يا داچی دصف ترلی مارغانو دوې ټولی دی [۸] چې د ويونکو دطرف څخه به جګړه کوی (يعنی دخپلو ويونکو به سفارش کوی)

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها /باب فضل قراءة القرآن وسورة البقرة(رقم-۲۵۳ - (۸۰۵) کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی سورة آل عمران (رقم-۲۸۸۳) واحمد فی المسند: ۳۶۱/۵

**حل اللغات** ① غَمَامَتَانِ: أَيْ سَحَابَتَانِ: د اوريځې دوه ټکړې چه سورې به نې جوړ کړې وی ② ظُلَّتَانِ: د اوريځې سورې، ③ سَوْدَاوَانِ: اوريځې چه کله قط په قط شی او ګنړې شی نو دهغې سورې مزيدار او زړه خوشحالونکې وی دلته دغه مراد دی ④ شَرْقٌ: أَيْ ضَوْءٌ: رنړا، نور ⑤ فِرْقَانِ: أَيْ طَائِفَتَانِ: دَ فرقة تشنيه ده، دَ فرق وفرقة تشنيه فرقان دې، دَ مرغو دوه سيلونه مراددی دَ کوم په وجه چه په سربانديې سورې کيږی ⑥ صَوَافٌ: دَ صافة جمع ده مرغوسره چه کله مرغئ قطار جوړکړی په هوا کښې اوديږی يا وزرې خورې کړی يوبل سره نزدې نو هغې ته صواف وائی ⑦ تُحَاجَّانِ: أَيْ تُدَافِعَانِ الْجَحِيمَ أَوْ تُجَادِلَانِ وَتَخْتَصِمَانِ: يا دا معنی چه دواړه سورتونه به د جهنم نه بچ کول کوی يا دا معنی چه دوی جګړه کوی دالله سره په باره ددې بنده کښې

**تسهيلات:**

**قوله: يُؤْتَى بِالْقُرْآنِ:**

يعنی بعينه قرآن بـه راوستلې شی يابـه دَدې ثواب پيش کولې شی او پـه دې بانـدې عمل کونکی به دَهغوی ثواب سره حاضرولې شی

**قوله: بَيْنَهُمَا:**

**دَ بينهما وضاحت:** يعنی اوريځې خوبه ډيرې ګنړې وی خودَدې په مينځ کښې بـه يـوبرق وی دَ کوم په وجه چه به په مزيداره رنړا کښې هيڅ کمې نه راځی او وېرونکې تيـاره بـه نـه وی. علامه طيبی رحمه الله او نور علماء فرمائی چه دَ شرق معنی دَ فرق ده يعنی دَ اوريځـودَ دغـه ټکړو په مينځ کښې به يوبرقيدونکې فاصله وی يعنی بسم الله به ذکروی دَ کوم پـه وجـه چه په دواړو سورتونو کښې فرق او جدائی معلوميږی. الکاشف: ۴/۲۷۵.

**[۳۲] دقرآن د ټولو څخه عظيم آيت**

۲۰۳۳ – (۱)[۱۳] ① وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «يَا أَبَا الْمُنْذِرِ أَتَدْرِي أَيُّ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ - تَعَالَى - مَعَكَ أَعْظَمُ؟ ③ قُلْتُ: اللّٰهُ وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ ④ قَالَ: "يَا أَبَا الْمُنْذِرِ أَتَدْرِي أَيُّ آيَةٍ مِنْ كِتَابِ اللّٰهِ - تَعَالَى - مَعَكَ أَعْظَمُ؟ ⑤ " قُلْتُ: ﴿اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ﴾ [البقرة: ۲۵۵]، ⑥ قَالَ: فَضَرَبَ فِي صَدْرِي وَقَالَ: ⑦ لِيَهْنِكَ الْعِلْمُ يَا أَبَا الْمُنْذِرِ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ".

**ترجمه** ① ابی ابن کعب رضی الله عنه وایې چې (یو خل) ماته رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② چې ای ابوالمنذر (دا د ابی ابن کعب رضی الله عنه کنیت دی) آیا تاته معلومه ده چې ستا په نزد د کتاب الله کوم آیت د ټولو څخه عظیم (لوی) دی؟ ③ ما عرض وکړی چې الله جل جلاله او د هغه رسول صلی الله علیه وسلم د ټولو څخه زیات پوهیږی (چې هغه کوم آیت دی) ④ نبی کریم صلی الله علیه وسلم

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها باب فضل سورة الکهف، وآیة الکرسی (رقم -۲۵۸ - (۸۱۰) کتاب الصلاة باب السجود فی (رقم -۱۴۱۰) واحمد فی المسند ۱۴۲/۵

پوښتنه وکه چې اې ابوالمنذر! تاته معلومه ده چې ستا په نزد د کتاب الله کوم آیت د ټولو څخه لوی دی؟ [۵] ما اوویل چې اَللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ (یعنی پوره آیت کرسی) [۶] ابی ابن کعب رضي الله عنه وایي چې (دی آوریدو سره) نبی کریم صلی الله علیه وسلم خپل لاس مبارك زما په سینه ووهلی او ویې فرمایل [۷] چې اې ابوالمنذر! الله دی ستا په علم کې برکت واچوی، مسلم

**حل اللغات:** ① أَعْظَمُ: أَيْ أَعْظَمُ ثَوَابًا: لوئي آیت په لحاظ د اجر او ثواب سره ② لِيَهْنِكَ: أَيْ لِيَكُنِ الْعِلْمُ هَنِيْئًا لَكَ: الله دې تاته علم آسان کړی، الله دې ستا په علم کښې برکت واچوی

**تسهیلات:**

**قوله: لِيَهْنِكَ:**

دا صیغه دَهمزه سره هم لوستلې شوې ده او العلم په هرصورت کښې دَدې فاعل دې ای لیکن العلم هنیئاًلك. دَ باب سمع اوفتح دواړو نه اهل لغت استعمال کړې دې. عرب چه کله دَ یوماشوم په پیدا کیدو باندې مبارکی ورکوی نو وائی لیهنك الولد.

**قوله: لِيَهْنِكَ الْعِلْمُ:**

**په صحیح جواب ورکولو دوه اعزازات ملاویدل:** ابوالمنزر رضي الله عنه دَ حضرت ابی بن کعب کنیت دې دَ شان والاصحابه کرامو نه دَ ټولو لوئی قاری وو. حضورپاك دَامتحان په توګه دَهغه نه پوښتنه اوکړه چه قرآن کریم کښې دَ ټولونه لوئی ایت کوم یودې. په دې باندې هغوی اوفرمائیل آیت الکرسی دَ ټولونه لوئی آیت دې. حضورپاك دَخپل شاګردپه صحیح جواب باندې دوه اعزازه ورکړل

① یودَ اعزازپه توګه دَهغوی رضي الله عنه په سینه باندې خپل لاس مبارك اووهلو چه شاباش

② دویم اعزازی نمبرې ورکوولوسره اوفرمائیل چه تاته دې ستا علم مبارك شی. دَدې حدیث نه دَ مدرسودَ طالبانو دَ امتحاناتو او په هغې باندې نمبرې اوانعامات ورکولوثبوت ملاویږی.

**په اول ځل د جواب نه ورکولو وجه:** حضرت ابی رضي الله عنه یوځل دَ جواب ورکولونه ډډه اوکړه چه کیدې شی حضورپاك صرف متوجه کول غواړی اوبخپله جواب ورکول غواړی لکه چه عام عادت مبارك نې هم دغه شان وولیکن چه کله حضورپاك په دویم ځل تپوس اوکړو نو حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه ته اندازه اوشو: چه دا واقعی سوال دې نوبیانې جواب ورکړو. دَ ادب لحاظ نې هم اوساتلو اوجواب نې هم صحیح ورکړو. په اسلامی مدارسو کښې دَ امتحانی نظام ثبوت او بیا په پاس کیدوباندې دَ اعزاز او اکرام په توګه انعام ورکولودَپاره داحدیث دلیل دې. الکاشف ۴/۲۷۵.

[۳۰۳] د آية الكرسي عظمت او د حضرت ابوهريره رضي الله عنه او ابليس لعين واقعه

۳۰۳ -(۱۵)[۱] «وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: [۲] وَكَّلَنِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بِحِفْظِ زَكَاةِ رَمَضَانَ، [۳] فَأَتَانِي آتٍ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ [۴] فَأَخَذْتُهُ وَقُلْتُ: لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵] قَالَ: إِنِّي مُحْتَاجٌ وَعَلَيَّ عِيَالٌ وَلِي حَاجَةٌ شَدِيدَةٌ، [۶] قَالَ: فَخَلَّيْتُ عَنْهُ فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : [۷] "يَا أَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ الْبَارِحَةَ؟" [۸] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَعِيَالًا [۹] فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ،

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي [۲] چې رسول الله ﷺ د رمضان د زكات (يعنې د صدقه الفطر) په نګرانۍ او جمع كولو باندې زه مامور كړم (چې د جمع كيدو څخه روسته هغه په فقراء باندې تقسيم كې) [۳] نو (په دې وخت كې) يو سړى ماته راغلو او خپلو لاسونو سره (په خپله لمن او خپل لوښي كې) غله د كول شروع كړه [۴] ما هغه ونيوى ورته مې اوويل چې زه تا رسول الله ﷺ ته وړولم (چې تا ته د دې غلط كار سزا دركې) [۵] هغه اوويل چې زه يو محتاج يم زما په ذمه د اهل وعيال نفقه ده اوه زه سخت حاجت مند يم (يعنې زما په ذمه قرض وغيره هم شته) [۶] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې ما (د هغه دريدره حالت اوريدو سره) هغه پريښودلو چې سحر شو رسول الله ﷺ ماته وفرمايل [۷] چې اې ابوهريره رضي الله عنه ستا د تيرى شپې د قيدى څه وشو؟ (الله تعالى ﷻ نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته د دې واقعې خبر وركړى وو) [۸] ما عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ هغه ماته د خپل سخت حاجت او عيالدارۍ ژړا وكړله [۹] نو زما پرې رحم راغلو او ما هغه پريښودلو

**حل اللغات**: ① يَحْثُو: أَيْ يَغْرِفُ: د كې د كې لپې نې اخستلې. ② لَأَرْفَعَنَّكَ: أَيْ وَاللَّهِ لَأَذْهَبَنَّ بِكَ: ددې نه مراد مقدمه پيش كول دى حاكم ته يعنې چه زه به تا خامخا بوځم ③ عِيَالٌ: بال بچ، دچا نفقه چه په انسان لازم وى ④ فَخَلَّيْتُ: لازمي ورته پريخوده يعنې خلاص مې كړو ⑤ الْبَارِحَةَ: أَيِ اللَّيْلَةَ الْمَاضِيَةَ: تيره شپه

[۱] قَالَ: أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَسَيَعُودُ" [۲] فَعَرَفْتُ أَنَّهُ سَيَعُودُ لِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَرَصَدْتُهُ، فَجَاءَ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ [۴] فَأَخَذْتُهُ وَقُلْتُ: لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵] قَالَ: دَعْنِي فَإِنِّي مُحْتَاجٌ وَعَلَيَّ عِيَالٌ لَا أَعُودُ [۶] فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ، [۷] فَأَصْبَحْتُ فَقَالَ لِي رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : "يَا أَبَا هُرَيْرَةَ مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ؟ [۸]" قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ شَكَا حَاجَةً شَدِيدَةً وَعِيَالًا [۹] فَرَحِمْتُهُ فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ،

**ترجمه** [۱] نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې خبردار وسه هغه (د خپل حالات په

[۱] ) اخرجه البخاري في كتاب الإجارة/باب إذا وكل رجلا. فترك الوكيل شيئا فأجازه الموكل فهو جائز. وإن أقرضه إلى أجل مسمى جاز (رقم-۲۳۱۱)

اظهار کې: تا ته دروغ ویلي دی، هغه به بیا راځي ،ځکه د آئنده د پاره خیال ساته [۲] زه پوهه شوم چې ضرور راځي ،ځکه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دی چې هغه به بیا راځي [۳] نو زه د هغه منتظر ووم، هغه راغلو او خپل دواړه لاسونو سره یې غله ډکول شروع کړل [۴] ما هغه ونیوی ورته مې اوویل چې اوس به دې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته بیایم. [۵] هغه اوویل چې ما پرېږده زه ضرورت مند یم. زما په ذمه دکور نفقه ده بیا آئنده به نه راځم [۶] زما پرې رحم راغلو نو ماپرېښودلو ،او دا ځل مې دا سلوك ورسره ځکه وکړ چې هغه آئنده د نه راتلو وعده وکړله کنی د هغه د حاجت او ضرورت په باره کې د هغه دروغ د مخبر صادق یعنی د نبی کریم صلی الله علیه وسلم زباني معلوم شوی وو [۷] چې صبا شو نو رسول الله ﷺ ماته وفرمایل چې اې ابوهریره رضي الله عنه ستا د قیدي څه وشو؟ [۸] ما عرض وکړو یا رسول الله ﷺ هغه زما مخکې د خپل ضرورت او حاجت او عیال داری آورولو سره په ژړا شو [۹] ځکه زما پرې رحم راغلو نو (ما هغه د بیا نه راتلو په وعده) پرېښودلو

**حل اللغات:** ① سَيَعُودُ: بیا به راځي، ⑥ فَرَصَدْتُهُ: أي انتظرته وراقبته: دچا په انتظار او تعاقب کښې کېناستلو ته وائي. ⑧ دَعْنِي: أي اتركني: ما پرېږده.

[۱] فَقَالَ: " أَمَا إِنَّهُ قَدْ كَذَبَكَ وَسَيَعُودُ " [۲] فَعَرَفْتُ أَنَّهُ سَيَعُودُ لِقَوْلِ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] فَرَصَدْتُهُ فَجَاءَ فَجَعَلَ يَحْثُو مِنَ الطَّعَامِ [۴] فَأَخَذْتُهُ وَقُلْتُ: لَأَرْفَعَنَّكَ إِلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۵] وَهَذَا آخِرُ ثَلَاثِ مَرَّاتٍ إِنَّكَ تَزْعُمُ لَا تَعُودُ ثُمَّ تَعُودُ [۶] قَالَ: دَعْنِي أُعَلِّمْكَ كَلِمَاتٍ يَنْفَعُكَ اللهُ بِهَا [۷] إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ " ﴿اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ﴾ [البقرة:۲۵۵] " حَتَّى تَخْتِمَ الْآيَةَ

**ترجمه** [۱] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هوښیار اوسه هغه (دا ځل هم) تا ته دروغ ویلي دی (چې زه به آئنده نه راځم) هغه بیا راځي [۲] زه پوهه شوم چې ضرور راځي ،ځکه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دی چې هغه به بیا راځي) [۳] نو زه د هغه منتظر وم چې هغه بیا راغلو هغه چې غله ډکول شروع کړل [۴] نو ما هغه ونیولی ورته مې اوویل چې نن دی ضرور رسول الله ﷺ ته بیایم [۵] دا آخری دریمه موقع ده، تا خو ویلي وو چې آئنده به بیا نه راځم (ځکه هغه ځل ما ته پرېښودلو)، خو ته بیا راغلې [۶] هغه اوویل چې ما پرېږده زه به درته داسې کلمات وښایم چې الله تعالی ﷻ به د هغه په وجه تا ته نفع ورسوی [۷] (او هغه دا چه) هر کله چې ته بسترې ته د اوده کیدو د پاره ځې آیة الکرسی اَللهُ لَا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ آخری آیت (یعنی وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيمُ) پوری اوو ئیلو

**حل اللغات:** ⑨ أَوَيْتَ: أي إذا قصدت: کله چه ته قصد اوکړې،

[۱] فَإِنَّكَ لَنْ يَزَالَ عَلَيْكَ مِنَ اللهِ حَافِظًا [۲] وَلَا يَقْرَبُكَ شَيْطَانٌ حَتَّى تُصْبِحَ [۳] فَخَلَّيْتُ سَبِيلَهُ فَأَصْبَحْتُ، [۴] فَقَالَ لِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " مَا فَعَلَ أَسِيرُكَ؟ [۵] " قُلْتُ: زَعَمَ أَنَّهُ يُعَلِّمُنِي كَلِمَاتٍ يَنْفَعُنِي اللهُ

بِهَا[٦] قَالَ: "أَمَا إِنَّهُ صَدَقَكَ وَهُوَ كَذُوبٌ[٧] وَتَعْلَمُ مَنْ تُخَاطِبُ مُنْذُ ثَلَاثِ لَيَالٍ؟" قُلْتُ: لَا[٨] قَالَ: "ذَاكَ شَيْطَانٌ» رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [١] د الله تعالى ﷻ د طرف ځخه به ستا سره همیشه یوه نګهبان (فرښته) وي[٢] او سحر پورې تاته هیڅ شیطان (که هغه انسان ځخه وي یا جنات ځخه دیني یا دنیاوي تکلیف رسولو د پاره) نه راځي [٣] ما (دې آوریدو سره، هغه دا خل هم پرېښودلو چې سحر شو [٤] نو رسول الله ﷺ بیا ماته وفرمایل چې ستا د قیدي څه وشو؟ [٥] ما عرض وکړو کله چې قیدي ماته دا اوویل چې ماته به داسې کلمات وښایې چې د هغه په وجه به الله تعالى ﷻ ماته نفع ورسوي (نو دا خل هم ما هغه پرېښودلې) [٦] نبي کریم صلى الله علیه وسلم وفرمایل چې اګاه شه اګر که هغه د دې کلماتو په باره کې تاته رښتیا ویلي دي خو هغه په خبرو کې دروغجن دی [٧] او تاته معلومه ده چې ته په دې درې شپو کې د چا سره مخاطب وې؟ ما اوویل چې نا، [٨] نبي کریم صلى الله علیه وسلم وفرمایل چې هغه شیطان وو (چې د داسې مکر او فریب سره د صدقات په مال کې کمې ویلو د پاره راغلو وو) بخاري.

**حل اللغات:** ⑩زَعَمَ: خیال کوي، دهغه ګمان دې.

**تسهیلات:**

**قوله:** إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَاقْرَأْ آيَةَ الْكُرْسِيِّ:

**آیة الکرسي د حفاظت عظیمه قلعه:** حضرت ابوهریره ﷺ رسول الله ﷺ دَ صدقاتو په مالونو باندې څوکیدار مقرر کړې وو یوه شپه غل راغلو او غله ئې اوچتوله حضرت ابوهریره ﷺ اونیولو هغه منتونه کول هغوی دې پرېخودو حضورپاك ته الله تعالى دَ وحي په ذریعه خبر ورکړو چه داسې واقعه شوې حضورپاك ابوهریره ﷺ ته اوفرمائیل چه غل به بیا راځي دا ورته هم دَ وحي په ذریعه اوخودلې شو الغرض دریو ورځو پورې دا سلسله روانه وه بیا هغه غل حضرت ابوهریره ﷺ ته دَمال دَحفاظت دَپاره یوه وظیفه اوخودله چه دَ اوده کیدو په وخت آیت الکرسي وایه زما په شان غل به نه راځي حضورپاك دَ دغه وظیفې دَ افادیت تصدیق اوکړو اودا ئې هم ورته اوخودل چه دریو ورځو پورې ستا واسطه ابلیس سره وه دې حکایت نه هرمسلمان له پکار دي چه آیت الکرسي دَ هر مسلمان دَپاره دَ خان اومال دَ حفاظت لویه قلعه ده

**[۳۳۳] دَ سورت فاتحه او آیت امن الرسول فضیلت**

۳۳۳-(١)[١٢] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: [٢] «بَيْنَمَا جِبْرِيلُ - عَلَيْهِ السَّلَامُ - قَاعِدًا عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] سَمِعَ نَقِيضًا مِنْ فَوْقِهِ فَرَفَعَ رَأْسَهُ فَقَالَ: [٤] "هَذَا بَابٌ مِنَ السَّمَاءِ فُتِحَ الْيَوْمَ لَمْ يُفْتَحْ قَطُّ إِلَّا الْيَوْمَ" [٥]

---

[١] اخرجه مسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب فضل الفاتحة. وخواتيم سورة البقرة. والحث على قراءة الآيتين من آخر البقرة (رقم-٢٥٤) - (٨٠٦) كتاب الافتتاح/باب فضل فاتحة الكتاب (رقم-٩١٢)

فَنَزَلَ مِنْهُ مَلَكٌ فَقَالَ: [۶] " هٰذَا مَلَكٌ نَزَلَ إِلَى الْأَرْضِ لَمْ يَنْزِلْ قَطُّ إِلَّا الْيَوْمَ [۷] فَسَلَّمَ فَقَالَ: أَبْشِرْ بِنُورَيْنِ أُوتِيتَهُمَا [۸] لَمْ يُؤْتَهُمَا نَبِيٌّ قَبْلَكَ فَاتِحَةُ الْكِتَابِ وَخَوَاتِيمُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ [۹] لَنْ تَقْرَأَ بِحَرْفٍ مِنْهُمَا إِلَّا أُعْطِيتَهُ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] د ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دی [۲] چې يوه ورځ جبرائيل عليه السلام او نبی کريم ﷺ سره ناست وو[۳] نو جبرائيل عليه السلام پورته طرف څخه د د روازی خلاصيدلو آواز واوريدلو هغه خپل سر اوچت کړو او وی ويل [۴] چې د آسمان هغه دروازه کولاو شوی ده چې د نن څخه علاوه هيڅ کله دا دروازه کولاو شوی نه وه [۵] نو دهغه دروازی څخه هغه فرشته راخکته شوه جبرائيل عليه السلام اوويل [۶] چې دا فرشته د نن څخه مخکې هيڅ کله زمکی ته نه ده راخکته شوی،[۷] بيا هغه فرشتي نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته سلام وکړو هغی اوويل چې تا ﷺ ته دی زيری وی چې تاته ﷺ هغه دوه نوره درکړل شوی دی [۸] چې ستا څخه مخکې بل يو نبی ته نه دی ورکول شوی او هغه سورة فاتحه او د سورة بقره آخری حصه ده [۹] د هغه څخه ستاسو د طرف څخه د ويلي شوو يو يو حرف په عوض کی به تاسو ته ثواب حاصليږی يا ستا دعا به قبوله شی. مسلم

**حل اللغات:** ① نقيضًا: أَيْ صَوْتًا شَدِيدًا كَصَوْتِ نَقْضِ خَشَبِ الْبِنَاءِ عِنْدَ كَسْرِهِ: داهغه آوازته وائی چه د يوڅيزد کولاولو او بنديدلو يا ماتيدوسره پيداکيږی دلته د دروازې کولاويدلو آواز مراددې ② بِنُورَيْنِ: دوه رڼاګانې. دابه خپل صاحب ته رڼا کوی يا دا مطلب چه نيغه لار به ورته ښائی ③ خَوَاتِيمُ: د سورة البقره آخری آيتونه مرادی

**تسهيلات: قوله:** وَخَوَاتِيمُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ:

علماء کرامو ليکلی دی چه دې نه د سورت بقرې آخری درې آياتونه مراددی کوم چه د امن الرسول نه شروع کيږی هم دغه مشهوردی

**قوله:** أُعْطِيتَهُ: يعنی په هره يوه کلمه به ثواب ملاويږی اوهره کلمه کوم چه سوال دې د هغه سوال مطابق به انعام ورکولې شی مثلاً په سورت فاتحه کښې دی "اهدناالصراط المستقيم" او په امن الرسول کښې "ربنالاتواخذنا" دې وغيره

**[۲۳۵] د سورة بقره د آخری آياتونو فضيلت**

۲۳۵-(۱)[۱۷] [۱] وَعَنْ أَبِي مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«الْآيَتَانِ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْبَقَرَةِ مَنْ قَرَأَ بِهِمَا فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[1] ) اخرجه البخاری فی كتاب المغازی/باب شهود الملائكة بدرا(رقم-۴۰۰۸) ومسلم كتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب فضل الفاتحة، وخواتيم سورة البقرة، والحث على قراءة الآيتين من آخر البقرة (رقم-۲۵۵ - (۸۰۷) كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب ما جاء فی آخر سورة البقرة (رقم: ۲۸۸۱) كتاب إقامة الصلاة/باب ما جاء فيما يرجى أن يكفی من قيام الليل (رقم-۱۳۶۸)واحمد ۴/ ۱۱۸

**ترجمه** [۱] د ابو مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د شپې د سورة بقره آخری دوه آيتونه (يعنی د آمن الرسول څخه بيا تر آخری پوری) اووايي نو د هغه د پاره هغه کافی دی. بخاری مسلم

**حل اللغات**: ① كَفَتَاهُ: کافی کيږی، د کفی يکفی نه په معنی د دفع کولو او بې پرواه کولو

**تسهيلات**:

**قوله: مَنْ قَرَأَ بِهِمَا فِي لَيْلَةٍ كَفَتَاهُ**

**د کفايت په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① د کفتاه مطلب دا دې چې د دې دواړو آياتونو په شپه کښې لوستلو سره به د دې تالی د شپې د هر قسم ضرر او تکليف او جناتو وغيره څخه محفوظ وی د دې دواړو په وجه به الله تعالی د ده حفاظت کوی

② دا دواړه آياتونه به د ده دپاره د قيام الليل او د شپې د ذکر عباداتو څخه کافی شی يعنی الله تعالی به ده ته داسې ثواب ورکوی لکه چې ده شپه د الله په ذکر او عبادت کښې تيره کړه (مظاهر حق)

**[۲۳۰] د سورة کهف د ړومبو لسو آيتونه يادلو آثر**

۲۰۳۰-(۱)[۱۸] [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ سُورَةِ الْكَهْفِ [۳] عُصِمَ مِنَ الدَّجَّالِ»" رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] د ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د سورة کهف اولنی لس آيتونه په ياد کی [۳] نو هغه د دجال د شر څخه محفوظ کړل شو. مسلم

**حل اللغات**: ① عُصِمَ: محفوظ به شی. ② الدَّجَّالِ: دا د دجل نه ماخوذ دې د مبالغې صيغه ده. دهوکې او فريب ته وانی يعنی ډير زيات دهوکه ورکونکې او خلقو بانديې التباس او ګډ وډی راوستونکې

**تسهيلات**:

**قوله: مَنْ حَفِظَ عَشْرَ آيَاتٍ مَنْ أَوَّلِ سُورَةِ الْكَهْفِ:**

**په سورة کهف سره د دجال څخه د حفاظت وجه:** ځينې حضراتو د دې سبب دا ليکلې دې چې څوك د دې آيتونو په عجائباتو او نښو کښې تدبر کوی نو هغه به د دجال د فتنې نه محفوظ وی که دواړه جمع کړې شی نو بيا هم درست دی

---

۱) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب فضل سورة الكهف. وآية الكرسی (رقم-۲۵۷ - (۸۰۹) كتاب الترجل /باب خروج الدجال (رقم-۴۳۲۳) وسلم/باب ما جاء فی فضل سورة الكهف (رقم-۲۸۸۶) واحمد فی المسند: ۱۹۶/۵

**قوله عُصِمَ مِنَ الدَّجَّالِ:**

**د دجال تعريف:** ملا علي قاري رحمه الله ددجال تعريف داشان کړي دې هو الذي يخرج في آخر الزمان ويدعي الالوهية لخوارق تظهر على يديه، د جال هغه کس دې چې په آخرې زمانه کښې به راووزی او د الوهيت دعوى به کوی

**ددجال د فتنې د هيبت وجه:** دده په لاس به خرق عادت امور ظاهريږی لکه آسمان ته به اووائي چې باران اووروه نو باران به اووريږی زمکې ته به اووائي چې شينکې رازرغون کړه نو شينکې به رازرغون شي او دا ځيزونه به خلق په زياته فتنه کښې اچوی په دې وجه علماء کرامو وئيلی دی چې د دجال د فتنې نه لويه فتنه بله نشته دې په دې وجه دنياته چې کوم نبی ليږلې شوې دې هغه خپل امت ددجال نه ويرولې دې (مرقاة ج ۴ ص ۳۴۸)

**په روايتو کښې تعارض:** په دې حديث پاك کښې دلسو آيتونو ذکر دې چې کوم کس دا لس آيتونه ياد کړی نو الله ﷻ به دې د دجال د فتنې نه محفوظ کړی او د ترمذی شريف په روايت کښې دی چې کوم کس د سورة کهف ړومبی درې آيتونه ياد کړی نو هغه به ددجال د فتنې نه محفوظ وی نو په دې روايتونو کښې په ظاهره تعارض دې؟

**دتعارض جواب:** کوم کس لس آيتونه ياد کړی نو الله ﷻ به هغه هم د دجال د شر نه محفوظ کړی بې د فضل د وسعت په وجه چې کوم کس درې آيتونه وائي نو هغه به ددجال د فتنې نه محفوظ وی بعنوان آخر کوم کس چې لس آيتونه اووائی نو هغه به د دجال سره د ملاقات د فتنې نه بچ وی او څوك چې درې آيتونه لولی نو هغه به ددجال د فتنې نه محفوظ وی

**[۳۷] د سورت اخلاص فضيلت**

۲۰۳۰-(۱۹) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَقْرَأَ فِي لَيْلَةٍ ثُلُثَ الْقُرْآنِ؟ "[۳] قَالُوا: وَكَيْفَ يَقْرَأُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ؟[۴] قَالَ: " ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ۱] تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] د ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] آيا په تاسو کی يو سړی په يو شپه کی د دريمې حصې قرآن ويلو څخه عاجز دی؟ [۳] صحابه رضي الله عنهم عرض وکړی چې (يا رسول الله ﷺ) دريمه حصه قرآن څرنګه ويلی شی؟ [۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې قل هو الله احد د قرآن کريم د دريمی حصی برابر دی .کوم سړی چې د شپې دا سورت اووئيلو لکه چې هغه دريمه حصه قرآن کريم ووېلی، مسلم

**حل اللغات:** ① أَيَعْجِزُ: آيا عاجز دې؟ ② تَعْدِلُ: أَيْ يُسَاوِي: برابر دی

[۱] اخرجه مسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل قراءة قل هو الله احد (رقم-۲۵۹ - (۸۱۱) كتاب الصلاة/باب في سورة الصمد (رقم-۱۴۶۱) كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في سورة الإخلاص (رقم-۲۸۹۶) كتاب الافتتاح/باب الفضل في قراءة قل هو الله أحد (رقم-۹۹۶)

تسهيلات:

قوله: تعدل:

د سورة اخلاص د ثلث القرآن کيدو وجه: يعنې مساوي او برابر دی قرآن عظيم اصولی توګه باندې په دريو غټو مضامينو باندې مشتمل دی ① قصص ② احکام ③ توحيد ددې دريوارو مضامينونه سورت اخلاص په مکمل توګه په دريم مضمون باندې مشتمل دې په دې وجه دا د دريمې حصې د قرآن برابر دې يا مطلب دادې چه سورت اخلاص د ثواب په اعتبار سره د دريمې حصې قرآن د ثواب برابر دې.

۲۳۸—( )[۱۰] ⓵وَرَوَاهُ الْبُخَارِيُّ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ.

ترجمه ⓵ او امام بخاری رحمه الله دا روايت د ابو سعيد رضي الله عنه څخه نقل کړی دی.

[۲۳۹] د سورت اخلاص فضيلت

۲۳۹—( )[۲۰] ⓵وَعَنْ عَائِشَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- بَعَثَ رَجُلًا عَلَى سَرِيَّةٍ ⓶وَكَانَ يَقْرَأُ لِأَصْحَابِهِ فِي صَلَاتِهِمْ فَيَخْتِمُ بِقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ ⓷فَلَمَّا رَجَعُوا ذَكَرُوا ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ⓸فَقَالَ: "سَلُوهُ لِأَيِّ شَيْءٍ يَصْنَعُ ذَلِكَ" ⓹فَسَأَلُوهُ فَقَالَ: لِأَنَّهَا صِفَةُ الرَّحْمَنِ وَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَقْرَأَهَا، ⓺فَقَالَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "أَخْبِرُوهُ أَنَّ اللَّهَ يُحِبُّهُ» مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه ⓵ بی بی عائشه رضي الله عنها فرمايي چې نبی کريم صلى الله عليه وسلم يو سړی امير جوړولو سره د لښکر سره وليږلو ⓶ هغه سړی به په مانځه کې د خپلو ملګرو امامت هم کولو او د هغه معمول وو چې خپل قرات به يې په قل هوالله ختمولو ⓷ هر کله چې د لښکر هغه خلق واپس راغلل نو هغوی د هغه تذکره رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وکړه ⓸ نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغوی ته وفرمايل چې د دی سړی څخه معلومات وکړی چې هغه داسی ولی کوی؟ ⓹ د هغه څخه پوښتنه وشوه نو هغه اوويل چې زه داسی ځکه کوم چې په دی سورت کی د الله تعالی جل جلاله صفت او وحدانيت بيان شوي دي او زه دا خوښوم چې د الله تعالی جل جلاله د صفت دخاطره دا سورت هميشه وايم ⓺ (دی آوريدو سره، نبی کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دا سړی خبر کړی چې الله تعالی جل جلاله يې دوست لری (ځکه چې هغه الله تعالی جل جلاله دوست لری) بخاری مسلم

حل اللغات: ① سَرِيَّةٍ: أَيْ جَيْشٍ: لښکر ② يَصْنَعُ: کول به نې

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد باب ما جاء في دعاء النبي صلى الله عليه وسلم امته إلى توحيد الله تبارك وتعالى(رقم-۷۳۷٤)

[2] ) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد باب ما جاء في دعاء النبي صلى الله عليه وسلم امته إلى توحيد الله تبارك وتعالى(رقم-۷۳۷۵) كتاب الافتتاح باب الفضل في قراءة قل هو الله أحد (رقم-۹۹۳)

تسهيلات:

**قوله. فيختم:**

**د يختم په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① د دې لفظ زيات واضح مطلب دا دې چه دې سړی به د هر مونځ په آخرى رکعت کښې د فاتحه نه پس سورت اخلاص ونيلو

② علامه ابن حجر رحمه الله فرمائي چه د هر رکعت په آخر کښې به ئې سورت اخلاص ونيلو په دې صورت کښې د فقهاؤ لره شان اختلاف راخى چه آيا په هر رکعت کښې د يو سورت تکرار صحيح دې که نه؟ اول وضاحت زيات بهتر دې

**[۳۰-] د سورة اخلاص محبت جنت ته د داخليدو ذريعه**

|  |
| --- |
| ۲۱۳۰-(۲۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «إِنَّ رَجُلًا قَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ [۲] إِنِّي أُحِبُّ هَذِهِ السُّورَةَ ﴿قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ۱] [۳] قَالَ: "إِنَّ حُبَّكَ إِيَّاهَا أَدْخَلَكَ الْجَنَّةَ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَرَوَى الْبُخَارِيُّ مَعْنَاهُ. |

**ترجمه** [۱] د انس رضي الله عنه څخه روايت روايت دی چې يو سړی عرض وکړی چې يا رسول الله ﷺ [۲] زما د سورة قل هو الله احد سره محبت دی (يعنی دا اکثره وايم) [۳] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې د دی سورت سره ستا محبت به تا په جنت کی داخل کړی. ترمذی. امام بخاری رحمه الله دا روايت بالمعنٰی نقل کړی دی

تسهيلات:

**قوله:** إِنَّ رَجُلًا قَالَ

**د رجل په مصداق کښې دوه اقوال:**

① د دې نه مراد کلثوم دې دا قول اصح دې

② د ده نوم کرزم دې

**سوال:** امام طيبى رحمه الله فرمائي په دې حديث پاك کښې نبی کريم ﷺ فرمائی (إن حبك إياه أدخلك الجنة. يعنی دې سورة سره محبت کول به تا جنت ته داخل کړی حالانکه ماقبل حديث مبارك کښې (أخبروه أن الله يحبه) دی يعنی ده ته خبر ورکړئ چې الله تعالى ده سره محبت کوی په ظاهر تعارض دې؟

**دتطبيق جواب:** د حديث الباب والاجمله د ماقبل حديث مبارك ثمره ده چې کله الله ﷻ ده سره محبت کوی نو دې به جنت ته داخل کړی (مرقاة ج۴ص/ ۳۵۰) (التعليق الصبيح ج۳ص/۱۸)

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب صلاة الجماعة والإمامة/باب الجمع بين السورتين فى الركعة (رقم-۷۷۵) كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى سورة الإخلاص (رقم -۲۹۰۱)

## [۲۳۱] په معوذتینو ذدم کولو طریقه

۲۳۰-( )[۲۲][۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَلَمْ تَرَ آيَاتٍ أُنْزِلَتِ اللَّيْلَةَ لَمْ يُرَ مِثْلُهُنَّ قَطُّ [۳] ﴿قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ﴾ [الفلق: ۱] وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ» رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] د عقبیه ابن عامر رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] چې نن شپه داسې عجیبه آیتونه نازل شو چې د پناه طلب کولو په سلسله کې د دې څه جوړ نشته [۳] او هغه قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ او قُلْ اَعُوْذُ بِرَبِّ النَّاسِ دی. مسلم

**تسهیلات:**

**قوله: لَمْ يُرَ مِثْلُهُنَّ قَطُّ**

یعنی ددې دواړو سورتونو نه علاوه بل داسې سورت نشته دې چې لوستونکې د شرور: شر نه محفوظ اوساتی حضور علیه السلام به هم ددې دواړو سورتونو په ذریعه د پیریانو دشرورو او انسانانو د شر نه پناه غوښتله

**ابن مسعود او ابی بن کعب ته غلط نسبت:** ابن ملک رحمه الله فرمائی چې دا ددې خبرې دلیل دې چې معوذتین د قرآن حصه ده خینې بزرګانو د ابن مسعود رضی الله عنه او ابی بن کعب رضی الله عنه باره کښې ونیلی دی چې هغه دواړه حضرات ددې قائل وو چې دا دواړه سورتونه د قرآن پاك حصه نه ده دا غلط دی دا په هغوئ باندې الزام دې د رسول کریم ﷺ د بسم الله ذکر نه کولو نه دا معلومه شوه چې بسم الله د سورت جزء نه دې ددې دواړو سورتونو انکار که تاویل سره وی او که بغیر تاویل نه

**معوذتین لره د قرآن حصه نه منلو حکم:** خینې حضرات د داسې کس د باره مطلقا د تکفیر حکم کوی څوک چې معوذتین د قرآن حصه نه منی او په خینې فتاوؤ کښې به دې باره کښې اختلاف نقل کړې شوې دې لیکن صحیح دادی چې څوك دا عقیده ساتی چې دا د قرآن حصه نه ده نو دا کفر دې کما فی مفتاح السعادة (مرقاة ج/۴ص/۲۵۱)

## [۲۳۲] د شپې سورة اخلاص او معوذتین په بدن باندې چف کول

۲۳۲-( )[۲۳][۱] وَعَنْ عَائِشَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ كُلَّ لَيْلَةٍ [۲] جَمَعَ كَفَّيْهِ ثُمَّ نَفَثَ فِيهِمَا فَقَرَأَ فِيهِمَا ﴿قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ﴾ [الإخلاص: ۱] وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَقُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ [۳] ثُمَّ يَمْسَحُ بِهِمَا مَا اسْتَطَاعَ مِنْ جَسَدِهِ [۴] يَبْدَأُ بِهِمَا عَلَى رَأْسِهِ وَوَجْهِهِ وَمَا أَقْبَلَ مِنْ جَسَدِهِ [۵] يَفْعَلُ ذَلِكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ».

---

[۱] ) اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها /باب فضل قراءة المعوذتین (رقم-۲۶۴ - (۸۱٤) کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب ما جاء فی سورة الإخلاص (رقم-۲۹۰۲) کتاب الافتتاح /باب الفضل فی قراءة المعوذتین (رقم-۹۵٤)

[۲] ) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن /باب فضل المعوذات (رقم-۵۰۱۷) کتاب الزهد عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۲۴۰۲) کتاب الدعاء /باب ما یدعو به إذا أوی إلی فراشه (رقم-۳۸۷۵) وأحمد فی المسند: ۱۱۶/۶

مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ [٦] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ ابْنِ مَسْعُودٍ لَمَّا أُسْرِيَ بِرَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي بَابِ الْمِعْرَاجِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.

**ترجمه** [١] بی بی عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ به هره شپه چې خپل خای ته تللی [٢] نو د اوده کيدو څخه مخکې، خپل دواړه لاسونه يو ځای کولو سره به يې دم کول او بيا به يې په هغه قل هوالله قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس ويل [٣] او بيا به يې دواړه لاسونه په خپل بدن مبارك تر څو پوری چې به کيدی شو ګرځول [٤] مخکې به نبی کريم صلی الله عليه وسلم لاس ګرځوي خپل سر مخ او د بدن د مخکنی حصی څخه شروع کول د دی څخه روسته به يې د بدن په نورو حصو ګرځول [٥] نبی کريم صلی الله عليه وسلم به دا عمل يعنی ويل دم کول او په بدن باندی د لاسونو را تيره ول دري خله کول، بخاری مسلم [٦] اوزرده چې مونږ به د ابن مسعود رضی الله عنه حديث ذکرکړوڅه وخت چې رسول الله صلی الله معراج ته بوتلې شو په باب المعراج کښې انشاء الله.

**حل اللغات:** ① أَوَى: أَيْ أَتَاهُ: چه راتلو به، ② فِرَاشِ: بستره، ③ كَفَّيْهِ: تلی، د لاسونو دننه طرف، ④ نَفَثَ: إِخْرَاجُ رِيحٍ مِنَ الْفَمِ مَعَ شَيْءٍ مِنَ الرِّيقِ: نفث دم کولو ته وائی يعنی داسې پوک به نې کولو چه د خلې نه به نې پوکی سره معمولی شان لاړې مبارک هم تلې، ⑤ يَمْسَحُ: رابنکل به نې (دواړه لاسونه)

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَرَأَ فِيهِمَا:**

**په معوذتينو د دم کولو طريقه:** دا جمله دَدې نه مخکښې "ثم نفث فيهما" تفصيل اوتفسير دې يعنی حضورپاك به په خپلو دواړو لاسونو کښې معوذتين دم کول دَدې صورت به دا وو چه اول به حضورپاك ونيلو او بيا به نې په لاسونو باندې دم کول بيا به نې په خپل بدن باندې رابنکل په عربی محاوره کښې دا شان کلام شائع دې لهذا دَ يوراوی طرف ته ته دَ سهو يا غلطئی نسبت ضرور نه دې چه هغه "فقرأفيهما" مؤخر ذکرکړې دې او "ثم نفث" ئی اول ذکرکړې دې ﴿ فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللهِ ﴾ [النحل ۹۸] او ﴿ فَتُوبُوا إِلَى بَارِئِكُمْ ﴾ [بقره ۵۴] ﴿ فَاقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ ﴾ [بقره ۵۴] کښې هم داسې دی هلته به بيا څه کوئی؟ بهرحال مسلمانانو له پکاردی چه هغوی دې دَ دم کولو دا طريقه خپله کړی. دا دَ سحر اوجادو او نورو روحانی مرضونو علاج دې

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳] په قیامت کښې دعرش لاندې درې اهم څیزونه

۳۳ــ()[۲۳] [۱] عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ عَوْفٍ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] "«ثَلَاثَةٌ تَحْتَ الْعَرْشِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ الْقُرْآنُ يُحَاجُّ الْعِبَادَ لَهُ ظَهْرٌ وَبَطْنٌ [۳] وَالْأَمَانَةُ وَالرَّحِمُ [۴] تُنَادِي أَلَا مَنْ وَصَلَنِي وَصَلَهُ اللهُ [۵] وَمَنْ قَطَعَنِي قَطَعَهُ اللهُ» " رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه:** [۱] عبدالرحمن بن عوف رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ څخه نقل کوی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] د قیامت په ورځ به د عرش لاندی دری څیزونه وی ① یو خو قرآن چې د بنده ګانو سره به جنګ کوی او د قرآن د پاره ظاهر هم شته او باطن هم [۳] ② د عرش لاندی دویم څیز امانت وی ③ دریم څیز به رحم، [۴] قرابت یعنی رشته داری به وایې خبردار کوم سړی چې زه یو ځای کړم (یعنی زما د حق رعایت یې وکې په دی طور چې زما د احکامو د فرمانبرداری کوم حق چې په هغه دی هغه یې ادا کی) نو الله تعالیٰ ﷻ به هغه هم (د خپل رحمت سره) یو ځای کی [۵] او کوم سړی چې زه وشلولم (مات یې کړم) یعنی زما حق یې ادا نه کړې نو الله تعالیٰ ﷻ به هغه سړی هم مات کی (وشلوی) یعنی هغه ته به رحمت خاص نه متوجه کیږی، شرح السنه.

**حل اللغات:** ① يُحَاجُّ: أَيْ يُخَاصِمُهُمْ: چه هغوی سره به جنګ کوی (چاچه د دې نه مخ اړولي وی) ② ظَهْرٌ: أَيْ مَعْنًى ظَاهِرٌ: یعنی دقرآن ظاهری معنی چه تاویل ته حاجت نه لری، ③ بَطْنٌ: أَيْ مَعْنًى خَفِيٌّ: باطنی (پټه) معنی چه محتاج الی التاویل وی. ④ الرَّحِمُ: قرابت، رشته داری، ⑤ تُنَادِي: آواز به کوی، ⑥ وَصَلَنِي: چه زه ئې اوپاللم، ⑦ قَطَعَنِي: چه زه ئې پریکړم، اوئې شلولم (اوئې نه پاللم)

**تسهیلات:**

**قوله: ثَلَاثَةٌ-يَوْمَ الْقِيَامَةِ:**

**درې څیزونو ته د الله تعالی قرب حاصلیدل:** یعنی دې دریوڅیزونوته به دَ قیامت په ورځ دَالله تعالی قرب حاصل وی که دَعرش دَلاندې وی اوکه هرځائی وی.

① رومبې څیزقرآن دې چه هلته نه منونکونه لوستونکو او یا عمل نه کونکوسره به جګړه کوی اوحجب بازی به کوی "ظهروبطن" یعنی دَ قرآن کریم الفاظویوه ظاهری معنی ده او دویمه تاویلی معنی ده یا یوه ظاهری معنی ده چه ټول اهل اسلام په هغې پوهیږی اویوه باطنی معنی ده په کوم چه علماء باطن یا اهل تصوف پوهیږی. دَدې جملې توضیح اوتشریح په مکمل توګه باندې توضیحات اول جلد کښې اوګورئی.

[۱] ) اخرجه البغوی فی شرح السنة حدیث رقم: ۳۴۳۳

۲ دويم خيز امانتونه دي دكوم نه چه حقوق الله او حقوق العباد دواړه مراددي چه په قيامت كښې دانسان په مقابله كښې اودريږي

۳ دريم څيز خپلولي اوصله رحمي ده ذكوم ذجوړ ساتلوچه حكم دې ذ قيامت په ورځ به داهم شكايت كوي

**[۲۳۴] د حافظ قرآن په جنت كښې په درجو ختل**

۲۳۴-(¹)[۲۵] ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ " «يُقَالُ لِصَاحِبِ الْقُرْآنِ اقْرَأْ وَارْتَقِ ۳ وَرَتِّلْ كَمَا كُنْتَ تُرَتِّلُ فِي الدُّنْيَا، ۴ فَإِنَّ مَنْزِلَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَؤُهَا» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ۱ عبدالله ابن عمرو رضي الله عنهما روايي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د قيامت په ورځ به صاحب قرآن ته اوويل شي چې وايه او د جنت درجوته خيژه ۳ او په قلاره قلاره يي وايې څرنګه چې په دنيا كې تا په قلار قلار ويلې ۴ بس ستا منزل به په هغه آخرى آيت وى چې ته يې وايې، احمد ترمذى ابوداؤد نسائى.

**حل اللغات:** ۱ ارْتَقِ: خيجه (په مرتبو د جنت). ۲ رَتِّلْ: په قلار قلار وايه (جلتى مه كوه). ۳ مَنْزِل: مرتبه او مقام

**تسهيلات: قوله: فَإِنَّ مَنْزِلَكَ عِنْدَ آخِرِ آيَةٍ تَقْرَؤُهَا:**

**د جنت درجات د قرآنى آياتونو په برابر:**

دا محنت او خوارى نه ده بلكه داداسې ذآسانتى معامله ده لكه څنګه چه انسان په دنيا كښې سا اخلى يافرښتې تسبيح كوى. ونيلى شى چه ذ جنت ذ اوچتوالى هم دومره درجې دى څومره چه ذ قرآن پاك آياتونه دى. صاحب مظاهرحق ليكلى دى چه ذ قرآن ذ آياتونو شمير شپږ زره دوه سوا اووه ديرش دى. په دې حديث كښې ذ صاحب القرآن الفاظ راغلى دى ذ صاحب قرآن نه مراد هغه سړې دې چاچه قرآن ونيلې دې او په هغې باندې عمل هم كړې او هميشه ئى ذ دې تلاوت جارى ساتلې. علامه ابن حجر رحمه الله اوملاعلى قارى فرمائى چه دا مرتبه صرف حافظ قرآن سره خاص ده

**[۲۳۵] ذ قرآن څخه د خالى زړه مثال**

۲۳۵-(²)[۲۶] ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ " «إِنَّ الَّذِي لَيْسَ فِي جَوْفِهِ شَيْءٌ مِنَ الْقُرْآنِ ۳ كَالْبَيْتِ الْخَرِبِ» " ۴ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ.

---

¹) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب استحباب الترتيل فى القراءة (رقم-۱۴۶۴) والترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم،باب (رقم-۲۹۱۴) واحمد فى المسند: ۱۹۲/۲

²) اخرجه الترمذى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم،باب (رقم-۲۹۱۳) و احمد فى المسند ۲۲۳/۱

**ترجمه** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما رواي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د کوم سړی زړه چې د قرآن کريم څخه خالی وی ۳ نو هغه (یا د هغه زړه) د وران کور پشان دی. ۴ ترمذی دارمی، امام ترمذی رحمه الله وايي چې دا حديث صحيح دی

**حل اللغات:** ① جَوْفِهِ: أيْ قَلْبِهِ: دلته دجوف نه مراد زړه دي ② الْخَرِبِ: أيِ الخَرَابُ: وران، خراب

**تسهيلات:**

**قوله:** الَّذِي لَيْسَ فِي جَوْفِهِ شَيْءٌ مِنَ الْقُرْآنِ كَالْبَيْتِ الْخَرِبِ:

**د بې قرآنه زړه مثال:** قرآن پاك دَدي امت دَمسلمانانو ښائست دي كوم سړي چه دَدي نه محروم وی هغه دَ زينت اوښائست نه محروم دي اودَ هغه دَ باطن خانه خرابه ده اودا وران كنډر په شان دي په كوم چه څوك څوكيدار نه وی نو عيار اومكار دښمن كوم چه شيطان دي هغه په دي شاړه كښې بغيردَ څه خطرې او ويرې نه خپل خانې جوړ كړی

**[۳۳] په قرآن كښې د مشغوله كس ټول ضروريات پوره كيدل**

۳۳-() [۲۷] ۱ وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ "«يَقُولُ الرَّبُّ - تَبَارَكَ وَتَعَالَى - مَنْ شَغَلَهُ الْقُرْآنُ عَنْ ذِكْرِي وَمَسْأَلَتِي ۳ أَعْطَيْتُهُ أَفْضَلَ مَا أُعْطِي السَّائِلِينَ ۴ وَفَضْلُ كَلَامِ اللهِ عَلَى سَائِرِ الْكَلَامِ ۵ كَفَضْلِ اللهِ عَلَى خَلْقِهِ» " ۶ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ۱ د ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ الله بزرگ وبرتر فرمائی کوم سړی چې قرآن کريم زما د ذکر څخه او زما د غوښتنې څخه منع کی ۳ نو زه به هغه ته د هغه څيزونو بهتر ورکوم، کوم چې يې غوښتونکو ته ورکوم ۴ او د ټولو کلامونو په مقابله کی کلام الله ته هغه عظمت او بزرگی حاصله ده ۵ کومه چې الله رب العزت ته د هغه په ټول مخلوقاتو بزرگی او برتری حاصله ده (نو په قرآن کريم کی مشغوليدونکی ته په نورو څيزونو کی مشغوليدونکو باندی دغه شان برتری او بزرگی حاصليږی) ۶ ترمذی دارمی بيهقی، او امام ترمذی رحمه الله فرمايلی دی چې دا حديث حسن غريب دی

**تسهيلات:**

**قوله:** يَقُولُ الرَّبُّ:

**په قرآن كښې مشغوله كس ته دعا په ميدان كښې:** په دي جمله سره داحديث حديث قدسي جوړشو يعنی په تلاوت كښې مشغول سړي صرف تلاوت كوی او بل سړي په ډيره عاجزئی سره دَ الله تعالی نه مقدس مكان يا مقدس زمان كښې سوال كولوسره غواړی نو الله تعالی چه هغه ته كوم څه وركوی دَهغه نه زيات تلاوت كونكی ته وركوی

[1] اخرجه الترمذی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم /باب (رقم-۲۹۲۶)

**قوله: كَفَضْلِ اللهِ عَلَى خَلْقِهِ:**

**د تشبيه وجه:** ددې تشبيه حقيقت ته پوهيدل په انساني عقل نه شي رسيدلې داد تشبيه په دنيا كښې په تشبيهاتو كښې انتهاء ده يعنې د الله تعالى دكلام مقام د نورو په كلام باندې دومره اوچت دې لكه څنګه چه د الله تعالى شان د خپل مخلوق په مقابله كښې اوچت دې "وفضل كلام الله الخ" دا جمله حضورپاك ارشاد فرمانيلې يا زيات واضح او راجح هم دغه دى چه دا جمله دحديث قدسي حصه نه ده

**[۲۳۷] د قرآن د هر حرف په عوض باندې لس نيكئ**

۲۳۷-(۱)[۲۸] ۱ وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " ۲ «مَنْ قَرَأَ حَرْفًا مِنْ كِتَابِ اللهِ فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ، ۳ وَالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا، ۴ لَا أَقُولُ الٓمٓ حَرْفٌ، أَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيمٌ حَرْفٌ» " ۵ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه** ۱ ابن مسعود رضي الله عنه روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ كوم سړى چې د قرآن يو حرف اووايې نو د هغه د پاره د هر حرف په عوض كې يوه نيكى ده ۳ چې د لسو نيكيو برابره ده (يعنې د قرآن د هر حرف په عوض كې لس۱۰ نيكى حاصليږى) ۴ زه دا نه وايم چې ټول الم يو حرف دى بلكه الف يو حرف دى او لام هم يو حرف دى او ميم هم يو حرف دى (يعنې په الم ويلو كې ديرش نيكى ليكل كيږى) ۵ ترمذى دارمي. او امام ترمذى رحمه الله فرمائى چې دا حديث د سند د اعتبار څخه حسن صحيح غريب دى

**تسهيلات:**

**قوله: فَلَهُ بِهِ حَسَنَةٌ، وَالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا**

**دفرعون اوابليس په كلماتو هم د لسو نيكو ثواب ملاويدل:** دحديث مبارك حاصل دادې چې د قرآن كريم د يو حرف تلاوت باندې دلسو نيكو اجر ملاويږى داشان قرآن كريم كښې د ابليس او فرعون وغيره كفارو د نامو تلاوت باندې هم مذكوره حساب سره ثواب ملاويږى او يو حرف باندې دلسو نيكو ثواب د «مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا» پيش نظر ادنى ثواب دې الله تعالى پخپل فضل دا ثواب زياتولې هم شي «وَاللهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ ۗ وَاللهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ».

**[۲۳۸] قرآن كريم د هدايت سرچشمه**

۲۳۸-(۲)[۲۹] ۱ «وَعَنِ الْحَارِثِ الْأَعْوَرِ قَالَ: ۲ مَرَرْتُ فِي الْمَسْجِدِ فَإِذَا النَّاسُ يَخُوضُونَ فِي الْأَحَادِيثِ ۳ فَدَخَلْتُ عَلَى عَلِيٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - فَأَخْبَرْتُهُ ۴ قَالَ: أَوَقَدْ فَعَلُوهَا؟ قُلْتُ: نَعَمْ ۵ قَالَ: أَمَا إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ

---

[۱] اخرجه الترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فيمن قرأ حرفا من القرآن ماله من الأجر(رقم-۲۹۱۰)

[۲] اخرجه الترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فى فضل القرآن (رقم-۲۹۰۶)

اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-يَقُولُ: [۶] "أَلَا إِنَّهَا سَتَكُونُ فِتْنَةٌ" [۷] قُلْتُ: مَا الْمَخْرَجُ مِنْهَا يَا رَسُولَ اللّٰهِ؟

**ترجمه** [۱] حارث رحمه الله چې اعور (یعنی د کاڼړی سترګی والا) وو راوی دی [۲] چې زه (یو ورځ) د کوفی په مسجد کی ناستو خلقو ته ورغلم نو ما ولیدل چې هغه خلق په بیکاره او لایعنی خبرو (یعنی په قصو او حکایتو) کی مصروف دی (او هغوئ د قرآن مجید تلاوت وغیره پریښی دی)[۳] نو زه د حضرت علی په خدمت کی حاضر شوم او د هغوئ په باره کی می ورته وښودل [۴] نو هغه وفرمایل چې آیا هغوئ واقعی داسی کړی دی؟ (چې قرآن کریم وغیره یې پریښودلو سره په بیکاره خبرو کې مشغول دی؟) ما ورته اوویل چې هو.[۵] نو وی فرمایل چې (واوره) ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلی دی [۶] چې خبردار فتنه به واقع کیږی (یعنی په دینی فکرونو او عقائدو کی به اختلاف وی په اعمالو کی به سست روبی او ګمراهی پیدا شی او ګمراه خلق به د اسلام په نوم نوی مذاهب او د نظریاتو بنیاد کیږدی)[۷] ما عرض وکړو چې حضرت! ﷺ بیا د دی څخه دخلاصی لار یوه لار شته ؟

**حل اللغات:** ① يَخُوضُونَ: أَيْ يَدْخُلُونَ دُخُولَ مُبَالَغَةٍ: یعنی پوره پکښې مشغوله او بُخت پراته دی. ② أَوَقَدْ فَعَلُوهَا؟: آیا هغوی واقعی دغسې کړی دی (چه قرآن ئې پریخودې اویه نورو خبرو کښې مشغوله شوی دی؟) ③ الْمَخْرَجُ: أَيْ مَا طَرِيقُ الْخُرُوجِ: یعنی ددې نه د وتلو او خلاصون څه لار ده؟

[۱] قَالَ: "كِتَابُ اللّٰهِ فِيهِ نَبَأُ مَا قَبْلَكُمْ [۲] وَخَبَرُ مَا بَعْدَكُمْ [۳] وَحُكْمُ مَا بَيْنَكُمْ [۴] هُوَ الْفَصْلُ لَيْسَ بِالْهَزْلِ [۵] مَنْ تَرَكَهُ مِنْ جَبَّارٍ قَصَمَهُ اللّٰهُ [۶] وَمَنِ ابْتَغَى الْهُدَى فِي غَيْرِهِ أَضَلَّهُ اللّٰهُ. [۷] وَهُوَ حَبْلُ اللّٰهِ الْمَتِينُ [۸] وَهُوَ الذِّكْرُ الْحَكِيمُ [۹] وَهُوَ الصِّرَاطُ الْمُسْتَقِيمُ، [۱۰] هُوَ الَّذِي لَا تَزِيغُ بِهِ الْأَهْوَاءُ [۱۱] وَلَا تَلْتَبِسُ بِهِ الْأَلْسِنَةُ [۱۲] وَلَا يَشْبَعُ مِنْهُ الْعُلَمَاءُ [۱۳] وَلَا يَخْلَقُ عَنْ كَثْرَةِ الرَّدِّ، [۱۴] وَلَا يَنْقَضِي عَجَائِبُهُ،

**ترجمه** [۱] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې کتاب الله (یعنی د خلاصی لار په قرآن باندی عمل کولو سره کیږی) چې په هغه کې ستاسو څخه د مخکی خلقو (یعنی د تیرو اُومتونو) حالات هم دی [۲] او د هغه خبرو هم خبر ورکول شوی دی چې ستاسو څخه روسته واقع کیدونکی دی (یعنی د قیامت علامات او احوال)[۳] او په دی قرآن کی هغه احکام هم مذکور دی چې ستاسو په منځ کی ضروری دی (یعنی ایمان او کفر او طاعت او ګناه، حلال او حرام او د اسلام شرائع او په خپلو کی د ټولنې معاملاتو وغیره په باره کی احکام بیان شوې دي او یاد لره چې)[۴] دا قرآن د حق او د باطل په منځ کی (د خپل احکامو په ذریعه) فرق کونکی دی، هغه څه بیکاره او لا یعنی شی نه دی [۵] او دا هم په کولو غوږونو سره واوره چه) کوم متکبر قرآن پریښودلو الله تعالی ﷻ به هغه هلاک کی [۶] او کوم خلق چې د دی قرآن څخه علاوه (یو داسی کتاب او علم څخه چې نه دقرآن څخه مستنبط دی او نه د اسلامی شرائعو او نظریاتو مطابق دی) هدایت او رښا غواړی نو الله تعالی ﷻ به هغه ګمراه کړی [۷] قرآن د الله ﷻ مضبوطه رسی ده (یعنی د الله تعالی ﷻ د قرب او د هغه د

معرفت د نوتو ځخه قوی وسیله ده،[۸] قرآن باحکمت ذکر او بیان دی [۹] قرآن بالکل سیده وصف لاره ده چې په هغه تللو سره انسان د خپل اصلي پیدائش مقصد پیدا کوی،[۱۰] قرآن د هدایت هغه سرچشمه ده چې د هغه د اتباع په نتیجه کې خواهشات انسانی د حق ځخه د باطل طرف ته نه مایل کیږی،[۱۱] د دی د ژبی سره نوری ژبی نه ګروړې کیږی [۱۲] علماء د دی ځخه هیڅ کله نه مړیږی (یعنی علماء او مفسرین د دی په تولو علومو او معارفو باندی حاوی کیږی نه)[۱۳] قرآن مجید په ډیر تلاوت سره نه زړیږی [۱۴] او نه د دی عجائب ختمیږی

**حل اللغات**: ⑦ نَبَأ: خبر، حالات او احوال، تیری شوی زمانی سره متعلق اخبار مراد دی ⑤ خَبَرٌ: مستقبل سره متعلق لونی لونی واقعات مراد دی ⑥ الْهَزْلُ: لوبی توقي، بې مطلبه خبرې. ⑦ جَبَّارٍ: متکبر. ⑧ قَصَمَهُ: أَيْ أَهْلَكَهُ: هلاک به ئې کړی الله پاک قصم د ضرب یضرب نه دماتولو او ذره ذره کولو په معنی کښې دې یعنی الله تعالی به هغه ټکړې ټکړې کړی ⑨ حَبْلٌ: أَيِ الْوَسِيلَةُ الْقَوِيَّةُ: حبل رسی ته وائی دلته ترې دالله تعالی دمعرفت او دهغه د قرب مضبوطه وسیله مراد ده ⑩ الْمَتِينُ: أَيِ الْمُحْكَمُ الْقَوِيُّ: مضبوطه ⑪ لَا تَزِيغُ: أَيْ لَا تَمِيلُ عَنِ الْحَقِّ: نه مائل کیږی یعنی نه آوړی دحق نه باطل طرف ته ⑫ الْأَهْوَاءُ: د هوی جمع ده، خواهشات ⑬ وَلَا تَلْتَبِسُ: أَيْ لَا تَتَعَسَّرُ: ګران اومشکل به ورته نه لګی ⑭ لَا تَشْبَعُ: نه مړیږی ⑮ لَا يَخْلَقُ: مِنْ خَلِقَ الثَّوْبُ إِذَا بَلِيَ: د خلق یخلق نه په معنی د زړیدو سره. یعنی په بار بار د قرآن تلاوت او ددې فوائد بیانولو سره ددې خوند نه ختمیږی بلکه نور هم زیاتیږی ⑯ الرَّدِّ: مِنْ كَثْرَةِ التَّكْرَارِ: بار بار د قرآن تلاوت کولو ته وائی ⑰ لَا تَنْقَضِي: أَيْ لَا تَنْتَهِي: یعنی نه ختمیږی.

[۱] هُوَ الَّذِي لَمْ تَنْتَهِ الْجِنُّ إِذْ سَمِعَتْهُ حَتَّى قَالُوا: [۲] ﴿إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا - [۳] يَهْدِي إِلَى الرُّشْدِ فَآمَنَّا بِهِ﴾ [الجن: ۱-۲] [۴] مَنْ قَالَ بِهِ صَدَقَ، [۵] وَمَنْ عَمِلَ بِهِ أُجِرَ، [۶] وَمَنْ حَكَمَ بِهِ عَدَلَ، [۷] وَمَنْ دَعَا إِلَيْهِ هُدِيَ إِلَى صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ» [۸] "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ إِسْنَادُهُ مَجْهُولٌ وَفِي الْحَارِثِ مَقَالٌ.

**ترجمه** [۱] قرآن کریم هغه کلام دی چې پیریانو (جناتو) واوریدلو نو د یوې لمحې توقف کولو بغیر ئې اوویل [۲] چې مونږ قرآن واوریدلو [۳] چې د هدایت عجیبه لار ښايي نومونږ په دی ایمان راوړی [۴] (یاد لری، کوم سړی چې د قرآن مطابق اوویل هغه رښتیا اوویل [۵] او چا چې په دی عمل وکړی هغه به ثواب پیدا کوی (یعنی هغه اقوال او نظریات صحیح او قابل قبول دی چې د قرآن عین مطابق دی، دغه شان هدایت یافته هم هغه سړی دی چې هغه قرآن د هدایت سرچشمه بللو سره ورباندی عمل وکړی)[۶] کوم سړی چې د خلقو په منځ کی د قرآن مطابق فیصله او انصاف وکه [۷] او کوم سړی چې خلق په دی د ایمان راوړلو او په دی د عمل کولو طرف ته راوبلل هغه ته سیده لار ښودل شوی ده (یعنی هغه هدایت یافته دی)[۸] ترمذی دارمی، او امام ترمذي رحمه الله فرمایي چې د دی حدیث سند مجهول دی او د دی د راوی حارث اعور په باره کی کلام دی (یعنی د هغه په رښتینی کیدو کی شبه کول کیږی)

**حل اللغات**: ⑱ الرُّشْدِ: أَيْ طَرِيقِ الْحَقِّ: دهدایت او دحق لار

**تسهیلات**

**قوله "وَحُكْمُ"**

**د قرآن جامعیت:** دَزمانه حال فیصلې مراد دی نوقرآن عظیم دَ دریوارو زما نو احوال مسائل باندې مشتمل جامع کتاب دې

**قوله "هُوَالْفَصْلُ"**

**د فصل څخه مراد:** دَدې نه دَ قرآن آیت ﴿ إِنَّهُ لَقَوْلٌ فَصْلٌ ۝ وَمَا هُوَ بِالْهَزْلِ ۝ ﴾ [طارق ۱۴-۱۳] طرف ته اشاره ده

**قوله: مِنْ جَبَّارٍ:**

**په انسان باندې د جبار د اطلاق څخه مقصود:** دَ انسان دَپاره چه کله دَ جبار لفظ استعمالیږی په دې سره مذمت مقصود وی. ځکه دَ جبار نه دلته هغه متکبر اومنکر قرآن مراد دې چه نه هغه په قرآن باندې ایمان راوړې نه ئی دا وئیلې اونه ئی په دې باندې عمل کړې

**قوله: "لَا تَزِيغُ بِهِ الْأَهْوَاءُ"** یعنی کوم سړې چه دَ قرآن کریم تابعداری کوی او په هغې باندې تیک تیک تګ کوی نوهغه به کله هم نه ګمراه کیږی. دَ مختلف خیالاتو اونظریاتو خلق که چرې ځپل خیالات نظریات اومختلف خواهشات دَ قرآن تابع کړی نودَ ټولو خیالات به هم په یوحق باندې راجمع شی

بعضې علماؤ دا بیان کړې دې چه اهل اهوا دا قرآن دَ نیغې لارې صداقت دیانت داری نه اخوا دیخوا نه شی تاوولې داسې کوشش کونکی به پخپله په ککه لاړ شی لیکن په قرآن کښې هیڅ کمې نه شی پیدا کولې

**قوله: وَلَا تَلْتَبِسُ بِهِ الْأَلْسِنَةُ:**

**د عدم التباس په مطلب کښې دوه اقوال:**

① دَدې مطلب دادې چه قرآن هغه کتاب دې چه دَ یو ژبې والا په لغت سره دَدې لغت مشتبه کیدې نه شی بلکه دَ قرآن عظیم لغت فصاحت الو بلاغت کښې ممتاز دې اودَ دې اسلوب بنه ښکاره دی په کوم کښې چه دَ هیڅ التباس ګنجائش نشته دې

② یومطلب دا هم کیدې شی چه دَدنیا ټولې ژبې دَ قرآن وئیلو په وخت یو کیږی عجم اوعرب په یوه ژبه سره په عربی باندې رایوځائی کیږی هیڅ التباس نه پاتې کیږی

**قوله: وَلَا يَشْبَعُ مِنْهُ الْعُلَمَاءُ:** یعنی دَدې اوچت مضمونونه اوفصیح کلام اوعجیبه او حیرانونکی نکتې داسې دی چه په دې سره علماء مړیدې نه شی بلکه دَدې ناآشنا او عجیبه داسې بې مثال مرغلرې دی چه دَ دې په لټون کښې عمرونه خو ختمیدې شی لیکن دا جواهرات به باقی وی

**قوله** وَلَا يَخْلَقُ: دباب نصر او ضرب دواړونه د زړیدو په معنی کښې دي یعنی هرکتاب اوهرکلام بار بار ونیل اوتکرار کولوسره بې خونده او بې مزه کیږی او سړی د هغې نه ستړی کیږی لیکن د الله تعالی دا کلام چه څومره واینی نوهم دومره به دې سره شوق اوذوق خوند جمال اوکمال تازه کیږی

دغه شان چه داکلام دې څومره خور کړو څومره دې نورو ته واوړولو اودې ونیلو بل ته دې اوخودلو ددې په تکرار سره د دې خوشبوئی نوره هم خوریږی

**قوله**: لَمْ تَنْتَهِ الْجِنُّ: انتهاء د توقف په معنی کښې ده یعنی څنګه چه جناتو د الله تعالی دا کلام واوریدو نوهغوی د قسم توقف نه بغیراوونیل اوونیل ﴿ إِنَّا سَمِعْنَا قُرْآنًا عَجَبًا﴾ [جن ۱] "قال به" یعنی چاچه د قرآن په حواله سره خبره اوکړه هغه رښتیا اوونیل

**[۳۰] د حافظ قرآن مورپلار ته به تاج وریه سرکولی شی**

(۳۰) [۱] وَعَنْ مُعَاذٍ الْجُهَنِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ وَعَمِلَ بِمَا فِيهِ [۳] أُلْبِسَ وَالِدَاهُ تَاجًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۴] ضَوْؤُهُ أَحْسَنُ مِنْ ضَوْءِ الشَّمْسِ فِي بُيُوتِ الدُّنْيَا [۵] لَوْ كَانَتْ فِيكُمْ، فَمَا ظَنُّكُمْ بِالَّذِي عَمِلَ بِهَذَا؟» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] معاذ جهنی رضی الله عنه راوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې قرآن وایی او څه چې په هغه کې مذکور دی په هغه عمل کوی [۳] نو د قیامت په ورځ به د هغه مور او پلار ته تاج وریه سر کړیشی [۴] چې د هغه رڼا به د دنیا په کورونو کې د خلیدونکی نمر د رڼا څخه اعلی وی [۵] که (بفرض محال) ستاسو په کورونو کې نمر وی اوس تاسو خپله دهغه سړي په مرتبه پوهیدی شی چې هغه په قرآن باندی عمل کړی دی، احمد ابوداؤد

**حل اللغات**: ① أُلْبِسَ: وابه غوستولي شی، یعنی وریسر به کړي شی ② تَاجًا: تاج، ③ ضَوْؤُهُ: رڼا یعنی پرقا او خلا، ددې تاج

**تسهیلات**:

**قوله**: مَنْ قَرَأَ:

حافظ ابن حجر رحمه الله فرمائی چه دې قاری نه مراد حافظ قرآن دې په دې شرط چه هغه په دې باندې عمل کولوسره ددې حق اداکوی

**قوله**: لَوْ كَانَتْ فِيكُمْ: یعنی که چرې هغه نمرستاسو کورونوته دننه راشی اود هغې خوروالي او رڼا راغونده شی په یو خائی جمع شی اوهغه وخت دهغې رڼا ډیره زیاته تیزه شی نوددې نه به هم ددغه تاج رڼا زیاته وی بیابه پخپله د حافظ د قرآن اود عامل قرآن مقام څه وی؟

## [۲۳۰] د حافظ قرآن د جهنم څخه حفاظت

۲۳۰-( ) [۳۱] [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] "«لَوْ جُعِلَ الْقُرْآنُ فِي إِهَابٍ [۳] ثُمَّ أُلْقِيَ فِي النَّارِ مَا احْتَرَقَ» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمايي چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلی دی [۲] كه قرآن كريم په څه چمړه وغيره كې كيښودلې شي (بفرض محال) [۳] او بيا په اور كې واچول شي نو اُور ورباندې نه اثر انداز كيږي. دارمي

**حل اللغات**: ① إِهَابٍ: أَيْ جِلْدٍ: څرمن ② احْتَرَقَ: احتراق سوزيدلو ته وائي

**تسهيلات**:

**قوله**: فِي إِهَابٍ:

**د نه سوزيدو په مفهوم كښې دوه اقوال:**

① د دې جملې د مفهوم متعلق علامه طيبی رحمه الله او ملا علی قاری رحمه الله فرمائي چه دا احتمال هم شته چه د څرمن نه مراد هم غير رنګ كړې شوې څرمن وی او په هغې كښې قرآن عظيم اينغختې وی او په اور كښې واچولې شی نو اور به په دغه څرمن باندې څكه اثر نه كوی چه په هغې كښې قرآن پاك را اينغختې دې دا حضرات فرمائي چه دا د حضور پاك په زمانه كښې د رسول الله ﷺ معجزه وه او د حضور پاك معجزې سره خاص دی چه دا سې به كيدل [والكاشف ۲۰۲/۴]

② دلته د څرمن نه مراد مسلمان قاری او د حافظ زړه دې چه د قيامت په ورځ به د دوزخ اور د هغه په بدن باندې اثر نه كوی بلكه د قرآن عظيم په رحمت او بركت سره به اور لرې تختی لكه چه په يو حديث كښې نقل دی چه دوزخ به وائي "جز يامؤمن فان نورك اطفأ لهبي" دا مطلب زيات واضح دې

## [۲۳۱] حافظ قرآن او د لسو كهلوانو شفاعت

۲۳۱-( ) [۳۲] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فَاسْتَظْهَرَهُ [۳] فَأَحَلَّ حَلَالَهُ، وَحَرَّمَ حَرَامَهُ [۴] أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ [۵] وَشَفَّعَهُ فِي عَشَرَةٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِهِ [۶] كُلُّهُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ» " [۷] رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَالدَّارِمِيُّ، [۸] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَحَفْصُ بْنُ سُلَيْمَانَ الرَّاوِي لَيْسَ هُوَ بِالْقَوِيِّ يُضَعَّفُ فِي الْحَدِيثِ.

**ترجمه** [۱] حضرت علی رضی الله عنه راوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړی چې قرآن

---

( ) اخرجه الدارمی فی السند فی حديث رقم: ۳۳۱۰ واحمد فی السند ۱۵۵/۴

( ) اخرجه الترمذی فی كتاب فضائل القرآن من رسول الله صلی الله عليه وسلم باب ما جاء فی فضل قارئ القرآن (رقم ۲۹۰۵) واحمد فی السند ۱۴۸/۱

مجید اوونیلو او بیا یې یاد کې [۳] او د هغه حلال یې حلال او د هغه حرام یې حرام وګڼل [۴] نو الله تعالی ﷻ به هغه د ابتداء څخه، په جنت کې داخل کړي [۵] او د هغه به د هغه لسو عزیزانو په حق کې سفارش قبول کې [۶] چې مستوجب د دوزخ یعنی فاسق او د عذاب مستحق، وی. [۷] احمد ترمذی ابن ماجه دارمی. [۸] امام ترمذی رحمه الله فرمایي چې دا حدیث غریب دی، د دی یو راوی حفص بن سلیمان قوی نه دی بلکه په روایت حدیث کی ضعیف شمیرل کیږی

**حل اللغات:** ① فَاسْتَظْهَرَهُ: یاد ئې کړی او عمل پرې اوکړی ② شَفَّعَهُ: أَيْ قَبِلَ شَفَاعَتَهُ: سفارش ئې قبلولې شی

**تسهيلات: قوله: كُلُّهُمْ قَدْ وَجَبَتْ لَهُ النَّارُ**

**د حافظ شفاعت صرف د مسلمان رشته دار د پاره:** یعنی حافظ قرآن ته به دا اعزاز ورکولې کیږی چې هغه به دخپل خاندان نه د لسو اهل ایمانو سفارش کوی په کومو به چې جهنم واجب شوې وی کافر رشته دار ته به د حافظ قرآن سفارش هیڅ فائده نه رسوی کافر دپاره همیشه جهنم دې

**[۲۳۳] د سورة فاتحه عدم مثال**

(۲۳۳) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ: [۲] "كَيْفَ تَقْرَأُ فِي الصَّلَاةِ؟" [۳] فَقَرَأَ أُمَّ الْقُرْآنِ، [۴] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ [۵] مَا أُنْزِلَتْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْإِنْجِيلِ وَلَا فِي الزَّبُورِ وَلَا فِي الْقُرْآنِ مِثْلُهَا، [۶] وَإِنَّهَا سَبْعٌ مِنَ الْمَثَانِي [۷] وَالْقُرْآنُ الْعَظِيمُ الَّذِي أُعْطِيتُهُ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضی الله عنه وایي چې رسول الله ﷺ ابي ابن کعب رضی الله عنه ته وفرمایل [۲] چې په مانځه کې ته څه وایې؟ [۳] هغه اوویل چې سورة فاتحه [۴] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې قسم دی په هغه پاك ذات چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده [۵] دا سورت نه خو په تورات، انجیل، او نه په زبور کې نازل شوی دی او نه په قرآن کې د دی په مثل نازل شوی دی [۶] سورة فاتحه سبع مثانی دی یعنی اوه آیاتونه دی چې بار بار ویل کیږی [۷] او دا قرآن عظیم دی چې ماته راکړل شوی دی، ترمذی رحمه الله .

**حل اللغات:** ① أُمَّ الْقُرْآنِ: يَعْنِي الْفَاتِحَةَ: سورة فاتحه، ② السَّبْعُ: سبع اووه ته وائی په دې سورت کښې اووه آیاتونه دی څکه ورته السّبع وائی ③ الْمَثَانِي: دوه ځل نازل شوې وه څکه ورته مثانی وائی یا بار بار په مونځ کښې د لوستلو په وجه ورته مثانی وائی.

(۱) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل فاتحة الکتاب (رقم-۲۸۷۵) والنسائی فی کتاب الافتتاح/باب تاویل قول الله عز وجل: «ولقد آتیناک سبعا من المثانی والقرآن العظیم» [الحجر: ۸۷] (رقم-۹۱٤) واحمد فی المسند: ۲/۳۵۷

[۱] وَرَوَى الدَّارِمِيُّ مِنْ قَوْلِهِ: مَا أُنْزِلَتْ، وَلَمْ يَذْكُرْ أُبَيَّ بْنَ كَعْبٍ [۲] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** [۱] او دارمی رحمه الله دا روایت د ما أنزلت څخه نقل کړی دی او د هغه په روایت کې د ابی بن کعب رضی الله عنه ذکر نشته [۲] او امام ترمذی رحمه الله فرمایلی دی چې دا حدیث حسن صحیح دی

**تسهیلات**:

**قوله**: مَا أُنْزِلَتْ فِي التَّوْرَاةِ وَلَا فِي الْإِنْجِيلِ وَلَا فِي الزَّبُورِ

**دامت محمدی خصوصیت**: دا دامت محمدیه خصوصیت دې چې د دوی نه علاوه بل چا ته دا سورت نه دې ورکړې شوې اونه دا سورت په تورات انجیل او زبور کښې وو

**قوله**: وَإِنَّهَا سَبْعٌ مِنَ الْمَثَانِي:

**د کلمه من نحوی حیثیت**: من یا خو بیانیه دې یا تبعیضیه دې و القرآن العظیم د مبالغې په طور د کل په جز باندې اطلاق کړې شوې دې

**[۳۳] د مشکو او عنبرو ډیرې سره د حافظ قرآن تشبیه**

۳۳—() [۳۳] [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «تَعَلَّمُوا الْقُرْآنَ فَاقْرَءُوهُ، [۳] فَإِنَّ مَثَلَ الْقُرْآنِ لِمَنْ تَعَلَّمَ [۴] فَقَرَأَ وَقَامَ بِهِ [۵] كَمَثَلِ جِرَابٍ مَحْشُوٍّ مِسْكًا [۶] تَفُوحُ رِيحُهُ كُلَّ مَكَانٍ، [۷] وَمَثَلُ مَنْ تَعَلَّمَهُ [۸] فَرَقَدَ وَهُوَ فِي جَوْفِهِ [۹] كَمَثَلِ جِرَابٍ أُوكِئَ عَلَى مِسْكٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَةَ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضی الله عنه روایې دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] قرآن زده کړی وی وایې او یاد یې کړی [۳] د هغه سړی مثال چې قرآن زده کوی [۴] بیا هغه همیشه وایې (یا عمل په کوی، او په دی کې د مشغولیت د پاره (یعنی تلاوت وغیره)، د پاره شب بیداری کوی [۵] د هغه تهیلې په شان دی چې د مشک څخه ډکه وی [۶] چې د هغه خوشبو په ټوله مکان کې خوریږی [۷] او د هغه سړی مثال چې هغه قرآن زده کی [۸] او اوده شو (یعنی هغه د قرآن د تلاوت، د قرأت او شب بیداری څخه غافل پاتې شو (یا په هغه یې عمل ونه کی، [۹] د هغه تهیلی پشان دی چې هغه په مشک باندی ترلی شوی وی، ترمذی نسائی ابن ماجه

**حل اللغات**: ① قَامَ بِهِ: أَيْ دَاوَمَ عَلَى قِرَاءَتِهِ: شب بیداری کوی او قرآن پکښې لولی ② جِرَاب: تهیلی: ③ مَحْشُوّ: أَيْ مَمْلُوءٌ: چه ډکه وی. ④ مِسْكًا: مُشک. ⑤ تَفُوحُ: أَيْ تَظْهَرُ: خوریدل (د خوشبو) ⑨ فَرَقَدَ: أَيْ نَامَ: خملی یعنی اوده شی (د قرآن نه غافله شی) ⑥ جَوْفِهِ: أَيْ قَلْبِهِ: دلته دجوف نه مراد زړه دې ⑧ أُوكِئَ: د ایکاء نه دې تهیلی په رسۍ یا تسمه سره د ترلو په معنی کښې دې

) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل سورة البقرة وآیة الکرسی (رقم-۲۸۷۶) وابن ماجة فی کتاب فی الایمان وفضائل الصحابة والعلم/باب باب فضل من تعلم القرآن وعلمه (رقم-۲۱۸)

**تسهیلات:**

**قوله: "وقامبه"**

یعنی د قرآن د تلاوت دپاره شپه رونړه کوی

**د حدیث مطلب:**

مطلب دادې چه د حافظ قرآن په سینه کښې کوم مشك اوعنبر ډك کړې شوی دی کوم چه قرآن دې که هغه دا وائی نود دننه نه خوشبوئی بهرراتلوسره څلورو واړو طرفونوته خورېږی پخپله به هغه ته فائده وی اونورو ته به هم فائده وی لیکن که حافظ قرآن غافل کیدوسره اوده کیږی نود دننه خوشبوئی هم دننه بندیدوسره پاتې کیږی نه به هغه ته پخپله فائده وی اونه به بل چاته فائده وی

**[۳۳] د آیة الکرسی او د سورة مومن د ابتدائی آیتونو برکت**

(۳۵) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] «مَنْ قَرَأَ حم الْمُؤْمِنَ إِلَى إِلَيْهِ الْمَصِيرُ وَآيَةَ الْكُرْسِيِّ حِينَ يُصْبِحُ [۳] حُفِظَ بِهِمَا حَتَّى يُمْسِيَ، [۴] وَمَنْ قَرَأَ بِهِمَا حِينَ يُمْسِي [۵] حُفِظَ بِهِمَا حَتَّى يُصْبِحَ» [۶] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] ابو هریره رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې سحر وختی د حم (څخه) چې هغه سورة مؤمن دی تر الیه المصیر پوری او آیت الکرسی اووائي [۳] نو د هغه د برکته هغه تر مابنام پوری (د ظاهری او باطنی آفاتو او د بلاؤ څخه به) محفوظ وی [۴] او کوم سړی چې یې د مابنام په وخت کی اووائي [۵] نو د هغه د برکته به تر سحره پوری محفوظ وی. [۶] ترمذی دارمی. امام ترمذی رحمه الله فرمایلی دی چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** ① حُفِظَ: محفوظ به وی. ② يُمْسِيَ: أَيْ يَدْخُلُ اللَّيْلَ: یعنی شپه شروع شی

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ قَرَأَ حم الْمُؤْمِنَ إِلَى إِلَيْهِ الْمَصِيرُ وَآيَةَ الْكُرْسِيِّ**

**دمونځ پابندی، هغه بغیره وظیفې عدم فائده:** یعنی چاچې د سحر مونځ نه وراندې یا د سحر مونځ نه پس دا سورت اووئیلو نو هغه به تر مابنامه پورې د ظاهری او باطنی آفتونو او مصیبتونو نه محفوظ وی او که مابنام نې اووائی نو تر سحره پورې به محفوظ وی هیڅ یو عمل هم بغیر د مونځ دپابندئی نه فائده نه ورکوی دوظائفو دپاره دمونځ پابندی ضروری ده په دې وجه خلقو ته د وظیفې ورکولو په وخت کښې د مونځ د پابندی تاکید پکار دې

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب الحج عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی الخروج إلی منی والمقام بها (رقم-۸۷۹)

**[۳۰۵] دوه زره کاله وړاندې په لوح محفوظ کښې د قرآن لیکل**

د ۳۰۳-( )[۳۶] ۱ وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : ۲ «إِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ كِتَابًا قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفَيْ عَامٍ ۳ أَنْزَلَ مِنْهُ آيَتَيْنِ خَتَمَ بِهِمَا سُورَةَ الْبَقَرَةِ ۴ وَلَا تُقْرَآنِ فِي دَارٍ ثَلَاثَ لَيَالٍ ۵ فَيَقْرَبُهَا الشَّيْطَانُ» ۶ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ۱ نعمان ابن بشیر رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ الله تعالیٰ د زمکې او آسمان د تخلیق (پیدائش) څخه دوه زره ۲۰۰۰ کاله مخکې کتاب ولیکې (یعنی په لوح محفوظ کې یې فرشتو ته د لیکلو حکم ورکړی) ۳ د دې کتاب څخه یې هغه دوه آیتونه نازل کړل چې په هغه د سورة بقره اختتام کیږي (یعنی د آمَنَ الرَّسُوْلُ څخه بیا تر آخر د سورت پورې) ۴ دا آیاتونه چې په کوم مکان کې تر دریو شپو پورې اوویل شي ۵ شیطان هغه ته نږدې هم نه راځي. ۶ ترمذی دارمی، امام ترمذی رحمه الله فرمایي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:** ① فَيَقْرَبُهَا: چه نږدې راشي دغه (کور) ته

**تسهیلات:**

**قوله:** قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفَيْ عَامٍ

**د روایاتو کښې تطبیق:** امام طیبی رحمه الله فرمائي چې د مخلوقاتو تقدیر د دوئ د پیدائش نه پنځوس زره کاله اګاهو لیکلې شوې دې او د قرآن کریم تحریر دوه زره کاله آګاهو اولیکلې شو لهذا په روایاتو کښې تعارض رانغلو داشان په کوم کور کښې چې د سورة بقره آخری آیتونه (آمن الرسول) نه تر آخره پورې تلاوت کړې شي نو شیطان ابلیس هغه کور ته ددې آیتونو په برکت سره درې ورځو پورې نه شي داخلیدې. یعنی هغه کور کښې دا آیتونه او شیطان نه شي جمع کیدې

**[۳۰۶] د سورة کهف د دریو آیاتونو برکت**

۲۰۳۶-( )[۳۷] ۱ وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : ۲ «مَنْ قَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ الْكَهْفِ ۳ عُصِمَ مِنْ فِتْنَةِ الدَّجَّالِ» ۴ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** ۱ او ابو درداء رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړی چې د سورة کهف ابتدائی درې آیتونه وایي ۳ هغه به د دجال د فتنې څخه ساتل کیږي. ۴ امام ترمذی رحمه الله دا روایت نقل کړی دی او ویلی یې دی چې دا حدیث حسن صحیح دی

**حل اللغات:** ① عُصِمَ: محفوظ به شي

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی آخر سورة البقرة (رقم: ۲۸۸۲) واحمد فی المسند ۴/۲۷۴

[۲] ) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل سورة الکهف (رقم-۲۸۸۶)

**تسهیلات:**

**قوله: مَنْ قَرَأَثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ أَوَّلِ الْكَهْفِ:**

**روایاتو کښې تطبیق:** په اول فصل کښې یو حدیث د حضرت ابودرداء ﷺ تیر شوې دې په هغې کښې فرمائیلې شوی وو چې کوم کس د سورة کهف اولنی لس آیتونه یاد کړی هغه د دجال دفتنې نه محفوظ وی او دې خائې کښې د دریو آیتونو ذ کر دې هغه حدیث په تشریح کښې د دې حدیث ذکر کولو سره په دواړو احادیثو کښې یو مطابقت خو په هم موقع باندې بیان کړې شوې وو په دې سلسله کښې یو بل مطابقت هم کیدیشی چې اول خو د دې لسو آیتونو په یادولو باندې د مذکوره خاصیت اوبرکت بشارت ورکړې شوې وو بیا روستو د فضل د وسعت په وجه په دې دریو آیتونو باندې هم دا بشارت ورکړې شو

**[۳۷] سورت یاسین او د قرآن زړه**

۳۷-()[۳۸] ۱ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ " «إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ قَلْبًا وَقَلْبُ الْقُرْآنِ يس، ۳ وَمَنْ قَرَأَ يس كَتَبَ اللَّهُ لَهُ بِقِرَاءَتِهَا ۴ قِرَاءَةَ الْقُرْآنِ عَشْرَ مَرَّاتٍ» ۵ " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ۱ د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ د هر څیز زړه وی د قرآن شریف زړه سورة یسین دی ۳ کوم سړی چې سورة یسین وایي الله تعالی جل جلاله د دې د ویلو په وجه (د هغه په عمل نامه کې) لیکی ۴ لس ۱۰ ځله د قرآن شریف د ویلو ثواب ،۵ ترمذي دارمی، امام ترمذی رحمه الله فرمائی چې دا حدیث غریب دی

**تسهیلات:**

**قوله: وَقَلْبُ الْقُرْآنِ "**

**سورة یسین ته د قرآن زړه ویلو وجوهات:**

① حضورپاك هم دغه فرمائیلی بس خبره ختمه شوه

② امام غزالی رحمه الله فرمائی چه حشر اونشر باندې ایمان راوړل دَ ایمان دَ صحت دَپاره ضروری دی اودا موضوع په سورت یاسین کښې په ابلغ طریقه باندې مذکورده په دې وجه دا قلب قرآن دې علامه نسفی رحمه الله فرمائی په دې سورت کښې درې بنیادی عقیدې ذکر دی چه توحید رسالت حشر اونشر دې اودَدې دریواړو تعلق قلب سره دې لهذا دا سورت قلب دَ قرآن دې

③ علامه طیبی رحمه الله فرمائی چه په سورت یاسین کښې دَحشر اونشر دلائل قاطعه نه ثابت

---

[۱] ) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی فضل یس (رقم-۲۸۸۷) احمد فی المسند: ۲۶/۵

كړې شوې دی او په دې کښې د انسان دپاره "بالغ زواجر اعلی وعدې" موجود دی او د علوم مکنونه نه دا سورت ډك شوې دې او په دقيق معانی باندې مشتمل دې په دې وجه دې ته قلب القرآن اوونيلې شو [الكاشف ۳۰۸/۴]

**قوله**: عَشْرَ مَرَّاتٍ:

**د لس ځله ونيلو مفهوم**: يعنی يو ځل سورت ياسين ونيلو سره د لس قرآن ثواب ملاوېږی په دې شرط چه هغه لس قرآن د سورت ياسين نه بغير فرض كړې شی

**[۳۳۸] د سورة طٰه او يٰس عظمت**

۲۰۳۸ — ( ) [۳۹] ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «إِنَّ اللّٰهَ - تَعَالَى - قَرَأَ طٰه وَيٰس قَبْلَ أَنْ يَخْلُقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِأَلْفِ عَامٍ ③ فَلَمَّا سَمِعَتِ الْمَلَائِكَةُ الْقُرْآنَ قَالَتْ: ④ طُوبَى لِأُمَّةٍ يَنْزِلُ هٰذَا عَلَيْهَا ⑤ وَطُوبَى لِأَجْوَافٍ تَحْمِلُ هٰذَا ⑥ وَطُوبَى لِأَلْسِنَةٍ تَتَكَلَّمُ بِهٰذَا» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② الله تعالى جل جلاله د آسمان او زمکی د پيدائش څخه زر کاله (۱۰۰۰) مخکی سورة طٰه او سورة يٰسين اوويل ③ هر کله چې فرښتو قرآن (يعنی د دی دواړه سورتونه ويل) واوريدل نو هغوی اوويل ④ چې خوش بختی دی وی د هغه أمت دپاره دی چې په هغوی به دا قرآن (يعنی دا دواړه سورتونه) نازليږی ⑤ خوش بختی دی وی د هغه زړونو د پاره چې دا به قبول کړی، (يعنی دا به ياد کړی او د دی محافظت به کوی) ⑥ او خوش بختی دی وی د هغه ژبو د پاره چې دا به وايي، دارمی

**حل اللغات**: ① طُوبَى: خوشحالی او نيک بختی دې وی ② أَجْوَافٍ: د جوف جمع ده، دلته د جوف نه مراد زړه دې ③ تَحْمِلُ: أَيْ بِالْحِفْظِ: حمل بار کولو ته وائی مراد ترې قرآن يادول يا د قرآن علم دې

**تسهيلات**: **قوله**: بِأَلْفِ عَامٍ:

يعنی الله تعالی سورت طه او سورت ياسين د فرښتو په وړاندې د زمکې او آسمان د تخليق نه زر کاله وړاندې ظاهر کړې وو

**په حديثونو کښې تعارض**: دلته دا اعتراض کيدې شی چه په دې حديث کښې د زرو کالو ذکر دې ليکن دې نه وړاندې د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه روايت نمبر ۳۶ کښې دوه زره کاله ذکر دی او د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په حديث کښې د مقادير د ليکلو باره کښې د پنځوس زره کالو ذکر دې دا په ظاهره تضاد او تعارض دې

**د تعارض جوابونه**:

① دا تعارض نه دې بلکه د مختلف څيزونو په مينځ کښې د زمانې ميعاد دې د څه زمانه پنځوس زره کاله ده د چاځلوېښت زره کاله ده او د چاپه کښې دوه زره کاله او د چا زر کاله

---

[۱]) اخرجه الدارمي في السنن: رقم- ۳۴۱۴

مانه ده

۞ علامه طيبي رحمه الله فرمائي چه ټول څيزونه د زمكې او د اسمان د تخليق نه وړاندې د پخوس زره كالو فاصله سره په لوح محفوظ كښې اوليكلې شو فرښتونه په مختلف زمانو كښې دا څيزونه الله تعالى ښكاره كړل په دې وجه تفاوت راغلو تسهيلات اول جلد كښې د دې تفصيل دې

**[۲۳۹] د حم دخان فضيلت**

۲۱۳۱-(¹)[۳۰] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانِ فِي لَيْلَةٍ ③ أَصْبَحَ يَسْتَغْفِرُ لَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ» " ④ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، ⑤ وَعُمَرُ بْنُ أَبِي خَثْعَمٍ الرَّاوِي يُضَعَّفُ، ⑥ وَقَالَ مُحَمَّدٌ - يَعْنِي الْبُخَارِيَّ -: هُوَ مُنْكَرُ الْحَدِيثِ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړی چې د شپې حم الدّخان (يعنی سورۀ دخان) وايي ③ نو هغه په داسې حال كې سحر كوی چې اويا زره ۷۰۰۰۰ فرښتې د هغه د پاره د بخښنې دعا غواړی، ④ امام ترمذی رحمه الله دا روايت نقل كړی دی او ويلی يې دی چې دا حديث غريب دی ⑤ او د دې حديث راوی عمربن ابی خثعم (په روايت حديث كې) ضعيف شميرل شوی دی ⑥ او محمد يعنی امام بخاری رحمه الله وايي چې هغه (عمر بن ابی خثعم) منكر الحديث دی

**تسهيلات: قوله:** يَسْتَغْفِرُ لَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ

**د مغفرت خصوصی دعا:** د مغفرت د دې دعا نه د فرښتو خصوصی دعا مراد ده هسې خو عاملين عرش او نورې فرښتې هم اهل ايمان دپاره هميشه عمومی دعا كوی كما فی قوله ﴿الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ......الخ﴾

**[۲۴۰] د جمعې په شپه د حم الدّخان لوستلو فضيلت**

۲۱۳۲-(²)[۳۱] ① وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَنْ قَرَأَ حم الدُّخَانِ فِي لَيْلَةِ الْجُمُعَةِ غُفِرَ لَهُ» " ③ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ ضَعِيفٌ، ④ وَهِشَامٌ أَبُو الْمِقْدَامِ الرَّاوِي يُضَعَّفُ.

**ترجمه** ① د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړی چې د جمعې په شپه حٰم الدّخان وايي د هغه بخښنه كيږی. ③ امام ترمذی رحمه الله دا روايت نقل كړی دی او ويلی يې دی چې دا حديث غريب دی ④ او هشام ابو المقدام په روايت حديث كې ضعيف شميرل كيږی

**تسهيلات: نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دی

¹) اخرجه الترمذی فی كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل حم الدخان (رقم-۲۸۸۸)
²) اخرجه الترمذی فی كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی فضل حم الدخان (رقم-۲۸۸۹)

[۲۰۱] د مسبحات فضيلت

۲۰۱- ( ) [۳۲] [۱] وَعَنِ الْعِرْبَاضِ بْنِ سَارِيَةَ [۲] أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - «كَانَ يَقْرَأُ الْمُسَبِّحَاتِ قَبْلَ أَنْ يَرْقُدَ [۳] يَقُولُ: "إِنَّ فِيهِنَّ آيَةً خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ آيَةٍ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] عرباض ابن ساريه ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د اوده كيدو څخه مخكې مسبحات ويل [۳] په هغوئ كې يو آيت دى چې د زرو آيتونو څخه بهتر دى. ترمذى ابوداؤد

**حل اللغات**: ① الْمُسَبِّحَاتِ: هغه سورتونه چه دهغې په سركښې سبح يسبح الفاظ راغلي وى هغې ته مسبحات وائى ② يَرْقُدَ: أَيْ: يَنَامَ: چه اوده شي

**تسهيلات**:

**قوله: الْمُسَبِّحَاتِ**:

**د مسبحات معنى او مصداقات**: د كومو سورتونو په شروع كښې سَبَّحَ يا يُسَبِّحُ يا سَبِّحْ الفاظ راغلي دى هغې ته مسبحات وائى. په قرآن كښې ددې قسم اووه سورتونه دى ① سورت بنى اسرائيل ② سورت حديد ③ سورت حشر ④ سورت صف ⑤ سورت جمعه ⑥ سورت تغابن ⑦ سورت اعلى.

په دې سورتونو كښې يو آيت دې چه د زرو آياتونو نه بهتر دې اوس هغه كوم يو آيت دې؟ نو بعضې علماء فرمائى چه ﴿لَوْ أَنزَلْنَا هَٰذَا الْقُرْآنَ عَلَىٰ جَبَلٍ لَّرَأَيْتَهُ خَاشِعًا مُّتَصَدِّعًا مِّنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۚ وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَفَكَّرُونَ﴾ [حشر ۲۱] آيت دې بعضې فرمائى چه ﴿هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ﴾ [حديد ۳] آيت دې بهرحال علامه طيبى رحمه الله فرمائى الله تعالى دا آيت د ليلة القدر په شان پټ ساتلې دې په دې وجه تعين مشكل دې [الكاشف ۳۰/۴]

۲۰۲- ( ) [۰] [۱] وَرَوَاهُ الدَّارِمِيُّ عَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ مُرْسَلًا. وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] او دارمى رحمه الله دا روايت د خالد بن معدان څخه بطريق ارسال نقل كړى دى [۲] او امام ترمذى رحمه الله فرمايلى دى دا حديث حسن غريب دى

[۲۰۳] د سورة ملك خپل لوستونكى له شفاعت

۲۰۳- ( ) [۳۳] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ سُورَةً فِي الْقُرْآنِ

---

[1]) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب /باب ما يقال عند النوم (رقم- ۵۰۵۷) والترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب (رقم- ۲۹۲۱) واحمد فى المسند: ۱۲۸/۴

[2]) اخرجه الدارمى رقم: ۳۴۲۴

[3]) اخرجه ابو داود كتاب الصلاة /باب فى عدد الآي (رقم- ۱۴۰۰) والترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فى فضل سورة الملك (رقم- ۲۸۹۱) وابن ماجة فى كتاب الأدب /باب ثواب القرآن (رقم- ۳۷۸۶)

ثَلَاثُونَ آيَةً شَفَعَتْ لِرَجُلٍ [٣] حَتَّى غُفِرَ لَهُ وَهِيَ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ» " رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] ابوهريره رضي الله عنه روايي دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] په دى قرآن مجيد كى يو سورت دى چي په هغه كى ديرش آيتونه دى دغه سورت د يو سړي شفاعت وكى [٣] او د هغه سفارش د هغه سړي په حق كي ومنل شو او هغه سوره مُلك تبارك الذي بيده الملك دى. احمد ترمذى ابوداؤد نسائى ابن ماجه

**حل اللغات:** ① شَفَعَتْ: سفارش به كوى

**تسهيلات:**

**قوله:** شَفَعَتْ لِرَجُلٍ:

**د شفاعت په تفسير كښي دوه اقوال:**

① مطلب دا هم كيدي شى چه په زمانه دَماضى كښي دي سورت دَ يو سړي شفاعت اوكړو نو الله تعالى دغه سړي اوبخښلو

② دويم احتمال دا هم دي چه شفعت د ماضى صيغه دَ مستقبل په معنى كښي استعمال كړي شوي وى يعنى "تشفع" په قيامت كښي به دَ سړي شفاعت كوى

**[٢١٥٣] په قبر كښي د سورة ملك لوستل**

٢١٥٣ - (١) [٢٣] [١] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «ضَرَبَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خِبَاءَهُ عَلَى قَبْرٍ [٢] وَهُوَ لَا يَحْسَبُ أَنَّهُ قَبْرٌ، [٣] فَإِذَا فِيهِ إِنْسَانٌ يَقْرَأُ تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ حَتَّى خَتَمَهَا، [٤] فَأَتَى النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرَهُ، [٥] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " هِيَ الْمَانِعَةُ هِيَ الْمُنْجِيَةُ تُنْجِيهِ مِنْ عَذَابِ اللَّهِ» [٦] " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [١] ابن عباس رضي الله عنهما وايي چي د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په صحابه وو رضي الله عنهم كى يو سړي خپله خيمه په يو قبر ودروله [٢] خو هغه ته د دى خبرى علم نه وو چي دلته قبر دى [٣] اچانك هغه واوريدل چي په قبر كى يو سړي تبارك الذي اوده الملك وايي تر دى چي هغه هغه سورت ختم كړى [٤] د دى ځخه روسته خيمه درونكى سړى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كى حاضر شو او دا واقعه يي ورته واورولة [٥] نبى كريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چي سوره ملك منع كونكى او نجات وركونكى دى سورت ويونكى ته د الله جل جلاله د عذاب ځخه نجات (خلاصى) وركوى. [٦] امام ترمذى رحمه الله دا روايت نقل كړى دى او ويلى يي دى چي دا حديث غريب دى

(١) اخرجه الترمذي في كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل سورة الملك (رقم-٢٨٩٠)

**حل اللغات:** ① - خِبَاءَهُ: أي خيمته: خيمه، ② لَا يَحْسَبُ: أي لا يظن: ګمان نې نه کولو. ③ الْمَانِعَةُ: أي تمنع منع کوی د عذاب قبرنه (یا دهغه ګناهونو نه چه سبب ګرځی د عذاب قبر) ④ الْمُنْجِيَةُ: نجات او خلاصې ورکونکې دې (دعذاب نه)

**تسهيلات: قوله:** ضَرَبَ بَعْضُ أَصْحَابِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:

**دعذاب څخه حفاظت اوسورة ملک:** په دې حدیث مبارک کښې د سورة ملك د فضیلت حکم مذکور دې چې دا سورة د عذاب قبر نه بچ کوونکې دې او د آخرت په ورځ مصیبتونه او تکلیفونه لرې کوی

**قوله:** خِبَاءَهُ عَلَى قَبْرٍ:

**د سورة ملک په سماع کښې دوه احتمالات:**

① چې د خوب په حالت کښې نې د سورة ملك تلاوت د قبر نه واورېدو

② د بیدارۍ په حالت کښې نې قبر نه د سورة ملک تلاوت واورېدل راجح هم دا دی

**د مړوڅخه بعضې خارق العادت کارونوصدور:** ددې نه دا هم معلومه شوه چې کله کله د مړو څخه د ژوندوخلقو افعال صادریدیشی او مړی هم ښېنې داسې نیکۍ کوی کومې چې به نې په خپل ژوند کښې کولې لکه دحضرت موسی علیه السلام په قبر کښې مونځ کول

**قوله:** هِيَ الْمَانِعَةُ:

**دمانعة په مفهوم کښې درې اقوال:**

① یعنی د عذاب قبر نه بچ کوونکې

② دهغه ګناهونونه منع کوی کوم چې د قبر د عذاب سبب جوړیږی .

③ دا به په میدان حشر کښې هر قسمه تکلیف منع کوی

**[۲۱۵۵] ذاوده کیدو څخه وړاندې د سورة ملک لوستل**

۲۱۵۵-(١)[۳۵] ① وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «كَانَ لَا يَنَامُ حَتَّى يَقْرَأَ الٓمٓ تَنْزِيلُ وَتَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ». ② رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، ③ وَكَذَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ، وَفِي الْمَصَابِيحِ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ① جابر رضي الله عنه وایې چې نبی کریم ﷺ به د الم السجده او د تبارك الذی بيده الملك د ویلو څخه بغیر نه اوده کیدلو. ② احمد ترمذی دارمی. امام ترمذی رحمه الله وایې چې دا حدیث غریب صحیح دی. ③ دغه شان په شرح السنة کې یې ویلی دی چې دا حدیث صحیح دی لیکن په مصابیح کې یې ویلی دی چې دا حدیث غریب دی

(١) اخرجه الترمذي في كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء في فضل سورة الملك (رقم-۲۸۹۲) واحمد في المسند: ۳/۳۴۰

**تسهيلات:**

**قوله: هَذَا حَدِيثٌ صَحِيحٌ، وَكَذَا فِي شَرْحِ السُّنَّةِ، وَفِي الْمَصَابِيحِ غَرِيبٌ:**

**د صحيح او غريب په اجتماع کښې تطبيق:** دلته د حديث د صحيح او غريب کيدو په اعتبار سره تضاد دې ليکن د حقيقت په اعتبار سره هيڅ تضاد نشته دې ځکه چې د يو حديث مبارك غريب کيدل دا ددې د صحيح کيدو منافی نه وی ددې وجه داده چې کله هم يو حديث مبارك فنی او اصطلاحی طور سره غريب خو وی مګر د حقيقت په اعتبار سره هغه صحيح وی ددې سورة د ملاستې په وخت کښې فضيلت داد ې چې الله ﷻ به نې د عذاب قبر نه محفوظ ساتی

**[۲۵۶] د سورت زلزال، اخلاص او الکافرون فضيلت**

۲۱۵۰-(۱)[۳۶] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ وَأَنَسِ بْنِ مَالِكٍ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② " «إِذَا زُلْزِلَتْ تَعْدِلُ نِصْفَ الْقُرْآنِ، ③ وَقُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ، ④ وَقُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ تَعْدِلُ رُبُعَ الْقُرْآنِ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ① ابن عباس او انس بن مالك رضی الله عنهما دواړه راويان دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② سورة اذا زلزلت د نيم قرآن برابر دی ③ او سوره قل هوالله د قرآن شريف د دريمې حصې برابر دی ④ او سورة قل يا ايها الکفرون د قرآن د څلورمې برابر دی، ترمذی

**حل اللغات:** ① زُلْزِلَتْ: يعنی سورة زلزال، ② تَعْدِلُ: برابر دی.

**تسهيلات:**

**قوله: تَعْدِلُ نِصْفَ الْقُرْآنِ:**

**د سورة زلزال نصف القرآن کيدو وجه:** قرآن کريم مبدأ او معاد بيان کړې دې سورت زالزال په مکمل توګه باندې معاد سره متعلق دې لهذا نصف قرآن دې قرآن کريم ته که چرې په دې نظر سره اوکتلې شی چه په دې کښې درې لوئی مضامين ذکر دی يعنی قصص، احکام او توحيد سورت اخلاص دريمه حصه يعنی توحيد سره متعلق دې لهذا دا د ثلث قرآن برابر شو که چرې قرآن ته په دې نظرسره اوکتلې شی چه په دې کښې په لويه پيمانه باندې څلور مضامين ذکر دی مثلاً توحيد، رسالت، احکام او قصص او په سورت الکافرون کښې د توحيد په اوچته پيمانه باندې بيان شوې دې په دې وجه دا ربع قرآن دې

يا د تولو متعلق دا اووئيلې شو چونکه حضورپاك داسې فرمائيلی دی نو د حضورپاك فرمان د تولو نه لويه وجه ده حضورپاك مونږ ته ترغيب راکړې دې مونږ له دغه ترغيب ته کتلو سره عمل کول پکار دی نه داچه علتونه او حکمتونه راويستو سره د حقيقت نه محروم شو.

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء فی إذا زلزلت (رقم-۲۸۹۴)

**[۲۰۵۷] د سورة حشر د دريو آياتونو په لوستلو د اويا زره فرښتو دعا كول**

۲۰۵۷ - ( ) [۴۷] [۱] وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ [۳] أَعُوذُ بِاللَّهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ [۴] فَقَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْحَشْرِ [۵] وَكَّلَ اللَّهُ بِهِ سَبْعِينَ أَلْفَ مَلَكٍ [۶] يُصَلُّونَ عَلَيْهِ حَتَّى يُمْسِيَ [۷] وَإِنْ مَاتَ فِي ذَلِكَ الْيَوْمِ مَاتَ شَهِيدًا، [۸] وَمَنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي [۹] كَانَ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ» " [۱۰] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] معقل ابن يسار رضي الله عنه د نبى كريم صلى الله عليه وسلم څخه نقل كوى چې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل [۲] كوم سړى چې د سحر په وخت كى درې خله دا كلمات اوويل [۳] أَعُوذُ بِاللَّهِ السَّمِيعِ الْعَلِيمِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ (زه په الله تعالى جل جلاله سره چې اوريدونكى او پوهه دى د شيطان رټلى شوى څخه پناه غواړم) [۴] او بيا د سورة حشر آخرى درې آياتونه (يعنى هو الله الذى لااله الاهو څخه تر آخر د سورت پورى) اووائي [۵] نو الله تعالى جل جلاله د هغه سره اويا زره فرښتي متعين كوى [۶] چې د هغه د پاره تر مابنام پورى د خير او ښيګړې د توفيق دعا غواړى [او د هغه د ګناهونو بخښنه غواړى] [۷] كه هغه سړى په هغه ورځ مړ شى نو د شهادت مرګ به پيدا كړى [۸] او كوم سړى چې دغه كلمات [يعنى اعوذ بالله الخ او دغه آياتونه] د مابنام په وخت كى اووائي [۹] نو هغه ته تر سحر پورى دغه (مذكوره بالا سعادت حاصليږى). [۱۰] ترمذى دارمى، امام ترمذى رحمه الله ويلى دى چې دا حديث غريب دى

**حل اللغات** ① وَكَّلَ: مقرركوى. ② يُمْسِي: أَيْ يَدْخُلُ اللَّيْلَ: يعنى چه شپه شروع شى ③ بِتِلْكَ الْمَنْزِلَةِ: أَيْ بِالْمَرْتَبَةِ الْمَذْكُورَةِ: يعنى دغه مذكوره مرتبه او فضيلت ورته حاصليږى

**تسهيلات:**

**قوله** فَقَرَأَ ثَلَاثَ آيَاتٍ مِنْ آخِرِ سُورَةِ الْحَشْرِ:

**د سورة حشر د آخرى آياتونو يو عظيم فضيلت:** د سورة حشر آخرى درې آيتونه (هُوَ اللَّهُ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ) نه تر آخره پورې كوم كس چې ددې آيتونو تلاوت كوى الله جل جلاله دده دپاره اويا زره فرښتې متعين كوى او هغوى دده دپاره دخير دتوفيق او د شر نه د بچ كيدو دعا كوى اودده د بخښنې دعا كوى

**قوله** مَاتَ شَهِيدًا:

**د شهادت څخه مراد:** دلته د شهيد نه حكمى شهيد مراد دې يعنى ددې آيتونو لوستونكې اګر چې په بستره باندې مړ شى خو د قيامت په ورځ به دده ته د شهيد اجر وثواب ملاويږى

( ) اخرجه الترمذى فى كتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم باب (رقم-۲۹۲۲)

**[۲۱۵۸] هره ورځ دوه سوه ځل د سورة اخلاص ولیلو اثر**

۲۱۵۸-(١)[٣٨] ⓵ وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ⓶ «مَنْ قَرَأَ كُلَّ يَوْمٍ مِائَتَيْ مَرَّةٍ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ⓷ مُحِيَ عَنْهُ ذُنُوبُ خَمْسِينَ سَنَةً ⓸ إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دَيْنٌ» ⓹ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالدَّارِمِيُّ، وَفِي رِوَايَتِهِ: خَمْسِينَ مَرَّةً ⓺ وَلَمْ يَذْكُرْ: إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دَيْنٌ.

**ترجمه** ⓵ انس رضی الله عنه د نبی کریم څخه نقل کوی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ⓶ کوم سړی چې هره ورځ دوه سوه ۲۰۰ ځله قل هو الله احد وایي ⓷ نو دهغه د عمل نامې څخه د پنځوس کلو ګناه محوه کیږی ⓸ خو دا چې په هغه قرض وی. ⓹ ترمذی دارمی. او په یو روایت کی د دوه سوه په ځای د پنځوس ځله ذکر دی ⓺ او په دی روایت کی (خو دا چې په هغه قرض وی) ذکرنه دی

**حل اللغات:** ① مُحِيَ: وران به کړې شی، ختم به کړې شی

**تسهیلات:**

**قوله: إِلَّا أَنْ يَكُونَ عَلَيْهِ دَيْنٌ**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① یو دا چې د قرض ګناه به نه معاف کیږی

② په کوم کس باندې چې قرض وی نو دهغه به ټول ګناهونه معاف شی خو قرض به نه معاف کیږی ځکه چې قرض د حقوق العباد نه دې او حقوق العباد د حق اداکولو نه بغیر یا د معاف کولو نه بغیر نه معاف کیږی (کما رواه مسلم یغفر للشهید کل شئ إلا الدین) مرقاة

**[۲۱۵۹] د اوده کیدو څخه وړاندې د سورة اخلاص د لوستلو په برکت جنت ته داخلیدل**

۲۱۵۹-(٢)[٣٩] ⓵ وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⓶ «مَنْ أَرَادَ أَنْ يَنَامَ عَلَى فِرَاشِهِ فَنَامَ عَلَى يَمِينِهِ ⓷ ثُمَّ قَرَأَ مِائَةَ مَرَّةٍ قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ ⓸ إِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ يَقُولُ لَهُ الرَّبُّ: ⓹ يَا عَبْدِي ادْخُلْ عَلَى يَمِينِكَ الْجَنَّةَ» ⓺ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ⓵ انس رضی الله عنه د نبی کریم ﷺ څخه نقل کوی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ⓶ کوم سړی چې خپلې بسترې ته د خوب اراده وکړی بیا په ښی طرف څملي ⓷ سل ځله قل هو الله احد اووائي ⓸ نو د قیامت په ورځ به پروردګار هغه ته فرمائی ⓹ چې اې زما بنده! په جنت کی په خپل ښی طرف داخل شه. ⓺ امام ترمذی رحمه الله دا حدیث نقل کړی دی او ویلی یې دی چې دا حدیث حسن غریب دی

**حل اللغات:** ① عَلَى يَمِينِكَ: په خپل ښی طرف

---

(١) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سورة الإخلاص (رقم-٢٨٩٨)

(٢) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی سورة الإخلاص (رقم-٢٨٩٨)

**تسهیلات:**

**قوله: عَلٰى يَمِينِكَ الْجَنَّةَ:**

**جنت ته د خپل نبي طرف څخه د داخلیدو وجه:** چونکه دا وده کیدو په وخت سړي په نبي اړخ بانديې اوده کیږي اوبنکاره خبره ده چه دې سړي په نبي طرف باندې د اوده کیدونه پس مسل خل قل هو الله احد اوونیل په دې وجه هغه ته په قیامت کښې اوونیلې شو چه په جنت کښې نبي طرف نه روانیدو سره داخل شئ.

**[۲۳۰] د قل هو الله په وجه د جنت وجوب**

۲۳۰—(۱)[۵۰] [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- «سَمِعَ رَجُلًا يَقْرَأُ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ فَقَالَ: "[۲] وَجَبَتْ" قُلْتُ: وَمَا وَجَبَتْ؟ قَالَ: "الْجَنَّةُ"» رَوَاهُ مَالِكٌ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [۱] ابو هریره رضی الله عنه وایي چې (یو خل) نبي کریم ﷺ د یو سړي څخه قل هو الله احد ویلو سره واوریدل نو وی فرمایل[۲] چه د ده د پاره واجب شو ما عرض وکړو چې یا رسول الله ﷺ څه واجب شو؟ وی فرمایل چې جنت، مالك ترمذی نسائی

**حل اللغات:** (۱) وَجَبَتْ: واجب شو

**تسهیلات:**

**قوله: وَمَا وَجَبَتْ؟ قَالَ: "الْجَنَّةُ**

**د سورة اخلاص په وجه جنت ته داخلیدل:** یعني د دې سورة اخلاص ونیلو سره د ده د پاره جنت واجب شو واضحه دې وی چې نیك عملونو د جنت د حاصلولو په اسبابو کښې علت تامه نه دی لوې لوې نیکان خلق اوخویږي مګر کوم چې سورة اخلاص وائی نو د نبي کریم ﷺ د دې بشارت په وجه به یعني طور جنت ته داخل شی او د الله ﷻ فضل وکرم سره د ده د قرات بدله ده او دا د هغه وعدې په وجه دې (إِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيعَادَ) الرعد ۳۱

**[۲۳۱] د قل یا ایها الکفرون فضیلت**

۲۳۱—(۲)[۵۱] [۱] وَعَنْ فَرْوَةَ بْنِ نَوْفَلٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّهُ قَالَ: [۲] «يَا رَسُولَ اللّٰهِ عَلِّمْنِي شَيْئًا أَقُولُهُ [۳] إِذَا أَوَيْتُ إِلَى فِرَاشِي» [۴] فَقَالَ: "اقْرَأْ قُلْ يَا أَيُّهَا الْكَافِرُونَ فَإِنَّهَا بَرَاءَةٌ مِنَ الشِّرْكِ" رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] فروه ابن نوفل د خپل پلار بزرګوار څخه نقل کوی چې هغه نبي کریم ﷺ ته

---

[۱]) اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی إذا زلزلت (رقم-۲۸۹۷) والنسائي فی کتاب الافتتاح/باب الفضل فی قراءة قل هو الله أحد (رقم-۹۹٤) ومالک فی کتاب القرآن باب ما جاء فی القرآن (رقم-۸) واحمد فی المسند: ۳۰۲/۲

[۲]) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب ما یقال عند النوم (رقم-۵۰۵۵) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب منه (رقم-۳٤۰۳) واحمد فی المسند ٤۵٦/۵

عرض وکړی [۲] چې يا رسول الله ﷺ ما ته يو داسې شی (يعنی آيت يا سورت) راوښايه چې هغه زه وايم؟ [۳] خپلې بسترې ته د تلو سره (يعنی د ويده کيدو څخه مخکې وايم) [۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې قل يا ايها الکفرون وايه ځکه چې دا سورت د شرك څخه بيزاري ده، (كه د دې د ويلو سره ويده کيږې نو لکه چې د شرك څخه پاک کيدو سره به اوده کيږې او که مړ شې نو په توحيد باندې به مړ شې) ابوداؤد دارمی

**حل اللغات:** ① بَرَاءَةٌ: بيزاری ده

**تسهيلات: نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دي

**[۲۱۳] د خطرې په وخت د معوذتين لوستل**

(۵۲) [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: [۲] «بَيْنَا أَنَا أَسِيرُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - بَيْنَ الْجُحْفَةِ وَالْأَبْوَاءِ [۳] إِذْ غَشِيَتْنَا رِيحٌ وَظُلْمَةٌ شَدِيدَةٌ، [۴] فَجَعَلَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَعَوَّذُ بِأَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ وَأَعُوذُ بِرَبِّ النَّاسِ [۵] وَيَقُولُ: "يَا عُقْبَةُ تَعَوَّذْ بِهِمَا [۶] فَمَا تَعَوَّذَ مُتَعَوِّذٌ بِمِثْلِهِمَا"» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] عقبه عامر رضي الله عنه وايي [۲] چې (يو ځل) مونږ د نبی کريم ﷺ سره د جحفه او ابواء په منځ کې روان وو [۳] ناساپه سختې سيلۍ (تيز باد) او تيارې مونږ راګير کړو [۴] نو نبی کريم ﷺ د اعوذ برب الفلق او اعوذ برب الناس په ذريعه پناه غوښتل شروع کړل (يعنی دا سورتونه يې ويل) [۵] او ماته يې هم وفرمايل چې اې عقبه! د دې دواړو سورتونو په ذريعه پناه غواړه [۶] پوهه شه چې هيڅ پناه غوښتونکی د دې دواړو سوروتونو په شان د څه شی په ذريعه پناه نه ده غوښتې [ځکه چې د آفات او بليات په وخت د الله تعالیٰ جل جلاله پناه د طلب کولو په سلسله کې دا دواړه سورتونه د ټولو څخه افضل دي] . ابوداؤد

**حل اللغات:** ① الْجُحْفَةِ وَالْأَبْوَاءِ: د مکې او مدينې په لار کې دوه مقامات دي ② غَشِيَتْنَا: راګير نې کړو مونږ ③ فَجَعَلَ: أَيْ طَفِقَ وَشَرَعَ: نو شروع شو

**تسهيلات:**

**قوله: بَيْنَ الْجُحْفَةِ وَالْأَبْوَاءِ:**

**د مدينې څخه جحفه ته د تلې منتقل کيدل:** دا د اهل شام اهل مصر او اهل مغرب ميقات دي او په هغه وخت کښې د دې نوم رابغ وو دا نوم په دې وجه مشهور شو چې يو سيول نومې مارغه دې پخپلو وزرو کښې اخستلې وو او دا په دې وجه چې د نبی کريم د دعا مبارکې په برکت سره د مدينې تبه دې طرفته منتقل شوې وه کوم مارغه چې به ددې دپاسه تير شو نو به هغه به تبه راغله يا داوبو د قلت په وجه يا د ويرې دشدت په وجه (مرقاة ج/۴ ص/ ۳۷۰)

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب فی المعوذتين (رقم-۱۴۶۳)

## [۳۳۳] سورة اخلاص او معوذتین د هر آفت څخه حفاظت

۲۰۳۳-(۱)[۵۳] ① وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ خُبَيْبٍ قَالَ: ② «خَرَجْنَا فِي لَيْلَةِ مَطَرٍ وَظُلْمَةٍ شَدِيدَةٍ ③ نَطْلُبُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَدْرَكْنَاهُ، ④ فَقَالَ: "قُلْ" قُلْتُ: مَا أَقُولُ؟ قَالَ: "قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ وَالْمُعَوِّذَتَيْنِ ⑤ حِينَ تُصْبِحُ وَحِينَ تُمْسِي ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ⑥ تَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ① عبد الله ابن خبیب رضی الله عنه فرمایي ② چې (یو خل، مونږ د یوې سختې تیارې او باران په شپه کې ووتلو ③ د رسول الله ﷺ د لټولو د پاره (یعنی نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو چیرته تشریف وړی وو مونږ یي هم د تلاش کولو د پاره ووتلو چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره یو خای لاړ شو) نو مونږ نبی کریم صلی الله علیه وسلم پیدا کړی ④ نبی کریم صلی الله علیه وسلم (هغه وقت) وفرمایل چې اووایه ما عرض وکړو چې څه اووایم؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې قل هو الله قل اعوذ برب الفلق او قل اعوذ برب الناس وایه ⑤ د سحر او د ماښام په وخت دري خله ۳ ⑥ دا به ستا د هر څیز څخه کفایت وکی (یعنی هر آفت او بلا به در څخه دفع کړي) ترمذی ابوداؤد نسائی

**حل اللغات**: ① تَكْفِيكَ: کافی دي تالره، د كَفَى يَكْفِي نه په معنی د دفع کولو او بې پرواه کولو

**د راوي مختصر تعارف**: نوم عبدالله دَ پلار نوم خبیب، قبیله جهنی سره تعلق لرلو کوم چه دَ انصارو حلیف وو. دَ مدینې منورې اوسیدونکې وو دَ هغه نه صرف دري روایتونه نقل دی. خوعلامه برقی رحمه الله فرمائی دَ هغه نه ضرف دوه احادیث ملاویږی خود علامه ابوالفرج ابن الجوزی رحمه الله رائې داده چه دَ هغه نه دري روایتونه نقل دی.

**تسهیلات**:

**قوله**: تَكْفِيكَ مِنْ كُلِّ شَيْءٍ:

**د سورة اخلاص او معوذتین په وجه حفاظت**، څوک چې دا دري واړه سورتونه لولی نو هغه به په سختو طوفانونو او تیارو کښې د جناتو او شیاطینو څخه په حفاظت کښې وی

## [۳۳۴] د سورة فلق د لوستلو فضیلت

۲۰۳۴-(۲)[۵۴] ① وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: «قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ ② أَقْرَأُ سُورَةَ هُودٍ أَوْ سُورَةَ يُوسُفَ؟ ③ قَالَ: "لَنْ تَقْرَأَ شَيْئًا أَبْلَغَ عِنْدَ اللَّهِ مِنْ قُلْ أَعُوذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالنَّسَائِيُّ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ① عقبه ابن عامر رضی الله عنه فرمایي چې ما عرض وکړو یا رسول الله ﷺ ② آیا زه د پناه غوښتلو او د شر او بدی د دفع کولو د پاره سورهٔ هود یا سورهٔ یوسف وایم؟ ③ نبی کریم

---

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب ما یقول إذا أصبح (رقم-۵۰۸۲) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵۷۵) والنسائی فی کتاب الاستعاذة (رقم-۵۴۲۸)

(۲) اخرجه النسائی فی کتاب الافتتاح/باب الفضل فی قراءة المعوذتین (رقم-۹۵۳) واحمد فی المسند: ۱۴۹/۴

صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ته د الله ﷻ په نزد د قل اعوذ برب الفلق څخه زيات بهتر هيڅ څيز (يعنې هيڅ سورت يا آيت) هيڅ کله نشي ويلی، احمد نسائی دارمی

**حل اللغات:** ① أَبْلَغَ: أي أتمّ: زيات پوره او کامل

**تسهيلات:**

**نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دی د اضافی شرحې ضرورت نشته

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۰۵] د قرآن د پيروی کولو حکم

(۲۱۵۵)[۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«أَعْرِبُوا الْقُرْآنَ [۳] وَاتَّبِعُوا غَرَائِبَهُ، [۴] وَغَرَائِبُهُ فَرَائِضُهُ وَحُدُودُهُ»".

**ترجمه** [۱] ابوهريره ؓ روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قرآن معنی بيانوی [۳] او د هغه د غرائبو پيروی کوی [۴] د هغه غرائب د هغه فرائض او د هغه حدود دی

**حل اللغات:** ① أَعْرِبُوا: أي بيّنوا: بيانوی. ② غَرَائِبَهُ: عجائبات د قرآن (يعنی فرائض او حدود)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَعْرِبُوا الْقُرْآنَ:

**د مذکوره جملې مقصد:** علماء کرامو ته تاکيد دی چې د قرآن پاك اشاعت کونی او خلقو ته قرآن کريم ښه واضحه او په ښه طريقه بيانونی

**قوله:** وَاتَّبِعُوا غَرَائِبَهُ:

**د غرائب څخه مراد:** غرائب څخه مراد د قرآن پاك متشابهات نه دی بلکه قرآنی احکام مراد دی د فرائضو نه مراد هغه دی د کومو چې حکم کړې شوې دې او د حدودو نه مراد منهيات دی يا د ميراث فرائض يا احکام شرعيه يا مطلق فرائض قرآنيه مراد دی

خلاصه دا چې په آيتونو کښې چې کوم څيزونه بيان شوی دی لکه غرائب الاحکام معجزات محاسن آداب واخلاق نصائح وعدووعيد او ترغيب و ترهيب دا ټول دې په مدارسو کښې داسې واضح کړې شی چې د متعلمينو په پوهه کښې راشی اود وعظ او نصيحت په مجلسو کښې دې دا په عوامو باندې واضح کړې شی چې دعوامو په پوهه کښې راشی (مرقاة ج/۴ص/۳۷۱)

[۱] ) اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم: ۲۲۹۳

**[۲۳۱] د ذکرونو په څېل مينځ کښې په يو بل باندې بهترۍ**

۲۳۱ ـ ( ) [۵۲] ⓵ (وَعَنْ عَائِشَةَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ⓶ " «قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ، ⓷ وَقِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنَ التَّسْبِيحِ وَالتَّكْبِيرِ، ⓸ وَالتَّسْبِيحُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّدَقَةِ، ⓹ وَالصَّدَقَةُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّوْمِ، ⓺ وَالصَّوْمُ جُنَّةٌ مِنَ النَّارِ» ".

**ترجمه** ⓵ بی بی عائشه ﷞ څخه روايت دی چې نبی كريم ﷺ وفرمايل ⓶ په مانځه کې د قرآن قرائت د مانځه څخه علاوه د قرآن ويلو څخه افضل دی ⓷ او د مانځه څخه علاوه قرآن ويل د تسبيح او ذكر څخه زيات ثواب لری ⓸ او تسبيح د صدقی (د الله ﷻ په لار کی د خرڅ كولو) څخه زيات ثواب لری ⓹ او صدقه د روژی څخه زيات ثواب لری ⓺ او روژه د دوزخ د اور څخه ډهال دی.

**حل اللغات:** ① جُنَّةٌ: أَيْ وِقَايَةٌ: ډهال دې يعنی حفاظت كونكې دې.

**تسهيلات:**

**قوله:** قِرَاءَةُ الْقُرْآنِ فِي الصَّلَاةِ أَفْضَلُ مِنْ قِرَاءَةِ الْقُرْآنِ فِي غَيْرِ الصَّلَاةِ

**خارج الصلاة په نسبت په مانځه کښې د قراءت افضليت:** لکه څنګه چې د مونځ په حالت کښې قرآن پاك ويل د مونځ څخه علاوه د قرآن د تلاوت څخه افضل دی هم داشان كوم مونځ چې په ولاړه کيږی او په دې کښې په ولاړه كوم قراء ت ويلې کيږی هغه د هغه قرامت نه بهتر دې كوم چې په ناسته ويلې کيږی د مونځ نه علاوه نورووختونو کښې قرآن پاك ويل د تسبيح تكبير او نورو اورادو او اذكارو نه افضل دی خکه چې قرآن كريم نه صرف د الله ﷻ كلام دې بلکه په دې کښې د الله ﷻ احكام هم دی

**قوله:** وَالتَّسْبِيحُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّدَقَةِ،

**د صدقې څخه د ذكر افضليت:** تكبير و تسبيح او نور اوراد او اذكار د الله ﷻ په لار کښې د خپل مال خرچ كولو نه بهتر دی اګر چې دا مشهور دی چې عبادت متعدی چې د هغې فائده د خپل ذات نه علاوه نورو ته هم اورسی (لکه صدقه) افضل ده د عبادت لازم (لکه د تسبيح واذكار) نه چې د هغې فائده خپل ذات پورې محدود ده خو دا خبره د ذكر نه علاوه د نورو عباتونو سره خاص ده ذكر ددې نه مستثنی دې خکه چې د الله ﷻ ذكر چې تولو نه لوئې او تولو نه افضل دې لکه څنګه چې په احاديث صحيحه کښې راغلی دی چې دالله په لار سره زر او سپين زر خرچ كولو نه ذكر بهتر دې

**قوله:** وَالصَّدَقَةُ أَفْضَلُ مِنَ الصَّوْمِ،

**په رواياتو کښې تطوطق:** ماقبل حديث مبارك کښې دی (كل عمل بنی آدم يضاعف الحسنة بعشر

[1] اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم :۲۲٤۳

مثاله إلا الصوم فإنه لي وأنا أجزي به، د روژې جزا الله ﷻ سره ده او په دې حديث مبارك كښې دى چې صدقه د روژې نه افضل ده نو په دواړو روايتونو كښې په ظاهره تعارض دې؟

**د تعارض جوابونه:**

① په دې دواړو رواياتو كښې تطبيق دادې چې د نفس عبادت په اعتبار سره صلوة د صدقې نه افضل دې او صدقه د روژې نه افضل ده او هغه عمل چې د هغې سره بل څوك شريك نه وى نو هغه روژه ده

② محدث دهلوى رحمه الله فرمائى چې دلته صدقه په دې وجه د روژې نه افضل ګرځولې شوې ده چې په صوم كښې په خپل ځان نه مال بچ كول دى او په صدقه كښې غير باندې خپل مال خرچ كول دى لهذا د الله ﷻ په لار كښې مال خرچ كول ،د مال بچ كولو نه بهتر دى واضحه دې وى چې دا فضيلت جزوى دې كلى طور سره روژه د صدقې نه افضل ده (التعليق الصبيح)

**[۳۷] د زبانى تلاوت څخه په قرآن كښې د تلاوت افضليت**

۳۷- ()[۵۷] ① وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَوْسٍ الثَّقَفِيِّ عَنْ جَدِّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "② «قِرَاءَةُ الرَّجُلِ الْقُرْآنَ فِي غَيْرِ الْمُصْحَفِ أَلْفُ دَرَجَةٍ ③ وَقِرَاءَتُهُ فِي الْمُصْحَفِ تُضَعَّفُ عَلَى ذَلِكَ إِلَى أَلْفَيْ دَرَجَةٍ»".

**ترجمه** ① عثمان ابن عبد الله بن اوس ثقفى د خپل نيكه (حضرت اوس) څخه نقل كوى هغه اوويل ② چې رسول الله ﷺ وفرمايل د سړى بغير مصحف (يعنى زبانى) قرآن ويل زر ۱۰۰۰ درجې ثواب لرى ③ او په مصحف كې (د كتلو سره) د ويلو ثواب د بغير مصحف (يعنى د زبانى) ويلو د ثواب څخه د دوه زره ۲۰۰۰ درجې پورې زيات وركول كيږى

**حل اللغات:** ① الْمُصْحَف: قرآن

**تسهيلات:**

**قوله:** وَقِرَاءَتُهُ فِي الْمُصْحَفِ تُضَعَّفُ عَلَى ذَلِكَ إِلَى أَلْفَيْ دَرَجَةٍ

**په كتلو سره د تلاوت د غوره والى وجه:** كتلو سره تلاوت كول په ياد سره د تلاوت كولو نه ځكه افضل دې چه كتلو سره تلاوت كولو كښې مشقت زيات دې د دې وجه داده چه كتلو سره لوستلو كښې سوچ اوفكر اوخشوع . خضوع ډيره حاصليږى بل د قرآن زيارت هم نصيب كيږى د دې د اوچتولو اولاس لګولو جدا جدا ثوابونه دى اودا څيزونه په ياد سره لوستلو كښې نه حاصليږى په دې كښې زيات مشقت دې نوځكه زيات ثواب دې.

[1] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم :۲۲۱۸

[۲۳۸] په قرآن سره د زنګ شوو زړونو علاج

۲۲۳۸-( )[۵۸][۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«إِنَّ هَذِهِ الْقُلُوبَ تَصْدَأُ [۳] كَمَا يَصْدَأُ الْحَدِيدُ إِذَا أَصَابَهُ الْمَاءُ" [۴] قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ وَمَا جِلَاؤُهَا؟ [۵] قَالَ: "كَثْرَةُ ذِكْرِ الْمَوْتِ وَتِلَاوَةِ الْقُرْآنِ»[۶]" رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الْأَرْبَعَةَ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** [۱] ابن عمر رضي الله عنه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] یاد لری دا زړونه زنګ نیسی [۳] څرنګه چې د اوبو د رسیدو سره وسپنه زنګ نیسی [۴] عرض وشو یا رسول الله ﷺ د دی د پاکولو څه ذریعه ده؟[۵] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې مرګ زیات یادول او د قرآن کریم تلاوت،[۶] دا څلور سره روایتونه بیهقي رحمه الله په شعب الایمان کی نقل کړی دی

**حل اللغات:** ① تَصْدَأُ: أَيْ يَعْرِضُ لَهَا دَنَسٌ: یعنی زنګ او خیرې ورته لګی ② جِلَاؤُهَا: أَيْ آلَةٌ: یعنی د دې زنګ او خیری لرې کول به په څه کیږی.

**تسهیلات:**

**قوله:** "وَمَا جِلَاؤُهَا":

جلاء خیرنې زنګ شوې اوسپنه سپینولو ته پاره سوان ریګمال یا قلعی استعمالولې شی دې دپاره چه اوسپنه پرق اووهی او په دې کښې روښانتیا پیدا شی

**د ګناهونو د زنګ سره د تشبیه وجه:** هم د دې طرف ته په دې حدیث کښې اشاره ده چه د دنیا غفلتونو خرابو او د ګناه او معاصی د وجې نه زړه خیرن کیږی او په هغې لکه د ګناه یو داسې زنګ ورخیژی لکه د اوبو لګیدو سره چه په اوسپنه زنګ راپیداکیږی. په کوم سره چه زړونه سختیږی. د دې علاج حضور پاک او خودلو چه قرآن کریم د زیات نه زیات تلاوت کونې او مرګ ډیر ډیر یادونې په دې سره به د زړه زنګ ختم شی

[۲۳۹] د قرآن پاک د ټولو څخه عظیم آیت

۲۲۳۹-( )[۵۹][۱] وَعَنْ أَيْفَعَ بْنِ عَبْدِ الْكَلَاعِيِّ قَالَ: [۲] «قَالَ رَجُلٌ: يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ سُورَةِ الْقُرْآنِ أَعْظَمُ؟ [۳] قَالَ: "قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ" [۴] قَالَ: فَأَيُّ آيَةٍ فِي الْقُرْآنِ أَعْظَمُ؟ [۵] قَالَ: "آيَةُ الْكُرْسِيِّ اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ" [۶] قَالَ: فَأَيُّ آيَةٍ يَا نَبِيَّ اللهِ تُحِبُّ أَنْ تُصِيبَكَ وَأُمَّتَكَ؟ [۷] قَالَ: "خَاتِمَةُ سُورَةِ الْبَقَرَةِ فَإِنَّهَا مِنْ خَزَائِنِ رَحْمَةِ اللهِ -تَعَالَى- مِنْ تَحْتِ عَرْشِهِ [۸] أَعْطَاهَا هَذِهِ الْأُمَّةَ [۹] لَمْ تَتْرُكْ خَيْرًا مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ إِلَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ»" رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] ایفع ابن عبد الکلاعی وایي [۲] چې یو سړی (نبی کریم ﷺ ته) عرض وکړی چې

---

[۱] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان
[۲] اخرجه الدارمی فی السنن حدیث رقم : ۳۳۸۰

پ رسول الله ﷺ په قرآن مجيد کې (د صفات باری تعالی د بيان په سلسله کې د ټولو څخه عظيم الشان سورت کوم يو دی؟[٣] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې قل هو الله احد [۴] هغه عرض وکړې چې په قرآن کريم کې د ټولو څخه عظيم الشان آيت کوم يو دی؟ [۵] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې آيت الکرسی الله لا اله الا هو الحی القيوم [۶] هغه عرض وکړې چې يا رسول الله ﷺ هغه کوم آيت دی چې د هغه په باره کې نه خوښوی چې هغه (يعنی د هغه فائده او د هغه ثواب) تا لره ﷺ او ستا ﷺ امت لره زياته رسيږی؟[٧] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې د سورة بقره آخری حصه بيشکه هغه آخری (آياتونه) د الله ﷻ د رحمت په خزانو کې د عرش د لاندی څخه راخکته شوي دي [٨] چې دی امت ته ورکړل شوی دی [٩] او د دنيا او آخرت داسی خير نشته چې په دی کې نه وی، دارمی

**حل اللغات:** ①خَزَائِنِ: خزاني،

**تسهيلات:**

**قوله: أَيُّ سُورَةِ الْقُرْآنِ أَعْظَمُ؟ قَالَ: "قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ:**

**د رواياتو په مينځ کښې د تعارض دفع:** په دې حديث کښې سورت اخلاص دَ قرآن پاك لوئی سورت اوګرځولې شو او تيرشوی حديث نمبر: ۲۱۸ کښې سورت فاتحه دَټولونه لوئی سورت ګرځولې شوې دې. په کوم سره چه په ظاهره تعارض معلوميږی ليکن داځه تعارض نه دې خکه چه په سورت اخلاص کښې دَالله تعالی دَ ذات پيژندګلو کړې شوې ده اودَ ذات په اعتبارسره دَالله تعالی عظيم لوئی بيان کړې شوې ده خو په سورت فاتحه کښې دَ الله تعالی دَصفاتو په ذريعه دَ الله تعالی دَعظيم لوئی بيان کړې شوې دې جدا جدا مضمون دې

**[۲۱۷۰] دهرې بيمارۍ شفا او سورت فاتحه**

۲۱۷۰-()[۲۰][١] وَعَنْ عَبْدِ الْمَلِكِ بْنِ عُمَيْرٍ مُرْسَلًا قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[٢] " «فِي فَاتِحَةِ الْكِتَابِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** [١] عبد الملك ابن عمير بطريق ارسال روايت کوی چې نبی کريم ﷺ وفرمايل [٢] سورة فاتحه د هر مرض د پاره شفاء ده، دارمی بيهقي

**حل اللغات:** ①دَاءٍ: بيماری (هرقسم بيماری مراد ده که جسمانی وی اوکه روحانی)

**تسهيلات:**

**قوله: فِي فَاتِحَةِ الْكِتَابِ شِفَاءٌ مِنْ كُلِّ دَاءٍ:**

**په سورة فاتحې سره د علاج کولو مجرب نسخه:** تجربه هم شاهد ده او احاديث اودَ علماؤ اقوال هم

[1]) اخرجه الدارمی فی السنن حديث رقم: ۳۳۸۰ وشعب الايمان

ګواه دی چه ایمان اویقین سره چه چا علاج کړې دې په روحاني او جسماني دواړه شان سره صحت مند شوي دي البته صرف په يوخل يا يووار عمل کولوسره به فائده نه کيږي دَ څو ورځويوري تسلسل ساتل دَ هرې وظيفې دپاره ضروري دی فاتحه په اوبوباندې دم کړې شي يا په کاغذ باندې ليکلوسره اوڅښلې شي يا تعويذپه شکل کښې په غاړه کښې زوړند کړې شي

**[۲۱۷۱] دآل عمران دآخرې آياتونو فضيلت اوبرکت**

۲۱۷۱-()[۲۱] ① وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ: ② مَنْ قَرَأَ آخِرَ آلِ عِمْرَانَ فِي لَيْلَةٍ كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ.

**ترجمه** ① حضرت عثمان ابن عفان رضي الله عنه فرمايي ② کوم سړی چې په شپه کې د آل عمران آخري حصه اوواني نو د هغه د پاره د قيام الليل (يعني د شب بيداري) ثواب ليکل کيږي

**حل اللغات:** ① قِيَامُ لَيْلَةٍ: د شپې ولاړې نه مراد شب بيداري يعني تهجد وغيره دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** مَنْ قَرَأَ آخِرَ آلِ عِمْرَانَ فِي لَيْلَةٍ كُتِبَ لَهُ قِيَامُ لَيْلَةٍ:

**د سورة آل عمران د آخرې رکوع فضيلت:** دآل عمران د آخرې حصې نه مراد (إن في خلق السموات والارض) نه آخره پورې آيتونه دی د شپې مطلب د شپې ابتدائي حصه هم کيدېشی او آخري حصه هم يعنی که غواړې نو د شپې په اوله حصه کښې دې دا آيتونه اووائي يا د شپې په آخری حصه کښې د رسول کريم صلى الله عليه وسلم په باره کښې منقول دی چې کله به حضور سرور کائنات صلى الله عليه وسلم تهجدو دپاره بيدار شو نو په هغه وخت کښې به ئې اودس وغيره سره دا آيتونه لوستل

**[۲۱۷۲] د جمعې په ورځ دآل عمران لوستل او د فرشتو دعا**

۲۱۷۲-()[۲۲] ① وَعَنْ مَكْحُولٍ قَالَ: «مَنْ قَرَأَ سُورَةَ آلِ عِمْرَانَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ ② صَلَّتْ عَلَيْهِ الْمَلَائِكَةُ إِلَى اللَّيْلِ» رَوَاهُمَا الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ① مکحول رحمه الله فرمايي چې کوم سړی د جمعې په ورځ سورة آل عمران وايي ② نو د هغه د پاره تر شپې پورې فرشتې دعا کوی او استغفار وايي، دا دواړه روايتونه دارمي نقل کړی دی

**حل اللغات:** ① صَلَّتْ: أَيْ دَعَتْ لَهُ وَاسْتَغْفَرَتْ: دعاګانې ورله غواړی او طلب د بخښنې ئې کوی

**تسهيلات:** **نوټ:** د ترجمې څخه مطلب واضح دې

[1] اخرجه الدارمي في السنن حديث رقم: ۳۳۹۶

[2] اخرجه الدارمي في السنن حديث رقم: ۳۳۹۷

**[۳۸۳] د سورة بقره د آخري آياتونو ښخونه تعليم ورکول**

۳۸۳ — (۱)[۶۳] [۱] وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ نُفَيْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«إِنَّ اللهَ خَتَمَ سُورَةَ الْبَقَرَةِ بِآيَتَيْنِ [۳] أُعْطِيتُهُمَا مِنْ كَنْزِهِ الَّذِي تَحْتَ الْعَرْشِ، [۴] فَتَعَلَّمُوهُنَّ وَعَلِّمُوهُنَّ نِسَاءَكُمْ، [۵] فَإِنَّهَا صَلَاةٌ وَقُرْبَانٌ وَدُعَاءٌ» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه** [۱] جبير ابن نفير رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالی ﷻ سورة بقره په دوه آياتونو (يعنی د آمن الرسول څخه تر آخري پوری) ختم کړی دی [۳] دا دوه آياتونه ماته د هغه د خزانې څخه راکړل شوی دی چې د عرش څخه لاندی ده [۴] نو دا آياتونه تاسو زده کړی او ښخو ته يې وروښايي [۵] ځکه چې دا آياتونه د رحمت دی، د الله ﷻ د قرب ذريعه دی او د ټولو ديني او دنياوي خيرونو د حاصليدلو د پاره دعا ده. دا روايت دارمي بطريق ارسال نقل کړی دی.

**حل اللغات**: ① كَنْز: خزانه ② قُرْبَانٌ: أَيْ مَا يُتَقَرَّبُ بِهِ إِلَى اللهِ: الله تعالی ته د نزديکت ذريعه

**تسهيلات**:

**قوله**: فَإِنَّهَا صَلَاةٌ وَقُرْبَانٌ وَدُعَاءٌ:

**د قربان څخه مراد**: د قربان څخه مراد هغه دعا ګانې دی کومې چې انسان الله ﷻ ته نزدې کوی ښخو ته ددې دعاګانو د خودلو حکم په دې وجه شوې دی چې د ښخو په زده کولو سره به واړه ماشومان زر زده کړی ځکه چې د مور غيږه د ماشوم اولنی درسګاه وی

**[۳۸۴] د جمعې په ورځ د سورة هود لوستلو حکم**

۳۸۴ — (۲)[۶۴] [۱] وَعَنْ كَعْبٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«اقْرَءُوا سُورَةَ هُودٍ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] کعب رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د جمعی په ورځ سورة هود وايې. دارمي

**تسهيلات**: **نوټ**: د ترجمې څخه مطلب واضح دې د اضافی شرح ضرورت نشته

**[۳۸۵] د جمعې په ورځ د سورت کهف لوستلو فضيلت**

۳۸۵ — (۳)[۶۵] [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] "«مَنْ قَرَأَ سُورَةَ الْكَهْفِ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ [۳] أَضَاءَ لَهُ النُّورُ مَا بَيْنَ الْجُمُعَتَيْنِ» " [۴] رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ.

---

(۱) اخرجه الدارمی فی السنن حديث رقم: ۳۳۹۰

(۲) اخرجه الدارمی فی السنن حديث رقم: ۳۴۰۳

(۳) الحاکم فی المستدرک ۲/ ۳۶۸.

**ترجمه** [۱] ابو سعید رضی الله عنه روایې دی چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] کوم سړی چې د جمعې په ورځ سورة کهف وایي [۳] نو د هغه د پاره (یعنی د هغه په زړه کې د ایمان او هدایت نور) به تر دویمې جمعې پورې روښانه وی. [۴] بیهقی رحمه الله دا روایت په دعوات کبیر کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** ① أَضَاءَ: روښانه به کړی (په زړه کښې یا په قبر کښې).

**تسهیلات: قوله:** مَنْ قَرَأَ سُورَةَ الْكَهْفِ فِي يَوْمِ الْجُمُعَةِ أَضَاءَ لَهُ نُورٌ مَا بَيْنَ الْجُمُعَتَيْنِ.

**د جمعې په ورځ د سورة کهف د لوستلو فضیلت:** یعنی په یوه جمعه کښې چاچه سورت کهف اولوستلو نو د بلې جمعې پورې هغه سړې به د الله تعالی د طرف نه یو روحانی انواراتو او برکاتو کښې وی د دښمنانو د شرشدت نه به محفوظ وی او د دجال په شان لویو فتنو نه به بچ کیږی لکه څنګه چه د دې د شروع لس آیاتونو تاثیر په احادیثو کښې ذکر دی. لهذا په هرمسلمان باندې لازم دی چه هغه د جمعې په ورځ د سورت کهف د تلاوت اهتمام اوکړی د عوامو اوخواصو تجربه ده چه په دې عمل سره انسان د هرقسم فتنې او دښمن د حملې نه محفوظ پاتې کیږی

**[۲۱۷۶] د سورة آلم تنزیل خپل لوستونکی د پاره شفاعت**

۲۱۷۶- ()[۲۲] [۱] وَعَنْ خَالِدِ بْنِ مَعْدَانَ قَالَ: [۲] «اقْرَءُوا الْمُنْجِيَةَ وَهِيَ الٓمٓ تَنْزِيلُ [۳] فَإِنَّهُ بَلَغَنِي أَنَّ رَجُلًا كَانَ يَقْرَؤُهَا مَا يَقْرَأُ شَيْئًا غَيْرَهَا [۴] وَكَانَ كَثِيرَ الْخَطَايَا فَنَشَرَتْ جَنَاحَهَا عَلَيْهِ [۵] قَالَتْ: رَبِّ اغْفِرْ لَهُ فَإِنَّهُ كَانَ يُكْثِرُ قِرَاءَتِي [۶] فَشَفَّعَهَا الرَّبُّ - تَعَالَى - فِيهِ وَقَالَ: [۷] اكْتُبُوا لَهُ بِكُلِّ خَطِيئَةٍ حَسَنَةً [۸] وَارْفَعُوا لَهُ دَرَجَةً»

**ترجمه** [۱] د خالد ابن معدان رحمه الله څخه منقول دی [۲] چې هغه وفرمایل (د شپې په ابتدایي حصه کې) دا سورت وایې چې (د قبر او د حشر) عذاب څخه نجات ورکونکې دی او هغه سورة آلم تنزیل دی [۳] څکه چې (د صحابه و رضی الله عنهم څخه) ماته دا خبره رسیدلې ده چې یو سړی وو دا سورت به یې ویلې هغه به د دې سورت څخه علاوه نور هیڅ نه ویل (یعنی هغه د دې سورت څخه علاوه بل څه شی ورد (وظیفه) نه وه ګرځولې) [۴] او هغه سړی ډیر زیات ګنهکاره وو نو (کوم وخت چې هغه وفات شو نو) دی سورت په هغه خپل وزرونه وغوړول [۵] او فریاد یې وکړ چې اې زما پروردګاره دا سړی وبخښه څکه چې دا به زه ډیر زیات ویلم [۶] نو حق تعالی جل جلاله د هغه سړی په حق کې د دې سورت شفاعت قبول کې او فرښتو ته یې حکم ورکړو [۷] چې د هغه په نامه اعمال کې د هرې ګناه په بدله کې نیکی ولیکی [۸] او د هغه درجات اوچت کړی

**حل اللغات:** ① الْمُنْجِيَةَ: نجات ورکونکې. ② فَنَشَرَتْ: اونې غوړل، خورې نې کړې. ③ جَنَاحَهَا: وزرې

---

[۱] اخرجه الدارمی فی السنن حدیث رقم: ۳۴۰۸

وَقَالَ أَيْضًا: إِنَّهَا تُجَادِلُ عَنْ صَاحِبِهَا فِي الْقَبْرِ ۲ تَقُولُ: اللّٰهُمَّ إِنْ كُنْتُ مِنْ كِتَابِكَ فَشَفِّعْنِي فِيهِ ۳ وَإِنْ لَمْ أَكُنْ مِنْ كِتَابِكَ فَامْحُنِي عَنْهُ ۴ وَإِنَّهَا تَكُونُ كَالطَّيْرِ تَجْعَلُ جَنَاحَهَا عَلَيْهِ ۵ فَتَشْفَعُ لَهُ فَتَمْنَعُهُ مِنْ عَذَابِ الْقَبْرِ ۶ وَقَالَ فِي تَبَارَكَ مِثْلَهُ ۷ وَكَانَ خَالِدٌ لَا يَبِيتُ حَتَّى يَقْرَأَهُمَا» ۸ وَقَالَ طَاوُسٌ: فُضِّلَتَا عَلَى كُلِّ سُورَةٍ فِي الْقُرْآنِ بِسِتِّينَ حَسَنَةً. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ۱ خالد رحمه الله دا هم فرمایل چې بیشکه دا سورت د خپل ویونکی د طرف څخه په قبر کی جګړه کوی ۲ او وایي چې یاالٰهی که زه ستا د کتاب (قرآن کریم) جز یم چې په لوح محفوظ کی لیکل شوی دی نو د ده په حق کی زما شفاعت قبول کړی ۳ او که (بفرض محال) زه ستا په کتاب کی نه یم نو ما د هغه څخه لیری کی ۴ او خالد رحمه الله وفرمایل دا سورت به په قبر کی د یو مرغه په شکل راشی او په هغه به خپل وزر وغوړوی ۵ د هغه د باره الله تعالیٰ جل جلاله ته شفارس کول نوهغه د عذاب قبر څخه بچ کوی ۶ خالد رحمه الله د سورة تبارک الذی اوده الملك په باره کی هم دغه وفرمایل چې (د دی سورة هم دا تاثیر او برکت دی) ۷ د خالد رحمه الله دا معمول وو چې هغه به د دی دواړه سورتونو ویلو بغیر نه څملاستل ۸ حضرت طاوس رحمه الله فرمایي چې دی دواړو سورتونو ته د قرآن کریم په هر سورت د شپیتو ۶۰ نیکیو سره فضلیت ورکړل شوی دی، دارمی ، یعنی دا دواړه روایتونه چې یو دخالد رحمه الله څخه اودویم د طاوس رحمه الله څخه منقول دی دارمی رحمه الله نقل کړی دی

**حل اللغات:** ۲ تُجَادِلُ : جګړه کوی، ۵ فَامْحُنِي : وران کړه ما ، ختم مي کړه. ۸ لَايَبِيتُ: أَيْ لَا يَرْقُدُ شپه به نې نه تیروله مطلب دا چه نه به اوده کیدلو

**دخالد مختصر تعارف:** حضرت خالد بن معدان یو جلیل القدر تابعی دې دوئ د اویاؤ صحابه کرامو سره ملاقات کړې وو

**تسهیلات:**

**قوله:** فَنَشَرَتْ جَنَاحَهَا

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې درې اقوال:**

۱ ددې څخه ثواب مراد دې

۲ د مارغه شکل اختیارول ترې مراد دې چې دا به د خپلو وزرو په ذریعه په ده باندې سیوری کوی

۳ ددې څخه دالله رحمت مراد دې (مرقاة/۴ص/۳۷۵)

**قوله:** تُجَادِلُ عَنْ صَاحِبِهَا فِي الْقَبْرِ

**د خپل تالی دپاره د جګړې کولو په مفهوم کښې اقوال:**

۱ د زیات تلاوت په وجه به شفاعت کوی

④ دعذاب د تخفیف سبب به جوړېږي
⑤ د عذاب د رفع کولو شفاعت به کوي
⑥ د قبر د فراخه کیدو شفاعت به کوي

**د سورة ملک دا شان فضیلت:** داشان د سورة الملك او د سورة الم تنزيل فضيلت په دې وجه دې چې دا به دخپلو ويونکو دپاره په فخر سره د الله ﷻ په دربار کښې شفاعت کوي او جګړه به کوي په دې وجه ددې ذکر اوشو

**[۲۱۷۷] دَسورت یاسین لوستلو فضیلت**

۲۱۷۷—( )[۶۷] ۱ وَعَنْ عَطَاءِ بْنِ أَبِي رَبَاحٍ قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«مَنْ قَرَأَ "يس" فِي صَدْرِ النَّهَارِ ۳ قُضِيَتْ حَوَائِجُهُ»" رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ مُرْسَلًا.

**ترجمه** ۱ عطاء ابن ابی رباح (تابعي) رحمه الله وايي چې ماته دا حديث رسيدلی دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ چې کوم سړی د ورځې په ابتدائی حصه کې سورة يٰس وايي ۳ نو د هغه دینی او دنیاوی حاجتونه به پوره کيږي، دارمی رحمه الله دا روايت بطريق ارسال کړی دی

**تسهیلات: قوله: قُضِيَتْ حَوَائِجُهُ:**

**د حوائجو څخه په مراد کښې اقوال:**

① د حوائج څخه دینی حوائج مراد دی
② د حوائج څخه دنیوی حوائج مراد دی
③ د دنيا او آخرت دواړه حوائج مراد دی.

**[۲۱۷۸] قریب المرګ ته سورة يٰس ويل**

۲۱۷۸—( )[۶۸] ۱ وَعَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ الْمُزَنِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۲ "«مَنْ قَرَأَ يس ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللهِ - تَعَالَى - ۳ غُفِرَ لَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ ۴ فَاقْرَءُوهَا عِنْدَ مَوْتَاكُمْ»" رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** ۱ معقل ابن يسار مزنی رضي الله عنه رواي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړی چې د الله رب العزت درضا او خوشنودی په طلب کی سورة یٰسین وايي ۳ نو د هغه هغه ګناه بخښل کيږي چې هغه مخکی کړی وی ۴ نو دا سورت د خپلو مُرده ګانو په مخکی وايي. بيهقي

[1] اخرجه الدارمی فی السنن حدیث رقم: ۳۴۱۸
[2] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم: ۲۴۵۸

تسهيلات:

**قوله: غُفِرَلَهُ مَا تَقَدَّمَ مِنْ ذَنْبِهِ:**

**د گناهونو څخه مراد:** د گناهونو نه مراد صغير گناهونه دي چې هغه ددې سورة په برکت سره بخښلې کيږي داشان کبيره گناهونه هم بخښلې کيږي که د الله ﷻ فضل و کرم او د هغه عظيم رحمت په کښې شامل شي

**قوله: فَاقْرَءُوهَا عِنْدَ مَوْتَاكُمْ:**

**د موتي په مصداق کښې دوه اقوال:**

① مړو څخه مراد قريب المرگ دی مطلب دادې چې د کوم کس زنکدن وی نو د هغه په وړاندې سورة ياسين ونيل پکاردی چې دژوند په آخری وخت کښې دا واوری او ددې معنو طرفته توجه اوکړی داشان به ددې آوريدل ددې د ونيلو په حکم کښې راشي اودا به دده د مغفرت او بخښنې سبب شي

② ياد مړو څخه مراد دا هم کيدې شی چې ددې سورة خپل مړی ته د مغفرت او بخښنې زيات احتياج وی.

**[۲۱۷۹] د قرآن لوړوالې او سورة بقره**

۲۱۷۹ ـ ()[۲۹] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ أَنَّهُ قَالَ: ② إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ سَنَامًا ③ وَإِنَّ سَنَامَ الْقُرْآنِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ ④ وَإِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ لُبَابًا ⑤ وَإِنَّ لُبَابَ الْقُرْآنِ الْمُفَصَّلُ" رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** ① د عبد الله ابن مسعود ﷺ په باره کی روايت دی چې هغه وفرمايل ② د هر څيز د پاره رفعت او بلندی (يعنی لوړوالی) وی ③ او د قرآن رفعت او بلندی په سورة بقره دی ④ د هر څيز خلاصه (حاصل مقصد) وی ⑤ او د قرآن خلاصه مفصلات دی، دارمی.

**حل اللغات:** ① سَنَامًا: أي رِفْعَةً: اوچتوالې، لوړوالي، ② لُبَابًا: أي خُلَاصَةً: خلاصه، حاصل دمقصد، ③ الْمُفَصَّل: مفصلات (د سورة حُجرات نه تر د قرآن آخره پورې سورتونه مراد دی.او دې ته مفصلات څکه وائی چه په دې کښې د قرآن د ټولو مضامينو اجمال سره ذکرشوې دې)

تسهيلات:

**قوله: وَإِنَّ سَنَامَ الْقُرْآنِ سُورَةُ الْبَقَرَةِ:**

**د سورة بقره د اوښ د کوب سره د تشبيه وجه:** سنام د اوښ کوب ته وائی چونکه د اوښ کوب ډير اوچت وی په دې وجه هغې ته سنام ونيلې کيږی د سورة بقره څخه په سنام سره تعبير کړې شوې ده چونکه په سورة بقره کښې ډير زيات احکامات دی په دې وجه دې ته رفع او

---

[۱] اخرجه الدارمی فی السنن حديث رقم: ۳۳۷۷

اوچت والي حاصل دي بعنوان آخر د اونې حسن په اوچت کوب سره د مسجد حسن په اوچتو مینارو سره او د قرآن حسن په سورة بقره سره دي اکثر احکام شرعیه په دي سورة کښې دی او هم دا د ټولو سورتونو نه لوې سورة دي

**قوله**: وَإِنَّ لُبَابَ الْقُرْآنِ الْمُفَصَّلُ:

**د مفصلات څخه مراد**: دهرڅيز خلاصه وی او دقرآن پاك خلاصه مفصلات دی مفصلات سورة حجرات نه واخله تر والناس پورې دی

**د مفصلات وجه تسمیه**: دا سورتونه په دې طور سره خلاصه دی چې په دې کښې دقرآن کریم کوم مضامین په اختصار او اجمالی طور سره متفرقو سورتونو کښې دی هغه په دې سورتونو کښې په یو ځائې کښې ذکر دی په دې وجه دې سورتونو ته مفصلات وائی

**[۲۱۸۰] دقرآن زینت سورت رحمن**

۲۱۸۰ –()[۴۰] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] " «لِكُلِّ شَيْءٍ عَرُوسٌ» [۳] وَعَرُوسُ الْقُرْآنِ الرَّحْمَنُ» ".

**ترجمه** [۱] حضرت علی رضی الله عنه څخه روایت دې چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوریدل [۲] چې د هر څیز د پاره ښایست وی [۳] او د قرآن ښایست سورة رحمن دی

**حل اللغات**: ①عَرُوسٌ: أَيْ جَمَالٌ: ښائست، زینت

**تسهیلات**:

**قوله**: وَعَرُوسُ الْقُرْآنِ الرَّحْمَنُ:

**د سورة رحمن د زینة القرآن کیدو وجوهات**:

① سورت رحمن په دې وجه دَ قرآن پاك زینت دې چه زموږ خوږ پیغمبر ﷺ هم دغه شان فرمانیلی دی

② په سورت رحمن کښې دَ الله تعالی دَ عجیبه نعمتونو ذکر دې دَ حورو حسن او جمال او دَهغوی دکالو دَ شان او کمال ذکر دې

③ دَ دې سورت الفاظ او آیاتونه په عجیبه طریقه سره واقع دی دَ لویو سورتونو او دَ یو خاص آیت باربار ونیل دَ زیب او زینت په اعتبار سره یو خاص شان لری شوقیان خلق که هغه عوام وی او که خواص دا پیژنی

[۱]) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان رقم: ۲۴۹۳

[۲۸۸] د فقيرۍ څخه د حفاظت دپاره هره شپه د سورت واقعه لوستل

۲۲۸-( )[۴۱] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ قَرَأَ سُورَةَ الْوَاقِعَةِ فِي كُلِّ لَيْلَةٍ [۳] لَمْ تُصِبْهُ فَاقَةٌ أَبَدًا» "[۴] وَكَانَ ابْنُ مَسْعُودٍ يَأْمُرُ بَنَاتَهُ يَقْرَأْنَ بِهَا فِي كُلِّ لَيْلَةٍ. رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** [۱] ابن مسعود رضي الله عنه روايي دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړى چي هره شپه سورة واقعه وايي [۳] هغه به هيڅ كله د فاقى حالت ته نه رسي [۴] ابن مسعود رضي الله عنه به خپلو لونړو ته حكم وركولى چي هره شپه دا سورت وايي، دا دواړه روايتونه بيهقي رحمه الله په شعب الايمان كي نقل كړي دي.

**حل اللغات**: ① فَاقَةٌ: أَيْ فَقْرٌ: فاقه، محتاجي.

**تسهيلات**: **قوله**: لَمْ تُصِبْهُ فَاقَةٌ أَبَدًا:

**په سورة واقعه د غريبۍ علاج**: دَ سورت واقعي خاص اثردي چه كوم غريب. فقير، محتاج دا پخپله دَ ماسخوتن لولي يا دَ خپل بال بچ په ذريعه ئي تلاوت كوي الله تعالى دَ دغه كورنه بې كه تنده لري كوي. فرض كړه كه مال ملاؤهم نه شي نو الله تعالى ورته دَ زړه استغناء او صبراوسكون وركوي. شريعت دَبعضې عبادتونو دَ آخرت فائدوسره دَ دنياوى فائدو هم ذكر دَدې دَ پاره كړې دې چه خلق دَ دغه عبادت طرف ته متوجې شي اودغه عبادت په معاشره كښې بنه عام شي.

[۲۸۲]-د نبي عليه السلام سورة اعلى سره محبت

۲۲۳-( )[۴۲] [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُحِبُّ هَذِهِ السُّورَةَ سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** [۱] حضرت على فرمايي [۲] چي رسول الله ﷺ به دا سورت يعنى سبح اسم ربك الاعلى ډير محبوب لرلى، احمد.

**تسهيلات**:

**قوله**: سَبِّحِ اسْمَ رَبِّكَ الْأَعْلَى:

**د الهامى كتابونو شمير**: آسماني تولې صحيفې سل دى دَ كوم طرف ته په سورة الأعلى كښې په صحف اولى سره اشاره كړې شوې ده اوآسماني لوئى كتابونه څلوردى په دغه صحيفوكښې دَ دين اودنيا دَ خيرښيگړې تعليمات او دَ نفس دَتزكيه دَ پاره بهتر وعظونه اونصيحتونه موجودوو.

[1] اخرجه البيهقى فى شعب الايمان رقم: ۲۴۹۸

[2] اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۲۲۰

## [۲۸۳] د سورت زلزال فضیلت

۲۱۸۳-( ) [۲۳] ١ وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ: ٢ «أَتَى رَجُلٌ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: أَقْرِئْنِيْ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ ٣ فَقَالَ: "اقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ آلر" ٤ فَقَالَ: كَبُرَتْ سِنِّيْ ٥ وَاشْتَدَّ قَلْبِيْ ٦ وَغَلُظَ لِسَانِيْ، ٧ قَالَ: "فَاقْرَأْ ثَلَاثًا مِنْ ذَوَاتِ حٰمٓ" ٨ فَقَالَ مِثْلَ مَقَالَتِهٖ،

**ترجمه** ١ عبدالله بن عمرو رضي الله عنه وايي ٢ چې يو سړی د نبی کریم ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو چې يا رسول الله ﷺ ماته راوښايه ٣ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې د قرآن کریم هغه سورتونه چې د هغه په شروع کې آلر دی وایه ٤ هغه سړی عرض وکړی چې زما عمر زيات شوی دی ٥ او زما زړه سخت شوي دي يعنی زما په زړه د حافظې د کمی او هیری غلبه ده) ٦ او زما ژبه سخته ده (یعنی کلام الله خصوصاً لوی سورتونه زه نشم يادولی) ٧ نبی کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل چې که ته هغه سورتونه نه شې ویلی نو په هغه سورتونو کې دری سورتونه وایه چې د هغوی په شروع کې حم دی (څکه چې دا سورتونه د هغه سورتونو په مقابله کې وړوکي دی) ٨ نو هغه سړی د مطالبې مطابق نبی علیه السلام د حوامیم څه تلاوت اوفرمائیل

**حل اللغات**: ① ذَوَاتِ آلر: أَيْ مِنَ السُّوَرِ الَّتِي صُدِّرَتْ بِآلر: هغه سورتونه د کوم په شروع کښې چه الر راغی ② ذَوَاتِ حم: هغه سورتونه د کوم په شروع کښې چه حم راغی.

١ قَالَ الرَّجُلُ: يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَقْرِئْنِيْ سُوْرَةً جَامِعَةً ٢ فَأَقْرَأَهُ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا زُلْزِلَتْ حَتّٰى فَرَغَ مِنْهَا ٣ فَقَالَ الرَّجُلُ: وَالَّذِيْ بَعَثَكَ بِالْحَقِّ لَا أَزِيْدُ عَلَيْهِ أَبَدًا ٤ ثُمَّ أَدْبَرَ الرَّجُلُ، فَقَالَ رَسُوْلُ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "أَفْلَحَ الرُّوَيْجِلُ" مَرَّتَيْنِ. رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه** ١ هغه سړی بیا اوویل چې یا رسول الله ﷺ ماته څه جامع سورت وښایه (یعنی څه داسی راته وښايه چې په هغه کې ډيری خبری جمع وی) ٢ نبی کریم صلی الله علیه وسلم هغه ته سورة اذا زلزلت وويلی کوم وخت چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم د پوره سورت ويلو څخه فارغه شو ٣ نو هغه سړی اوویل چې قسم دی په هغه ذات چې ته ﷺ يې په حقه سره راليږلی يې (په دی سورت د عمل کولو په سلسله کې) د دی څخه به هيڅ کله هم زياتوالی ونه کړم ٤ بيا هغه سړی لاړو نو نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې دی سړی مراد حاصل کې دا خبره نبی کریم صلی الله علیه وسلم دوه ځله وفرمايله، احمد ابوداؤد

**حل اللغات**: ③ أَدْبَرَ: أَيْ وَلّٰى دُبُرَهُ وَذَهَبَ: شا ئې اوګرځوله او لاړه. ④ أَفْلَحَ: أَيْ فَازَ: کامیاب شو ⑤ الرُّوَيْجِلُ: په دې کښې دوه احتمالات دی، یا د رَاجِل اویا د رَجُل تصغير دې، په اول صورت کښې ترې پیدل ګرځیدونکې مراد دې او په دويم صورت کښې ترې سړې مراد دې

[١] اخرجه احمد في المسند: ٢/١٦٩

**تسهيلات:**

**قوله:** فَأَقْرَأَهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا زُلْزِلَتْ.. الخ:

**د سورة زلزال د جامعيت وجه:** دې سورت ته جامعه ځکه فرمائيلې شوې دی چه په دې کښې ﴿فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ ۞ وَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَرَهُ﴾ [سورت زلزال الايه ۷] غوندې آيت دې کوم چه يو خيز بهر پرېنخودو تول هرڅه ئې په خپل ځان کښې راغوندکړل

## [۲۱۸۴] د سورة تكاثر فضيلت

۲۱۸۴-()[۷۴] ﴿۱﴾ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ﴿۲﴾ " «أَلَا يَسْتَطِيعُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ؟ ﴿۳﴾ " قَالُوا: وَمَنْ يَسْتَطِيعُ أَنْ يَقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ؟ ﴿۴﴾ قَالَ: " أَمَا يَسْتَطِيعُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَقْرَأَ أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ» " رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** ﴿۱﴾ ابن عمر رضي الله عنهما روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ﴿۲﴾ آيا په تاسو کی څوک سړی په دی قادر نه دی چې هغه روزانه زر ۱۰۰۰ آياتونه وايي ﴿۳﴾ صحابه و رضي الله عنهم عرض وکړی چې (يا رسول الله ﷺ) کوم سړی په دی قادرکيدی شی چې هغه (هميشه) زر آياتونه وايي؟ ﴿۴﴾ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې آيا څوک په دی نشی قادر کيدی چې هغه (روزانه) أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ وايي، بيهقي.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا يَسْتَطِيعُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَقْرَأَ أَلْفَ آيَةٍ فِي كُلِّ يَوْمٍ؟:

**سورة تكاثر او د قرآن يوزر آياتونه:** سورت تکاثر مختصر سورت دې دَ کوم په لوستلو کښې چه هيڅ وخت نه لګی په يومنټ کښې درې ځل لوستلې شی ـ ليکن دې دولت ته لرشان اوګورئی چه دَ زرو آياتونو برابردې دکم خرچ بالانشين مثال دې هرمسلمان له پکاردی چه دې نه فائده اوچته کړی او په يومنټ کښې دَ زرو آياتونو ثواب اوګټی

## [۲۱۸۵] سورت اخلاص لس ځل لوستلو باندې يومحل ملاويدل

۲۱۸۵-()[۷۵] ﴿۱﴾ وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ الْمُسَيَّبِ مُرْسَلًا عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ﴿۲﴾ " «مَنْ قَرَأَ قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ عَشْرَ مَرَّاتٍ ﴿۳﴾ بُنِيَ لَهُ بِهَا قَصْرٌ فِي الْجَنَّةِ، ﴿۴﴾ وَمَنْ قَرَأَ عِشْرِينَ مَرَّةً بُنِيَ لَهُ قَصْرَانِ فِي الْجَنَّةِ، ﴿۵﴾ وَمَنْ قَرَأَهَا ثَلَاثِينَ مَرَّةً بُنِيَ لَهُ بِهَا ثَلَاثَةُ قُصُورٍ فِي الْجَنَّةِ " ﴿۶﴾ فَقَالَ عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ: وَاللّٰهِ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِذًا لَنُكْثِرَنَّ قُصُورَنَا، ﴿۷﴾ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " اللّٰهُ أَوْسَعُ مِنْ ذَلِكَ» " رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ﴿۱﴾ سعيد ابن مسيب بطريق ارسال نقل کوی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ﴿۲﴾ کوم

---

(1) اخرجه البيهقی فی شعب الايمان رقم :۲۵۱۸

(2) اخرجه الدارمی فی السنن حديث رقم : ۳۴۲۹

سري چې سورة قل هو الله احد لس ۱۰ ځله اوواني [۳] نو د دې په وجه د هغه د پاره په جنت کې يو محل جوړول کيږي [۴] او څوک چې يې شل ځله اوواني د هغه د پاره به په جنت کې دوه محله جوړول کيږي [۵] او څوک چې يې ديرش ځله اوواني د هغه د پاره به په جنت کې درې محله جوړول کيږي [۶] (د نبي مبارک څخه دا بشارت آوريدو سره) حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه اوويل چې قسم په خداي اې د الله تعالی رسوله صلی الله علیه وسلم اوس خو به مونږ خان لره په جنت کې ډير محلونو جوړ کړو (يعنی د دې سورت د ويلو چې دا برکت دی او د دې چې دا ثواب دی نو اوس به مونږ دا سورت ډير زيات وايو چې د دې په وجه په جنت کې زمونږ د پاره ډير محلونه جوړ شي) [۷] رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل چې الله تعالی جل جلاله د دې څخه هم ډير زيات واسع دی (يعنی د دې سورت فضيلت او د دې ثواب ډير عظيم او وسيع دی نو په دې بشارت باندې تعجب مه کويې بلکه د دې د حصول کوشش کوی او دی طرف ته راغب اوسی) دارمی

**حل اللغات:** ① قَصْرٌ: محل، مانړئ ② لَنُكْثِرَنَّ: مِنَ الْإِكْثَارِ: د باب افعال نه د متکلم صيغه ده يعنی مونږ به ډيرې کړو

**تسهیلات:**

**قوله: قَصْرٌ فِي الْجَنَّةِ:**

**سورة اخلاص او دجنت مانړی:** يعنی کوم سړي چه سورت اخلاص لس ځل اولولی دهغې په بدله کښې به الله تعالی هغه ته په جنت کښې يو محل ورکړی. اوکه سل ځل ئې اولولی نو لس محلونه به ورته ملاويږی. په هرمسلمان باندې لازم دی چه هغه دې د دغه عظيم دولت نه فائده واخلی او په دې کښې دې کوتاهی نه کوی. د خپل ځان دپاره دې هم لولی او د خپلو مردګانو دايصال ثواب دپاره دې هم لولی. هم په دې باندې حضرت عمر رضي الله عنه تعجب اوکړوچه زمونږ خو به ډير محلونه جوړشی. حضورپاک اوفرمائيل چه دالله تعالی وسعت ستا د تعجب نه ډير زيات دې. بهرحال محل ملاويدل خو خان له نعمت دې ليکن د دې بشارت په ضمن کښې په جنت کښې داخليدلو بشارت ملاوشو هغه خان له نعمت دې

**[۲۱۸۲] د شپې د قرآن پاک د تلاوت مختلف مراتب**

٢١٨٢ – ( )[٤٦] [۱] وَعَنِ الْحَسَنِ مُرْسَلًا أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَنْ قَرَأَ فِي لَيْلَةٍ مِائَةَ آيَةٍ [۳] لَمْ يُحَاجِّهِ الْقُرْآنُ تِلْكَ اللَّيْلَةَ، [۴] وَمَنْ قَرَأَ فِي لَيْلَةٍ مِائَتَيْ آيَةٍ كُتِبَ لَهُ قُنُوتُ لَيْلَةٍ، [۵] وَمَنْ قَرَأَ فِي لَيْلَةٍ خَمْسَمِائَةٍ إِلَى الْأَلْفِ [۶] أَصْبَحَ وَلَهُ قِنْطَارٌ مِنَ الْأَجْرِ» [۷] قَالُوا: وَمَا الْقِنْطَارُ؟ قَالَ: «اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا» رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] حضرت حسن بطريق ارسال نقل کوی چې نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] کوم سړی

[1]) اخرجه الدارمی فی السنن حديث رقم: ۳۴۵۹

چې د شپې د قرآن سل ۱۰۰ آیاتونه اوواني [۳] نو په دې شپه کې به قرآن د هغه سره جنګ نه کوي [۴] او څوك چې د شپې دوه سوه ۲۰۰ آیاتونه اوواني نو دهغه دپاره د شب بیداري ثواب لیکل کیږي [۵] او څوك چې د شپې د پنځه سوه څخه بیا تر زرو ۱۰۰۰ پورې آیاتونه اوواني [۶] نو هغه به داسې حال کې صبا کوي چې د هغه دپاره د قنطار ثواب لیکل کیږي [۷] صحابه ؓ عرض وکړې چې قنطار څه ته وايي؟ حضور ﷺ وفرمایل چې دولس ۱۲۰۰۰ زره درهم یا دینار. دارمي

**حل اللغات:** ① قُنُوتٌ: أي طاعتها أو قيامها: دشپې عبادت او طاعت لکه مونځ ذکر وغیره ② قِنطارٌ مفرد دې د دې جمع قناطير راځي أي المال الكثير: ډیر مال ته وائي دولس زره درهم یا دینار ته وائي

**تسهیلات:**

**قوله: لَمْ يُحَاجِهِ الْقُرْآنُ:**

**د قرآن پاك د جګړې او ملامتیا کولو اسباب:** یعنی قرآن کریم به هغه سرې سره جګړه نه کوي دې نه معلومه شوه چه کوم سړي دَ قرآن پاك تلاوت نه کوي او په هغې باندې عمل نه کوي نوقرآن به دَهغه دښمن جوړشي اودَهغه نه به دَ خپل حق مطالبه کوي بیابه دَهغه خلاف شکایت کوي دلته دومره خبره ذهن کښې ساتل پکاردي چه دَ قرآن پاك جګړه ، لعنت او ملامته کول په دوو سببونو باندې دي.

① یودَ قرآن پاك نه لوستل ② په قرآن پاك باندې عمل نه کولودَوجې نه.

په دې دوو کارونوکښې که یوسړې کوتاهي کوي نوقرآن پاك به هغه سره جګړه کوي اوس که یوسړې په عمل کولو کښې کوتاهي نه کوي صرف په تلاوت کښې کوتاهي کوي نو تلاوت کولوسره به دا جګړه ختمه شي اوکه یوسړې تلاوت خو کوي لیکن عمل نه کوي نو صرف په تلاوت کولوسره به دا جګړه ختمه نه شي بلکه په عمل کولوسره به ختمیږي

[اخرجه الدارمي ۲/۳۱۳]

**د قرآن پاك د تلاوت وجوب:** علامه طیبي رحمه الله فرمائي چه داحدیث په دې باندې دلالت کوي چه دَ قرآن تلاوت په هرمسلمان باندې واجب دي

بهر حال په دې حدیث کښې دَ جګړې نسبت دَ قرآن پاك طرف ته مجازي دې. په حقیقت کښې به دا جګړه دَ الله تعالی دَطرف نه وي بعضې شارحینودا وعیددَهغه حافظ قرآن دپاره خودلی دی دَچانه چه دَ قرآن هیریدلو خطره ده اوهغوی دَدې حفاظت نه کوي.

**قوله: قِنطَارٌ:** دَ ډهیري اوخزانې په معنی کښې دې یعنی دَدې دَ وزن برابر به ثواب ملاویږي یادَتعداد برابربه ثواب ملاویږي یعنی دولس زره درهم یا دینار.

# [ ۱ ] بَابُ آدابِ التِّلَاوَةِ وَدُرُوْسِ الْقُرْآنِ

## د قرآن پاک لوستل اوبیل ته د نبودلو آداب

**خلاصة الباب فيه أربعة وعشرون حديثاً مشتملة على خمس مسائل**

① حكم تعاهد القرآن والزجر بعدمه: ۱، ۲، ۳، ۱۴، ۲۴.

② القراءة على الغير: ۹، ۱۰، ۱۲.

③ النهي عن السفر إلى أرض العدو مع القرآن: ۱۱.

④ وجوب العمل بالقرآن: ۱۷.

⑤ كيفيات قراءة القرآن: ۴، ۵، ۶، ۷، ۱۵، ۱۶، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴

قال الله تعالى ﴿ وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيلًا ﴾ [سورت مزمل الايه ۴]

په دې خبره باندې پوهیدل پکار دی چه دلته دَ مشکوة په نسخو کښې صرف دَ باب لفظ لیکلې شوې دې هیڅ عنوان نشته دې دکوم مطلب چه دا وی چه داباب دَدې نه وړاندینې باب لواحقات نه دې البته شارح طیبی رحمه الله او ملاعلی قاری رحمه الله دغه پورتنې عنوان قائم کړې دې په دې عنوان کښې چه دَ کومومضمونونو طرف ته اشاره کړې شوې ده په دې باب کښې هم دَدې متعلق احادیث ذکردی. بل دَ قرآن عظیم نګرانئی او حفاظت باندې زور ورکړې شوې دې اودَ دې په هیرولو باندې سخت وعید اورولې شوې دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۱۸۴] دَ قرآن پاک دیاد ساتلو تاکید

۲۱۸۴-(۱)[۱] ① عَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «تَعَاهَدُوا الْقُرْآنَ، ③ فَوَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ ④ لَهُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِي عُقُلِهَا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابو موسی اشعری رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل ② د قرآن خبر ګیری کوی یعنی قرآن برابر وایې چې هیر یې نه کی ③ قسم دی په هغه ذات چې د هغه په قبضه کی زما ساه ده ④ قرآن د سینو څخه دومره زر وزی چې اوښ هم دومره زر د خپلی رسی څخه نه وځی. بخاری مسلم

**حل اللغات** ① تَعَاهَدُوا: أي رَاعُوهُ بِالْمُحَافَظَةِ: خبرګیری او حفاظت کوئ ② تَفَصِّيًا: دَ باب تفعل نه دې أي فِرَارًا وَذَهَابًا: تیښته. تلل. خان خلاصول ③ عُقُلِهَا: د عِقَال جمع ده وَهُوَ الْحَبْلُ الَّذِي يُشَدُّ بِهِ ذِرَاعُ الْبَعِيرِ: هغه مضبوطې رسی ته وائی چه د اوښ خپې پرې ترلې شی

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن/باب استذکار القرآن وتعاهده(رقم-۵۰۳۳) ومسلم فی کتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب الأمر بتعهد القرآن. وكراهة قول نسيت آية كذا. وجواز قول أنسيتها(رقم-۲۳۱ - (۷۹۱) واحمد فی المسند : ۴/ ۳۹۷

**تسهيلات:**

**قوله: هُوَ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنَ الْإِبِلِ فِي عُقُلِهَا:**

**په هيرېدو کښې د اوښ سره د قرآن تشبيه:** قرآن پاك خو يوعظيم دولت دې اولوئي دولت خپل حفاظت غواړي که څوك ئې ناقدري کوي او په حفاظت کښې کوتاهي کوي نودا دولت خې دلته ترلې شوې تګې اوړې سره دَ قرآن تشبيه ورکړې شوې ده چه کله هغه اوښ تګې وي اودَ رسئ نه خلاص شي نوهغه په منډو باندې دَ اوبوطرف ته تختي عربوکښې دستور وو چه پښه ورځې به ئې اوښان ترلې ساتل اوبوته دَ بوتلو ضرورت به ئې نه محسوس کولو په شپږمه ورځ چه به ئې اوښان دَ رسو نه خلاصول نوهغوی به په منډو سره اوبو له تلل هم دغه شان مثال دَ قرآن هم دې کنې تختي دَ قرآن پاك معجزه ده چه څومره زر يادېږي اوهغه هومره زر هيرېږي هم.

**[۳۸۸] ما څخه قران هير شو دې قول ممانعت**

۳۸۸—()[۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «بِئْسَ مَا لِأَحَدِهِمْ أَنْ يَقُولَ [۳] نَسِيتُ آيَةَ كَيْتَ وَكَيْتَ بَلْ نُسِّيَ، [۴] وَاسْتَذْكِرُوا الْقُرْآنَ [۵] فَإِنَّهُ أَشَدُّ تَفَصِّيًا مِنْ صُدُورِ الرِّجَالِ مِنَ النَّعَمِ». [۶] مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ، وَزَادَ مُسْلِمٌ: بِعُقُلِهَا.

**ترجمه:** [۱] ابن مسعود رضي الله عنه روايې دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د يو سړی د پاره دا خبره خرابه ده چې هغه داسې اووايې [۳] چې زما څخه فلانی فلانی آيت هير شو بلکه هغه دی داسې اووايې چې را څخه هير کړی شو [۴] قرآن کريم برابر يادوی [۵] څکه چې هغه د خلقو د زړونو څخه د څناورو څخه هم زر وزی، [۶] بخاری مسلم، د مسلم په روايت کی لفظ بعقلها هم دی (يعنی هغه څاروو څخه هم ژر) چې په خپله رسی کی ترلی وی

**حل اللغات:** ① كَيْتَ وَكَيْتَ: اسماء کنايه دی په دې سره کنايه کيږی په يو مقدار سره يا د يو قول نه دلته به معنی داسې شی چه فلانکې فلانکې آيت ② تَفَصِّيًا: دَ باب تفعل نه دې أَيْ فِرَارًا وَذَهَابًا: تيخته، تلل، ځان خلاصول ③ النَّعَمِ: الْإِبِلُ وَالشَّاةُ: اوښان، ګډې بزې وغيره څاروو ته وائی خو اکثر د اوښانو دپاره استعماليږی

**تسهيلات: قوله: نُسِّيَ:**

**دقرآن د هيرولو نسبت ځان ته نه کول:** دلته يو ادب خودلې شی چه که چرته يوسړی نه دَ قرآن يوآيت يا سورت هير شی نوهغه دې دا نه وائی چه ماهيرکړو بلکه داسې دې وائی چه مانه

---

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب فضائل القرآن/باب استذكار القرآن وتعاهده،(رقم-۵۰۳۲) ومسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب الأمر بتعهد القرآن، وكراهة قول نسيت آية كذا، وجواز قول أنسيتها(رقم-۲۲۸ - (۷۹۰) والترمذي في كتاب القراءات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۹۴۲) والنسائي في كتاب الافتتاح/باب جامع ما جاء في القرآن (رقم-۹۴۳)واحمد في المسند ۳۸۲/۱

هیرشو خکه چه په رومبی صورت کښې دا سړې د خپل خان طرف ته د هیرولو نسبت کوي چه په حقیقت کښې د دې عظیم دولت بې ادبی او په دې کښې د کوتاهئ او د تقصیر اعتراف کوي بلکه هغه دې داسې وائي چه مانه هیرشو په کوم کښې چه د خفګان او افسوس طرف ته اشاره ده چه ماخو هیرول نه غوښتل لیکن مانه هیرشو

## [۲۱۸۹] د صاحب قرآن مثال

۲۱۸۹ - (۱) [۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] " «إِنَّمَا مَثَلُ صَاحِبِ الْقُرْآنِ كَمَثَلِ صَاحِبِ الْإِبِلِ الْمُعَقَّلَةِ [۳] إِنْ عَاهَدَ عَلَيْهَا أَمْسَكَهَا [۴] وَإِنْ أَطْلَقَهَا ذَهَبَتْ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابن عمر رضی الله عنه روايي دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲] د قرآن ویونکی مثال د تړل شوی اوښ د مالك په شان دی [۳] كه هغه د هغه خبر ګیری کوی نو هغه تړلی او ایسار وی [۴] او که هغه پریږدی نو هغه خی دغه شان که یو سړی قرآن شریف برابر نه وایی او نه یې یا دوی نو قرآن د هغه د سینې څخه وزی. بخاری مسلم

**حل اللغات**: ① الْمُعَقَّلَةِ: أَيِ الْمَشْدُودَةِ بِالْعِقَالِ: چه په رسۍ تړلې شوې وی ② عَاهَدَ: أَيْ حَافَظَ: خبرګیری او حفاظت کوی ③ أَمْسَكَهَا: ایسار وی، تړلې وی ④ أَطْلَقَهَا: أَيْ أَرْسَلَهَا وَحَلَّهَا: پرې ئې ږدی. آزاده ئې کړی (خبرګیری ئې نه کوی).

## [۲۱۹۰] د قرآن په تلاوت کښې زړه لګول

۲۱۹۰ - (۲) [۴] [۱] وَعَنْ جُنْدُبِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «اقْرَءُوا الْقُرْآنَ مَا ائْتَلَفَتْ عَلَيْهِ قُلُوبُكُمْ [۳] فَإِذَا اخْتَلَفْتُمْ فَقُومُوا عَنْهُ» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] جندب ابن عبدالله رضی الله عنه راوی دی چې نبی کریم ﷺ وفرمایل [۲] قرآن تر هغه وقته پورې وایې تر څو پورې چې ستاسو د زړه خواهش وی [۳] هر کله چې که وه شی یعنی د زیات ویلو سره چې ستړیا او دل ګرفتګی یعنی زړه نه لګیدل محسوس شی) نو دریږی (یعنی قرآن ویل موقوف کړی) بخاری مسلم

**حل اللغات**: ① ائْتَلَفَتْ: اى ذَاتُ نَشَاطٍ وَسُرُورٍ: د مالوف اومانوس کیدو په معنی کښې دې. ② اخْتَلَفْتُمْ: أَيْ مَلِلْتُمْ: ستړی شئ. زړه مو نه لګی

**تسهیلات**: **قوله**: مَا ائْتَلَفَتْ:

**قرآن په شوق سره ویلیل**: یعنی ترکومې پورې چه د قرآن په تلاوت کښې شوق او ذوق وی او

---

[۱]) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن/باب استذکار القرآن وتعاهده (رقم-۵۰۳۱) ومسلم فی ۳۲ - ۳۲ - باب فضائل القرآن وما یتعلق به (رقم-۲۲۶ - (۷۸۹) والنسائی فی کتاب الافتتاح/باب جامع ما جاء فی القرآن (رقم-۹۴۲) وابن ماجة فی کتاب الأدب/باب ثواب القرآن (رقم-۳۷۸۳) کتاب القرآن باب ما جاء فی القرآن (رقم-۶)

[۲]) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن/باب فضل سورة البقرة (رقم-۵۰۲۰) ومسلم باب فی الأمر بالقوة وترک العجز والاستعانة بالله وتفویض المقادیر لله (رقم-۳ - (۲۶۶۷) وأحمد فی المسند ۳۱۳/۴

تازګي او بيداري وي نو ښه ئې وايه ليکن چه کله دا تازګي ختمه شي او دا کيفيت مختلف شي او انسان ستړې شي او ذدې ستړېوالي وخت کښې تلاوت بند کړه لاړ شه آرام اوکړه دې ذپاره چه ذدې عظيم دولت باره کښې دې په زړه کښې څه بوج محسوس نه شي

**[۳] ذ نبي عليه السلام د قراءت انداز**

۳—( )[۵] [۱] وَعَنْ قَتَادَةَ قَالَ: [۲] «سُئِلَ أَنَسٌ كَيْفَ كَانَتْ قِرَاءَةُ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ؟ [۳] فَقَالَ: كَانَتْ مَدًّا. [۴] ثُمَّ قَرَأَ: بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ يَمُدُّ بِبِسْمِ اللّٰهِ [۵] وَيَمُدُّ بِالرَّحْمٰنِ وَيَمُدُّ بِالرَّحِيمِ»، رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] قتاده وايي [۲] چې د انس رضي الله عنه څخه پوښتنه وشوه چې د نبي کريم ﷺ قرائت به څرنګه وو؟ [۳] هغه اوويل چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم قرأت به د اوږدوالي سره وو [۴] بيا هغه بسم الله الرحمٰن الرحيم ويلو سره اوويل چې داسې به يې بسم الله اوږدوله [يعنې په بسم الله کې د الله الف به يې د الف مقصوره په قدر راښکلو [۵] رحمٰن به يې اوږدولو (يعنې د هغه الف به يې راښکلو) او رحيم به يې اوږدولو (يعنې د رحيم په ياء به يې اصلي يا عارضي مد کولو) ([۲])بخاري.

**حل اللغات:** ① مَدًّا: يعنې اوږدوالي به پکښې وو.

**تسهيلات:**

**قوله: فَقَالَ: كَانَتْ مَدًّا. ثُمَّ قَرَأَ: بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيمِ يَمُدُّ بِبِسْمِ اللّٰهِ**

**د نبي ﷺ په قرآءت کښې تمديد:** ددې مطلب دادې چې حضور رسول اکرم ﷺ به حروف مد او لين کښې بقدر د معروف مد کولو کوم چې د ارباب وقوف (يعنې ارباب تجويد) د قواعدو او شرائطو مطابق دی اومد درې دی ① الف ② واؤ ③ يا ،

**تشريح: د حضور ﷺ قرآءت په اوږدوالي سره وو:** ددې مطلب دادې چې حضور رسول اکرم ﷺ به حروف مد او لين کښې بقدر د معروف مد کولو کوم چې د ارباب وقوف (يعنې ارباب تجويد) د قواعدو او شرائطو مطابق دی.

علامه طيبي رحمه الله فرمائي چې حروف مد درې دی ① الف ② واؤ ③ يا

په دې باره کښې دا قاعده ده چې کله ددې بقدر همزه وي نو دالف بقدر دې کښې مد کول پکار دی ځينې حضرات وائي چې دوه الفو نه تر پنځو الفو بقدر مد کول پکار دی بقدر الف نه د آواز اوږدول مراد دی هرکله چې اوونيلې شي چې با يا تا او که په حروف مد

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب فضائل القرآن/باب مد القراءة(رقم-۵۰۴۶) وابود اود في كتاب الصلاة/باب استحباب الترتيل في القراءة (رقم-۱۴۶۵) واحمد في المسند۳/۱۱۹

[۲]) د اصلي څخه مراد دا دی چې ياء به يې د راښکلو بغير اظهار کولي او د عارضي څخه مراد دا دی چې دا به يې راښکلو سره ويله دا دواړه صحيح دي.

ماندې تشدید وي نو بقدر څلور الفو مد کول پکار دي اتفاقا لکه دابة او دې نه پس حرف ساکن وي نو بقدر د دوؤ الفونو مد کول پکار دي اتفاقا لکه مار او یعلمون او دې نه پس مذکوره بالا حروف نه علاوه حرف وي نو مد نه دی کول پکار صرف په هغه آواز اکتفا کول پکار دی کوم چې ددې حروفو د وتلو بقدر وي لکه ایاك . دا خبره په خیال کښې وی چې په بسم الله کښې کوم مد وی هغه هم ددې قبیل څخه دې

**[۳] په خوش آوازۍ سره قرآن لوستلو ته د الله تعالی غوږ کیښودل**

(۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَا أَذِنَ اللَّهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِنَبِيٍّ [۳] يَتَغَنَّى بِالْقُرْآنِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضی الله عنه روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله تعالی جل جلاله چې په خومره (خوبنی سره) د نبی آواز آوری دغه شان د بل هیڅ آوز نه آوری [۳] هر کله چې هغه قرآن کریم په خوش آوازی سره وایي ، بخاري مسلم.

**حل اللغات:** ① يَتَغَنَّى: أَيْ يُحَسِّنُ صَوْتَهُ: په خوږ آواز سره ونیلوته وائی په کوم کښې چه غنغنه وی

**تسهیلات:**

**قوله: مَا أَذِنَ:**

په دې حدیث کښې اولنئی ما نافیه ده او دویمه ما مصدریه ده. "اذن" سمع سره غوږ لګولو سره اوریدو ته وائی.

"بالقرآن" دې نه خویا هم قرآن کریم مراد دې یا قرآن په معنی دَ قرأت دې کوم چه مصدر دې دې نه لوستل مراد دی که قرآن وائی یا دَ سابقه کتابونو دَ تیرې شوې زمانې یونبی وائی **د الله تعالی قرآن لوه اوریدل،** ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه دَ نبی دَتنکیر نه اشاره ملاویږی چه دې دنه هریونبی مراد کیدې شی دَحدیث مفهوم دادې چه هسې خودَ هریو نبی آواز دَهر انسان او بشر دَ آواز نه خوږ او ښکلې او مزیدار دې مګر چه کله هغه نبی په خوږ آواز سره یعنی تجوید اوترتیل سره بغیردَ تکلف نه دَ الله تعالی کتاب وائی نو هغه وخت دَهغه آواز دَ کائنات دَهر آواز نه مزیدار اوخوږ وی هم دې ته "مایلیق بشانه" غوږ لګولوسره اوری دا خوبنی ګنړی اودا قبلوی سبحان الله څه لوئی شان دې په اعلاء السنن کښې لیکلی دی چه دَقرآن تلاوت په اوچت آواز کښې افضل دې اودَعوارض دَ وجې نه دې په مزه آواز سره وائی.

---

[۱]) اخرجه البخاری فی ۲۰۲۳ کتاب فضائل القرآن/باب(رقم-۵۰۲۳) ومسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها/باب استحباب تحسین الصوت بالقرآن (رقم-۲۳۲-(۷۹۲) والنسائی فی کتاب الافتتاح/باب تزیین القرآن بالصوت (رقم-۱۰۱۸)

**[۳۳] الله تعالی ته خوښ آواز**

(۷) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَا أَذِنَ اللهُ لِشَيْءٍ مَا أَذِنَ لِنَبِيٍّ حَسَنِ الصَّوْتِ بِالْقُرْآنِ يَجْهَرُ بِهِ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضي الله عنه روايې دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالی جل جلاله هيڅ څيز نه هم غوږ نه ايږدی (يعنی د هيڅ څيز آواز نه قبلوی) څومره چه د يونبی آواز ته غوږ ږدی [۳] څرنګه چې هغه د قرآن ويلو په وخت د نبی خوش آوازی ته غوږ ايږدی (يعنی هغه خوښ او قبلوی) هر کله چې نبی په پورته آواز قرآن کريم وايي، بخاری، مسلم

**[۳۴] د لوړې په انداز سره د قرآن لوستلو ممانعت**

(۸) [۱] وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَتَغَنَّ بِالْقُرْآنِ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** [۱] ابوهريره رضي الله عنه روايې دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هغه سړی زمونږ په کملی طريقی باندی تلونکی نه دی چې قرآن کريم په خوش آوازی سره نه وايي، بخاری.

**حل اللغات:** ① لَمْ يَتَغَنَّ: أَيْ لَمْ يُحَسِّنْ صَوْتَهُ بِهِ: څوک چه په خوږ آواز سره قرآن نه لولی.

**تسهيلات:**

**قوله: لَمْ يَتَغَنَّ:**

دا لفظ بعضې شارحينو ښکلې آواز په ترنم اوخوږ آواز سره حمل کړې دې. مطلب دا دې چه کوم سړې قرآن پاك په خوږ آواز او ښکلی آواز سره نه وائی نوهغه د تلاوت په ميدان کښې زمونږ په طريقه نه دې.

**يتغنی په استغناء باندې حمل کول:** څه علماؤ دا لفظ په استغناء اومستغنی کيدو معنی کښې اخستې دې مطلب دا چه کوم سړی ته الله تعالی د قرآن عظيم الشان دولت ورکړې دې اوهغه د دې په ذريعه خپل خان د نورو نه مستغنی نه ګڼړی بلکه نور خلق د دولت خاوندان ګڼړی نوهغه زمونږ په طريقه باندې نه دې ځکه چه هغه د دې عظيم دولت ناقدری اوکړه الکاشف: ۳۳۲/۴.

**د مذکوره حمل تضعيف:** مرقات کښې ملاعلی قاری رحمه الله چه علامه ازهری رحمه الله فرمائی چه د

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول النبي صلى الله عليه وسلم: «الماهر بالقرآن مع الكرام البررة» (رقم-٧٥٤٤) ومسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها/باب استحباب تحسين الصوت بالقرآن (رقم-٢٣٣ - (٧٩٢) وابوداود في كتاب الصلاة/باب استحباب الترتيل في القراءة (رقم-١٤٧٣) واحمد في المسند ٤٥٠/٢

[۲]) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: «وأسروا قولكم أو اجهروا به. إنه عليم بذات الصدور. ألا يعلم من خلق وهو اللطيف الخبير» [الملك: ١٤] (رقم-٧٥٢٧) وابو داود في كتاب الصلاة/باب استحباب الترتيل في القراءة (رقم-١٤٦٩) واحمد في المسند ١٧٢/١

"لم يتغن" لفظ په استغناء باندې حمل کول د لغت په اعتبار سره غلط دی دا لفظ صرف د تغنی نه دې چه د خوږ آواز په معنی کښې دې ملاعلی قاری رحمه الله فرمائی چه علامه ازهری رحمه الله دا لغت غلط گرځولو سره پخپله غلط شوې دې اهل لغت دا د استغناء په معنی کښې استعمالوی "يقال رجل ربطها تغنيا اي استغناء بها من الناس"

**قوله: لَمْ يَتَغَنَّ:**

**د يتغنی صحيح مفهوم:** بیا ملاعلی قاری رحمه الله د "يتغن" معنې داسې لیکی. اي لم يحسن صوته به، اولم يجهر به، اولم يتغن به عن غيره، اولم يترنم به، اولم يتحزن، اولم يتحزن، اولم يطلب به غنى النفس، اولم يرج به غنى اليد، فهذه سبعة معان ماخوذة من فتح الباري استخرجها على القاري ۵۱. د شارحینو دا تصریحات په خپل ځائې صحیح دی لیکن که تغنی سره دې طرف ته اشاره کول مقصود وی چه کوم سرې قرآن وائی نو د قرآن په لهجه او طرز کښې دې وائی په دې کښې غنه د ادغام دې مد دې او د عربی طرز کلام نه جدا خپل یو طرز دې نو دا احتمال به بې ځایه نه وی مطلب دا چه کوم سرې قرآن د قرآن په طرز او انداز سره اوونه وئیلو بلکه د عربی کلام په طرزئی اووئیل هغه زمونږ نه نه دې.

**[۳۹۵] د نبی علیه السلام د صحابی څخه قرآن اوریدل**

۲۰۹۵-( ) [۹] ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: «قَالَ لِي رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ: " ② اقْرَأْ عَلَيَّ " قُلْتُ: أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ؟ ③ قَالَ: " إِنِّي أُحِبُّ أَنْ أَسْمَعَهُ مِنْ غَيْرِي ④ " فَقَرَأْتُ سُورَةَ النِّسَاءِ حَتَّى أَتَيْتُ إِلَى هَذِهِ الْآيَةِ " ⑤ ﴿فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ ⑥ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا﴾ [النساء: ٤١] " ⑦ قَالَ: " حَسْبُكَ الْآنَ " ⑧ فَالْتَفَتُّ إِلَيْهِ فَإِذَا عَيْنَاهُ تَذْرِفَانِ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① عبدالله ابن مسعود رضی الله عنه وائې چې (یو ورځ) رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه وخت چې په منبر وو ماته وفرمایل ② چې زما په مخکې قرآن شریف اووئیلو ما عرض وکړو چې ستا په مخکې زه قرآن شریف اووایم؟ حلانکه قرآن کریم خو په تا نازل شوی دی ③ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې زه دا خوښوم چې دبل چاڅخه قرآن واورم ④ ابن مسعود رضی الله عنه وائې چې ما سورة نساء شروع کی آن تردی چې دی آیت ته راورسیدم ⑤ فَكَيْفَ إِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ أُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَجِئْنَا بِكَ عَلَى هَؤُلَاءِ شَهِيدًا د قیامت په ورځ به د یهودو وغیره څه حال وی هر کله چې مونږ د هر أمت څخه یو گواه راوبلو (یعنی د هر أمت نبی به په هغه ورځ د خپل أمت د افعالو او احوالو گواهی ورکوی) ⑥ او مونږ تا په دی أمت گواه جوړولو سره بولو، ⑦ نو نبی

---

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب فضائل القرآن/باب قول المقرئ للقارئ حسبك (رقم--٥٠٥٠) ومسلم في كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب استحباب قراءة القرآن على اهل الفضل والحذاق فيه، وإن كان القارئ افضل من المقروء عليه (رقم-٢٤٥ - (٧٩٩) وابو داود في كتاب العلم /باب في القصص(رقم-٣٦٦٨)واحمد في المسند ٣٨٠/١

كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې بس اوس ودريږه (څكه چې زه په دې آيت كې مستغرق كيږم) [۸] بيا چې كله د نبي كريم صلى الله عليه وسلم طرف ته متوجه شوم نو څه گورم چې ستر گو څخه يې اوښكې جاري دي. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① فَالْتَفَتُّ : توجه او غور سره كتلو ته وائي ② تَذْرِفَانِ: د ضرب يضرب نه دی أي تَدْمَعَانِ: ژړل ئې او د سترگو نه ئې اوښكې روانې وې

**تسهيلات:**

**قوله: قُلْتُ: أَقْرَأُ عَلَيْكَ وَعَلَيْكَ أُنْزِلَ؟:**

**د حديث فوائد:**

① په دې حديث كښې اولنۍ تعليم دا ملاؤ شو چه كشرانو له د مشرانو په مخكښې د ادب لحاظ ساتل پكار دی. لكه څنگه چه حضرت ابن مسعود ﷺ هم دغه خيال اوكړو چه كله قرآن پخپله په نبی كريم ﷺ باندې نازل شوې هم هغه دَدې حقدار دې چه پخپله دې اووائی او نورو ته دې اوښائی. دا هغوی په مخكښې دَ قرآن اورولو يوسرې څنگه دا جرأت كولې شی

② دويم تعليم دا ملاؤ شو چه كله كله مشرانوله پكار دی چه د كشرانو نه قرآن واؤرى په دې كښې دا فائده وی چه دَ قرآن معانی او مطالب باندې دَ غور كولو ښه موقع ملاويږی

③ دريم تعليم دا ملاؤ شو چه كله دَ قرآن يوه حصه قاری اووائی او اوريدونكی غواړی چه اوس دې قاری قرآن وئيل بند كړی نو هغه ته وئيلی شی چه هم دومره كافی دې

**[۳۰۱] حضرت ابی بن كعب ﷺ ته د قرآن اورولو حكم**

۲۱۹۶-(۱۰) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِأُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ: [۲] "إِنَّ اللهَ أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ الْقُرْآنَ" [۳] قَالَ: اللهُ سَمَّانِي لَكَ؟ قَالَ: "نَعَمْ" [۴] قَالَ: وَقَدْ ذُكِرْتُ عِنْدَ رَبِّ الْعَالَمِينَ؟ قَالَ: "نَعَمْ" [۵] فَذَرَفَتْ عَيْنَاهُ، [۶] وَفِي رِوَايَةٍ: "إِنَّ اللهَ أَمَرَنِي أَنْ أَقْرَأَ عَلَيْكَ "لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا" " [۷] قَالَ: وَسَمَّانِي؟ قَالَ: "نَعَمْ" فَبَكَى». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] انس ﷺ وايې چې (يو ورځ) رسول الله ﷺ ابی بن كعب ﷺ ته وفرمايل [۲] چې الله تعالى ﷻ ماته حكم راكړی دی چې زه ستا په مخكې قرآن اووايم [۳] حضرت أبي ﷺ عرض وكړی چې آيا الله تعالى ﷻ ستا په مخكې زما نوم آخستی دی؟ نبی كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هو، [۴] حضرت أبي اوويل چې د مخلوقاتو د رب په مخكې زما ذكر وشو؟ نبی كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هو، [۵] (د دی آوريدو سره) د حضرت أبي ﷺ د دوارو سترگو څخه اوښكې بهيدل شروع شو، [۶] په يو بل روايت كې داسې دی چې نبی كريم صلى الله عليه وسلم أبي ﷺ ته وفرمايل چې ماته الله تعالى ﷻ دا حكم

[۱] اخرجه البخاري في كتاب تفسير القرآن/باب سورة لم يكن (رقم-۴۹۶۰) واحمد في المسند ۲۱۸/۳

راکړی دی چې زه ستا په مخکې سورة لم یکن الذین کفروا اووایم. [۲] حضرت أبی ﷺ عرض وکړی چې آیا الله تعالی ﷻ زما نوم آخستی دی؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هو، (دی آوریدو سره) حضرت أبی ﷺ په ژړا شو، بخاری مسلم

**حل اللغات:** ① سَمَّانِي: أَيْ ذَكَرَنِي بِاسْمِي لَكَ: یعنی زما نوم اخستلوسره ئې تاته زما ذکرکړې دې ② فَذَرَفَتْ: أَيْ جَرَى دَمْعُ عَيْنَيْهِ: د ډیرې خوشحالئ نه ئې د سترګو نه اوښکې اوبهیدلې

**تسهیلات:**

**قوله:** اللهُ سَمَّانِي:

**په سید القراء سره د ابي بن کعب لره ملقب کول:** صحابه کرامو ﷺ کښې حضرت ابی بن کعب ﷺ به سید القراء شمیرلې کیدو حضورپاك په هغه باندې دَ الله تعالی په حکم باندې په خاص توګه قرآن تلاوت کړو لکه چه خصوصی دَ قرات سند ئې ورکړو دَ حضرت کعب ﷺ نوم چونکه الله تعالی خپل خان سره ذکرکړو په دې باندې دَ ډیرې خوشحالئی نه حضرت کعب ﷺ اوژړل او په دې لوئی عزت باندې دَ خوشحالئی داسې اظهار کول دَ ټولو نه زیات مناسب وو.

## [۳۸۶] دارالحرب ته دَ قرآن اوړلو ممانعت

۳۸۶-()[۱۱] [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: [۲] «نَهَى رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنْ يُسَافَرَ بِالْقُرْآنِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. [۳] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ: "«لَا تُسَافِرُوا بِالْقُرْآنِ [۴] فَإِنِّي لَا آمَنُ أَنْ يَنَالَهُ الْعَدُوُّ»".

**ترجمه** [۱] ابن عمر ﷺ نه روایت دې چه [۲] نبی کریم ﷺ د دښمن د ملك (یعنی د دارالحرب) طرف ته د قرآن وړلو سره د سفر کولو څخه منع فرمایلی ده، بخاری مسلم، [۳] د مسلم په یو روایت کی داسی دی چې د قرآن د وړلو سره سفر مه کوی [۴] څکه چې ماته دا اطمینان نشته چې دښمن دا واخلی او بیا د دی بی حرمتی وکی

**حل اللغات:** ① أَرْضِ الْعَدُوِّ: أَيْ دَارَ الْحَرْبِ: د دشمن زمکې نه مراد دارالحرب دې

**تسهیلات:**

**قوله:** أَنْ يُسَافَرَ بِالْقُرْآنِ إِلَى أَرْضِ الْعَدُوِّ..الخ:

**د دارالحرب څخه مراد او دحدیث د حکم محمل:** دارالحرب نه مراد هغه علاقې دی چرته چه جنګ جاری وی یا داسې دارالحرب وی چرته چه مسلمان موجود نه وی. که په دارالحرب کښې مسلمانان آباد وی او دَ قرآن په اوړلو کښې دَ سپکاوی څه خطره نه وی نوهلته اوړل

() اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر/باب السفر بالمصاحف إلی ارض العدو (رقم-۲۹۹۰) ومسلم فی کتاب الإمارة/باب النهی أن یسافر بالمصحف إلی أرض الکفار إذا خیف وقوعه بأیدیهم۹۲ - (۱۸۶۹) وابوداود فی کتاب الجهاد/باب فی المصحف یسافر به إلی أرض العدو (رقم-۲۶۱۰)وابن ماجة فی کتاب الجهاد/باب النهی أن یسافر بالقرآن إلی أرض العدو (رقم-۲۸۷۹)واحمد فی المسند: ۶/۲

جائز دی عساکر اسلام که په شوکت او دبدبه کښې وی نو بیا هم اوړل جائز دی دخطرې
په صورت کښې هم اوړل حرام نه دی البته مکروه دی.
**اشکال:** دلته یو باریك شان سوال دې چه دَ حضورپاك په زمانه کښې قرآن په مکمل توګه
باندې لیکلې شوې موجود نه وو بیا دَ دې نهی څه مطلب دې؟
**داشکال جواب:** دَ دې آسان جواب دادې چه هغه وخت چا سره څومره قرآن موجود وو آخر هغه
خو هم قرآن وو دکوم دَ اوړلو چه ممانعت اوکړې شو یا دَ مستقبل باره کښې رسول الله ﷺ
دَ پیشنګونی په توګه دا حکم ورکړو.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۱۹۸] مهاجرینو غریبانو ته زیرې**

۲۱۹۸-(۱۲)[۱] ۱ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ: ۲ «جَلَسْتُ فِي عِصَابَةٍ مِنْ ضُعَفَاءِ الْمُهَاجِرِينَ ۳ وَإِنَّ بَعْضَهُمْ لَيَسْتَتِرُ بِبَعْضٍ مِنَ الْعُرْيِ ۴ وَقَارِءٌ يَقْرَأُ عَلَيْنَا إِذْ جَاءَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَامَ عَلَيْنَا، ۵ فَلَمَّا قَامَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سَكَتَ الْقَارِءُ، فَسَلَّمَ ۶ ثُمَّ قَالَ: "مَا كُنْتُمْ تَصْنَعُونَ؟ ۷ " قُلْنَا: كُنَّا نَسْتَمِعُ إِلَى كِتَابِ اللَّهِ،

**ترجمه** ۱ ابو سعید خدری ؓ وایې ۲ چې زه (یوه ورځ) د غرباء مهاجرین (یعنی اصحاب صفه) د جماعت په منځ کې ناست وم ۳ په هغوئ کی خینې د بربنډ والی په وجه د خپلو ملګرو په پناه کی ناست وو ۴ او یو سړی زمونږ په مخکی قرآن ویلی چې ناساپه نبی کریم ﷺ تشریف راوړو او زمونږ سره ودریدلی ۵ ویونکی چې نبی کریم ﷺ ولاړ و لیدلو نو چپ شو هغه وخت نبی کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته سلام وکړو ۶ او ویې وفرمایل چې تاسو خلق څه کوی؟ ۷ مونږ عرض وکړی چې مونږ کتاب الله آورو

**حل اللغات:** ① عِصَابَة: أي جَمَاعَةٌ: ډله، تولګي. ② ضُعَفَاء: کمزوری غریب صحابه کرام رضی الله عنهم ③ لَيَسْتَتِرُ: یعنی چاسره چه به کپړه کمه وه هغه به دَ خپل ملګری شاته پټ کیناستلو دې دپاره چه دَهغه ستربنکاره نه شی ④ الْعُرْيِ: وَالْمُرَادُ الْعُرْيِ مِمَّا عَدَا الْعَوْرَةَ: مطلب دا چه دَ ستردَ مقاماتونه علاوه په بدن باندې کپړه نه وه باقی ټول بدن نې بربنډ وو

۱ فَقَالَ: "الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي جَعَلَ مِنْ أُمَّتِي ۲ مَنْ أُمِرْتُ أَنْ أَصْبِرَ نَفْسِي مَعَهُمْ" ۳ قَالَ: فَجَلَسَ وَسْطَنَا لِيَعْدِلَ بِنَفْسِهِ فِينَا، ۴ ثُمَّ قَالَ بِيَدِهِ هَكَذَا فَتَحَلَّقُوا ۵ وَبَرَزَتْ وُجُوهُهُمْ لَهُ فَقَالَ: ۶ "أَبْشِرُوا يَا مَعْشَرَ صَعَالِيكِ الْمُهَاجِرِينَ بِالنُّورِ التَّامِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. ۷ تَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ أَغْنِيَاءِ النَّاسِ بِنِصْفِ يَوْمٍ ۸ وَذَلِكَ خَمْسُمِائَةِ سَنَةٍ» ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب العلم/باب فی القصص (رقم-۳۶۶۶) واحمد فی المسند : ۶۳/۳

**ترجمه** ۱ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې ټول تعریفونه هغه الله ﷻ لره دی چې هغه زما په أمت کې هغه خلق پیدا کړل ۲ چې د هغوئ په باره کې ماته حکم شوي دې چې زه د هغوئ سره کینم ۳ راوی وایې چې (د دې فرمایلو سره) نبی کریم صلی الله علیه وسلم زمونږ په منځ کې کیناستلو (یعنی د یو خاص سړی په څنګ کې کیناستلو) چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم د ذات اقدس تعلق زمونږ ټولو سره یو شان وی. ۴ بیا نبی کریم صلی الله علیه وسلم په خپله ګوتی مبارکی سره داسې اشاره وکړه (چې حلقه جوړولو سره کینی ټول خلق حلقه (دائره) جوړولو سره کیناستل ۵ او د هغوئ ټولو مخونه حضور طرف ته شو. د دې څخه روسته نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل ٦ چې اې د مهاجرینو مفلسو ډلې: تاسو ته دې زیرئ وی د دې خبرې چې د قیامت په ورځ به تاسو ته پوره نور حاصل وی ۷ او تاسو به د دولتمند طبقې څخه نیمه ورځ مخکې په جنت کې داخل شئ ۸ او دا نیمه ورځ به د پنځو سوو کلونو برابر وی، ابوداؤد

**حل اللغات:** ⑤ لِيَعُمَّ: یعنی حضورپاك بالکل په مینځ کښې کیناستلودې دپاره چه دَ حضورپاك تعلق مونږ ټولوسره یوشان وی. ⑥ فَتَحَلَّقُوا: حلقه ئې جوړه کړې وه تاؤ راتاؤ ناست وو ⑦ وَتَبَرَّزَتْ: أَيْ ظَهَرَتْ: یعنی داسې حلقه ئې جوړه کړه کیناستلو چه دَټولو مخونه حضورپاك ته ښکاریدل ⑧ صَعَالِيكِ: د صُعْلُوكٍ جمع ده. أَيْ جَمَاعَةُ الْفُقَرَاءِ: غریب فقیر مهاجرین مراد دی

**تسهیلات:**

**قوله: "أَنْ أَصْبِرَ نَفْسِي مَعَهُمْ"**

په دې کښې دَ سورت کهف دې آیت طرف ته اشاره ده ﴿ وَاصْبِرْ نَفْسَكَ مَعَ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُمْ بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ وَلَا تَعْدُ عَيْنَاكَ عَنْهُمْ تُرِيدُ زِينَةَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا وَاتَّبَعَ هَوَاهُ وَكَانَ أَمْرُهُ فُرُطًا ﴾ [سورت کهف الایه ۲۸]

"اغنیاءالناس" دې نه صالح مالدار شکر کونکی مراددی اودَ فقراء نه فقیر صالح او صبر کونکی مراددی

"بنصف یوم" دَ قیامت نیمه ورځ به دَ پنځه سوو کالو برابروی دَالله تعالی ارشاددی ﴿ وَإِنَّ يَوْمًا عِنْدَ رَبِّكَ كَأَلْفِ سَنَةٍ مِمَّا تَعُدُّونَ ﴾ [سورت حج الایه ۴۷]

**د صابرینو په شاکرینو باندې فضیلت:** دَدې حدیث نه معلومه شوه چه دَ فقیرانو صالحینو او صابرینو درجه به په قیامت کښې دَ صالحین اوشاکرین مالدارانو نه لویه ده څکه چه مالداران به دغه وخت دَ حساب کتاب په ځائی کښې وی اوفقیران به دَ جنت په مزو کښې وی مالدارانو په دنیا کښې ښه مزې کړی دی او غریبانانو به ورته کتل

**[۲۲۰۹] په خوږ آواز سره د قرآن د لوستلو حکم**

۲۲۰۹ ـ (۱) [۱۳] ① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② («زَيِّنُوا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** ① براء ابن عازب رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② قرآن ته په ښکلي آواز سره زينت ورکړئ، احمد ابوداؤد ابن ماجه دارمي.

**حل اللغات:** ① زَيِّنُوا: د تزئين قرآن نه په خوږ آواز سره لوستل مراد دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** زَيِّنُوا الْقُرْآنَ:

**د حديث په تاويل کښې دوه اقوال:**

① يعنی په ښکلي ښکلی آواز سره قرآن پاك نورهم ښائسته کړئی اوڅومره چه کيدې شی آواز ښکلې کړئی دې دپاره چه دَ قرآن پاك عظمت اودبدبه په ځاني پاتې شی او په اوريدونکوباندې دَدې اثر اوشی. داسې نه وی چه ښکلې قرآن پاك په ښکلي خراب آواز کښې داسې پيش کړی چه دَخلقودَدې نه نفرت پيداشی. يوبل حديث کښې دی"ان الصوت الحسن يزيد القرآن حسناً"

② بعضې علماء کرام فرمائی چه دلته قرآن پاك په ښکلي مصدری معنی کښې دې کوم چه دَ قرأت په معنی کښې دې يعنی خپلو آوازونوسره قرأت ښکلې اوکړئی معلومه شوه چه قرآن پاك په ښکلی آواز سره لوستل مستحب دی په دې شرط چه دَ تجويداوترتيل پوره خيال اوساتلې شی. دَ سندرو صورت نه وی بلکه په لحون عرب کښې بغيردَتکلف نه وی. علماء کرامو ليکلی دی که چرې قاری غواړی چه دَهغه آواز دې ښکلې جوړشی نوهغه له پکاردی چه په خپل زړه کښې دَالله تعالی ويره پيدا کړی هم په دې وجه بعضې علماء کرامو دلته دَ حديث داکلام التبه منلې دې يعنی زينواالقرآن باصواتکم اصل کښې داسې دې زينوا اصواتکم بالقرآن.

**[۲۲۱۰] دَ قرآن پاك هيرونکی دپاره وعيد**

۲۲۱۰ ـ (۲) [۱۴] ① وَعَنْ سَعْدِ بْنِ عُبَادَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② " «مَا مِنِ امْرِئٍ يَقْرَأُ الْقُرْآنَ ثُمَّ يَنْسَاهُ ③ إِلَّا لَقِيَ اللهَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَجْذَمَ» ". رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب استحباب الترتيل فی القراءة (رقم-۱۴۶۸) والنسائی کتاب الافتتاح/باب تزيين القرآن بالصوت (رقم-۱۰۱۵) و ابن ماجه فی کتاب إقامة الصلاة/باب فی حسن الصوت بالقرآن (رقم-۱۳۴۲) واحمد فی المسند: ۲۸۵/۴

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب التشديد فيمن حفظ القرآن ثم نسيه (رقم-۱۴۷۴) واحمد فی المسند: ۲۸۴/۵

**ترجمه:** [۱] سعد ابن عباده رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې قرآن د ويولو څخه روسته هير کړی [۳] هغه به د قيامت په ورځ د الله ﷻ سره په داسي حال کي ملاقات وکی چې د هغه لاس به پمن وی يعنی د جزام بيماری به ورته لګيدلی وی. ابوداود دارمی

**حل اللغات:** ① أَجْذَمَ: جزام يو مرض دي چه اندامونه ورسره رجيږی.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَنْسَاهُ:

**د حديث په مفهوم کښې درې اقوال:**

① داحنافو په نيزدَدې نسيان نه مراد دادې چه په قرآن پاك کښې په کتلوسره هم نه شی لوستلې

② دَ شوافع په نيزدَدې مطلب دادې چه اول هغه ته يادوو بياترې هيرشو اوس په يادسره نه شی لوستلې.

③ يادَدې کلام مطلب دادې چه په دې باندې عمل نه کوی که قرآن ورته ياد وی اوکه هيروی.

**[۲۲۰] دَ درې ورځوڅخه په کم وخت کښې دَقرآن پاك دَختمولو مسئله**

> ۲۲۰—()[۱۵] [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «لَمْ يَفْقَهْ مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فِي أَقَلَّ مِنْ ثَلَاثٍ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه:** [۱] عبدالله ابن عمرو رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې د دريو شپو څخه کم کی قرآن اوونيلو (يعنی ختم يې کی) هغه په قرآن بنه پوهه نه شو، ترمذی ابوداؤد دارمی

**حل اللغات:** ① لَمْ يَفْقَهْ: أَيْ: لَمْ يَفْهَمْ: پوره پوهه ورته نه حاصليږی.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَمْ يَفْقَهْ:

**د حديث په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① يعنی چه دَ دريو ورځونه په کم وخت کښې قرآن ختم کړو نو داسړې په قرآن باندې پوهه نه شو. بعضې مخکينی عالمانو دَحديث ظاهرته کتلو باندې عمل کوی او دَدريو ورځونه په کمه موده کښې به ئی کله دَ قرآن ختم نه کولو بلکه دا به ئی مکروه ګنړل.

---

[۱] اخرجه ابوداود فی كتاب الصلاة/باب تحزيب القرآن (رقم-۱۳۹۴) وابن ماجة كتاب إقامة الصلاة/باب فی حسن الصوت بالقرآن (رقم-۱۳۴۷) واحمد فی المسند: ۲/۱۶۴

③ علامه طیبي رحمه الله فرمائی کوم سړی چه د دریو ورځونه په کمه موده کښې د قرآن ختم اوکړو هغه د قرآن په ظاهری معنی باندې خو پوهه شو لیکن د قرآن د حقائق اودقائق نه محروم پاتې شو اود حقائق اودقائق نفی خوده لیکن د ثواب نفی نشته دې ثواب به په هرصورت کښې ملاویږی.

**د دواړو قولونو په مینځ کښې محاکمه:** بعضې علماؤ د محاکمې صورت پیدا کولو سره فرمائیلی دی چه کوم خلق ماهرین فی القرآن دی داحکم د هغوی د پاره نه دې بلکه دا حکم د غیرماهرینو د پاره دې ځکه چه ماهرینو کښې به بعضې په یوه شپه کښې قرآن مکمل ختم کولو او بعضې به په یوه شپه او یوه ورځ کښې ختم کولو بلکه نن نی هم وانی الکاشف ۳۴۰/۴.

**د قرآن په ختمولو کښې د صحابؤ معمول:** صحابه کرامو رضی الله عنهم نه به اکثر اوه ورځو کښې مکمل قرآن وئیلو او دې ته به ئی ختم الاحزاب وئیلو.

**د قران مجید د منزلونو تفصیل:**

چونکه قرآن نن هم په اووه منزلونو باندې مشتمل دې یومنزل به په یوه ورځ کښې کیدلو د دغه اووه منزلونو طرف ته اشاره "فمی بشوق" کښې ده. د دې حروف رومبې حرف د سورت د کوم حرف دې مثلاً فاء نه د فاتحه طرف ته اشاره ده دا اولنې منزل دې. ماء سره مائده طرف ته اشاره ده دا دویم منزل دې. یاء سره د سورت یونس طرف ته اشاره ده دا دریم منزل دې باء سره سورت بنی اسرائیل طرف ته اشاره ده دا څلورم منزل دې. شین سره د شعراء طرف ته اشاره ده دا پنځم منزل دې شپږم منزل د سورة الصفت سره دې نه چه سورت ص سره. په سورت ص کښې والقرآن ذي الذکر دې. او قاف په دې کښې والقرآن المجید نه سورت قاف طرف ته اشاره ده کوم چه اووم منزل دې او "فمی بشوق" اووم حرف دې.

**د مسلمان د پاره د ختم القرآن موده:** دلته په دې خبره باندې هم ځان پوهه کول پکاردی چه د یومسلمان په ذمه باندې په څومره موده کښې قرآن مکمل وئیل ضروری دی؟

① امام احمدبن حنبل رحمه الله او اسحاق بن راهویه رحمه الله مذهب دادې چه کم نه کم څلویښت ورځوکښې یوځل مکمل قرآن وئیل ضروری دی په دې مسلك باندې هیڅ یو وزنی دلیل نشته دې امام بخاری رحمه الله هم د دې تردید کړې دې.

② د امام بخاری رحمه الله رحجان دې طرف ته دې چه په دې کښې څه حد نشته دې.

③ فتاویٰ عالمگیری کښې لیکلی دی چه حافظ له پکاردی چه په څلویښتو ورځوکښې حافظ هم یوځل ختم اوکړی.

④ بل دا ئی هم لیکلی دی چه کوم سړی په یوکال کښې د قرآن ختم اوکړی نوهغه به هاجر للقرآن نه شی ګنړلې یعنی هغه د قرآن حق اداکړو ګنی نه نی دې اداکړې.

[۲۲۰۲] د مجاهر بالقرآن او مسر بالقرآن مثال

۲۲۰۲ -( )[۱٦] [۱] وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] ( «الْجَاهِرُ بِالْقُرْآنِ كَالْجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ، [۳] وَالْمُسِرُّ بِالْقُرْآنِ كَالْمُسِرِّ بِالصَّدَقَةِ» ) . [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] عقبه ابن عامر رضي الله عنه راوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په اوچت آواز سره قرآن ویونکی سړی د ظاهری صدقې ورکونکی په شان دی [۳] او په قلار آواز سره ویونکی په پټه د صدقه ورکونکی په شان دی، [۴] ترمذی ابوداؤد نسائی، او امام ترمذی رحمه الله فرمایې چې دا حدیث حسن غریب دی.

**حل اللغات:** ① الْجَاهِرُ: أي الْمُعْلِنُ: په ښکاره اعلانیه طورباندې صدقه ورکونکی ته وائی. ② الْمُسِرُّ: أي الْمُخْفِيْ: په پټه باندې (تلاوت کونکې یا صدقه ورکونکې).

**تسهیلات:**

**قوله:** كَالْجَاهِرِ بِالصَّدَقَةِ:

**په جهر بالقرآن او اخفاء په کښې د روایاتو تطبیق:** په پټه باندې صدقه کول په ښکاره صدقه ورکولونه افضل دی. د دې حدیث مطلب دا شو چه د قرآن په مزه ونیل جهراً ونیلو نه غوره دی. علامه طیبی رحمه الله فرمائی د کوم خلاصه چه داده چه په مزه قرآن ونیلو فضیلت کښې هم احادیث شته او ظاهری جهرسره ونیلو فضیلت کښې هم احادیث شته لهذا په دواړو کښې تطبیق داسې دې چه د کوم سړی د ریاکارئی خطره وی د هغه د پاره په مزه ونیل غوره دی او چاته چه د ریاکارئی خطره وی د هغه د پاره په جهرسره ونیل افضل دی په دې شرط چه هغه ته د تکلیف رسیدو خطره نه وی. دویمه توجیه داده چه اصل او په بنیادی توګه باندې هم جهرافضل دې لکه چه اول لیکلې شوی دی لیکن د عوارض د وجې نه په مزه ونیل افضل کیږی. [الکاشف ۲/۳۴۱]

[۲۲۰۳] د قرآن د محرماتو څخه د ځان نه ساتونکی دپاره وعید

۲۲۰۳ -( )[۱۷] [۱] وَعَنْ صُهَيْبٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] ( «مَا آمَنَ بِالْقُرْآنِ مَنِ اسْتَحَلَّ مَحَارِمَهُ» ) . [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه** [۱] حضرت صهیب رضي الله عنه روای دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هغه سړی په قرآن

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب فی رفع الصوت بالقراءة فی صلاة اللیل (رقم-۱۳۳۳) والترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۹۱۹) والنسائی فی کتاب الزکاة/باب المسر بالصدقة (رقم-۲۵٦۱) واحمد فی المسند: ۱۵۱/٤

[۲] اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۲۹۱۸)

ايمان رانه وړی چې د دی حرام يې حلال وګنړل.[۳] امام ترمذی رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلی يې دی چې د دی روايت اسناد قوی نه دی

**حل اللغات:** ① اسْتَحَلَّ: حلال يې اوګنړل. ② مَحَارِمَهُ: د مَحْرَم جمع ده، په معنی د حرام سره

**د راوي مختصر تعارف:** د راوی نوم صهيب د پلار نوم سنان د مور نوم سلمی بنت قعيد وو د دوی اصلی وطن يو کلي وو کوم چه د موصل سره د دجلې په غاړه يا په الجزائر کښې واقع وو د دوی پلار او ترهٔ د کسری د طرفه د ابله عامل وو کله چه رومی فوجيانو په ابله باندې حمله اوکړه نوصهيب يې هم په قيد کښې راوستل د دې چا ته هم علم نه وو [۲]

بنو کلب دې واخستل او د هغوی نه عبدالله بن امجدعان واخستل او آزاد يې کړل [۳]

داسالم د تحقيق دپاره راغلو عمار رضی الله عنه هم ورسره ملاؤ شو بيا دواړه د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په خدمت کښې حاضر شو او مسلمانان شو[۱] صهيب رضی الله عنه په مکه کښې د بل وطن وو څوک يې اومددګار نه وو.د دې وجې دوی ته په مکه کښې ډير تکليفونه رسولې شوی وو [۲]

**هجرت:** کله چه دوی دهجرت اراده اوکړه نو مشرکانو دې منع کړل نو وې فرمائيل چه مال دولت مې واخلئ خو ما پريږدئ مشرکانو قبول کړل په دې باندې نبی کريم صلی الله عليه وسلم خوشحالئ اظهار اوکړو او د قرآن کريم دا آياتونه نازل شو ((ومن الناس من يشری نفسه ابتغاء مرضات الله..الخ) ) دوی د تيراندازئ ماهر وو.په غزاګانو کښې به دنبی کريم صلی الله عليه وسلم يوخانې وو دحضرت عمر رضی الله عنه د جنازې مونځ هم دوی د دحضرت عمر رضی الله عنه دوصيت مطابق کړې وو او حضرت عمر رضی الله عنه دا هم فرمائيلی وو.چه تر څو پورې زما نه پس اهل شوری د خليفه فيصله نه وی کړې نو ترهغه وخته پورې حضرت صهيب رضی الله عنه خليفه جوړه کړئ د دې وجې دوی هم درې ورځې د امامت فرض ادا کړی دی [۳]

**مرويات:** د دوی نه ۳۰ روايات منقول دی درې په مسلم کښې دی او په بخاری کښې يوهم نشته ۷۲ کال په عمر کښې هم په مدينه منوره کښې وفات شو او په بقيع کښې دفن شوې

**تسهيلات:**

**قوله: مَا آمَنَ بِالْقُرْآنِ مَنِ اسْتَحَلَّ مَحَارِمَهُ**

**دعدم ايمان په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① مطلب دادې چې الله جل جلاله خپل کتاب کښې کوم څيز حرام کړې دې که يو کس هغې لره حلال اوګنړی نو هغه بالکل کافر شو هرکله چې دې کافر شو نو بيا دده په قرآن پاک باندې دايمان هيڅ فائده نشته دې

[۱] اسدالغابة (۱۴ تذکرة عماربن ياسر)_(۲) طبقات ابن سعد (۱٦۲\۳)-
(۳)مستدرک (۳۹۸\۳) - (۴)تهذيب الکمال) (۵)اسدالغابة (۳۳\۳)_
(٦)رواه البخاری فی المغازی باب مرض النبی صلی الله عليه وسلم رقم ۴۱۰۳،يونس فی الجنائز رقم ۱۸۲۱، وجه فی الجنائزرقم ۱٦۱۸،وحم باقی مسندالمکثرين رقم ۱۲٦۴۳،و می فی المقدمة رقم ۸۷)

② ددې مطلب دادې چې هغه کس په قرآن پاك باندې کامل ایمان نه راوړې کوم چې هغه څیزونو سره د حلال څیزونو په شان معامله کوی کوم چې الله ﷻ حرام کړی دی یعنی هغه قرآن کښې د مذکوره حرام او ممنوع څیزونو ارتکاب کوی

## [۳۰۳] قرآن پاك واضحه لوستل

---() [۱۸] ① وَعَنِ اللَّيْثِ بْنِ سَعْدٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ ② أَنَّهُ «سَأَلَ أُمَّ سَلَمَةَ عَنْ قِرَاءَةِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ③ فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَالنَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ① لیث ابن سعد رحمه الله د ابن ابی ملیکه رحمه الله څخه نقل کوی او هغه د یعلی ابن مملك رحمه الله په باره کی روایت کوی ② چې هغه د ام المؤمنین بی بی ام سلمه رضي الله عنها څخه د نبی کریم ﷺ د قرائت په باره کی پوښتنه وکه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم به قرآن کریم څرنګه ویلی؟ ③ نو بی بی أم سلمه رضي الله عنها د نبی کریم صلی الله علیه وسلم قرائت په واضح طور سره او یو یو حرف کولو سره بیان کی، ترمذی ابوداؤد نسائی

**حل اللغات:** ① تَنْعَتُ: أَيْ: تَصِفُ: صفت او بیان ئې کولو، ② مُفَسَّرَةً: أَيْ: مُبَيَّنَةً: په واضح طور سره، ③ حَرْفًا حَرْفًا: یو یو حرف (لکه چه حروف ئې شمیرلې کیدې شو، ددې نه مراد په ترتیل او تجوید سره قرآن لوستل دی)

**تسهیلات:**

**قوله: فَإِذَا هِيَ تَنْعَتُ قِرَاءَةً مُفَسَّرَةً حَرْفًا حَرْفًا**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① مطلب دادې چې سرورکائنات ﷺ به قرآن پاك داشان وئیلو چې که د سرورکائنات ﷺ د قرامت حروف به چا شمیرل غوښتل نو دا ممکن وو څکه چې سرورکائنات ﷺ په ښه په ترتیل او تجوید سره قرآن پاك لوستلو

② علامه طیبی رحمه الله فرمائی چې د ام سلمه رضی الله عنها باره کښې منقول الفاظ دواړه احتمال لری یا خو هغوئ د سرور کائنات ﷺ د قرامت کیفیت په الفاظو کښې بیان کړو یا دا چې هغوئ قرآن کریم هم هغه شان اولوستلو او واوړولو څنګه چې به حضرت رسول کریم ﷺ لوستلو

**په تجوید سره د قرآن لوستلو اهمیت،** د حضرت ابن عباس رضي الله عنه په باره کښې منقول دی چې هغوئ به فرمائیل چې بغیر د ترتیل نه ټول قرآن وئیلو نه صرف یو سورة په ترتیل سره وئیل زما په نزد زیات محبوب اوښه دی

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب استحباب الترتیل فی القراءة (رقم-۱۴۶۶) والترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء کیف کانت قراءة النبی صلی الله علیه وسلم (رقم-۲۹۲۳) والنسائی فی کتاب التطبیق/باب التطبیق (رقم-۱۰۲۲)

[۳۰۵] د نبي کريم ﷺ د قرائت انداز

۲۲۰۵-(۱)[۱۹] ① وَعَنِ ابْنِ جُرَيْجٍ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ قَالَتْ ② «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُقَطِّعُ قِرَاءَتَهُ ③ يَقُولُ الْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، ثُمَّ يَقِفُ، ④ ثُمَّ يَقُولُ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، ثُمَّ يَقِفُ» ). ⑤ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ ⑥ لِأَنَّ اللَّيْثَ رَوَى هَذَا الْحَدِيثَ عَنِ ابْنِ أَبِي مُلَيْكَةَ عَنْ يَعْلَى بْنِ مَمْلَكٍ عَنْ أُمِّ سَلَمَةَ ⑦ وَحَدِيثُ اللَّيْثِ أَصَحُّ.

ترجمه: ① ابن جريج رحمه الله د ابن ابي مليكة رحمه الله څخه او هغه د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه نقل کوي ② چې د نبي کريم ﷺ قرائت به جدا جدا وو ③ الحمدالله رب العٰلمين به يې اوويل بيا به ودريدی ④ بيابه يې چې الرحمٰن الرحيم وويلی نو دريدی به، ⑤ امام ترمذی رحمه الله دا روايت کړی دی او ويلی دی چې د دی سند متصل نه دی ⑥ ځکه چې د دی (اصل) سلسلۀ سند دا دی چې ابن ابي ملکية د يعلی ابن مملك څخه او هغه نقل کړی دی د بي بي ام سلمه رضي الله عنها څخه (څرنګه چې د دی څخه مخکی د حديث سلسلۀ سند دی) ⑦ او د حضرت ليث حديث (چې مخکی تير شو) زيات صحيح دی.

حل اللغات: ① يُقَطِّعُ: دا د تقطيع نه دې، کټ کولو ته وائی، مراد ترې نه وقف کول دی په هرآيت باندې. ② يَقِفُ: وقف به ئې کولو. (يعنی ساه به ئې اخستله، بيا به ئې بل آيت شروع کولو).

تسهيلات:

قوله: وَقَالَ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ

دحديث عدم صحت: ځنې علماء کرامو ليکلی دی چې دا حديث پاك قابل استدلال نه دې اهل بلاغت دا روايت نه قبلوی ځکه چې د قاعدې مطابق وقف تام مالك يوم الدين باندې دې په دې وجه امام ترمذی رحمه الله فرمائی چې دې باره کښې زيات صحيح حديث دحضرت ليث رضی الله عنه روايت دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

[۳۰۶] په قرآن باندې د عمل نه کولو وعيد

۲۲۰۶-(۲)[۲۰] ① عَنْ جَابِرٍ قَالَ: ( «خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② وَنَحْنُ نَقْرَأُ الْقُرْآنَ ③ وَفِينَا الْأَعْرَابِيُّ وَالْأَعْجَمِيُّ. ④ فَقَالَ اقْرَءُوا فَكُلٌّ حَسَنٌ ⑤ وَسَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يُقِيمُونَهُ كَمَا يُقَامُ الْقِدْحُ ⑥ يَتَعَجَّلُونَهُ وَلَا يَتَأَجَّلُونَهُ» ) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

---

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الحروف والقراءات (رقم-۴۰۰۱) والترمذی فی کتاب القراءات عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب فی فاتحة الکتاب (رقم-۲۹۲۷) واحمد فی المسند :۳۰۲/۱

[2] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة/باب ما يجزئ الأمی والأعجمی من القراءة (رقم -۸۳۰) واحمد فی المسند:۱۵۵/۳ والبيهقی فی شعب الايمان ۵۳۸/۲ حديث رقم: ۲۶۴۲

**ترجمه** [۱] جابر رضی الله عنه وایي چې (یو ورځ) رسول الله ﷺ زمونږ منځ ته تشریف راوړی [۲] کله چې مونږ قرآن کریم ویلی [۳] په مونږ کې کلیوال او عجمي خلق هم وو، [۴] نبي کریم صلی الله علیه وسلم مونږ ته وفرمایل چې وایئ په تاسو کې هر سړی یې ښه وایي [۵] یاد لرئ چه یو داسې خلق پیدا کیدونکي دي چې د هغه افراد به قرآن کریم داسې سیده کوي څرنګه چې تیر سیده کولی شي [۶] او د هغه بدله به زر (په دنیا) کې حاصلول غواړي او د آخرت د پاره به هیڅ نه پریږدي، ابوداؤد بیهقي.

**حل اللغات**: ① الْأَعْرَابِيُّ: أي: الْبَدَوِيُّ: کلي وال، بانډیچی، ② الْأَعْجَمِيُّ: أي: غَيْرُ الْعَرَبِيِّ: چه عربي نه وي هغه ته عجمي وائي لکه فارسي، رومي، حبشي وغیره. ③ فَكُلٌّ حَسَنٌ: أي: فَكُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْ قِرَاءَتِكُمْ حَسَنَةٌ: یعني په تاسو کښې د هر یو قرأت ښائسته دې ثواب به پرې ملاویږي. ④ يُقِيمُونَهُ كَمَا يُقَامُ الْقِدْحُ: قدح غشي ته وائي. (د قرآن سیدها کولو نه مطلب دا چه أي يُبَالِغُونَ فِي عَمَلِ الْقِرَاءَةِ: یعني د قرآن په خوش آوازۍ او ترتیل کښې به مبالغه کوي خو دا به د ریاء او شهرت دپاره وي. ⑤ يَتَعَجَّلُونَهُ: أي: ثَوَابَهُ فِي الدُّنْيَا: دوی به جلتي کوي ددې قرآن (یعني د قرآن د لوستلو عوض به په دنیا کښې حاصلول غواړي). ⑥ لَا يَتَأَجَّلُونَهُ: بِطَلَبِ الْأَجْرِ فِي الْعُقْبَى: باقي پاتې کیدو ته به ئې نه پریږدي یعني دا به نه غواړي چه په آخرت کښې دې زمونږ دپاره ذخیره شي چه ثواب راته ملاؤ شي.

**تسهیلات: قوله: وَالْأَعْجَمِيُّ**:

**د عجمي د لفظ وضاحت او د حدیث مفهوم**: دَ عربو په مقابله کښې ټول غیرعرب عجمیان دي "الاعرابي" دَاعراب طرف ته منسوب دې او اعراب کلي والو ته وائي. دَحضرت جابر رضی الله عنه مطلب دادې چه په کوم مجلس کښې صحابه کرام رضی الله عنهم ناست وو هلته مونږ سره څه کلي وال او څه غیرعرب وو چه په ټولو قواعدو سره ئې قرآن نه شو لوستلې. خو دَدې باوجود رسول اکرم ﷺ اوفرمائیل تاسو ټول ئې لولئ ستاسو ټولو قرات ښکلې دې ځکه چه غرض خو آخرت دې تاسو سره دَدې چه په قرات کښې خپلو ژبو او خپلو آوازونو سره ښکلې نه دې کړې خو په دې کښې ستاسو هیڅ نقصان نشته دې. تاسو نه پس به څه خلق راځي چه دهغوی کسان به قرآن داسې نیغولو سره لولي څنګه چه غشي نیغولې شي. دَدې تفصیل دادې چه خپل آوازونه او قرآني کلمات په مختلفو قراءتونو سره ښائسته کړني او دَ مخارج ادائیګئ کښې ښه محنت او زیات تکلف کوي. لیکن دَهغوی دا کوشش به دَآخرت دپاره نه وي بلکه ټول کوشش به ئې دَخپل شهرت، خپل، عزت فخر او مباهات او دنیاته دَخودلواو اورولو دپاره وي. دَدې نه علاوه به دَ سرنه واخله ترخپوپورې په کبر او غرور کښې ډوب وي. دغه ټولو نقصاناتو سره سره هغه خلق معاوضه هم اخلي. چنانچه نن صبا پاکستان کښې لوئي لوئي خطیبان هم دې طرف ته راځي. افسوس په دې خبره دې چه کوم علماء دَ یو بند طرف ته منسوب کیدو سره هم دَ تقریر کولو نه ورانده دې معاوضه

مقرر کوی او هغه هم پنځلس زره که د دې نه کمه وی نو لس زره ګنې د تولونه کمه شپږه زره ده دې نه کمه نشته دې هم دغه شان لفاظی کونکی او آخرت هیرونکی باره کښې حضور پاك فرمائیلی "یتعجلونه ولا یتأجلونه" یعنی زر زر به د ثواب معاوضه اخلی او خوری به نی او د آخرت د ثواب به هډو خیال نه کوی ﴿خَسِرَ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةَ ذَٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ﴾

[۲۲۰۷] د عربو په لهجو سره د قرآن لوستلو حکم

۲۲۰۷-()[۲۱] [۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «اقْرَءُوا الْقُرْآنَ بِلُحُونِ الْعَرَبِ وَأَصْوَاتِهَا [۳] وَإِيَّاكُمْ وَلُحُونَ أَهْلِ الْعِشْقِ وَلُحُونَ أَهْلِ الْكِتَابَيْنِ [۴] وَسَيَجِيءُ بَعْدِي قَوْمٌ يُرَجِّعُونَ بِالْقُرْآنِ تَرْجِيعَ الْغِنَاءِ وَالنَّوْحِ [۵] لَا يُجَاوِزُ حَنَاجِرَهُمْ [۶] مَفْتُونَةٌ قُلُوبُهُمْ [۷] وَقُلُوبُ الَّذِينَ يُعْجِبُهُمْ شَأْنُهُمْ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ، وَرَزِينٌ فِي كِتَابِهِ.[1]

**ترجمه** [۱] حضرت حذیفه رض روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] تاسو قرآن کریم د اهل عرب پشان او د هغوی د آوازونو مطابق وایئ [۳] د اهلِ عشق او اهلِ کتابو د طریقې مطابق ویلو څخه ځان ساتئ [۴] زما څخه روسته به یو جماعت پیدا شی چې د هغوی افراد به د ساز او نوحې پشان قرآن وایي [۵] د هغوی حال به دا وی چې قرآن به د هغوی د حلق څخه مخې ته نه ځی (یعنی د هغوی ویل به قبول نه وی) [۶] د هغوی زړونه به په فتنه کښې واقع شوی وی [۷] او د هغوی قرائت آوریدو سره د خوشحالیدونکو زړونه به په فتنه کې مبتلا شی. بیهقي زرین.

**حل اللغات**: ① لُحُونِ الْعَرَبِ: د عربو لهجه، ② أَصْوَاتِهَا: په آواز د عربو. ③ أَهْلِ الْعِشْقِ: أي: أصحاب الفسق: عاشقان او فاسقان خلق، ④ أَهْلِ الْكِتَابَيْنِ: أي: أرباب الكفر من اليهود والنصارى: اهل کتاب نه مراد یهود او نصاری دی. ⑤ يُرَجِّعُونَ: أي يرددون: الترجيع في القرآن: ترديد الحروف كقراءة النصارى. قرآن داسې اړولو راړولو سره لوستل لکه څنګه چه نصاری خپل کتاب لولی ⑨ الْغِنَاءِ: سندرې. شاعری. ⑥ النَّوْحِ: دا د نِيَاحَة نه دې، وير یعنی په مړی باندې ژړا کولو ته وائی ⑧ لَا يُجَاوِزُ: تجاوز نه کوی. نه ځی. ⑨ حَنَاجِرَهُمْ: د حلق یعنی مرئ نه. (وَهُوَ كِنَايَةٌ عَنْ عَدَمِ الْقَبُولِ: یعنی نه به قبلیږی). ⑩ مَفْتُونَةٌ: أي مُبتلى بحب الدنيا وتحسين الناس لهم: دوی به په فتنه کښې به اخته وی (یعنی یو خو به دوی دنیا غواړی بل دا چه خلق به د دوی تعریف کوی او په دوی به ښه لګی، ⑪ شَأْنُهُمْ: حالت د هغوی

**تسهیلات:**

**قوله**: بِلُحُونِ الْعَرَبِ:

**د لحون العرب څخه مراد**: د عربو لهجه او د لوستلو طریقه مراد ده. عرب خلق بغیر د څه تکلیف او تکلف نه بغیر د حدر په انداز کښې قرآن لوستلو سره پخپله هم فائده حاصلوی او

[1] اخرجه البیهقی فی شعب الایمان ۲/۵۴۰ حدیث رقم: ۲۶۴۹

نور خلق هم ترې فائده اوچتوي. داهل عشق او اهل کتاب طريقه داده چه څنګه شاعران غزلې وائي محفل لګوي آواز جوړولو سره سُر او خوش آوازئي سره اوډ موسيقئي اوراګ په اندازکښې لوستل کوي تاسو ډهغوي په شان قرآن مه لولئي دهغوي زړونه په فتنو کښې ډوب پراته دي. او دنيا د هغوي په زړه او دماغو باندې مسلط ده او د هغوي هغه صفت کونکي به هم هغوي سره په فتنه کښې راګيروي چه دهغه غافل قاريانو قراءت خوښوي

## [۲۲۰۸] قرآن په ترتيل سره د ولېلو حکم

۲۲۰۸ – ()[۲۲] [۱] وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۲] («حَسِّنُوا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ [۳] فَإِنَّ الصَّوْتَ الْحَسَنَ يَزِيدُ الْقُرْآنَ حُسْنًا»). رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] براء ابن عازب رضي الله عنه روايي دي چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل [۲] چې قرآن په خپل ښه آواز (يعنى په ترتيل او خوش آوزارى سره وايې) [۳] څکه چې ښه آواز د قرآن حسن زياتوي، دارمي.

**حل اللغات:** ① حَسِّنُوا: أَيْ زَيِّنُوهُ: ښائسته کړئ (په ترتيل او تجويد سره) ② الصَّوْتَ الْحَسَنَ: ښائسته آواز

**تسهيلات:**

**قوله: حَسِّنُوا الْقُرْآنَ بِأَصْوَاتِكُمْ:**

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① دا په قلب باندې محمول دى چې خپل آواز د قرآن په ذريعه مزين کړئ. او څينې رواياتو کښې هم داسې دی

② دا په خپله ظاهرى معنى باندې محمول دى څکه چې قرآن په ښه لحن کښې ونيل حسن لره زياتوي خو په دې شرط چې په دې کښې دسندرې يا د موسيقۍ د قواعدو رعايت نه وى شوې. يعنى تکلف نه کار نه وى اخستې شوې

## [۲۲۰۹] د قرآن په تلاوت کښې د ويرې اثر ښکاره کيدو فضيلت

۲۲۰۹ – ()[۲۳] [۱] وَعَنْ طَاوُسٍ مُرْسَلًا قَالَ: «سُئِلَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] أَيُّ النَّاسِ أَحْسَنُ صَوْتًا لِلْقُرْآنِ وَأَحْسَنُ قِرَاءَةً [۳] قَالَ: (مَنْ إِذَا سَمِعْتَهُ يَقْرَأُ أُرِيتَ أَنَّهُ يَخْشَى اللهَ») [۴] قَالَ طَاوُسٌ: وَكَانَ طَلْقٌ كَذَلِكَ. رَوَاهُ الدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] طاوس رحمه الله په طريق ارسال نقل کوى چې د نبى کريم ﷺ څخه پوښتنه وشوه [۲] چې د قرآن ويلو په سلسله کی د آواز دلحاظه کوم سرى د ټولو څخه بهتر دى؟ او په ويلو کی هم (يعنى د ترتيل او د ادائيګې او)، د الفاظو د لحاظه کوم سرى د ټولو څخه بهتر

[۱] اخرجه الدارمي في السنن ۵۱۵/۲ حديث رقم: ۳۵۰۱

[۲] اخرجه الدارمي في السنن ۵۶۳/۲ حديث رقم: ۳۴۸۹

دی [۳] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هغه سړی چې تاسو خبنی ویل واوري نو ستاسو ګمان شی چې هغه د الله ﷻ څخه یر یږی [۴] طاوس رحمه الله وایې چې په حضرت طلق رحمه الله کی دا خبره وه چې قرآن به یې ویلی نو داسی به محسوسیده چې خشیت الهی په هغه غالب دی، دارمی

**تسهيلات:**

**قوله:** يَقْرَأُ أُرِيتَ أَنَّهُ يَخْشَى اللّٰهَ:

**د خوش آوازۍ سره د خوف خدا لګول** :- مطلب دادې چه یوسړې کله قرآن لولی اودهغه په لوستلوسره ستا په زړه باندې اثرکیږی یادهغه خپل کیفیت داسې وی دکوم نه چه معلومیږی چه په ده باندې دالله تعالی ویره شروع ده نو پوهه شه چه د تولو نه ښه آواز هم دهغه دې. معلومه شوه چه یوسړې خپل آواز د تلاوت دپاره ښه کول جوړول غواړی نوهغه له پکاردی چه په زړه کښې دالله تعالی ویره پیداکړی. طاؤس رحمه الله وائی چه د شیخ طلق رحمه الله هم دغه کیفیت وو. صاحب مشکوة دې صحابی لیکلې دې، والله اعلم

**[۲۳۰] د قرآن د عام کولو حکم**

---() [۲۳] [۱] وَعَنْ عُبَيْدَةَ الْمُلَيْكِيِّ وَكَانَتْ لَهُ صُحْبَةٌ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] (« يَا أَهْلَ الْقُرْآنِ لَا تَتَوَسَّدُوا الْقُرْآنَ [۳] وَاتْلُوهُ حَقَّ تِلَاوَتِهِ مِنْ آنَاءِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ، [۴] وَأَفْشُوهُ وَتَغَنَّوْهُ [۵] وَتَدَبَّرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ، [۶] وَلَا تُعَجِّلُوا ثَوَابَهُ فَإِنَّ لَهُ ثَوَابًا ») رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه** [۱] عبیده ملیکی رضی الله عنه چې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم یو صحابی دی، روایت دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] اې اهل قرآن! د قرآن سره تکیه مه لګوی [۳] او شپه او ورځ یې وایې څرنګه چې د دی د ویلو حق دی [۴] (د درس اوتدریس په ذریعه) قرآن عام کړئ اوپه خوش آوازی سره لولئ [۵] څه چې په دی کی مذکور دی په هغه کی غور او فکر کوی چې ستاسو مطلوب (آخرت) حاصل شي [۶] او د هغه ثواب په حاصلولو کی جلتي مه کوی (یعنی په دنیا کی د هغه د اجر حاصلولو کوشش مه کوی) خکه چې په آخرت کی د دی لوی ثواب دی، بیهقي

**حل اللغات:** ① لَا تَتَوَسَّدُوا: أَيْ لَا تَجْعَلُوهُ وِسَادَةً لَكُمْ: بالخت ترې مه جوړوئ چه تلاوت نه پس په دې سرکیږدئ اوده شئ او دنورو حقوقو نه ئې غافله شئ ② آنَاءَ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ: فِي سَاعَاتِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ: دشپې او ورځو په مختلفو وختونو کښې ③ وَأَفْشُوهُ: یعنی د درس اوتدریس په ذریعه داعام کړئ

[۱]) اخرجه مسلم فی كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل من يقوم بالقرآن ويعلمه، وفضل من تعلم حكمة من فقه، او غيره فعمل بها وعلمها (رقم-۲۷۰ - (۸۱۸) وابو داود فی كتاب الصلاة /باب انزل القرآن على سبعة احرف (رقم-۱۴۷۵) والنسائی فی كتاب الافتتاح /باب جامع ما جاء فی القرآن (رقم-۹۳۶) ومالک فی الموطا فی كتاب القرآن باب ما جاء فی القرآن (رقم-۵) واحمد فی المسند

⑦ وَتَغَنَّوْهُ: خوش آوازئ سره ئې وايئ ⑧ تَدَبَّرُوا: غور او فكر كوئ. ⑨ لاتَعْجَلُوا: أَيْ: ثَوَابَهُ فِي الدُّنْيَا: جلتي مه كوئ (يعنى د قرآن د لوستلو عوض په دنيا كښې حاصلول مه غواړئ)

**تسهيلات:**

**قوله: لَاتَتَوَسَّدُوا:**

اې قرآن پاك لوستونكو! قرآن تكيه مه جوړونئ چه په دې باندې سر كيږدئ اوده شئ يا سملاستوسره په دې آرام اوكړئ

**د توسد القرآن حكم:** علامه ابن حجرؒ ليكى چه په قرآن باندې ده لګولوسره كيناستل يا سملاستل دَدې طرف ته خپې كول په دې باندې څه ځيز كيخودل دَدې طرف ته شاكول دادَخپو لاندې كول اودا په زمكه باندې غورزول داټول ځيزونه حرام دى. نن صباعام عرب دَ قرآن په احترام كښې كوتاهى كوى حالانكه حضورپاك دَتورات دَ نسخې احترام كړې دې. چنانچه ابوداؤد جلددوم كتاب الحدود باب رجم اليهودين ص ۲۵۵باندې دَحضرت ابن عمر ﷺ روايت كښې دى چه حضورپاك تورات په زمكه باندې كينخودو بلكه دَلاندې نه ئى تكيه اوچته كړه په هغې باندې تورات كيخودو. دَحديث عربى متن داسې دې: ثم قال ائتونى بالتوراة فاتى بها فنزع الوسادة من تحته ووضع التوراة عليها وفى رواية ووضع الوسادة تعظيم الكتاب الله وقال امنت بك وبمن انزلك ص ۲۵۵-

**قوله: حَقَّ تِلَاوَتِهِ:**

**د قرآن د تلاوت حق:** يعنى ښكه چه دَدې دَتلاوت حق دې. دَقرآن پاك دَتلاوت حق دادې چه دَدې دَحروفو تصحيح اوكړې شى په دمه دمه اولوستلې شى دَدې الفاظوسره سره په معانى اوتفسيرباندې هم خان پوهه كړى.

**قوله: وَأَفْشُوهُ:**

**د قرآن پاك د عام كولو ذرائع:** دَدې نه معلومه شوه چه قرآن پاك عام كول دَ علماؤ او مدارسو كاردې "وافشوه" دَافشانه دَعام كولوپه معنى كښې دې شارحينو دَ حديث ليكلى دى چه دَ درس اوتدريس اوتعليم اوتعلم په ذريعه دَ قرآن پاك عام كول مراددى. ښكاره خبره ده چه داكار دَ قرآن عظيم مكاتب يا مدارس يا لوئى علماؤ په مواعظ اومجالس كښې كيدې شى لهذا په مسلمانانوباندې لازم دى چه هغوى دې دَقرآن كريم مكاتب اودَدې درسونه عام كړى. دَ ناظره ترجمه او حفظ اوتجويد انتظام دې عام كړى په تبليغ والو باندې فرض دى چه هغوى دې په قرآن باندې خان پوهه كول او بل پوهه كول دَ اوريدلو او اورولواهتمام كوى اودَ قرآن په اشاعت او دَ درس په لاروكښې دې بنديزنه جوړېږى گنى تباه به شى.

# [ ۲ ] بَابُ الْقِرَاءتِ وَجَمْعِ الْقُرْآنِ

## د قرآن د قراءتونو او تدوین بیان

**خلاصة الباب فیه اثنا عشر حدیثا مشتملة على خمس مسائل**

① إنزال القرآن على سبعة أحرف: ۱، ۳، ۴، ۵.

② النهي عن التنازع في قراءات القرآن: ۱، ۴، ۹،

③ كراهية الأكل بالقرآن: ۶، ۷.

④ حكمة نزول التسمية: ۸.

⑤ سبب جمع القرآن وطريقته: ۱۰، ۱۱، ۱۲.

وقال الله تعالى ﴿ فَاقْرَءُوْا مَا تَيَسَّرَ مِنَ الْقُرْاٰنِ ﴾ [سورت مزمل الایه: ۲۰]

دَمشکوة شریف په عامو نسخوکښې هم دلته صرف باب لیکلې شوې دې څه عنوان نشته دې دَ کوم نه چه دې طرف ته اشاره ده چه داباب هم دَ قرآن پاك دَمتعلقاتونه دې. لیکن په بعضې نسخوکښې او عام شرحوکښې دغه پورتنې عنوان کیخودلې شوې دې. هم دې سره متعلق به په دې باب کښې احادیث راځی چه قرآن عظیم په یوځائی څنګه راجمع کړې شو اوڅوك دَدې دَپاره سبب جوړ شو.

دَدې پوره قصې په پس منظر کښې دی چه دا ټول کار دَ حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په کوششونو سره شوې دې. دَخلافت زمانه دَ صدیق اکبر رضی الله عنه وه بیا په دور عثمان رضی الله عنه کښې دَ قراءتونو جګړې راپیدا شوې. په دې وجه دَ حضرت حذیفه بن الیمان رضی الله عنه په کوششونو سره حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه یوه کمیټی جوړه کړه او قرآن کریم ئې صرف دَ قریشو په لغت باندې راجمع کړو. څکه چه قرآن په شروع کښې هم په دغه لغت کښې نازل شوې وو. نو دادَ قرآن په الفاظ کښې تغیر اوبدلون نه دې بلکه په شروع کښې چه دَ کوم وسعت لغات رخصت اواجازت وو هغه رخصت ئې ختم کړو او امت ئې په اصل لغت باندې جمع کړو اودا یوډیره لویه کارنامه وه کومه چه دَ حضرت عثمان رضی الله عنه په قسمت کښې راغله

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۲۱۱] د قرآن کریم په اووه لهجو باندې نازلیدل**

۲۲۱۱-(۱)[۱] [۱] عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: «سَمِعْتُ هِشَامَ بْنَ حَكِيمِ بْنِ حِزَامٍ [۲] يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَؤُهَا [۳] وَكَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقْرَأَنِيهَا [۴] فَكِدْتُ أَنْ أَعْجَلَ عَلَيْهِ [۵] ثُمَّ أَمْهَلْتُهُ حَتَّى انْصَرَفَ [۶] ثُمَّ لَبَّبْتُهُ بِرِدَائِهِ فَجِئْتُ بِهِ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

[۱] أخرجه البخاري في كتاب الخصومات باب كلام الخصوم بعضهم في بعض

**ترجمه** [۱] امیر المؤمنین عمر بن الخطاب ﷺ فرمایي چې (یوه ورځ) ما د هشام بن حکیم بن حزام څخه واوریدل[۲] چې هغه سورة فرقان د هغه طریقې خلاف وایي په کومه طریقه چې ما ویلې [۳] او په کومه طریقه چې نبي کریم ﷺ هغه سورت ماته ښودلی وو [۴] نو نږدې وه چې ما په هغه حمله کړې وې (یعنې د قرأت ختمولو څخه مخکې مې د هغه سره جنګ کړی وې) ،[۵] خو بیا هم ما هغه ته دومره مهلت ورکړی چې هغه د ویلو څخه فارغه شو[٦] د هغه څخه روسته ما دهغه په څټ کې څادر واچولې اوپه راخکلو مې د رسول الله ﷺ په خدمت کې راوستلی

**حل اللغات:** ① - أَقْرَأَنِيهَا: خودلې ني وو ماته، ② فَكِدْتُ: أي: قَارَبْتُ: نږدې وه چه، ③ أَعْجَلَ: أي: أن أُعَاجِلَهُ: چه ما ورسره جنګ کړې وې، ④ أَمْهَلْتُهُ: مهلت مې ورکړو، صبرمې ورته اوکړو ⑤ لَبَّبْتُهُ: أي جَعَلْتُهُ فِي عُنُقِهِ وَجَرَرْتُهُ: یعنې په مرئ کښې مې ورته څادر واچولو او رابنکلو مې.

[۱] فَقُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي سَمِعْتُ هَذَا [۲] يَقْرَأُ سُورَةَ الْفُرْقَانِ عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَأْتَنِيهَا، [۳] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَرْسِلْهُ: اقْرَأْ، [۴] فَقَرَأَ الْقِرَاءَةَ الَّتِي سَمِعْتُهُ يَقْرَأُ، [۵] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: هَكَذَا أُنْزِلَتْ، [٦] ثُمَّ قَالَ لِي: اقْرَأْ، فَقَرَأْتُ، فَقَالَ: هَكَذَا أُنْزِلَتْ [۷] إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ [۸] فَاقْرَءُوا مَا تَيَسَّرَ مِنْهُ»). [۹] مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ اللَّفْظُ لِمُسْلِمٍ.

**ترجمه** [۱] او عرض مې وکړو چې یا رسول الله ﷺ ما خپنی آوریدلی دی [۲] چې دی سورت فرقان د هغه طریقې خلاف وایي په کومې طریقې سره چې تا ما ته ښودلی دی [۳] نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې اې عمره! ﷺ دی پریږده، بیا یې هشام ﷺ ته وفرمایل چې ته یې اووایه [۴] نو هشام ﷺ په هغه طریقه وویلې په کومه طریقه چې ما خپنی آوریدلی وو ،[۵] نبي کریم صلی الله علیه وسلم د هغه قرأت آوریدولو سره وفرمایل چې دا سورت دغه شان نازل شوی دی ،[٦] بیا یې ماته وفرمایل چې اوس یې ته اووایه نو ما هم ورته وویلې نبي کریم صلی الله علیه وسلم زما قرائت آوریدو سره وفرمایل چې دا سورت داسې نازل شوی دی ،[۷] یاد لرې چې دا قرآن په اوه ۷ طریقو باندې نازل شوی دی [۸] نو د دې څخه چې په کومه طریقې سره کیدی شي او تاسو ته آسان وي هغه شان یې اووائي ،[۹] دا روایت بخاري رحمه الله او مسلم رحمه الله نقل کړی دی خو الفاظ د مسلم رحمه الله دي.

**حل اللغات:** ⑥ سَبْعَةِ أَحْرُفٍ: سبعة اووه عدد ته وائي، او احرف د حرف جمع ده او د حرف اطلاق په لغت باندې کیږي نو دلته هم اووه لغات یا اووه لهجې مراد دي

**تسهیلات:**

**قوله:** عَلَى غَيْرِ مَا أَقْرَؤُهَا ... الخ:

د حضور پاك په مبارك دور کښې د حضرت عمر فاروق ﷺ او حضرت هشام ﷺ وغیره په مینځ کښې د قرامت د اختلاف او د لغات د اختلاف د وجې نه یوزبردسته جګړه پیدا شوې

وه په دې حديث كښې هم د هغې قصه ده
«نهنه» يعني د مونځ نه فارغ كيدو سره ما د هغه څادر د هغه په مرئى كښې واچولو او د حضور پاك طرف ته مې راښكلو

**قوله: عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ:**

**د سبعة احرف په مفهوم كښې آسانه توجيه:** د حديث په دې حصه باندې پوهيدل ډير ګران دي تردې چه بعضې علماؤ دا په متشابهات كښې شميرلې دې د عامو علماؤ د دې جملې په پوهيدلو كښې څلويښت اقوال دي.

د ټولو نه آسانه توجيه د حضرت شاه ولي الله رحمه الله ده هغوى فرمائي چه احرف د حرف جمع ده او د حرف اطلاق په لغت باندې كيږي. د حديث مطلب دا شو چه قرآن پاك په اووه لغاتو باندې نازل شوې دې. د قرآن نازليدل د قريشو په لغت باندې شوې وو ليكن د قريشو نه علاوه د عربو شپږ مشهور قبائل وو د ټولو لغات او د قبائل نومونه دا دي.

**د قريشو د لغت څخه علاوه نور لغات:** ① لغت قريش ② لغت بنو طي ③ لغت بنو تميم ④ لغت هوازن ⑤ لغت اهل يمن ⑥ لغت ثقيف ⑦ لغت هذيل. د دې اووه لغاتو لاندې قرآن لوستل جائز ګرځولې شوى وو. د دې مطلب دا نه دې چه په هر لغت كښې اووه لغات جارى وو بلكه په ټولو قبائلو كښې چه كوم اختلافى لغات وو هغه په مجموعى توګه باندې اووه ته رسيدلى وو. بل دا د حلال او حرام اختلاف نه وو. د دې حديث پوره تفصيل تسهيلات اول جلد كښې دې هلته ئې اوګورئ.

**[۳۳] د الله تعالى په كتاب كښې د مخالفت كولو ممانعت**

—() [۲] ① وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: «سَمِعْتُ رَجُلًا قَرَأَ ② وَسَمِعْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْرَأُ خِلَافَهَا ③ فَجِئْتُ بِهِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَأَخْبَرْتُهُ ④ فَعَرَفْتُ فِي وَجْهِهِ الْكَرَاهِيَةَ، فَقَالَ: ⑤ (كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ فَلَا تَخْتَلِفُوا ⑥ فَإِنَّ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمُ اخْتَلَفُوا فَهَلَكُوا») رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې ما د يو سړى قرأت واوريدلى ② او د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه مې هم واوريدلو چې د نبى كريم صلى الله عليه وسلم قرأت د هغه سړى د قرائت څخه مختلف وو، ③ ما هغه سړى د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په خدمت كې راوستلى او نبى كريم صلى الله عليه وسلم ته مې صورت حال بيان كې (چې د دې سړى قرأت ستا صلى الله عليه وسلم د قرأت څخه مختلف دى) ④ بيا ما محسوس كړه چې (زما د جنګ وجدل او اختلاف په وجه) د نبى كريم صلى الله عليه وسلم په مخ مبارك د خفګان آثار څرګند دى بهر حال نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ⑤ چې تاسو دواړه يې صحيح او ښه وايې (ګورې) په خپلو كې اختلاف

[۱] اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب حديث الغار (رقم-۳۴۷۶) واحمد في المسند ۴۱۲/۱

مه کوی [۶] ځکه هغه خلق چې ستاسو څخه مخکې تیر شوی دی (یعنی د مخکینو امتونو خلق) هغوئ په خپل منځ کې د اختلاف په وجه هلاک شو یعنی هغه خلقو په خپل منځ کې یو بل دروغجن کول، بخاری

**حل اللغات:** ①الْكَرَاهَةَ: أَيْ آثَارَ الْكَرَاهِيَةِ: د ناخوښۍ او خفګان اثرات ②مُحْسِنٌ: فَكُلُّ وَاحِدَةٍ مِنْ قِرَاءَتِكُمْ حَسَنَةٌ: یعنی په تاسو کښې د هر یو قرات ښانسته دي ثواب به پرې ملاویږی.

**تسهیلات:**

**قوله:** كِلَاكُمَا مُحْسِنٌ فَلَا تَخْتَلِفُوا

**د اختلاف څخه مراد:** دلته د اختلاف نه مراد دقرآن پاك د هغه وجوه نه دیو وجې انکار دې چې دهغې مطابق قرآن پاك نازل شوې دې.

په قرآن پاك کښې چې څومره قراءتونه منقول او رائج دی هغه ټول برحق دی او په هغې کښې دیو قرآءت نه هم انکار نه دی پکار ځکه که یو کس په هغې کښې د یو قراءت نه هم انکار اوکړو نو دا داسې دی لکه چې دهٔ د ټول قرآن پاك نه انکار اوکړو

**نوټ:** د سبعه احرف تشریح د حدیث نمبر ۲۲۱۱ په شرح کښې تیره شوې ده.

**[۲۲۱۲] د صحابو مختلف قراءت لوستل**

—()[۳] [۱] وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: «كُنْتُ فِي الْمَسْجِدِ [۲] فَدَخَلَ رَجُلٌ يُصَلِّي فَقَرَأَ قِرَاءَةً أَنْكَرْتُهَا عَلَيْهِ [۳] ثُمَّ دَخَلَ آخَرُ فَقَرَأَ قِرَاءَةً سِوَى قِرَاءَةِ صَاحِبِهِ، [۴] فَلَمَّا قَضَيْنَا الصَّلَاةَ دَخَلْنَا جَمِيعًا عَلَى رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقُلْتُ: [۵] إِنَّ هَذَا قَرَأَ قِرَاءَةً أَنْكَرْتُهَا عَلَيْهِ [۶] وَدَخَلَ آخَرُ فَقَرَأَ سِوَى قِرَاءَةِ صَاحِبِهِ [۷] فَأَمَرَهُمَا النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَرَأَ فَحَسَّنَ شَأْنَهُمَا [۸] فَسَقَطَ فِي نَفْسِي مِنَ التَّكْذِيبِ وَلَا إِذْ كُنْتُ فِي الْجَاهِلِيَّةِ

**ترجمه:** [۱] ابی ابن کعب رضي الله عنه وایې چې (یو ورځ) زه په مسجد کې ووم [۲] یو سړی راغلو او د مانځه څخه روسته داسې قرات یې شروع کی (یعنی په داسې لهجه کې یې قرآن شریف وویلو) چې ما هغه صحیح ونه ګڼرلو [۳] بیا یو بل سړی راغلو چې هغه د هغه اول سړی څخه د جدا طریقې سره قرآت وویلو [۴] کوم وخت چې مونږ ټول د مانځه څخه فارغه شو نو د رسول الله ﷺ په خدمت کې (په مسجد کې د مانځه په ځای یا د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په حجره مبارکه کې) حاضر شو ما عرض وکړو [۵] چې اې رسول الله ﷺ دی سړی داسې قرآت ویلی دی چې ما صحیح ونه ګڼلو [۶] د ده څخه روسته دا دویم سړی راغلو چې ده د اولنی سړی د طریقې څخه خلاف قرآت وکی [۷] نبی کریم ﷺ (دی آوریدو سره) دواړو ته په خپل مخکې د قرآت کولو حکم ورکړی هغه دواړو قرائت اوونیلو نبی

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها /باب بیان أن القرآن علی سبعة أحرف وبیان معناه (رقم-۲۷۳ - (۸۲۰) واحمد فی المسند ۱۲۴/۵

كريم صلى الله عليه وسلم د دواړو د قرات تحسين او توثيق وكي (چې دواړه صحيح دي)
[۸] د دې ليدو سره زما په زړه كې د دې خبرې د تكذيب وسوسه پيدا شوه داسې وسوسه او
شبهه چې په ايام جاهليت كې هم پيدا شوې نه وه

حل اللغات: ① أَكْرَمُهَا: بد مې اوګڼلوهغه، ② فَسَقَطَ: پريوتله، راپيدا شوه،

[۱] «فَلَمَّا رَأَى رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مَا قَدْ غَشِيَنِي [۲] ضَرَبَ فِي صَدْرِي فَفِضْتُ عَرَقًا [۳] وَكَأَنَّمَا أَنْظُرُ إِلَى اللَّهِ فَرَقًا [۴] فَقَالَ لِي يَا أُبَيُّ أُرْسِلَ إِلَيَّ أَنِ اقْرَأِ الْقُرْآنَ عَلَى حَرْفٍ [۵] فَرَدَدْتُ إِلَيْهِ أَنْ هَوِّنْ عَلَى أُمَّتِي [۶] فَرَدَّ إِلَيَّ الثَّانِيَةَ اقْرَأْهُ عَلَى حَرْفَيْنِ [۷] فَرَدَدْتُ إِلَيْهِ أَنْ هَوِّنْ عَلَى أُمَّتِي [۸] فَرَدَّ إِلَيَّ الثَّالِثَةَ اقْرَأْهُ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ [۹] وَلَكَ بِكُلِّ رَدَّةٍ رَدَدْتُكَهَا مَسْأَلَةٌ تَسْأَلُنِيهَا [۱۰] فَقُلْتُ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأُمَّتِي اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِأُمَّتِي [۱۱] وَأَخَّرْتُ الثَّالِثَةَ لِيَوْمٍ يَرْغَبُ إِلَيَّ الْخَلْقُ كُلُّهُمْ حَتَّى إِبْرَاهِيمُ -عَلَيْهِ السَّلَامُ- رَوَاهُ مُسْلِمٌ»

ترجمه [۱] نبي كريم صلى الله عليه وسلم چې زما كېنې شک (اووسوسه) و ليدلو كوم چې په ما باندې سور وو [يعنې نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته چې معلومه شوه چې زما په زړه كې تردد او شبه پيدا شوې ده] [۲] نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم خپل لاس مبارك زما په سينه راتير كړو (راكاږل) [۳] [او د خوف په وجه زما داسې حالت شو] لكه چې زه الله وينم [۴] د دې څخه روسته نبي كريم صلى الله عليه وسلم ماته وفرمايل چې اې ابي: كوم وخت چې قرآن نازل شو نو ماته د جبرئيل عليه السلام په ذريعه دا حكم را وليږل شو چې زه په يوه طريقه يعنې يو قرائت يا په يو لغت باندې قرآن وايم [۵] ما په بارګاه الوهيت كې درخواست پيش كړې چې زما أمت ته آسانې وركړې [چې آسانې وې په دې طور چې په يو قرأت كې قرآن ويل مشكل دې څكه د څو قرأتنو مطابق د ويلو اجازت راكړل شي چې آسانې وي] [۶] نو په دويم ځل ماته دا حكم وشو چې زه په دوه قرائتونو باندې قرآن وايم [۷] ما بيا درخواست پيش كړو چې زما أمت ته زياته آسانې وركړل شي [۸] نو په دريم ځل ماته دا حكم وشو چې زه قرآن په اوه ۷ طريقوسره يعنې په اوه لغات يا د اوه ۷ قرأت مطابق وايم [۹] [او دا هم وفرمايل شو] چې څومره ځله مونږ تاته حكم دركړې دې هغومره ځله ته زمونږ څخه دُعا وغواړه مونږ به هغه قبوله كړو [۱۰] نو ما په بارګاه الوهيت كې دوه ځله دعا وغوښتله چې اې الله! ﷻ زما په أمت كې كبيره ګناه كونكې وبخښې اې الله! ﷻ زما په أمت كې صغيره ګناه كونكې وبخښې [۱۱] او دريمه دعا مې د هغه ورځې د پاره پرېښوده په كومه ورځ چې مخلوق ماته د سفارش او شفاعت خواهش وكړې تردې چې حضرت ابراهيم عليه السلام به هم ما ته د شفاعت خواهش وكړي، مسلم

حل اللغات: ② غَشِيَنِي: أَيْ أَتَانِي مِنْ آثَارِ الْخَجَالَةِ وَعَلَامَاتِ النَّدَامَةِ: د شرمندګۍ او خپيمانتيا اثراتو زه راګير كرم، ③ فَفِضْتُ: أَيْ جَرَيْ: جاري شوي، ④ عَرَقًا: خولې ⑤ فَرَقًا: أَيْ خَوْفًا: د وېرې نه، ⑥ حَرْف: ددې جمع احرف ده، د حرف اطلاق په لغت باندې كيږي. معنى دا شوه چه اووه لغتونه يا اووه

لهجې ⑧فَرَدَدْتُ: أَي فَرَاجَعْتُ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى: يعنى ما الله تعالى رجوع اوكړه، درخواست او دعا مې اوكړه، ⑨هَوِّنْ: أَيْ سَهِّلْ وَيَسِّرْ: آسان كړې، ⑩يَرْغَبُ: أَيْ يَحْتَاجُ: خواهش به لري، محتاج به وي

**تسهيلات:**

**قوله: فَسَقَطَ:**

يعنى زما په زړه كښې دَ تكذيب داسې وسوسه پيدا شوه چه په جاهليت كښې هم داسې وسوسه نه وه پيدا شوې چه آيا دا دين رښتونې دې كه نه؟

"ففضت عرقاً" يعنى زه خوله خوله شوم. دا دَ حضورپاك دَ طرف نه دَ توجه پريوتلو اثر وو

**قوله: بِكُلِّ رَدَّةٍ:**

**هر سوال قبليدل:** يعنى خومره خل چه ستا سوال راغلې دې او مونږ جواب دركړې دې په هره مراجعه باندې به يو سوال قبلولې شي. حضورپاك دوه سوالونه دَ امت دَپاره دَمغفرت اوغوښتل او دريم سوال ئې دَ قيامت دَ ورځې دَپاره پريخودو. چرته چه به حضورپاك دَ ټولو انسانانو دَ حساب كتاب شروع كولو شفاعت كوى كوم ته چه شفاعت كبرىٰ وائى

**[۳۳] دَ حلال او حرام سره د اووه لغاتو عدم تعلق**

| ۳۳ــ()[۳] ①وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: إِنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ②«أَقْرَأَنِي جِبْرِيلُ عَلَى حَرْفٍ فَرَاجَعْتُهُ ③ فَلَمْ أَزَلْ أَسْتَزِيدُهُ وَيَزِيدُنِي حَتَّى انْتَهَى إِلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ» ④قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: بَلَغَنِي أَنَّ تِلْكَ السَّبْعَةَ الْأَحْرُفَ إِنَّمَا هِيَ فِي الْأَمْرِ تَكُونُ وَاحِدًا ⑤لَا تَخْتَلِفُ فِي حَلَالٍ وَلَا حَرَامٍ مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. |
| --- |

**ترجمه:** ① ابن عباس رضي الله عنهما رواي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② جبرئيل علیه السلام په اولنى خل ماته د يو قرائت يعنى په يوه لهجه باندى قرآن وښودلى بيا ما د خپل اُمت د آسانى د پاره د الله جل جلاله طرف ته مراجعت وكى ③ او ما په آسانى كى برابر زياتوالى طلب كولى چې د هغه په نتيجه كى ماته زياته آسانى حاصليدله تر دى چې تر اوه ۷ قراءتونو پورى نوبت ورسيدلى [او آخرى فيصله وركړل شوه چې قرآن كريم په اوه لغات باندى ويل كيداى شي]④ د دى حديث راوى ابن شهاب زهرى (تابعى رحمه الله) وايې چې دا خبره ماته په تحقيقى طورسره رسيدلى ده چې دقرائت دا اوه طريقى په دينى احكامو او امورو كى متفق او متحدى دى ⑤ په حلال او حرام كى د دى سره هيڅ اختلاف نه واقع كيږى، بخارى مسلم.

**حل اللغات:** ①حَرْفٍ: ددې جمع احرف ده، دَ حرف اطلاق په لغت باندې كيږي. معنى دا شوه چه اووه لغتونه يا اووه لهجې ②أَسْتَزِيدُهُ: أَيْ أَطْلُبُ الزِّيَادَةَ: طلب د زياتوالى مې كولود الله تعالى نه، (يا د جبرئيل عليه السلام نه چه دهغه د الله تعالى نه زياتوالې اوغواړى).

[1] اخرجه مسلم فى كتاب فضائل القرآن/باب أنزل القرآن على سبعة أحرف(رقم-۱۹۹۱) و مسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب بيان أن القرآن على سبعة أحرف وبيان معناه (رقم-۲۷۲ - (۸۱۹) و احمد فى المسند ۲۶۴/۱

تسهيلات:

نوټ: د سبعه احرف تشريح په حديث نمبر ۲۲۱۱ کښې تيره شوې ده

قوله: إِنَّمَا هِيَ فِي الْأَمْرِ تَكُونُ وَاحِدًا لَا تَخْتَلِفُ فِي حَلَالٍ وَلَا حَرَامٍ

وعدم اختلاف مطلب: مطلب د ادې چې د قرآن پاک په قراءت کښې اختلاف سره د قرآن کريم په احکامو کښې تغير و تبدل نه راځي يعنی داسې نه ده چې د قرآن پاك يو آيت په يو قراءت سره اولوستلې شی او په دې آيت مبارك کښې ديو څيز ذکر شوی دی چې هغه حلال دې او بيا هم دا آيت مبارك په بل قراءت سره اولوستلې شی او په هغې قراءت سره هغه څيز حرام اوګرځولې شی. يعنی د قرآت بدلون سره د هغې آيت په معنی کښې تغير و تبدل نه راځي خلاصه دا ده چې د اختلاف قراءت تعلق صرف د الفاظو او لهجو سره دې احکامو او معانيو سره د دې تعلق نشته دې.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

### [۳۱۵] په اووه لغاتو د قرآن د لوستلو اجازت

۲۲۱۵—(۵) [۱] عَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ: «لَقِيَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - جِبْرِيلَ فَقَالَ: [۲] (يَا جِبْرِيلُ إِنِّي بُعِثْتُ إِلَى أُمَّةٍ أُمِّيِّينَ [۳] مِنْهُمُ الْعَجُوزُ، وَالشَّيْخُ الْكَبِيرُ، وَالْغُلَامُ، وَالْجَارِيَةُ، [۴] وَالرَّجُلُ الَّذِي لَمْ يَقْرَأْ كِتَابًا قَطُّ [۵] قَالَ يَا مُحَمَّدُ: إِنَّ الْقُرْآنَ أُنْزِلَ عَلَى سَبْعَةِ أَحْرُفٍ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.[1]

ترجمه: [۱] ابی ابن کعب ﷺ وايي چې نبی کريم ﷺ د جبرئيل علیه السلام سره ملاقات وکی او هغه ته يې وفرمايل [۲] چې اې جبرئيل! علیه السلام زه د يو ناخوانده قوم طرف ته راليږل شوی يم [۳] زما په قوم کی سپين ږيری او سپين سری دی هلکان او جينکی دی [۴] او په دی قوم کی داسی سری هم شته چې هيڅ کله يې څه کتاب نه دی ويلی [۵] جبرائيل علیه السلام اوويل چې اې محمد! ﷺ قرآن کريم په اوه لغاتو يا اوه قرائتو باندی نازل شوی دی نو په کوم قرأت چې آسان وی د هغه مطابق قرآن کريم وايي، ترمذی،

حل اللغات: ① أُمِّيِّينَ: اميان، انپړه خلق ،چه قرآن به په يو لهجه کښې نه شی ونيلې. ② الْعَجُوزُ: بوډۍ ګانې زنانه، ③ الشَّيْخُ الْكَبِيرُ: بوډاګان سری.

[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِأَحْمَدَ وَأَبِي دَاوُدَ قَالَ: [۲] ( «لَيْسَ مِنْهَا إِلَّا شَافٍ كَافٍ» ) [۳] وَفِي رِوَايَةٍ لِلنَّسَائِيِّ قَالَ: ( «إِنَّ جِبْرِيلَ وَمِيكَائِيلَ أَتَيَانِي [۴] فَقَعَدَ جِبْرِيلُ عَنْ يَمِينِي وَمِيكَائِيلُ عَنْ يَسَارِي [۵] فَقَالَ جِبْرِيلُ: اقْرَأِ الْقُرْآنَ عَلَى حَرْفٍ [۶] قَالَ مِيكَائِيلُ: اسْتَزِدْهُ، حَتَّى بَلَغَ سَبْعَةَ أَحْرُفٍ [۷] فَكُلُّ حَرْفٍ شَافٍ كَافٍ» ).

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب أنزل القرآن علی سبعة أحرف (رقم-۱۴۷۷) والترمذی فی کتاب القراءات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء أنزل القرآن علی سبعة أحرف (رقم-۲۹۴۴) والنسائی فی کتاب الافتتاح/باب جامع ما جاء فی القرآن (رقم-۹۴۱)

**ترجمه** ① او د احمد او ابوداؤد په روايت کې دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم دلفظ أحرُف څخه روسته په آخر کې دا هم اوويل ② چې د دی اوه ۷ څخه هر قرأت شافی کافی دی (يعنی کفر او شرك او ظلم او جهل د فع کوی، او کافی دی، [يعنی د نبی ﷺ صداقت د دين اسلام حقانيت او د منکرين دين د رد د پاره کافی دی] ③ د نسائی په روايت کې دی چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل جبرائيل ﷺ او ميکايل ﷺ ماته راغلل ④ جبرائيل ﷺ زما ښی طرف ته کينا ستی او ميکايل ﷺ زما چپ طرف ته کينستلی ⑤ د دی څخه روسته جبرائيل ﷺ اوويل چې د يو قرأت مطابق قرآن وايه ⑥ (دی آوريدو سره) ميکايل ﷺ ما ته اوويل چې د يو قرأت څخه دزيات طلب وکه [يعنی الله تعالی ﷻ ته درخواست وکه چې د نورو قرآتونو مطابق هم د ويلو حکم درکړل شي يا جبرايل ﷺ ته اوئيلو چې په دی باره کې الله تعالی ﷻ ته عرض کولوسره آسانی وکي،ما زياتوالی غوښتلی اوماته دزيات قرآتونو اجازت حاصليدلی] تردی چې اوه ۷ قرآتونو ته نوبت ورسيدی ⑦ نو دهغه هرقرأت کافی او شافی دی.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د سبعه احرف تشريح په حديث نمبر ۲۲۱۱ کښې تيره شوې ده.

**قوله:** إِنِّي بُعِثْتُ إِلَى أُمَّةٍ أُمِّيِّينَ

**د مذکوره جملې مفهوم:** ددې مطلب دادې چې زه يو داسې قوم طرفته ليږلې شوې يم چې په هغې کښې اکثر هغه خلق دې چې په ښه طريقې ليك لوست نشی کولې که زه دوی ته په يوه طريقه باندې قرآن پاك اوښايم نو دوی به په هغې طريقه د قرآن په لوستلو قادرنشی ځکه چې په دوی کښې ډير خلق داسې چې مثلاً دهغوی ژبه صرف په إماله يا فتح باندې چليږی او څه داسې دی چې هغوی په ژبه ادغام او اظهار غالب وی بيا په دې قوم کښې بوډنې ښځې هم دی او بوډاگان سړی هم دی او صغير السن ماشومان هم دی ددوی دپاره ناممکن دی چې دوی د خپل بوډنی والی يا کم عمری په وجه يو مخصوص قرامت زده کړی لهذا ددوی دپاره ضروری دی چې ډير قراتونه وی چې چا ته کوم آسان معلوميږی او چې په کوم قرآمت باندې قادر وی دهغې مطابق قرآن پاك اولولی

**[۳۳] د قرآن په ذريعه خير غوښتل**

۳۳–()[۲] ① وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ «أَنَّهُ مَرَّ عَلَى قَاصٍّ يَقْرَأُ ② ثُمَّ يَسْأَلُ فَاسْتَرْجَعَ ③ ثُمَّ قَالَ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: ④ (مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ فَلْيَسْأَلِ اللهَ بِهِ ⑤ فَإِنَّهُ سَيَجِيءُ أَقْوَامٌ يَقْرَءُونَ الْقُرْآنَ يَسْأَلُونَ بِهِ النَّاسَ» ) رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

[1] اخرجه الترمذی فی کتاب فضائل القرآن عن رسول الله صلی الله عليه وسلم/باب (رقم-۲۹۱۷) واحمد فی المسند ۴۳۲/۴

**ترجمه** ① د عمران بن حصین ﷛ په باره کې روایت دی چې (یو ځل) هغه د یو قصه ګر سره تېر شو چې قرآن کریم یې ویلی ② او د خلقو څخه یې سوال کولی حضرت عمران بن حصین ﷛ (دی آوریدو سره) په انتهائی تکلیف سره اوویل إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ [ځکه چې دا بدعت د علامات قیامت څخه دی] ③ او بیا هغه اوویل چې ما د رسول الله ﷺ آوریدلی دی ④ چې کوم سړی قرآن وایې نو هغه ته پکار دی چې هغه دقران په ذریعه د الله ﷻ څخه وغواړی ⑤ ځکه چې په ورستی زمانه کې به داسې خلق را پیدا شي د دی په ذریعه به د نورو په مخکې د سوال لاس اوږدوی (یعنی خیر به غواړی) احمد ترمذی

**حل اللغات:** ① قَارِئ: أَيْ يَحْكِي الْقِصَصَ وَالْأَخْبَارَ: قصه ګر چه قصې وائي. ② فَاسْتَرْجَعَ: استرجاع ئې اوکړه یعنی "إِنَّا لِلّٰهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ" ئې اوونیلو.

**تسهیلات:** **قوله:** فَلْيَسْأَلِ اللّٰهَ:

**د قرآن په وسیله دالله څخه سوال کول:** یعنی قرآن پاك دَالله تعالی یو عظیم الشان کتاب دې دَ دې وئیلوسره برکت حاصلولونه پس دَدې دَعظمت تقاضا ده چه دَ الله تعالی نه سوال اوکړې شي ځکه چه دَ تلاوت نه پس سوال قبلیږي.

**قوله:** يَسْأَلُونَ بِهِ النَّاسَ:

**په قرآن باندې د دنیا حاصلولو مذمت:** یعنی دومره لوئی کتاب اودومره عظیم کلام دَ حقیر او ذلیل دنیا دَ حاصلولو ذریعه مه جوړوئی که په دنیاکښې هم غوښتل دی نو هم دَ الله تعالی نه غواړئی دَخلقو نه مه غواړئی دا پخپله دَانسانی عظمت او شرافت خلاف دی چه یو انسان دَ خپل خان په شان دَ یومحتاج انسان په مخکښې لاس دَ سوال دَپاره خورکړی هغه خو پخپله محتاج دې تاله به څه درکړي.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [۳۱۷] په قرآن باندې د دنیا ګټلو وعید

> ۳۱۷ -() [۷] ① عَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② ( «مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ يَتَأَكَّلُ بِهِ النَّاسَ ③ جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَوَجْهُهُ عَظْمٌ لَيْسَ عَلَيْهِ لَحْمٌ» ). رَوَاهُ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ.

**ترجمه:** ① بریده ﷛ روایې دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② کوم سړی چې قرآن کریم دې دپاره وایې چې د دی په ذریعه د خلقو څخه ګټه وکړی (یعنی قرآن کریم د دنیاوی فائدی د پاره وسیله جوړ کړی) ③ نو هغه به د قیامت په ورځ په داسې حالت کې راسی چې د هغه مخ به یواځې هډوکې وی په هغه به غوښه نه وی، بیهقي

[1] ) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان ۵۳۲/۲ حدیث رقم ۲۶۲۵

**حل اللغات:** ① يَتَأَكَّلُ : أَيْ يَطْلُبُ بِهِ الْأَكْلَ مِنَ النَّاسِ: چه د خلقو نه پرې خوراک څښاک اوکړي. کېنه پرې اوکړي ② عَظْمٌ: هډوکی

**تسهیلات:**

**قوله:** مَنْ قَرَأَ الْقُرْآنَ يَتَأَكَّلُ بِهِ النَّاسَ؛

**په روایاتو کښې تعارض:** ما قبل کښې یو حدیث مبارك تیر شوې دې چې کوم کس غوښتونکې او سوال کونکې وی نو دهغه په مخ باندې به د قیامت په ورځ غوښه نه وی اوپه دې حدیث مبارك کښې دی چې قرآن وائی او ددې په بدله کښې خلقو نه سوال کوی نو دده په مخ باندې به غوښه نه وی په ظاهره په دواړو روایاتو کښې تعارض دې ځکه چې هلته د مطلق سائل ذکر دې اودلته دقاری قرآن ذکر دې.

**دتعارض جوابونه:**

① په هغه ځائې کښې مطلق د سوال ذکر دې او دلته دسوال خاصیت هم ذ کر شوې دې

② هرکله چې مطلقا سوال کول مذموم دی نو قرآن پاك وئیل او په دې باندې سوال دا نور هم زیات قابل مذمت دې.نو په دواړو کښې هیڅ تعارض نشته دې

**دنیا په دنیا ګټل اودنیا په آخرت ګټل:** په دې حدیث مبارك کښې د قرآن وئیلو وجه دنیا غوښتونکی دپاره وعید دې په دې وجه کوم کس چې صرف په دنیا کښې اخته وی او مال د مال په ذریعه حاصلوی نو داکس افضل دې هغه علماء کرامو نه چې ددین په ذریعه دنیا حاصلوی کوم چې په هیڅ حالت کښې صحیح نه دی کمافی قوله تعالی ﴿أُولَٰئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ بِالْهُدَىٰ فَمَا رَبِحَتْ تِجَارَتُهُمْ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ﴾ (البقرة ١٦٥).

**نوټ:** البته په طاعاتو باندې اجرت اخستلو کښې څخه تفصیل دې کوم چې د تسهیلات په بل مقام کښې ذکرشوې دې.هغې طرف ته مراجعت پکار دې.

**[۲۳۸] د دوؤ سورتونو په مینځ کښې د بسم الله حکمت**

۲۳۸ —(١)[٨] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لَا يَعْرِفُ فَصْلَ السُّورَةِ ③ حَتَّى يَنْزِلَ عَلَيْهِ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** ① ابن عباس رضی الله عنهما وایې ② چې رسول الله ﷺ به د یو سورت څخه د بل سورت فرق نشو کولی ③ تر دی چې په نبی کریم صلی الله علیه وسلم بسم الله الرحمٰن الرحیم نازل شو، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① فَصْلَ السُّورَةِ : أَيْ فَصْلَهَا عَنْ سُورَةٍ أُخْرَى: د بل سورة نه جدا والی څه نښه (چه دوه سورتونه پرې جدا شي)

[1] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب من جهر بها (رقم -٧٨٨)

**تسهيلات:**

**قوله: لَايَعْرِفُ فَصْلَ السُّوَرِ حَتّٰى يَنْزِلَ عَلَيْهِ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ**

**د بسم الله په عدم جزئيت من كل سورة دپاره دليل:** ددې حديث نه معلومه شوه چې بسم الله دسورة فاتحې جزء نه دې بلكه دقرآن پاك يو آيت دې او دا د دوؤ سورتونو په مينځ كښې د فصل په طور راوړلې شوې ده ځنګه چې داحنافو مسلك دې

**[۳۳] د شرابو په څکلو د قران د تکذيب اطلاق**

۳۳—()[۹] [۱] وَعَنْ عَلْقَمَةَ قَالَ: «كُنَّا بِحِمْصَ [۲] فَقَرَأَ ابْنُ مَسْعُوْدٍ سُوْرَةَ يُوْسُفَ [۳] فَقَالَ رَجُلٌ: مَا هٰكَذَا أُنْزِلَتْ [۴] فَقَالَ عَبْدُ اللّٰهِ: وَاللّٰهِ لَقَرَأْتُهَا عَلٰى عَهْدِ رَسُوْلِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: أَحْسَنْتَ، [۵] فَبَيْنَا هُوَ يُكَلِّمُهُ إِذْ وَجَدَ مِنْهُ رِيْحَ الْخَمْرِ [۶] فَقَالَ: أَتَشْرَبُ الْخَمْرَ وَتُكَذِّبُ بِالْكِتَابِ فَضَرَبَهُ الْحَدَّ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** [۱] حضرت علقمه رضي الله عنه فرمايې مونږ په حمص كې (چې د يو ښار نوم دې) مقيم وو [۲] هلته يو ځل ابن مسعود رضي الله عنه د سورة يوسف قرأت اوكړو [۳] يو سړى د هغه قرأت آوريدو سره اوويل چې داسې نه دې نازل شوې [۴] ابن مسعود رضي الله عنه اوويل چې قسم په خداى دا سورت دغه شان ما د رسول الله ﷺ په زمانه كې ويلى دى نو رسول الله ﷺ د دې آوريدو سره وفرمايل چې تا ښه وويلې [۵] هغه سړى چې د ابن مسعود رضي الله عنه سره يې خبرې كولې نو ابن مسعود رضي الله عنه ناساپه د هغه د خولې څخه د شرابو بوى محسوس كې [۶] ابن مسعود رضي الله عنه ورته اوويل چې ته شراب څښې؟ [يعنى د قرآن خلاف عمل كوې] او د پاسه وربانديې لا دا څه قرآن كريم ته يعنى د دې قرائت ته يا د قرأت لهجه او طرز ادا كولو ته دروغ هم وايې، بيا ابن مسعود رضي الله عنه په هغه حد جاري كې يعنى دشرابو د څښولو دسزا په طور يې هغه په كوړو ووهلو، بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① بِحِمْصَ: بَلْدَةٌ بِالشَّامِ: د شام د يو ښار نوم دې ② الْحَدَّ: د سزا په طور په كوړو باندې وهلو ته حد وائى

**اشكال:** دَ حضرت ابن مسعود رضي الله عنه قرأت به دَ دووحالتونو نه خالي نه وي يا به دا قرأت مشهور وى نو په دې دا اعتراض دې چه كله دې سړى دَ قرآن كريم په مشهور قرأت باندې اعتراض اوكړونو په دې سره هغه كافر شو په دې وجه هغه واجب القتل وو ځكه چه دَ ارتداد سزا قتل دې اوكه چرې دَ ابن مسعود رضي الله عنه قرأت شاذ وو نو دَ هغې په انكار باندې دَ هغه سړى طرف ته تكذيب دكتاب الله نسبت نه وو كول پكار حالانكه دَهغه طرف ته هم دغه نسبت كړې شوې؟ الكاشف ۲۵۷/۴.

[۱] اخرجه البخاري فى كتاب فضائل القرآن/باب القراء من أصحاب النبى صلى الله عليه وسلم (رقم-۵۰۰۱) ومسلم فى كتاب صلاة المسافرين وقصرها /باب فضل استماع القرآن. وطلب القراءة من حافظة للاستماع والبكاء عند القراءة والتدبر (رقم-۲۴۹-۸۰۱) واحمد فى المسند: ۳۷۸/۱

**د اشكال جوابونه:**

① دغه سړي دَ قرأت مشهور نه انكار نه وو كړي بلكه ابن مسعود رضي الله عنه كيدې شي چه شاذ قرأت تلاوت كړي وو دَ هغه په لهجه او دَ هغه دكلماتو په اداكولو باندې هغه سړي اعتراض كړي وو حضرت ابن مسعود رضي الله عنه تغليظاً او تشديداً دَهغه نسبت تكذيب كتاب الله طرف ته اوكړو هم دغه جواب علامه طيبي رحمه الله وركړي دې او هم دغه زيات راجح دې خودا يوتاويل دې.

② كه چرې دلته دا اونيلې شي چه دغه سړى سره دَدې چه په قرأت مشهوره باندې اعتراض كړي وو ليكن دَخپل جهالت او بې علمئ دَ وجې نه ئې كړي وو يادَ څه اشتباه په بنياد ئې كړي وو دكوم په وجه چه دَتعزير په توګه هغه له دكوړو سزا وركړې شوه اودَ ارتداد سزا ورنه كړې شوه. دا جواب ظاهري حديث سره زيات موافق دې سره دَدې چه ما په څه شرح كښې نه دى كتلى. بهرحال په دې حديث سره دَ نن صبا منافق حكمرانانو نقشه نه ښكاره مخې ته راځى چه شراب څكلوسره دَ اسلام په يوحكم باندې اعتراض كوى الكاشف: ۳۵۷/۴.

**د شرابو په بوئى باندې د حد الخمر په جارى كولو كښې اختلاف:**

① دَدې حديث نه داخبره هم معلومه شوه چه دَخلې نه دَ شرابو بدبوئى دَ شرابو دَ سزا سبب دې دَ علماؤ يوه طبقه هم دې طرف ته تلې ده.

② دَ ائمه احناف اوشوافع په نيز صرف دَخلې بوئى دَسزا دَ ثبوت دَپاره كافى نه دې ځكه چه څه څيزونه داسې هم دى كوم چه شراب نه دى ليكن دَدې دَخوراك نه پس دَخلې نه دَ شرابو بدبوئى راځى لكه كيلا وغيره چه ده.

**داول فريق د ليل جواب:** دَدې حديث جواب دَ دې حضراتو دَ طرف نه داكيدې شى چه ممكن ده دغه سړي دَ جرم اعتراف كړې وى يا دا هم ممكن ده چه دَ خلې نه دَ بدبوئى نه علاوه نور علامات هم موجود وى چه موجب حد خمر وو

**[۲۳۳۰] د قرآن پاك تدوين او جمع**

۲۳۳۰-(۱)[۱۰] ① وَعَنْ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ قَالَ: أَرْسَلَ إِلَيَّ أَبُو بَكْرٍ مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ ② فَإِذَا عُمَرُ بْنُ الْخَطَّابِ عِنْدَهُ قَالَ أَبُو بَكْرٍ: ③ إِنَّ عُمَرَ أَتَانِي فَقَالَ إِنَّ الْقَتْلَ قَدِ اسْتَحَرَّ يَوْمَ الْيَمَامَةِ بِقُرَّاءِ الْقُرْآنِ، ④ وَإِنِّي أَخْشَى أَنِ اسْتَحَرَّ الْقَتْلُ بِالْقُرَّاءِ بِالْمَوَاطِنِ ⑤ فَيَذْهَبَ كَثِيرٌ مِنَ الْقُرْآنِ، ⑥ وَإِنِّي أَرَى أَنْ تَأْمُرَ بِجَمْعِ الْقُرْآنِ، ⑦ قُلْتُ لِعُمَرَ: كَيْفَ تَفْعَلُ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -

**ترجمه** ① زيد بن ثابت رضي الله عنه وايي چې په كومو ورځو كې چې د اهل يمامه قتل وشو د هغه

[۱] اخرجه البخاري فى كتاب فضائل القرآن/باب جمع القرآن (رقم-۴۹۸۶)

ورځو خبره ده چې حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه زما د بللو د پاره يو سړی راوليږلی زه هلته حاضر شوم [۲] هلته رسيدو سره څه گورم چې د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه سره حضرت عمر فاروق رضي الله عنه هم ناست دی حضرت ابوبکر رضي الله عنه ماته وفرمايل [۳] چې عمر رضي الله عنه ماته راغلو دی او وايي چې د قرآن د قاريانو د شهادت حادثه د يمامه په ورځ گرمه شوه (يعنی د يمامه په ورځ په جنگ کی ډير قاريان شهيدان شوي دي) [۴] ما سره خدشه ده که داسی په کثرت سره په مختلف جنگونو کی قاريان شهيدان کيږی [۵] نو د قرآن ډيره حصه به لاړه شی [۶] نو ماته په دی کی بهتری او مصلحت په نظر راځی چې تاسو د قرآن د جمع کولو حکم ورکړی [۷] (حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمايل، د دی آوريدو سره ما حضرت عمر رضي الله عنه ته وويل) چې تاسو هغه کار څرنگه کوی چې هغه رسول الله صلى الله عليه وسلم نه دی کړی؟

**حل اللغات:** ① اسْتَحَرَّ: مِنَ الْحَرِّ بِمَعْنَى الشِّدَّةِ: گرم والی ته وانی، تيز والی دجنگ مراد دی.

[۱] فَقَالَ عُمَرُ: هَذَا وَاللّٰهِ خَيْرٌ [۲] فَلَمْ يَزَلْ عُمَرُ يُرَاجِعُنِي حَتَّى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِذٰلِكَ [۳] وَرَأَيْتُ فِي ذٰلِكَ الَّذِي رَأَى عُمَرُ [۴] قَالَ زَيْدٌ: قَالَ أَبُو بَكْرٍ: إِنَّكَ رَجُلٌ شَابٌّ عَاقِلٌ [۵] لَا نَتَّهِمُكَ وَقَدْ كُنْتَ تَكْتُبُ الْوَحْيَ لِرَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۶] فَتَتَبَّعِ الْقُرْآنَ فَاجْمَعْهُ، [۷] فَوَاللّٰهِ لَوْ كَلَّفُونِي نَقْلَ جَبَلٍ مِنَ الْجِبَالِ مَا كَانَ أَثْقَلَ عَلَيَّ [۸] مِمَّا أَمَرَنِي بِهِ مِنْ جَمْعِ الْقُرْآنِ،

**ترجمه:** [۱] عمر رضي الله عنه راته اوويل چې قسم په خدای په دی کار کی خير او بهتری ده [۲] حضرت عمر رضي الله عنه په دی مسئله کی برابر ما سره خبری وکړی تر دی چې الله تعالی جل جلاله د دی کار (يعنی د قرآن د جمع کولو) د پاره زما سينه خلاصه کړه [۳] او ماته هم په دی کی هغه مصلحت په نظر راغی کوم چې عمر رضي الله عنه ليدلی وو، [۴] حضرت زيد رضي الله عنه وايي چې د دی څخه روسته حضرت ابوبکر رضي الله عنه وفرمايل چې ته يو پوهه زلمی يې [۵] ستا د نيک بختی او سعادت په وجه د قرآن د جمع کولو او نقل کولو په سلسله کی به تا د دروغو وغيره هيڅ الزام او تهمت نه شی لگيدی څکه چې تا به د رسول الله صلى الله عليه وسلم وحی ليکلی [۶] نو ته قرآن تلاش که او دا (په مصحف کی) جمع که [۷] د حضرت زيد رضي الله عنه بيان دی قسم په خدای که د غرو څخه يو غر اوچتولو سره د منتقل کولو خدمت ماته حواله شوی وي نو دا خدمت به زما د پاره د دی خدمت څخه زيات سخت او دروند نه وو [۸] کوم چې حضرت ابوبکر رضي الله عنه د قرآن جمع کولو ماته سپارلی وو،

**حل اللغات:** ② لَا نَتَّهِمُكَ: أَيْ: لَا نُدْخِلُ عَلَيْكَ التُّهْمَةَ: مونږ په تا باندې تهمت نه لگوو ③ كَلَّفُونِي: که زه مکلف کړی ووم هغوی (يعنی ابوبکر، عمر وغيره)

[۱] قَالَ: قُلْتُ: كَيْفَ يَفْعَلُونَ شَيْئًا لَمْ يَفْعَلْهُ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] قَالَ: هُوَ وَاللّٰهِ خَيْرٌ، فَلَمْ يَزَلْ أَبُو بَكْرٍ يُرَاجِعُنِي [۳] حَتَّى شَرَحَ اللّٰهُ صَدْرِي لِلَّذِي شَرَحَ لَهُ صَدْرَ أَبِي بَكْرٍ وَعُمَرَ، [۴] فَتَتَبَّعْتُ الْقُرْآنَ أَجْمَعُهُ مِنَ الْعُسُبِ، وَاللِّخَافِ، وَصُدُورِ الرِّجَالِ، [۵] حَتَّى وَجَدْتُ سُورَةَ التَّوْبَةِ مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ، [۶] لَمْ أَجِدْهَا مَعَ

أَحَدٍ غَيْرِهِ [۷] ﴿لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ﴾ [التوبة: ۱۲۸] حَتَّى خَاتِمَةِ بَرَاءَةَ [۸] فَكَانَتِ الصُّحُفُ عِنْدَ أَبِي بَكْرٍ حَتَّى تَوَفَّاهُ اللَّهُ [۹] ثُمَّ عِنْدَ عُمَرَ فِي حَيَاتِهِ [۱۰] ثُمَّ عِنْدَ حَفْصَةَ بِنْتِ عُمَرَ. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] حضرت زید رضی الله عنه وایي چې بهرحال (د دی آوریدو سره) ما ابوبکر رضی الله عنه ته عرض وکړی چې تاسو هغه کار څرنګه کوی کوم چې رسول الله ﷺ نه دی کړی؟ [۲] حضرت ابوبکر رضی الله عنه وفرمایل چې قسم په خدای په دی کار کی خیر او بهتر والی دی حضرت ابوبکر رضی الله عنه په دی سلسله کی مسلسل ما سره خبری کولی [۳] تر دی چې دهغه کار دپاره الله زما سینه خلاصه کړه دکوم کاردپاره چې دابوبکراوعمردواړوسینه خلاصه کړیوه [۴] نو ما د قرآن لټول شروع کړل داسی چې مابه دا جمع کولی د کجوري وو د څانګو څخه، د سپینو کاڼو څخه او د خلقودسینو څخه (یعنی د حافظانو د سینو څخه) [۵] تر دی چې ما د سورت توبه آخری حصه د ابو خزیمه انصاری رضی الله عنه سره پیدا کړه [۶] او دا حصه ما د هغه څخه سوا د بل چا سره پیدا نه کړه [۷] (اوهغه حصه دا ده) لَقَدْ جَاءَكُمْ رَسُولٌ مِنْ أَنْفُسِكُمْ دسوة برآت ترآخره پوری [۸] (هغه صحیفی چې ما جمع او نقل کړی وی) د حضرت ابوبکر رضی الله عنه سره د هغه د وفات پوری وی [۹] بیا د هغه څخه روسته د حضرت عمر رضی الله عنه سره د هغه د ژوند پوری وی [۱۰] او بیا د هغه څخه روسته د حضرت عمر رضی الله عنه د لور بی بی حفصه رضی الله عنها سره وی، بخاری.

**حل اللغات:** ④ تَتَبَّعْتُ: تلاش او لټون مې شروع کړو، په تحقیق او تفتیش سره د یو څیز تلاش کولو ته تتبع وائی ⑤ الْعُسُبِ: د عَسِيبٍ جمع ده، جَرِيدَةُ مِنَ النَّخْلِ: د کجورو پاڼړو اولختو ته وائی ⑥ اللِّخَافِ: د لِخْفَةٍ جمع ده، وَهِيَ الْحِجَارَةُ الْبِيضُ: سپینو کاڼړو ته وائی.

**تسهیلات: قوله:** "وَاللِّخَافِ"

بعضې روایتونوکښې رقاع جمع رقعة هم راخی چه دَ تکړو په معنی کښې دې چونکه په هغه زمانه کښې کاغذ نه وو په دې وجه په دغه څیزونوکښې قرآن اولیکلې شو.

**قوله:** مَقْتَلَ أَهْلِ الْيَمَامَةِ:

**د یمامه د جنګ پس منظر:** دَ حجاز په ښاریوکښې دَ یو ځائی نوم یمامه دې. دې ځائی کښې مسیلمه کذاب دَ دروغودَ نبوت دعوی کړې وه او خپل خان سره ئې څلویښت زره جنګجو راجمع کړې وودَ چا تعلق چه دَ قبیله بنوحنیفه سره وو دَ حضرت ابوبکرصدیق رضی الله عنه په زمانه کښې دې فتنې خطرناك صورت حال اختیارکړو. په دې وجه حضرت ابوبکر رضی الله عنه دَ حضرت خالدبن ولید رضی الله عنه په مشرئی کښې یولښکردَ یمامه طرف ته روان کړو. یمامه کښې دَحق اوباطل ډیر سخت جنګونه اوشو. خصوصاً دَحدیقة الموت جنګ یو تباهی کونکې جنګ وو په یوه مضبوطه قلعه کښې مسیلمه اودَهغه سپاهیان پټ شوې وو او په

مسلمانانو باندې په نې حملې کولې آخر مسلمانان په دغه قلعه کښې داخل شو او دننه نې جنګ شروع کړو شل زره کسان په دې قلعه کښې اووژلې شو دکوم نوم چه حديقة الموت شو د يمامه په دې جنګونو کښې د صحابه کرامو ﷺ خاص خاص اووه سوه يا دولس سوه قاريان شهيدان شو هم په دې سره حضرت عمرفاروق ﷺ ته خطره پيدا شوه که د اسلام په مختلف جنګونو کښې د قرآن کريم حافظان دغه شان شهيدان کيږى نو دهغوى په تلوسره دهغوى په سينو کښې محفوظ قرآن هم لاړنه شي او قرآن ته نقصان اونه رسى د دې خطرې په رڼا کښې حضرت عمرفاروق ﷺ دحضرت ابوبکر ﷺ مخې ته دا خبره کيخوده چه اوس قرآن عظيم په يوخائى باندې راجمع کول پکاردى. دحضرت ابوبکر ﷺ او حضرت عمر ﷺ په دې مسئله کښې دير بحث مباحثه اوشوه دکوم ذکر چه زير بحث حديث کښې دې کله چه د حضرت ابوبکر ﷺ سينه الله تعالى د دې خبرې دپاره کولاؤ کړه نو قابل د اعتماد او قابل د استعداد صحابى حضرت زيد بن ثابت ﷺ راؤغوښتو او د حضرت عمر ﷺ او خپلې تولې خبرې اترې نې دهغه په مخکښې کيخودې هغه هم کافى بحث مباحثه اوکړه ليکن الله تعالى دهغه سينه هم د دې کار دپاره کولاؤ کړه. دغه شان هغوى د مختلف مقاماتو نه ليکلې شوې قرآن راجمع کړو چه په کاڼړو لرګو کهجورو پوستکو او هډو باندې د حضور اکرم ﷺ په زمانه کښې ليکلې شوې وو او د حافظانو قاريانو په سينو کښې محفوظ وو. حضرت زيد ﷺ صرف پوازې دا اونه کړه چه کوم خائې چا اووئيل چه دا قرآن دې بس هغه نې راجمع کړو بلکه هغوى پوره تحقيق اوکړو تولو صحابه کرامو د دې تصديق هم اوکړو بيا هم په هريوآيت باندې دوه دوه ګواهان قائمولونه پس قبول کړو ۲۳ کالويرې صحابه کرامو ﷺ ته د قرآن اوغيرقرآن مکمل تجربه شوې وه او د حافظانو په سينو کښې چه کوم محفوظ وو هغې سره موازنه اوکړه نوبيائى اوليکلو په کوم چه د صحابه کرامو اجماع قائم وه. کوم ته چه د يقينى کيدو مقام حاصل شو دلته د قرآن باره کښې هيڅ څه شک نشته څکه چه متوجه کيدې نه شى چه الله تعالى د دې کتاب د حفاظت ذمه وارى په خپله اخستې ده . انسان خو د انسانى حد پورې د حفاظت کوشش کړې دې د اصل حفاظت اعلان خو د الله تعالى د طرف نه اول شوې د حضورپاك په مبارکه زمانه کښې د صحابه کرامو ﷺ نه څلور صحابه ﷺ کامل قرآن يادکړې وو ① حضرت زيد بن ثابت انصارى ﷺ ② حضرت ابى بن کعب ﷺ ③ حضرت معاذ بن جبل ﷺ ④ حضرت ابودرداء ﷺ.

**قوله:** حَتَّى وَجَدْتُ سُورَةَ التَّوْبَةِ مَعَ أَبِي خُزَيْمَةَ الْأَنْصَارِيِّ، لَمْ أَجِدْهَا مَعَ أَحَدٍ غَيْرِهِ،

**اشکال او هغې جواب:** زير بحث حديث کښې دى چه حضرت خزيمه ﷺ سره د سورت توبې آخرى آيت ماته ملاؤشو په دې باندې دا اعتراض کيدې شى چه دلته خو د يوسړى په

ګواهئ سره آیت قبول کړې شو د دې جواب دادې چه د حضرت خزیمه رضی الله عنه ځان له ګواهي حضورپاک د دوو سړو برابر ګرځولې وه ملاعلی قاری رحمه الله لیکلی دی چه حضرت عمر رضی الله عنه کله د رجم آیت راوړو چه ونې لیکی نو حضرت زید رضی الله عنه د دویم ګواه د نه موجودګۍ وجې نه د هغې د لیکلو نه انکار اوکړو دغه شان د قرآن عظیم یو څو مختلف کېپې تیارې کړې شوې چه د حضرت صدیق اکبر رضی الله عنه نه پس حضرت عمر رضی الله عنه سره وې بیا حضرت عثمان رضی الله عنه دا راوغوښتې اودائې په یولغت باندې لیکلو سره یو څو نسخې تیار کړې او مختلف ملکونو ته ئې اولیګلې لکه څنګه چه په راتلونکی حدیث کښې راځي

[۳۳] په عهد عثمانی کښې د قرآن پاک تدوین

۳۳ — ( ) [۱] ۱ وَعَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ قَدِمَ عَلَى عُثْمَانَ ۲ وَكَانَ يُغَازِي أَهْلَ الشَّامِ فِي فَتْحِ أَرْمِينِيَةَ وَأَذْرَبِيجَانَ مَعَ أَهْلِ الْعِرَاقِ، ۳ فَأَفْزَعَ حُذَيْفَةَ اخْتِلَافُهُمْ فِي الْقِرَاءَةِ، ۴ فَقَالَ حُذَيْفَةُ لِعُثْمَانَ: يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ أَدْرِكْ هَذِهِ الْأُمَّةَ قَبْلَ أَنْ يَخْتَلِفُوا فِي الْكِتَابِ اخْتِلَافَ الْيَهُودِ وَالنَّصَارَى، ۵ فَأَرْسَلَ عُثْمَانُ إِلَى حَفْصَةَ أَنْ أَرْسِلِي إِلَيْنَا بِالصُّحُفِ نَنْسَخُهَا فِي الْمَصَاحِفِ، ۶ ثُمَّ نَرُدُّهَا إِلَيْكِ، فَأَرْسَلَتْ بِهَا حَفْصَةُ إِلَى عُثْمَانَ،

**ترجمه** ۱ انس ابن مالك رضی الله عنه وایې چې حذیفه ابن یمان د حضرت عثمان رضی الله عنه په خدمت کی حاضر شو ۲ هغه وخت حضرت عثمان رضی الله عنه د شام او عراق او ارمینیه او د اذربائجان د جنګونو په غرض سره د جهاد د سامان جمع کولو په تیاری کی مصروف وو. ۳ حضرت حذیفه رضی الله عنه د قرائت په باره کی د خلقو اختلاف او اضطراب په خوف کی مبتلا کړی وو اخکه چې هغه لیدل چې خلق بلا خوفه په خپلو کی د یو بل د قرائت څخه انکار کوی ۴ نو هغه حضرت عثمان رضی الله عنه ته عرض وکړی چې اې امیرالمؤمنینه! د دی اُمت په باره کی د تدارک (بندیز) څه لار راوباسه مخکی د دی څخه چې هغه د یهودو اونصارې په شان په کلام الله کی اختلاف کول شروع کړی ۵ حضرت عثمان رضی الله عنه د هغه خبری آوریدو سره بی بی حفصی رضی الله عنها ته دا پیغام ولیږلی چې ته هغه صحیفی چې حضرت ابوبکر رضی الله عنه جمع کړی وی مونږ ته راولیږه مونږ به هغه نقل کړو ۶ دا مصاحف به تاته واپس درولیږو نو بی بی حفصی رضی الله عنها هغه ټول مصاحف حضرت عثمان رضی الله عنه ته ولیږل

**حل اللغات**: ۱ أَرْمِينِيَةَ وَأَذْرَبِيجَانَ: د مشهورو ښارونو نومونه دی ۲ فَأَفْزَعَ: اویریدلو (حذیفه).

۱ فَأَمَرَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ، وَعَبْدَ اللهِ بْنَ الزُّبَيْرِ، وَسَعِيدَ بْنَ الْعَاصِ، وَعَبْدَ اللهِ بْنَ الْحَارِثِ بْنِ هِشَامٍ ۲ فَنَسَخُوهَا فِي الْمَصَاحِفِ، ۳ وَقَالَ عُثْمَانُ لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّينَ الثَّلَاثِ: ۴ إِذَا اخْتَلَفْتُمْ أَنْتُمْ وَزَيْدُ بْنُ ثَابِتٍ فِي شَيْءٍ مِنَ الْقُرْآنِ فَاكْتُبُوهُ بِلِسَانِ قُرَيْشٍ ۵ فَإِنَّمَا نَزَلَ بِلِسَانِهِمْ فَفَعَلُوا، ۶ حَتَّى إِذَا نَسَخُوا الصُّحُفَ فِي الْمَصَاحِفِ رَدَّ عُثْمَانُ الصُّحُفَ إِلَى حَفْصَةَ،

---

[۱] ) اخرجه البخاری فی کتاب فضائل القرآن /باب جمع القرآن (رقم-۴۹۸۷) واحمد فی المسند ۱۸۸/۵

**ترجمه** ① حضرت عثمان رضی الله عنه د انصارو څخه زید ابن ثابت رضی الله عنه او د قریشو څخه عبدالله ابن زبیر رضی الله عنه سعید بن عاص رضی الله عنه او عبدالله بن حارث بن هشام د دی صحیفو په نقل کولو باندی مامور کړل، ② هغوی ټولو هغه صحیفی په مصاحفو کی نقل کړل ③ حضرت عثمان رضی الله عنه د قریشو دریو واړه حضراتو ته وفرمایل ④ چې که د قرآن په لغات کی چیرته ستاسو او د زید بن ثابت رضی الله عنه په منځ کی اختلاف پیدا شی نو هلته د قریشو د لغت مطابق ولیکی ⑤ څکه چې کلام الله د قریشو د لغت مطابق نازل شوی دی نو هغوی ټولو په دی عمل وکی ⑥ او هر کله چې په مصاحف کی هغه صحیفی نقل کړل شوی نو حضرت عثمان رضی الله عنه هغه صحیفی بی بی حفصی رضی الله عنها ته واپس ولیږلی.

**حل اللغات:** ⑩ رَهْط: جماعت، ډله، ⑪ الْقُرَشِيِّينَ: قریش قبیلې ته منسوب دی.

① وَأَرْسَلَ إِلَى كُلِّ أُفُقٍ بِمُصْحَفٍ مِمَّا نَسَخُوا ② وَأَمَرَ بِمَا سِوَاهُ مِنَ الْقُرْآنِ فِي كُلِّ صَحِيفَةٍ أَوْ مُصْحَفٍ أَنْ يُحْرَقَ، ③ قَالَ ابْنُ شِهَابٍ: فَأَخْبَرَنِي خَارِجَةُ بْنُ زَيْدِ بْنِ ثَابِتٍ أَنَّهُ سَمِعَ زَيْدَ بْنَ ثَابِتٍ قَالَ: ④ فَقَدْتُ آيَةً مِنَ الْأَحْزَابِ حِينَ نَسَخْنَا الْمُصْحَفَ قَدْ كُنْتُ أَسْمَعُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْرَأُ بِهَا ⑤ فَالْتَمَسْنَاهَا فَوَجَدْنَاهَا مَعَ خُزَيْمَةَ بْنِ ثَابِتٍ الْأَنْصَارِيِّ ⑥ ﴿مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ﴾ [الأحزاب: ۲۳] ⑦ فَأَلْحَقْنَاهَا فِي سُورَتِهَا فِي الْمُصْحَفِ رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه:** ① اود هغه مصاحفو څخه چې کوم نقل کړل شوی وو یو یو مصحف (اسلامی مملکتو ته) هر ځای ته ولیږل شو ② او د هغه سره یې دا حکم هم جاری کی چې د دی مصاحفو څخه علاوه هرهغه صحیفه یا مصحف دی اوسوزول شي چې په کوم کی قرآن کریم لیکل شوی وی. ③ (د حدیث یو راوی) ابن شهاب رحمه الله فرمایي چې د زید بن ثابت رضی الله عنه صاحبزاده (یعنی خوی) خارجه رحمه الله ماته وښودل چې ما د خپل پلار بزرګوار حضرت زید بن ثابت رضی الله عنه څخه دا آوریدلی دی چې کوم وخت مونږ (یعنی زه او دوه قریشی صحابه رضی الله عنهم سعید بن عاص رضی الله عنه او عبدالله بن حارث رضی الله عنه) قرآن کریم (په مصحف عثمانی کی) نقل کولی ④ نو ماته د سورۂ احزاب یو آیت په لاس نه راتلی حالانکه ما د رسول الله ﷺ څخه دا آیت آوریدلی وو ⑤ نو د تلاش څخه روسته ماته دا آیت د خزیمه بن ثابت انصاری رضی الله عنه سره لیکلی ترلاسه شو ⑥ [او هغه آیت دا دی] مِنَ الْمُؤْمِنِينَ رِجَالٌ صَدَقُوا مَا عَاهَدُوا اللَّهَ عَلَيْهِ ⑦ بیا ما دا آیت په مصحف کې د دی سورۃ (یعنی سورۃ احزاب) سره یو ځای کی، بخاری.

**حل اللغات:** ⑤ أُفُق: د آفاق جمع ده، أي: طَرَفٌ مِنْ أَطْرَافِ الْآفَاقِ: خواوشا علاقې او اطراف ښارونه مراد دی. ⑨ فَالْتَمَسْنَاهَا: مونږ دهغې تلاش اوکړو

**تسهیلات: قوله:** أَنَّ حُذَيْفَةَ بْنَ الْيَمَانِ:

**حذیفه بن یمان د عراق ګورنر:** حضرت حذیفه بن الیمان رضی الله عنه دَ عراق ګورنر وو اودَحضرت عثمان رضی الله عنه دَ خلافت زمانه وه. اکثر فارس دَ حضرت عمر رضی الله عنه په دورخلافت کښې فتح

شوي وو لیکن څه حصې مثلاً آرمینیه او آزربائیجان وغیره تراوسه پورې باقي پاتې وې هم په دې باندې حضرت عثمان ؓ د کاروائی کولو دپاره حضرت حذیفه ؓ مقرر کړو

**قوله: وَكَانَ يُغَازِي:**

**د کان او یغازي د ضمیر په مرجع کښې کنز احتمالات:** په دې جمله باندې پوهیدو کښې پوره مشکل دې خکه چه د کان او یغازي ضمیر فاعل کښې

① دا احتمال هم دې چه د حضرت حذیفه ؓ طرف ته راجع وی

② دا احتمال هم دې چه د حضرت عثمان طرف ته راجع وی. شارح بخاری علامه کرمانی ؒ دواړو خایونو کښې ضمیر فاعل د حضرت عثمان بن عفان ؓ طرف ته راګرخولې دې فرمائی "وَكَانَ عُثْمَانُ يُجَهِّزُ أَهْلَ الْعِرَاقِ لِغَزْوَتِهَا تَيْنِ النَّاحِيَتَيْنِ وَفَتْحِهِمَا" یعنی دې وخت کښې حضرت عثمان ؓ شامی او عراقی فوجونه د آرمینیه او د آزربائیجان د فتح کولو دپاره تیار ول. مظاهرحق هم دَدې عبارت په رنړا کښې د حدیث ترجمه کړې ده سره دَدې چه دَعبارت ئی پوره وضاحت نه دې کړې خو بیاهم دَحدیث په دغه توضیح او تشریح باندې څه اشکال نه راخی اوواقعه هم دغه شان ده خکه چه د آرمینیه او آزربائیجان د جهاد دپاره شامی او عراق فوجونه لیګل په پوهه کښې راخی دَدې دپاره چه هغه وخت عراق او شام فتح شوی وو صرف دومره به کولې کیدل چه یغازی په معنی د یُغزِيُ اخستل کیږی یعنی حضرت عثمان ؓ فوجونه جنګول.

③ شیخ عبدالحق ؒ او ملاعلی قاری ؒ د کان یغازی دواړو ضمیرونه د حضرت حذیفه ؓ طرف ته راګرخولی دی. شیخ عبدالحق ؒ اشعة اللمعات کښې لیکلی دی "روایت است از انس ؓ که حذیفه آمد وم آورد بر عثمان ؓ وبود حذیفه که غزای کرد اهل شام را در فتح آرمینیه وغزای کرد آذربایجان را با اهل عراق همه کیدې شی چه شیخ عبدالحق ؒ د ملاعلی قاری ؒ تشریح ته کتو سره دا تشریح کړې ده لیکن په دې کښې پیچیدګی داده چه د ظاهری عبارت نه داسې محسوس کیږی چه حضرت حذیفه ؓ اهل شام خلاف جهاد اوزکړو اګرچه دلته مونږ یغازی د جنګولو په معنی کښې واخلو بیا هم پوره عبارت نه صحیح کیږی خکه چه دې حضراتو کومه ترجمه اختیار کړې ده په دې کښې د زمانې انتشار هم دې او په معنی کښې هم انتشار دې.

④ ملاعلی قاری ؒ کان کښې ضمیرشان هم تسلیم کړې دې اود یغازی فاعل ئی اهل الشام جوړ کړی دی اوفرمائیلی دی چه هم دا صحیح دی. دَدې مطلب به دا شی چه حذیفه ؓ حضرت عثمان ؓ له راغلو اوشان دا وو چه اهل شام اهل عراق سره یوخائی کیدو سره د آرمینیه او آزربائیجان خلاف جنګیدل. دغه شان اوږد سفر کولو سره به د عبارت مفهوم صحیح شی لیکن دې نه بهتر هغه دې چه علامه کرمانی ؒ مختصر لار اختیار کړې ده. زما به همیشه په دې عبارت کښې شک وو نن الحمد لله د دې کرښو د لیکلو په

وخت پوره حقیقت په ذهن کښې راغلو او د لوستونکو په وړاندې مې پیش کړو. الله تعالی دې زما قلم د دانسته او غیر دانسته غلطیانو نه محفوظ او ساتي [اشعة المعات]

**قوله:** أَرْمِينِيَةَ:

**د آرمینیه محل وقوع:** د یو خاص علاقې نوم دې او آزربائیجان عام دې نو بیا د آزربائیجان ذکر تعمیم بعد تخصیص دې. بهرحال د پورته عبارت نه مقصود دا بیانول دی چه د آرمینیه په فتح کښې شامي او عراقي اسلامي فوج یو ځائې شو نو د قرآن عظیم په قرأتونو کښې اختلاف شروع شو.

**د عبارت ترکیب:**

**قوله:** فَأَفْزَعَ حُذَيْفَةَ: په دې عبارت کښې د حذیفه لفظ مفعول به واقع دې او اختلافهم د افزع فاعل دې یعنی کله چه حذیفه ﷛ د خلقو د قرآن کریم په قرأتونو کښې اختلاف ته اوکتل نو هغه سخت اوویرېدو چه چرته دا لفظي اختلاف حقیقي او معنوي اختلاف باندې منتج نه شي.

**قوله:** أَدْرِكْ هَذِهِ الْأُمَّةَ:

**د حضرت حذیفه دوراندیشي:** یعنی دا امت د هغې نه مخکښې بچ کړه چرته قرآن کریم کښې د یهودو او نصاري د کتابونو تورات او انجیل د تغیر او تبدل په شان تغیر رانه شي. په دې باندې حضرت عثمان ﷛ د حضرت حفصه ﷞ نه د مصحف صحیفې راوغوښتې او څلور صحابه کرام ئې په دې باندې مقرر کړل چه هغوی دې قرآن کریم د قریشو په لغت باندې اولیکي. د دغه څلورو صحابه کرامو نومونه دا دي:

① حضرت زید بن ثابت انصاري ﷛ ② حضرت عبدالله بن زبیر ﷛ ③ حضرت سعید بن العاص ﷛ ④ حضرت عبدالله بن حارث بن هشام ﷛. د دې څلورو نه حضرت زید بن ثابت انصاري ﷛ غیر قریشي دې باقي درېواړه قریشي دي.

**قوله:** لِلرَّهْطِ الْقُرَشِيِّينَ:

د دې څخه مراد هم دغه درېواړه دي. دې حضراتو ته حکم وو که چرې حضرت زید بن ثابت ﷛ سره په یو لغت کښې اختلاف راشي نو د قریشو لغت دې اختیار کړې شي ځکه چه قرآن هم په دې لغت باندې نازل شوې وو. چنانچه دې حضراتو قرآن کریم هم په یو لغت د قریشو باندې اولیکلو او باقي لغات باندې مشتمل صحیفې حضرت حفصه ﷞ ته واپس کړې شوې. دې حضراتو ټول اووه قرآنه لیکلو سره تیار کړل.

**اووه صوبو ته د قرآن نسخې لیږل:**

او د اسلامي ښاریو دې لویو ښارونو طرف ته ئې اولیږل ① مکه مکرمه ② شام ③ یمن ④ بحرین ⑤ بصره ⑥ کوفه ⑦ یوه نسخه په مدینه کښې کیخودې شوه. د دې اووه مصاحف نه علاوه ټولې مخکښنې کاپیانې اوسوزولې شوې. د ضعیف پاڼو سیزل جائز دي مګر

دعامو خلقو په مخکښې نه دي سيزل پکار فتنه به راڅرګنده شي بهتر داده چه په زمکه کښې خښ کړې شي يا په اوبو سره اوبينځلې شي يا په سمندر کښې اوغورزولې شي

[احمد ۱/۶۹، ۵۷ وابوداؤد ۱/۲۰۴ والترمذی ۵/۲۷۲]

**۵ قرآن جمع کولو ترتيب:** بهرحال دَ قرآن کريم چه دَ جمع کولوکوم ترتيب دې هغه داسې دې چه دَ ټولو نه اول وحى راتلونه پس دَ حضوراکرم په حکم باندې قرآن په کاڼړو، څرمنو او لرګو باندې ليکلوسره جمع کړې شو بيا دَ حضرت عمرفاروق رضی الله عنه په سخته توجه سره دَ صديق اکبر رضی الله عنه په دور کښې دغه کاڼړې لرګى او څرمنې اودَ حافظانودَ سينو نه اخستو سره په کاغذباندې جمع کړې شو څوصحيفې جوړې شوې. بيا حضرت عثمان رضی الله عنه هم دَدغه صحيفونه اخستو سره باقى ټول لغات ختم کړل اودَ قريشو په يولغت ئې جمع کړو ترتيب دَ نزول په جدا طرز باندې وو صحيفې پخپله صحابه کرامو رضی الله عنهم قائم کړې يعنى دَ سورتونو ترتيب ئې پخپله جوړکړو اودَ آياتونو ترتيب دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ طرف نه وو کوم چه توقيفى وو مګر دَ بعضې علماؤ خيال ې چه دَ سورتونو او آياتونو دواړو ترتيب دَ رسول الله صلی الله علیه وسلم دَ طرف نه وو کوم چه توقيفى دې. بيا حجاج بن يوسف دَ علماؤ حافظانو او قاريانو په ذريعه سره په قرآن کښې سيپارې رکوع ګانې او دَ آياتونو دَ نښاناتو ترتيب قائم کړو چه هم ترننه پورې هم په هغه حالت باندې دې.

**[۲۲۲۲] دَ سورت توبه په شروع کښې دبسم الله د عدم وجود وجه**

۲۲۲۲ — (۱) [۱۳] [۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: «قُلْتُ لِعُثْمَانَ: [۲] مَا حَمَلَكُمْ عَلَى أَنْ عَمَدْتُمْ إِلَى الْأَنْفَالِ وَهِيَ مِنَ الْمَثَانِي [۳] وَإِلَى بَرَاءَةٌ وَهِيَ مِنَ الْمِئِينَ، فَقَرَنْتُمْ بَيْنَهُمَا [۴] وَلَمْ تَكْتُبُوا سَطْرَ بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ، وَوَضَعْتُمُوهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ [۵] مَا حَمَلَكُمْ عَلَى ذَلِكَ؟ [۶] قَالَ عُثْمَانُ: كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِمَّا يَأْتِي عَلَيْهِ الزَّمَانُ [۷] وَهُوَ يَنْزِلُ عَلَيْهِ السُّوَرُ ذَوَاتُ الْعَدَدِ [۸] وَكَانَ إِذَا نَزَلَ عَلَيْهِ شَيْءٌ دَعَا بَعْضَ مَنْ يَكْتُبُ،

**ترجمه:** [۱] ابن عباس رضی الله عنه وايي چې ما حضرت عثمان رضی الله عنه ته اوويل [۲] چې د دی څه وجه ده چې تاسو سورة انفال چې (د مثانی) څخه دی [۳] او سورة براة چې د ميئين څخه دی (يعني سلو آيتونو والاسورت دي) يو ځای ساتلی دی [۴] او د دواړو سورتونو په منځ کی بسم الله الرحمن الرحيم ليکلو سره امتياز هم نه دی قائم کړی بيا دا چې تاسو سورة انفال د اوو۷ اوږدو سورتونو په منځ کی اېښی دی، [۵] آخر د دی سبب څه دی؟ [۶] حضرت عثمان رضی الله عنه وفرمايل چې د نبی کريم صلی الله علیه وسلم په زمانه کی څه وخت به تيريدلی [۷] او د آياتونو والا سورتونه نازليدل (يعنی د قرآن آياتونه حسب موقع او حسب ضرورت بتدريج نازليدل) [۸] د نبی کريم صلی الله عليه وسلم دا معمول وو چې د قرآن يو آيت يا د هغه څه حصه چې به په

[۱] ) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب من جهر بها (رقم-۷۸۶) والترمذی فی کتاب تفسير القرآن من رسول الله صلی الله عليه وسلم باب: ومن سورة التوبة (رقم-۳۰۸۶) واحمد فی المسند: ۵۷/۱

نبي کریم صلی الله علیه وسلم نازلیدل نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم به د وحي د کاتبانو څخه څوك یعنی زید بن ثابت رضی الله عنه وغیره راوغوښتل

**حل اللغات:** ① عَمَدْتُمْ: أَيْ قَصَدْتُمْ: قصد اوکړو تاسو. ② الْمَثَانِي: چه یو خبره پکښې بار بار بیانولې شي. ③ الْمِئِين: مئین د مأة جمع ده سلوته واني ④ سَطْرَ: لکیره. کرښه. ⑤ السَّبْعِ الطُّوَلِ: سبع اووه ته واني او طوال اوږدوالي ته واني ددې نه اووه اوږده سورتونه مراد دي ⑥ مَا حَمَلَكُمْ: أَيْ: مَا السَّاعِثُ وَسَبَبُ لَكُمْ: یعنی څه وجه ده چه داسې دې اوکړل ⑦ ذَوَاتُ الْعَدَدِ: د ګڼړ شمیر والا یعنی ډیر.

① فَيَقُولُ: ضَعُوا هَؤُلَاءِ الْآيَاتِ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا، ② فَإِذَا نَزَلَتْ عَلَيْهِ الْآيَةُ، فَيَقُولُ: ضَعُوا هَذِهِ الْآيَةَ فِي السُّورَةِ الَّتِي يُذْكَرُ فِيهَا كَذَا وَكَذَا، ③ وَكَانَتِ الْأَنْفَالُ مِنْ أَوَائِلِ مَا نَزَلَتْ بِالْمَدِينَةِ، ④ وَكَانَتْ بَرَاءَةُ مِنْ آخِرِ الْقُرْآنِ نُزُولًا ⑤ وَكَانَتْ قِصَّتُهَا شَبِيهَةً بِقِصَّتِهَا،

**ترجمه** ① او ورته به یې وفرمایل چې دا آیت په سورت کې شامل کې چې په هغه کې داسې او داسې ذکر دی (یعنی خاص موضوع مثلاً حج او طلاق وغیره نوم به یې اخستلی او فرمایل به یې چې په کوم سورة کې د دی په باره کې ذکر دی دا آیت په هغه کې شامل کې) ② د دی څخه روسته بیا چې به یو آیت نازل شو نو د هغه په باره کې به یې وفرمایل چې دا په هغه سورت کې شامل کې چې په هغه کې داسې او داسې ذکر دی ③ سورة انفال د هغه سورتونو څخه دی چې په مدینه کې نازل شوی دی ④ هر کله چې سورة براة د قرآن هغه حصه ده چې په آخر کې نازل شوی ده ⑤ لیکن په سورة انفال کې مذکوره خبری په سورة برات کې د مذکوره خبرو مشابه دی یعنی په دواړو سورتونو کې مذکوره خبری د کافرانو سره د جنګ کولو او د عهد ختمولو بیان دی

**حل اللغات:** ⑧ ضَعُوا: کیږدئ، شامل نې کړئ

① فَقُبِضَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَلَمْ يُبَيِّنْ لَنَا مِنْهَا ② فَمِنْ أَجْلِ ذَلِكَ قَرَنْتُ بَيْنَهُمَا وَلَمْ أَكْتُبْ سَطْرَ "بِسْمِ اللَّهِ الرَّحْمَنِ الرَّحِيمِ" ③ وَوَضَعْتُهَا فِي السَّبْعِ الطُّوَلِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① رسول الله ﷺ د دی دنیا څخه تشریف یووړی لیکن مونږ ته یې دا ونه ښودل چې سورة براة د سورة انفال حصه ده یا نه ده؟ ② نو د نبي کریم ﷺ د نه ښودلو په سبب او په دواړو سورتونو کې د مفهوم او معنی د مخه د مماثلت او مشابهت کیدو په وجه مونږ دواړه سورتونه نزدې نزدې وساتل لیکن مونږ د دواړو په منځ کې بسم الله الرحمن الرحیم لیکلو سره امتیاز قائم نه کړې ③ او بیا مونږ دا دواړه سورتونه نزدې نزدې د اوو ۷ لویو سورتو په منځ کې کیښودل (لیکن د دی دواړو په منځ کې مو فاصله پریښوده یعنی دواړه مو جدا جدا کیخودل خکه څرنګه چې د دواړو په دوه کیدو کې شبهه وه دغه شان د دواړو په یو کیدو کې هم شبهه وه)، احمد ترمذی ابوداؤد

**حل اللغات:** ⑨ قُبِضَ: یعنی وفات شو ⑩ قَرَنْتُ: نزدې نزدې مې اوساتل.

**تسهيلات:**

**قوله: مِنَ الْمَثَانِي:**

**د قرآن پاک د سورتونو تقسیم:** دَ قرآن کریم سورتونه داسې تقسیم کړې شوی دی چه

① دَ سورت بقره نه دَ سورت یونس پورې ته "طوال" وائی طوال دَ اوږدوالی په معنی کښې دې. دا سورتونه هم دَ قرآن پاك اوږده سورتونه دی اودا اووه دی په دې وجه دې ته "السبع الطول" وائی

② دَ سورت یونس نه دَ سورت شعراء پورې سورتونو ته "مئین" وائی مئین دَ مأة جمع ده سلوته وائی. دا سورتونه هم سل سل یا کم زیات آیاتونو باندې مشتمل دی. دَ سورت شعراء نه دَ سورت حجرات پورې سورتونو ته "مثانی" وائی. وجه داده چه دا سورتونه دَ مضمون په اعتبارسره مکرر دی. هم دَ یوقسم قصې بار بار یادولې شی اودا سورتونه دَ سل سل آیاتونونه کم دی په دې وجه دې ته مثانی وائی.

③ دَ سورت حجرات نه دَ قرآن آخر پورې سورتونو ته "مفصلات" وائی. بیا دا مفصلات په دریو قسمونو باندې دی. دَ سورت حجرات نه دَ سورت بروج پورې طوال مفصل دی او دَ سورت بروج نه دَ سورت بینه پورې اوساط مفصل دی او دَ سورت بینه نه آخر قرآن پورې قصار مفصل دی.

دَدې تمهید نه پس راشئی او په حدیث باندې دَ پوهیدلو کوشش اوکړئی. حضرت ابن عباس رضي الله عنهما دَحضرت عثمان رضي الله عنه نه دَ سورت توبه او سورت انفال یوځائی ساتلو او بسم الله نه لیکلو متعلق درې سوالونه اوکړل او حضرت عثمان رضي الله عنه دَهغې جوابونه ورکړل هم دغه دَدې حدیث خلاصه ده.

**د سورة براءت په شروع کښې د بسم الله نه لیکلو وجه:**

حضرت عثمان رضي الله عنه دا ورکړې دې چه حضورپاك دَ سورت انفال او سورت توبه باره کښې څه هدایت نه دې فرمائیلې. حضورپاك داهم نه دی فرمائیل چه سورت توبه سورت انفال سره کیږدئی دا ددې جزء دې. په حضورپاك باندې هم بسم الله سورت توبه سره نه ده نازل شوې چه په کوم سره دامعلومیدل چه سورت توبه جدا سورت دې. لهذا په سورت توبه کښې دااحتمال هم پاتې شو چه دادَ سورت انفال جزء دې او دا احتمال هم پاتې شو چه دا جدا سورت دې. په دې وجه مصحف لیکلو وخت کښې مونږ هم دَ دواړو احتمالاتو خیال اوساتلو اودَ جزئیت دَ احتمال په رڼاکښې دَ دواړو په مینځ کښې بسم الله اونه لیکله اودَ مستقل سورت دَ احتمال په رڼاکښې دَ دواړو سورتونو په مینځ کښې خالی ځائی پریخودو او په هغې کښې سورت توبه اولیکله.

**ملاحظه:** دعلماء كرامو په دې خبره باندې اجماع ده چه د سورتونو د آياتونو ترتيب سمعي او توقيفي دې دَ چا اجتهاد ته په دې كښې ضرورت نشته دې د قرآن كريم د سورتونو باره كښې راجح دا دى چه دَدې ترتيب هم توقيفي دې مونږ په دې كښې رائې نه شو وركولې د جمهورو هم دغه رائې ده

# [۹] كِتَابُ الدَّعَوَاتِ]

**دَدعاګانو بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة وثلاثون حديثاً مشتملة على ثماني مسائل:**

① دعاء النبي ﷺ لنفسه ولأمته غير المشرك: ۱، ۲.

② آداب كلمات الدعاء: ۳، ۴.

③ النهي عن موانع إجابة الدعاء: ۵، ۱۳، ۱۸، ۲۴.

④ ما يجاب من الدعوات: ۶، ۷، ۱۷، ۲۲، ۲۳، ۲۵، ۲۶، ۳۵.

⑤ فضيلة الدعاء : ۸، ۹، ۱۰ ، ۱۱، ۱۲ ، ۱۳، ۱۴ ، ۱۶، ۲۰، ۲۷، ۳۴.

⑥ إباحة ترك الدعاء: ۵، ۱۵.

⑦ الهيئة المسنونة في الدعاء: ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۸، ۲۹، ۳۰، ۳۱، ۳۲، ۳۳.

⑧ طلب الدعاء بواسطة أحد الأحياء : ۳۴.

**د دعا حكم:** واضح دې وى چه د نزول بلا يا ويرې په وخت دعا كول مسنون دى كومې چه د انبياء كرام عليهم السلام نه منقول دى او كله د الله پاك په علم. قضاء او تقدير باندې اكتفاء كولو سره سكوت هم مشروع دې (كقول ابراهيم عليه السلام حسبي من سوالي علمه بحالي)

**د دعا كولو او نه كولو په افضليت كښې مذاهب:**

پس امام قشيرى رحمه الله فرمائى چه د اهل علم دې باره كښې اختلاف دې چه دعا افضل ده يا سكوت او رضا ،

①بعضې عالمانو په نيز دعا كولو ته افضل وئيلې دى ځكه چه هغه هم يو عبادت دې بلكه د عبادت اصل او مغز دې لقوله عليه السلام (الدعاء مخ العبادة) هم دغه شان په دعا كښې د خپل عبوديت اظهار كيږى په دې وجه هم هغه افضل ده، دعاغوښتلوسره دَ قرآن اوحديث په سوونونصوصو باندې عمل كول ډير بهتر دى.

كه دَ مسلمان دعادَ شرائطو اوآدابوپه لحاظ سره وى نو ضرور قبليږى مګر دَ قبوليت

صورت بدلیږی کله مطلوب څیز هم هغه شان ملاویږی کله یوپټ آفت په دعا سره اخواکیږی اوکه چرې څه نه وی نود ثواب په توګه د آخرت دپاره دعا ذخیره کیږی د مسلمان دعا ضائع کیږی نه (واحمد،۳/۱۸)

② دبعضې عالمانوپه نزد دعا نه کولوسره د قضاء الهی د لاندې رضا اوتسلیم افضل دې
③ او بعض وائی چه په ژبه باندې دعا او په زړه کښې رضا او تسلیم کیدل واجب دی چه په دواړه قسم احادیثو باندې عمل راشی

د دعا آداب: ① مؤکد ترین ادب په خوراك څکاك او جامه کښې د حرامو نه بچ کیدل دی.
② د الله پاك دپاره اخلاص،
③صوم او یو عمل صالح مقدم کول.
④ د قبلې طرف ته مخ کولو سره په کونډو باندې کیناستل، د حمد او ثناء نه پس،
⑤صلاة على النبى ﷺ لره په اول او اخر کښې راوړل.
⑥ په خشوع او خضوع سره لاس خورولو سره تر څنګلو پورې اوچتول.
⑦د الله پاك په اسماء حسنى سره دعا كول.
⑧ د انبیاء او صالحین توسل حاصلول.
⑨ او آواز لره پست كولو سره د خپلو ګناهونو اقرار كول.
⑩ په طلب کښې جزم او د اجابت متعلق یقین ساتلو سره په دعا کښې اصرار او تکرار کول.
⑪ د ګناه او بنده دپاره چه کوم څیز ناممکن دې د هغې دپاره دعا نه کول. وغیرذلك...

(التعليق ۳/٤٤، الاشعة : ۲/۱٦٧)

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

## [۲۳۳]د نبی کریم د شفاعت عظمت

۲۲۳۳-[۱] ()[۱]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[۲]«لِكُلِّ نَبِيٍّ دَعْوَةٌ مُسْتَجَابَةٌ [۳]فَتَعَجَّلَ كُلُّ نَبِيٍّ دَعْوَتَهُ[۴] وَإِنِّي اخْتَبَأْتُ دَعْوَتِي شَفَاعَةً لِأُمَّتِي إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ[۵] فَهِيَ نَائِلَةٌ إِنْ شَاءَ اللهُ مَنْ مَاتَ مِنْ أُمَّتِي لَا يُشْرِكُ بِاللهِ شَيْئًا» "(رَوَاهُ مُسْلِمٌ، وَلِلْبُخَارِيِّ أَقْصَرُ مِنْهُ)...

ترجمه: [۱] ابوهریره رضي الله عنه روايې دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د هر یو نبی د پاره یوه دعاء ده چې قبلیږی [۳] او هر نبی د خپلی دعا په باره کی جلتي وکړه [۴] لیکن ما خپله دعا

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب الدعوات/باب: لكل نبى دعوة مستجابة (رقم-٦٣٠٤) ومسلم فى كتاب الإيمان/باب اختباء النبى صلى الله عليه وسلم دعوة الشفاعة لأمته (رقم-٣٣٨ - ١٩٩) والترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٦٠٢)وابن ماجة فى كتاب الزهد/باب ذكر الشفاعة (رقم-٤٣٠٧)واحمد فى المسند:٢/٤٢٦

دخپل امت د شفاعت د خاطره د قیامت تر ورځې پورې محفوظ ساتلې ده ⑤ نو زما دا دعا که الله تعالی ﷻ وغوښتل زما د أمت هر هغه سړي ته به فائده ورسوي چې په داسې حال کې مړ شوی وي چې د الله تعالی ﷻ سره يې څوک شريك كړي نه وي، مسلم، او بخاري رحمه الله دا روايت د دې څخه کم نقل کړی دی

حل اللغات: ① دَعْوَةٌ: دعا (دلته د دعاء نه مراد بد دعا او خيري کول دي)، ② مُسْتَجَابَةٌ: أي مُتَقَبَّلَةُ الإِجَابَةِ: چه دهغې قبليدل يقيني وي، ③ اخْتَبَأْتُ: دا د اِخْتِبَاء نه دي، أي: ادَّخَرْتُهَا: ذخيره كړې مې ده (يعنى دخپل قوم اذيتونه او تكليفونه مې په خپل صبر سره پټ كړي او برداشت كړي دي چه په دنيا كښې د بد دعا په ځائې به دخپل امت دپاره په آخرت كښې شفاعت اوغواړم) ④ نَائِلَةٌ: أي: وَاصِلَةٌ حَاصِلَةٌ: اوبه رسيږي اوحاصل به شي (يعنى دا شفاعت به زما هر امتي ته فائده اورسوي)

**تسهيلات:**

**قوله:** وَإِنِّي اخْتَبَأْتُ دَعْوَتِي شَفَاعَةً لِأُمَّتِي..الخ:

**د حديث مقصد او د شفاعت كبرى بيان:** مطلب دادې چه الله تعالى هرنبي ته حکم ورکړو تاسو دعا غواړئ زه به ستاسو يوه دعا قبلوم. هرنبي د دعا داحق استعمال کړو ما د دعا دا حق په دنيا کښې استعمال نه کړو بلکه دآخرت دپاره مې پريخودو. د قيامت په ورځ به زه د بددعا په ځائي د خپل امت دپاره د شفاعت دعاکوم ان شاء الله دا شفاعت به هرهغه امتي ته حاصليږي چه په کفر اوشرك باندې نه وي مړشوي كه هغه گناهگار ولې نه وي په قيامت كښې به د حضوراكرم ﷺ يو لوئې شفاعت وي كوم ته چه شفاعت كبرى وائي هغه به د ټولو انسانانو دپاره وي.

**د شفاعت صغرى صورتونه:** د شفاعت صغرى به ډير صورتونه وي

① بعض به د دوزخ نه زر راوځي.

② بعض خلق خو به دحضورپاك د شفاعت په وجه د دوزخ د تلو نه بچ شي.

③ دبعض بعضو درجات اوچتيږي

④ بعض به جنت كښې زر داخل شي او د شفاعت په بركت به

**يو سوال:** دلته په ذهن كښې دا اشكال پيداكيږي چه حضورپاك د امت د بعض خلقو خلاف بددعا غوښتې وه لكه د رعد اوذكوان قبيلو او د قبيله مضر وغيره باره كښې ئې بددعا اوغوښتله د مستهزئين خلاف ئې بددعا كړې ده؟

**د سوال دوه جوابونه:** ① علامه طيبي رحمه الله ليكلي دي د حضورپاك بددعا چونكه په جزوي توگه په دنيا كښې اثر اوكړو لكه چه د مستهزئين باره كښې وه ليكن قومونه د بيخ نه راوستونكې او هرڅه راگيرونكې دعا نه حضورپاك غوښتې وه اونه قبوله شوې ده بلكه

هغه دَ ذخيرې په توګه دَ آخرت دَپاره كيخودلې شوې ده

④ حضورپاك دَ بعض بعض قبيلو او بعض نورو خلقو دَپاره بې شكه بددعاګانې غوښتې وې ليكن دَ نورو انبياؤ بددعا دَهغوى دَ قومونو په حق كښې قبوله شوه او قومونه ئې هلاك شو ليكن دَ حضورپاك دَ دعا داحق دَ آخرت دَپاره محفوظ اوساتلې شو او په دنيا كښې بددعا بالكل قبوله نه شوه

**[۳۳۳] د خيرو نه د دعا جوړيد خواست**

۲۲۲۲ — [۲] ()[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: "[۲] «اللّٰهُمَّ إِنِّي اتَّخَذْتُ عِنْدَكَ عَهْدًا لَنْ تُخْلِفَنِيهِ [۳] فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ، فَأَيُّ الْمُؤْمِنِينَ آذَيْتُهُ شَتَمْتُهُ [۴] لَعَنْتُهُ، جَلَدْتُهُ، فَاجْعَلْهَا لَهُ صَلَاةً وَزَكَاةً [۵] وَقُرْبَةً تُقَرِّبُهُ بِهَا إِلَيْكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» " (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه رواي دى چې نبى كريم ﷺ په بارګاه حق كى دا دعا وكړه [۲] چې اې زما پروردګاره ما ستا په خدمت كى يو درخواست پيش كړى دى نو ما د هغې د قبوليت سره ونازوى او ما نا اُميده مه كړى [يعنى زه اُوميدوار د كرم يم چې زما درخواست به ضرور منظور شي او هغه درخواست دا دى] [۳] چې زه يو انسان يم نو كوم مومن ته چې زما څخه څه تكليف رسيدلى وى په دى طور چې ما هغه ته رد وبد ويلى وى [۴] ما په هغه لعنت كړى وى او ما هغه وهلى وى نو دا ټول څيزونه ته د هغه مؤمن په حق كې د رحمت سبب د ګناهونو څخه د پاكى ذريعه جوړه كړې [۵] او د خپل قُرب باعث يې جوړ كړى چې ته د دى څيزونو په سبب هغه ته د قيامت په ورځ خپل قُرب وبخښى، بخارى مسلم

**حل اللغات:** ① عَهْدًا: أَيْ: وَعْدًا أَوْ أَمَانًا: بعضې وخت كښې عهد دَ امن په معنى راځى دلته هم دا معنى مراد ده ② آذَيْتُهُ: څه تكليف مې رسولې وى، ③ شَتَمْتُهُ: كنځل مې كړى وى، ④ لَعَنْتُهُ: بد رد مې ونيلې وى، ⑤ جَلَدْتُهُ: أَيْ: ضَرَبْتُهُ: وهلې مې وى، ⑥ صَلَاةً: أَيْ: رَحْمَةً: رحمت، مهربانى، ⑦ زَكَاةً: أَيْ: طَهَارَةً مِنَ الذُّنُوبِ: پاكوالې د ګناهونونه، ⑧ قُرْبَةً: قربت او نزديكت.

**تسهيلات: قوله:** فَإِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ:

**خيرې په دعا ه بدليدو هرخواست،** دَ راتلونكى عذر دَ پاره دا جمله دَ تمهيد په توګه ده چه زه هم بشر يم او دَ بشر كيدو په تقاضا كله غصه كيدې هم شم چاته سخت سست وايم يائې خپل رحمت سره دا څيزونه دَ زحمت په ځائى په رحمت بدل كړې او په قيامت كښې دَ بعد په ځائى دَ قرب ذريعه جوړه كړې

[۱]) اخرجه البخارى فى كتاب الدعوات/باب قول النبى صلى الله عليه وسلم: «من آذيته فاجعله له زكاة ورحمة» (رقم-۶۳۶۱) ومسلم فى كتاب فضائل الصحابة رضى الله تعالى عنهم/باب من لعنه النبى صلى الله عليه وسلم. أو سبه أو دعا عليه. وليس هو أهلا لذلك. كان له زكاة وأجرا ورحمة (رقم-۹۱ - (۲۶۰۱)) واحمد فى المسند ۳۱۷/۲

**[۲۲۳۵] دعا په قبليدو يقين ساتل پكار دى**

۲۲۳۵ - [۳] ()[۱] وَعَنْهُ، قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] "«إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ فَلَا يَقُلْ: اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي إِنْ شِئْتَ،[۳] ارْحَمْنِي إِنْ شِئْتَ،[۴] ارْزُقْنِي إِنْ شِئْتَ،[۵] وَلْيَعْزِمْ مَسْأَلَتَهُ،[۶] إِنَّهُ يَفْعَلُ مَا يَشَاءُ، لَا مُكْرِهَ لَهُ» "(رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه رواي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې په تاسو كې يو سړى دعا غواړى نو داسې دې نه وايې چې اې الله! ما وبخښې كه ته غواړې [۳] په ما رحم وكړې كه ته غواړې [۴] ماته رزق راكړې كه ته غواړې، [۵] بلكه پكار دى چې هغه په عزم بالجزم او په يقين او اعتماد سره دعا وغواړي (چې د شك او شبهې جمله مثلاً كه ته غواړې وغيره استعمال نه كړي) [۶] ځكه چې الله تعالى ﷻ خو خپله هغه كوي څه چې غواړي په هغه څوك زور زبردستي كونكى نشته ، بخاري.

**حل اللغات:** ① لِيَعْزِمْ: أَيْ: لِيَطْلُبْ جَازِمًا: په يقين سره دې دعا غواړى چه په قبليدو كښې ئې هيڅ شك نه كوى. ② لَا مُكْرِهَ لَهُ: زور زبردستي كونكې نشته په هغه باندې.

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلْيَعْزِمْ:

**د دعا په قبليدو د يقين كولو حكم:** يعني پوره وثوق او يقين سره دعا غوښتل پكار دى چه د څه شك په كښې گنجائش نه وى. ليكن چه كوم سړې پ خپل غوښتلې شوى څيز باندې مطمئن نه وى نو په دعه تذبذب كښې دره ته هغه څيز څنگه ملاويدې شى الله تعالى په خپل افعال كښې پخپله اختيارمند دې دَ چانه دَ اجازت اخستو ضرورت نشته نه څوك رابندونكې شته. لهذا نيغ په نيغه پوره وثوق سره سوال كول پكاردى چه داسې سوال نه وى چه اې الله كه چرې ته ئې مناسب گنړې نو ماله فلانكې څيز راكړه

**[۲۲۳۶] دعا د قبوليت په يقين سره كول**

۲۲۳۶ - [۴] ()[۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[۲] «إِذَا دَعَا أَحَدُكُمْ فَلَا يَقُلْ: اللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي إِنْ شِئْتَ[۳] وَلٰكِنْ لِيَعْزِمْ، وَلْيُعَظِّمِ الرَّغْبَةَ،[۴] فَإِنَّ اللّٰهَ لَا يَتَعَاظَمُهُ شَيْءٌ أَعْطَاهُ» "(رَوَاهُ مُسْلِمٌ)

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه فرمائي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې په تاسو كې يو سړى دعا غواړى نو داسې دې نه وايې چې اې الله! ما وبخښې كه ته غواړې [۳] بلكه بغير څه شكه د جزم او يقين سره او په پوره رغبت سره دعا غواړى [۴] ځكه چې الله تعالى ﷻ

---

() اخرجه البخاري في كتاب الدعوات /باب ليعزم المسألة، فإنه لا مكره له (رقم-۶۳۳۸) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب العزم بالدعاء ولا يقل إن شئت (رقم-۷ - (۲۶۷۸)

() اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب العزم بالدعاء ولا يقل إن شئت (رقم -۸ - (۲۶۷۹)

چې کوم شی عطا کوی د هغه د پاره مشکل نه دی، مسلم

**حل اللغات** ① وَلْيُعَظِّمِ: بنه په زارۍ او ژړا فرياد سره دې غواړی، ② الرَّغْبَةَ: بنه په شوق او رغبت سره دې دعا غواړی ③ لَا يَتَعَاظَمُهُ: أَيْ: لَا يَعْظُمُ عَلَيْهِ إِعْطَاءُ شَيْءٍ: تعاظم غټيدو او دَ قابونه بهر کيدونه وائی يعنی چاته څه ورکول الله تعالى د پاره دومره لوئي او گران کار نه دي چه دهغې د ورکولو نه عاجز شي

**تسهيلات:**

**قوله:** وَلَكِنْ لِيَعْزِمْ، وَلْيُعَظِّمِ الرَّغْبَةَ:

**حديث مفهوم:** د حديث حاصل دا دي چه الله پاک نه دعا په پوخ يقين سره غوښتل پکار دی ځکه چه الله پاک ته هيڅ چاته د يو څيز ورکول مشکل نه دی.

**[۲۲۲۷] الله تعالى دعا قبلوی**

۲۲۲۷ — [۵] (۱) ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " ② «يُسْتَجَابُ لِلْعَبْدِ مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ، مَا لَمْ يَسْتَعْجِلْ. ③ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَا الِاسْتِعْجَالُ؟ ④ قَالَ: يَقُولُ: قَدْ دَعَوْتُ وَقَدْ دَعَوْتُ ⑤ فَلَمْ أَرَ يُسْتَجَابُ لِي، ⑥ فَيَسْتَحْسِرُ عِنْدَ ذَلِكَ وَيَدَعُ الدُّعَاءَ» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② د بنده دعا د قبوليت په شرائطو سره قبليږی تر څو پورې چې هغه د گناه يا د رشتی د ماتولو دعا نه غواړی او تر څو پوری چې جلتي نه کوی، ③ عرض وشو چې يا رسول الله! صلى الله عليه وسلم د تلوار کولو څه مطلب دی؟ ④ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دعا غوښتونکی بار بار وايي چې ما دعا وغوښتله ⑤ ليکن ما هغه قبليدونکی ونه ليده ⑥ او بيا هغه ستړی کيني او دعا نه کوی، مسلم

**حل اللغات:** ① قَطِيعَةِ: تعلق کټ کول، ② رَحِمٍ: رشته داری، خپلولی، ③ الِاسْتِعْجَالُ: جلتی او تلوار کول، ④ يَسْتَحْسِرُ: د استفعال نه په معنی د ستړی کيدو سره، أَيْ: يَنْقَطِعُ وَيَمَلُّ وَيَفْتُرُ: يعنی ستړی او ستومانه شی (نو دعا پريږدی).

**تسهيلات: قوله:** بِإِثْمٍ:

**د دعا د عدم قبوليت دوه وجې:**

دَدعا دَ نه قبليدو په دې حديث کښې دَ دوو څيزونو ذکر کړې شوې دې :؟

① اول څيزدا چه الله تعالى دعا قبلوی په دې شرط چه دعا دَ څه ناجائز او نامناسب څيز سره متعلق نه وی مثلاً چه څوک گستاخ او بې ادب دا دعا اوغواړی چه ياالله ماته دَ شرابو څکلو يا زنا کولو توفيق راکړې ياڅوک نالائق دا دعا اوغواړی اې الله فلانکې سړې

---

(۱) اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب بيان أنه يستجاب للداعي ما لم يعجل فيقول: دعوت فلم يستجب لي (رقم-۹۲ - (۲۷۳۵)

او بخښي حالانکه هغه سړي په کفرباندي مړشوي وي

⑦ يونالائق دَ يومحال څيز دعا اوغواړي چه اې الله ماته په ويښه باندي خپل ديدار رانصيب کړه دا ټول دَ دعا ناجائز صورتونه دي

**قوله: أَوْقَطِيعَةِرَحِمٍ:**

**د خپلولۍ کټ کولو دعا:** دَ خپلوانو سره تعلق پريخودو څوك سړي داسې دعا غواړي چه اې الله زما او زما دَ پلاريه مينځ کښي جدائي پيدا کړي دَدي حديث مفهوم هم دغه دي چه داسي دعا نه قبليږي لهذا داسې دعا نه دي غوښتل پکار

**قوله: مَالَمْ يَسْتَعْجِلْ:**

**د ما لم يعجل مفهوم:** نه قبليدل دَ دعا دويم څيزدادې چه الله تعالى دعا قبلوى په دې شرط چه په هغې کښې تادي نه وي، صحابه کرامو تپوس اوکړو دا تادي څه څيز دې حضورپاك اوفرمائيل بنده اووائي چه ما بار بار دعا اوغوښتله قبليږي خو هسې هم نه نود دې وجې دَ دعا ضرورت نشته په دغه شان تادئي کولوکښي هغه دعاغوښتل پريږدي اوفرمائيلې شو چه داسې نه دي کول پکار

**دعا ډېر نه قبليدلو حکمتونه:** علماء کرام فرمائي چه کله تادئي سره دعانه قبليږي

① کله دَتقدير دَمصلحت دَ وجې نه نه قبليږي

② ځکه چه دَالله تعالى په نيز دَهغې يووخت مقرروي

③ کله دعادَ دې وجې نه نه قبليږي چه هغه دَ آخرت ذخيره جوړولې شي اوکله دعاځکه نه شي قبلولې چه دَهغې شرائط او آداب پوره نه وي.

④ کله الله تعالى دَ يونيك بنده اصرار التجاء تضرع او زاري خوښه وي په دې وجه دَ بعضې بعضې بې دينه سړي دعا ډېر قبليږي ځکه چه کله هغه دَالله تعالى په وړاندې لاسونه خوره وي نوالله تعالى جبرائيل آمين ته وائي دته ژر څه ورکړه دې دَپاره چه زما په وړاندې لاس خورنه کړي.

⑤ کله دعا ځکه نه شي قبلولې چه دعا غوښتونکې نااميده شي اودعاغوښتل پريږدي

**[۲۲۲۸] غائبانه دعا قبليدو بيان**

۲۲۲۸-[۶] (۱) ① وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "② «دَعْوَةُ الْمَرْءِ الْمُسْلِمِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ مُسْتَجَابَةٌ، ③ عِنْدَ رَأْسِهِ مَلَكٌ مُوَكَّلٌ، ④ كُلَّمَا دَعَا لِأَخِيهِ بِخَيْرٍ قَالَ الْمَلَكُ الْمُوَكَّلُ بِهِ: ⑤ آمِينَ وَلَكَ بِمِثْلٍ» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)

(۱) اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل الدعاء للمسلمين بظهر الغيب(رقم-۸۶ - ۲۷۳۲) وابن ما جة فى كتاب المناسك/باب فضل دعاء الحاج (رقم -۲۸۹۵) واحمد فى المسند: ۵/ ۱۹۵

**ترجمه** [۱] ابو درداء ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم مسلمان بنده چې د خپل مسلمان ورور د پاره غائبانه دُعا كوى نو هغه قبليږى [۳] د دعا كونكى سر ته نژدې يوه فرشته متعين كيږى [۴] هر كله چې هغه د خپل مسلمان ورور د پاره د خير دُعا كوى نو هغه متعين شوى فرښته وايي [۵] چې اې الله ﷻ د ده دُعا قبوله كړى او دا هم وايي چه ستا د پاره دى هم دغه شان وى، مسلم

**حل اللغات**: ① بِظَهْرِ الْغَيْبِ: أَيْ: فِي غَيْبَةِ الْمَدْعُوْلَهُ عَنْهُ: غائبانه او پسې شا دعا غوښتل (يعنى چاله چه دعا غوارى هغه موجود نه وى يا موجود وى خو په زړه كښې ورله دعا اوغوارى). ② مَلَكٌ مُوَكَّلٌ: مَلَكٌ فرشتې ته وائى او مُوَكَّلٌ چه مقرر شوې او متعين شوې وى (يعنى مقرر شوې فرشته).

**تسهيلات:**

**قوله**: بِظَهْرِ الْغَيْبِ:

**د غائبانه دعا قبليدو وجه**: يعنى شا په شا دَ يو مسلمان رور دَ پاره دَ بل دعا قبليږى خكه چه په دغه دعا كښې همدردى هم وى اوخه لالچ هم نه وى كله چه دا سړې دَ بل چا دَ حاجت پوره كولو كوشش كوى نو الله تعالى دَ هغه ضرورتونه هم پوره كوى.

**قوله**: عِنْدَ رَأْسِهِ مَلَكٌ مُوَكَّلٌ:

هم دغه مطلب دې دَ حديث دَ آخرى جملې چه فرښتې په سرولاړې وى او دَهغوى دَپاره دعاكوى دَدې تائيد دَ دې حديث نه هم كيږى. چه "اللهُ فِيْ عَوْنِ الْعَبْدِ مَا دَامَ الْعَبْدُ فِيْ عَوْنِ أَخِيْهِ"

**[۲۲۲۹] دخيرې كولو څخه ممانعت**

۲۲۲۹ — [۷] (١) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [۲] «لَا تَدْعُوْا عَلٰى أَنْفُسِكُمْ، [۳] وَلَا تَدْعُوْا عَلٰى أَوْلَادِكُمْ، [۴] وَلَا تَدْعُوْا عَلٰى أَمْوَالِكُمْ، [۵] لَا تُوَافِقُوْا مِنَ اللّٰهِ سَاعَةً يُسْأَلُ فِيْهَا عَطَاءً فَيَسْتَجِيْبَ لَكُمْ» " [۶] (رَوَاهُ مُسْلِمٌ). وَذُكِرَ حَدِيْثُ ابْنِ عَبَّاسٍ: "اتَّقِ دَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ" فِيْ كِتَابِ الزَّكَاةِ.

**ترجمه** [۱] جابر ﷺ رواي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د خان د پاره بد دعا مه كوى [۳] د خپل اولاد د پاره بد دعا مه كوى [۴] او نه اد خپل غلام، منخى او د څاروو او ا نور مال، اسباب د پاره بد دُعا كوى [۵] چې تاسو ته د الله تعالى ﷻ د طرف څخه هغه ساعت حاصل نشى چې په هغه كې الله ﷻ هر سوال پوره كوى او بيا ستا بد دُعا قبوله شى، [۶] مسلم او د ابن عباس رضى الله عنهما حديث چې «اتق دعوة المظلوم» ئې په كتاب الزكاة كښې ذكر كړې دې.

**حل اللغات**: ① لَا تُوَافِقُوْا: لِئَلَّا تُوَافِقُوْا مِنَ اللّٰهِ سَاعَةَ إِجَابَةٍ: چه برابر او موافق نه شى (يعنى چرته ستاسو خيرې دغه مستجاب وخت كښې اونشى او خپل خان باره كښې مو خيرې قبولې نه شى). ② سَاعَةً:

(١) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة، باب النهى عن أن يدعو الإنسان على أهله وماله (رقم-١٥٣٢)

وخت ته واني ،دلته ترې مراد وخت د اجابت دې، ③ عَطَاءً أَيْ مَا يُعْطَى. د وركولو څيز ،كه هغه به وى او كه بد وى،

**تسهيلات:**

**قوله:** سَاعَةً: يعني دَ دعادَ قبليدو دَالله تعالى په نيزڅه وختونه وى هسې نه چه ته بددعا اوكړې او بل خوادَ قبليدو ساعت وى اوبيا پښيمانه وې او په لاس هيڅ درنه شى

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۳۳۰] دعاد عبادت نچوړ

[۸] ( )١ عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "٢ «الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ" ثُمَّ قَرَأَ: ٣ ﴿وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ﴾ [غافر: ٦٠] » ) رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ نعمان ابن بشير رضي الله عنه رواي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ دعا عبادت دى او بيا د دى څخه روسته نبي كريم ﷺ دا آيت وويلې ٣ وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ او ستاسو پروردګار فرمايلى دى زما څخه دعا غواړى زه به ستاسو دعا قبلوم، احمد ترمذى ابوداؤد نسائى ابن ماجه.

**تسهيلات:**

**قوله:** الدُّعَاءُ هُوَ الْعِبَادَةُ..الخ:

**د دعا دوه قسمونه:** دَدعا دوه قسمونه دى.

① يوقسم هغه دعا ده چه سړې په خپلو غيبى حاجاتو كښې صرف يو رب ته آواز كوى په دې كښې دَ هغه سړى عقيده ده چه زما رب مشكل كشا هم دې او غيبو باندې هم پوهيږى قادر مطلق هم دې زه هم هغه ته آواز كوم

قرآن كريم كښې هم په دې دعا باندې ډير زور وركړې شوې دې چه آواز كول صرف الله تعالى ته دى دَمكې مشركانو به الله تعالى سره دَخپلو معبودانو په خپلو غيبى حاجاتو كښې رابلل كوم چه الله تعالى شرك اوګرځولو نو دلته صرف الله تعالى ته آواز كول عين عبادت بلكه دَعبادت خلاصه او مغز اوګرځولې شو حضورپاك چه كوم آيت په توګه دَاستشهاد تلاوت كړې دې دَدې نه هم معلوميږى چه دَ دعا نه دلته آواز كول مراد دى.

② دويم قسم هغه دعا ده كومه چه يوانسان دَ خپل رب نه دَخپل ځان دَپاره غواړى داهم عبادت دې ځكه چه دا سړې خپل رب قادر ګڼړى خالق اومالك ئې ګڼړى ﴿فَعَّالٌ لِمَا يُرِيدُ﴾ ئې

---

١) اخرجه الترمذى فى كتاب تفسير القرآن عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب: ومن سورة البقرة (رقم-۴۰۴۹) وابن ماجة فى كتاب الدعاء /باب ما يدعو به إذا أوى إلى فرآشه فضل الدعاء (رقم-۳۸۲۸) واحمد فى المسند: ۴/۲۶۷

ګټري هم په دې وجه د هغه نه د دنيا او آخرت دواړو کاميابۍ غواړي بنکاره خبره ده چه "الدعاهوالصادة" په دې باندې صادق دې

## [۲۲۳۱] دعا د عبادت څخه عبارت دي

۲۲۳۱-[۹] (۱) وَعَنْ أَنَسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[۲] «الدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ» " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] انس رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] دعا د عبادت مغز دی. ترمذی

**حل اللغات:** ① مُخُّ الْعِبَادَةِ: أَيْ: مُخُّ الشَّيْءِ خَالِصُهُ وَمَا يَقُومُ بِهِ: د عبادت مغز (مُخ هغه څيز دې چه په هغې سره دغه څيز قائم وی يعنی بنياد.)

**تسهيلات:**

**قوله:** الدُّعَاءُ مُخُّ الْعِبَادَةِ:

**د دعا اهميت:** دعا د عبادت خلاصه او مقصود بالذات ده ځکه چه د عبادت مقصد دا خپله انتهائي عاجزي او انکساري د الله تعالى د تعظيم او محبت سره ظاهرول. لکه چه انسان بغير د دماغو نه روغ نشي پاتي کيدي هم دغه شان عبادت بغير د دعا نه قائم نشي پاتي کيدي [مرقات ج۵ ص ۳۷]

## [۲۲۳۲] د دعا اهميت او فضيلت

۲۲۳۲-[۱۰] (۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ قَالَ: رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «لَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَمَ عَلَى اللهِ مِنَ الدُّعَاءِ» ". [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه روايت دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د الله تعالى په نزد د دعا څخه زيات د اوچتې مرتبې هيڅ څيز نشته، [۳] ترمذی ابن ماجه او امام ترمذی رحمه الله وايي چې دا حديث حسن غريب دی

**حل اللغات:** ① أَكْرَمَ: أَيْ: أَفْضَلَ: د عزت او فضيلت والا

**تسهيلات:**

**قوله:** لَيْسَ شَيْءٌ أَكْرَمَ عَلَى اللهِ مِنَ الدُّعَاءِ:

**د الله تعالى په نيز د دعا د اکرميت مطلب:** د دې حديث مطلب دا دې چه په اذکار او عبادت

---

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب منه (رقم-۳۳۷۱)

[۲] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم /باب ما جاء فی فضل الدعاء (رقم-۳۳۷۰) وابن ماجة فی کتاب الدعاء /باب ما يدعو به إذا أوى إلى فراشه فضل الدعاء (رقم-۳۸۲۹) واحمد فی المسند: ۳۶۲/۲

کښې يو شئ هم د دعا سره برابر نشته څکه چه د دعا کښې د خپل عجز او انکسارې اظهار کيږی او د الله د قوت قدرت، د الله تعالى د بې نيازۍ او د لوئي د غلبې اظهار کيږی نو دا د قرآن پاک د دې آيت سره معارض نه دې چه إن أكرمكم عند الله أتقاكم (مرقات)

**[۳۳۳] په دعا د تقدير د بدليدو مطلب**

[۱۱] (۱) ① وَعَنْ سَلْمَانَ الْفَارِسِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «لَا يَرُدُّ الْقَضَاءَ إِلَّا الدُّعَاءُ، ③ وَلَا يَزِيدُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا الْبِرُّ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** ① سلمان فارسی رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د دعاء څخه علاوه بل هيڅ څيز تقدير نشي بدلولی ③ او عمرد نيکی څخه علاوه بل هيڅ څيز نشي زياتولی، ترمذی.

**حل اللغات:** ① لَا يَرُدُّ: نه واپس کوی، نه بدلوی، ② الْقَضَاءُ: هُوَ الْأَمْرُ الْمُقَدَّرُ: کوم څيز چه په تقدير کښې ليکلي شوی وی. ③ الْبِرُّ: وَهُوَ الْإِحْسَانُ وَالطَّاعَةُ: نيکئ او اطاعت ته وائی.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَا يَرُدُّ الْقَضَاءَ إِلَّا الدُّعَاءُ:

**اشکال:** دلته چه په دعا سره کوم د رد قضاء متعلق وئيلي شوي دی د هغې نه دا اشکال لازميږی چه قضاء خو الامر المقدر ته وئيلي شی بيا د هغې رد څنګه کيدې شی؟

**جوابونه:** ① دا دې چه دلته د رد قضاء نه معامله قضاء لره داسې اسانول مراد دی ګويا قضاء بالکل نازله شوې نه ده.

② يا د قضاء نه مجازا هغه څيز مراد دې چه د کوم نه بنده ويره محسوس کوی که هغه وخت ورته د دعا توفيق ملاويږی نو هغه د ويرې څيز اوچت شی.

③ يا د قضاء نه قضاء مبرم مراد نه ده کوم چه قطعی طور سره فيصله شوې امر وی په هغې کښې تغير او تبدل نه وی بلکه دلته قضاء معلق مراد ده کوم چه په يو څيز باندې معلق وی. مثلا په قضاء کښې د مصيبت نزول دې په دې شرط چه هغه دعا اونکړی، که دعا اوکړی نو هغه به نه نازليږی نو ګويا عدم نزول بالدعا دا هم په قضاء کښې ده نو په دعا سره په قضاء معلق کښې تغير او تبدل کيږی.

④ يا دفع بلاء کښې چه کوم د دعا تاثير دې په هغې کښې مبالغه کول مراد دی يعنی د دعا تاثير دې حد ه پورې دې چه که د قضاء الهی رد کول ممکن وې نو هغه به ئې هم رد کړې وې.

**قوله:** وَلَا يَزِيدُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا الْبِرُّ:

① دلته هم بعض حقيقی معنی مراد کړې ده يعنی حقيقة په عمر کښې اضافه کيږی.

(۱) اخرجه الترمذی فی کتاب القدر عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء لا یرد القدر إلا الدعاء (رقم-۲۱۳۹) وابن ماجة فی کتاب فی الإیمان وفضائل الصحابة والعلم/باب فی القدر(رقم-۹۰)

④یا مراد دا دې چه د بر د وجې نه په عمر معلق کښې زیادت کیږي نه په عمر مبرم کښې چه د هغې صورت دا دې چه په قضاء کښې مکتوب وی چه که هغه حج اوکړی نو د هغه عمر به شپيته کاله وی ګینې څلويښت کاله به وی

⑤ یا مراد دا دې چه که د نیکۍ او احسان معامله اوکړی نو د هغه عمر به نه ضائع کیږي بلکه په عمر کښې به ئې برکت وی هم د دې نه په زیادت سره تعبیر اوکړې شو

(التعليق ۴۸/۳، ۴۹، الاشعة ۲ ۱۷۱، ۱۷۲)

## [۲۲۳۴] دعا هیڅ کله عبث نه ځي

۲۲۳۴-[۱۲] (۱)① وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "②«إِنَّ الدُّعَاءَ يَنْفَعُ مِمَّا نَزَلَ وَمِمَّا لَمْ يَنْزِلْ، ③فَعَلَيْكُمْ عِبَادَ اللّٰهِ بِالدُّعَاءِ» "(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه**: ① ابن عمر رضي الله عنهما روايت دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② بلا شبه دعا د هغه شي د پاره هم نافع ده چې پيښه شوې وي او د هغه څيز د پاره هم نافع ده چې لاپيښه شوې نه وي ③ نو اې د الله ﷻ بنده ګانو! دعا د ځان د پاره ضروري وګنئ، ترمذى،

**حل اللغات**: ① نَزَلَ: أَيْ مِنْ بَلَاءٍ: چه نازل شوې او پيښ شوې وي کوم مصيبت وغيره.

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ الدُّعَاءَ يَنْفَعُ مِمَّا نَزَلَ وَمِمَّا لَمْ يَنْزِلْ:

**د مذكوره جملې مفهوم**: يعني چه کوم څيز نازل شوې دې د هغې د پاره نافع دې په دې معنې چه الله تعالى په دې نازل شده مصيبت باندې د صبر توفيق ورکوى د دې تعلق د تقدير مبرم سره شو او چه کوم مصيبت لا راپيښ شوې نه دې د هغې د پاره دعا داسې نافع ده چه دعا د غه مصيبت د نازليدلو نه منع کوى د دې تعلق د تقدير معلق سره دې.

۲۲۳۵-(۲)① وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ، ②وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه**: ① دا روايت احمد د معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه نقل کړى دى ② او امام ترمذى رحمه الله فرمايلي دى چې دا حديث غريب دى

## [۲۲۳۶] په هر حالت کښې د دعا افاديت

۲۲۳۶-[۱۳] (۳)① وَعَنْ جَابِرٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "②«مَا مِنْ أَحَدٍ يَدْعُو بِدُعَاءٍ إِلَّا آتَاهُ اللّٰهُ مَا سَأَلَ ③أَوْ كَفَّ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهُ ④مَا لَمْ يَدْعُ بِإِثْمٍ أَوْ قَطِيعَةِ رَحِمٍ» "(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

---

(۱) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۵۴۸)

(۲) اخرجه احمد فى المسند:۲۳۴/۵

(۳) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن دعوة المسلم مستجابة (رقم-۳۳۸۱) واحمد فى المسند:۳۶۰/۳

**ترجمه** [۱] حضرت جابر رضي الله عنه روايي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې دعا غواړي نو الله تعالی ﷻ هغه څیز ورته ورکوي کوم چې هغه یې غواړي (په شرط د دې چې د هغه څیز ورکول په ازل کې د هغه په مقدر کې لیکلی وي)[۳] یا د هغه په عوض کې د هغه څخه بدی لیرې کوي (یعنی د هغه څیز ورکول که د هغه په مقدر کې لیکلی نه وي نو د هغه په عوض کې الله تعالی ﷻ د هغه د غوښتلو په قدر د هغه څخه مصیبت او بلا لیرې کوي) [۴] تر څو پورې چې هغه د ګناه د څه شي یا د رشتې د ماتولو دعا ونه غواړي. ترمذی

**حل اللغات:** ① كَفَّ: أَيْ: دَفَعَ: بندوي یعنی لرې کوي ② لَمْ يَدْعُ: چه دعا اونه غواړي. ③ قَطِيعَةِ: تعلق کټ کول، پریخودل. ④ رَحِم: رشته داري، خپلولی.

**[۳۴] د دعا په ذریعه د رزق فراخی**

۲۲۳۴-[۱٤] () [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- " [۲] «سَلُوا اللَّهَ مِنْ فَضْلِهِ، فَإِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ أَنْ يُسْأَلَ، [۳] وَأَفْضَلُ الْعِبَادَةِ انْتِظَارُ الْفَرَجِ» " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ).

**ترجمه** [۱] ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د الله تعالی ﷻ څخه د هغه د فضل په ذریعه غواړي ځکه چې الله تعالی ﷻ دا خبره ډیره خوښوي چې د هغه څخه فضل وغوښتل شي [۳] او بهترین عبادت (یعني د دعا) د تولو څخه بنه شی د فراخي انتظار دی، امام ترمذي رحمه الله دا حدیث نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث غریب دی.

**حل اللغات:** ① اِنْتِظَارُ: أَيْ: اِرْتِقَابُ ذَهَابِ الْبَلَاءِ: انتظار یعنی صبر کول. ② الْفَرَج: فراخی. اوخوشحالی

**تسهیلات:**

**قوله: انْتِظَارُ الْفَرَجِ:**

**د راحت راتلو په امید دعا جاري ساتل**، یعنی که په چاباندې څه مصیبت راغلو او هغه صبر اوکړو چاته شکایت اونه کړی دَ ناامیدۍ اظهار اونه کړی دعا غواړی او دَ مصیبت اخوا کیدو یقین لری هم دغه بهترین عبادت دي صبر کول دَانسان په قوت ارادی کښې زبردست جذبه اچوی او په آخره کښې هم هغه صابر او شاکر چه دَ مصیبتونو دَاخوا کیدو په امید کښې ناست دي کامیابیږی ځکه چه ﴿إِنَّ اللَّهَ مَعَ الصَّابِرِينَ﴾ دَ الله تعالی ارشاد دي.

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم باب فی انتظار الفرج وغیر ذلک (رقم-۳۵۷۱)

**[۲۲۳۸] د الله نه نه غوښتل د الله د خفګان سبب**

۲۲۳۸-[۱۵] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَنْ لَمْ يَسْأَلِ اللهَ يَغْضَبْ عَلَيْهِ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] حضرت ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړى چې يې د الله تعالى ﷻ څخه نه غواړي الله تعالى ﷻ د هغه څخه ناراضه كېږي [ځكه چې دعا ترك كول د الله تعالى ﷻ څخه د تكبر او د استغناء علامه ده]. ترمذي

**حل اللغات:** ① يَغْضَبُ: غصه كيږي، ناراضه كيږي. (د الله تعالى دغصه كيدو نه مراد د عذاب او تكليف رسولو اراده كول دي).

**تسهيلات:**

**قوله: مَنْ لَمْ يَسْأَلِ اللهَ يَغْضَبْ عَلَيْهِ:**

**د الله تعالى څخه په غوښتلو د الله خوشحاليدل:** الله تعالى چونكه دَ وركړې په صفت باندې متصف دې نوهغه غواړي چه څوك غوښتونكې اوغواړي. هسې دَعربو دَ شاعرانو په كلام كښې لوئې لوئې قصيدې دَ بادشاهانودَ سخاوت سره متعلق لوستلې شوى دى. په هغې كښې دَ بادشاهانونه غوښتل دَ بادشاهانودَ خوشحالئى ذريعه ګرځولې شوې ده. لكه:

كأن كل سوال في مسامعه　　　قميص يوسف في اجفان يعقوب

هم په دې انداز سره دا حديث دې چه دَالله تعالى نه څه غواړې هغه خوشحاليږى او څوك چه نه غواړي نودَ هغه نه خفه كيږى دَ انسان معامله دَدې برعكس ده. هغه چا څه ښه وئيلى

الله يغضب ان تركت سواله　　　وبنو آدم حين يسأل يغضب

**[۲۲۳۹] دعافيت دعا غوښتل**

۲۲۳۹-[۱۶] ( )[۲] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] «مَنْ فُتِحَ لَهُ مِنْكُمْ بَابُ الدُّعَاءِ فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ الرَّحْمَةِ، [۳] وَمَا سُئِلَ اللهُ شَيْئًا - يَعْنِي أَحَبَّ إِلَيْهِ - مِنْ أَنْ يُسْأَلَ الْعَافِيَةَ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] ابن عمر ﷺ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو كې چې د كوم سړي د پاره د دعا دروازه كولاؤ شوه (يعني كوم سړي ته چې د پوره آداب او شرائطو سره د ديري دعا غوښتلو توفيق راكړلې شو) نو پوهه شى چې د هغه د پاره د رحمت دروازې كولاؤ شوې [ځكه چې د هغه د دعا په نتيجه كې كله خو هغه ته د هغه غوښتلى شى حاصليږي او كله د غوښتلې شي په بدله كې د هغه څخه شر او بدي لرې كول كيږي] [۳] او د

[1] اخرجه الترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۳۳۷۳)
[2] اخرجه الترمذي في كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-۳۵۴۸)

الله تعالى ﷻ په نزد د ټولو څخه زياته خوښه او محبوبه خبره دا ده چې د هغه څخه عافيت وغوښتل شي، ترمذي

**حل اللغات:** ① فُتِحَ: أَيْ بِأَنْ وُفِّقَ لِأَنْ يَدْعُوَ اللهَ كَثِيرًا: پرانستلي شي د دعا دروازې پرانستلو نه مراد د ډيرو دعاګانو غوښتلو توفيق نصيب کيدل دي، ② الْعَافِيَةَ: أَنْ يَسْلَمَ مِنَ الْأَسْقَامِ وَالْبَلَايَا: عافيت چه سړي دهر قسم بيمارو او آزمائښونو نه محفوظ شي «د عافيت نه مراد دنياوي او أخروي دواړه قسم عافيت مراد دي».

**تسهيلات:**

**قوله:** مِنْ أَنْ يُسْأَلَ الْعَافِيَةَ

**دعافيت په تعريف کښې اقوال:** ① د عافيت معنى دا ده چه د دنيا او آخرت د ټولو ظاهرى او باطنى غير پسنديده څيزونو، ټول آفتونو او مصائبو، ټولو بيمارو او د ټولو و بلاګانو نه سلامتى او حفاظت حاصل شي. نوعافيت د دنيا او اخرت په ټولو خوشحالو باندي حاوى دي د دي وجې الله تعالى عافيت غوښتل خوښوى.

② ملا علي قارى فرمائى چه د هغې حاصل دا دي چه د عافيت نه مراد دينى امورو کښې سلامتى ده که د بدن صحت وى او که نه وى.

**داپن عطاء د شيخ واقعه:** ابن عطا فرمائى چه يو کس زما د شيخ ابو مرسى خواه له راغلو او هغه په سخت تکليف کښي وو هغه کس اووئيل چه عافاک الله يا سيدى نو هغه جواب ورنه کړو هغه بيا اووئيل چه عافاک الله يا سيدي حضرت شيخ جواب ورکړو چه تا د کوم عافيت سوال کړي دي زه د الله نه هغه عافيت نه غواړم زه چه په کوم حالت کښي يم دا هم عافيت دي.

**د الله تعالى دعلم مطابق د عافيت سوال کول:** نبي عليه السلام هم د الله نه د عافيت سوال کړي دي. نبي عليه السلام ته خيبر کښي د دعوت په موقع يوي ښځي په غوښه کښي زهر اچولى وو د هغي اثر هميشه پاتي وو نبي عليه السلام په مرض الوفات کښي د هغه زهرو اثر محسوس کړو. حضرت ابو بکر صديق به هم د الله تعالى نه عافيت غوښتلو مات مسموما او حضرت عمر به هم د عافيت دعا کوله مات مطعونا حضرت عثمان به د عافيت دعا غوښته مات مظلوما حضرت علي هم د عافيت دعا غوښتي وه مات مقتولا لهذا د الله تعالي نه داسي عافيت غوښتل پکار دى چه د الله تعالي په علم کښي دي داسي عافيت مه غواړه چه زمونږ په علم کښي دي. (مرقات ج۵ ص ۴۱)

.......

[۲۲۳۰] په راحت كښې دعا په سختئ كښې د دعا قبليدو ذريعه

۲۲۳۰-[۱۷] ()① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:② "«مَنْ سَرَّهُ أَنْ يَسْتَجِيبَ اللّٰهُ لَهُ عِنْدَ الشَّدَائِدِ③ فَلْيُكْثِرِ الدُّعَاءَ فِي الرَّخَاءِ»" ④(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ).

**ترجمه** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② د كوم سړي د پاره چې دا خبره د خوښي او خوشحالي باعث وي چې د تنگي او سختي په وخت كې الله تعالى جل جلاله د هغه دعا قبوله كړي ③ نو هغه ته پكار دى چې د وسعت او فراخي په زمانه كې ډيره زياته دعا كوي، ④ دا روايت ترمذي نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى

**تسهيلات:**

**قوله**: فَلْيُكْثِرِ الدُّعَاءَ فِي الرَّخَاءِ:

**په سختۍ كښې د دعا قبليدو ذريعه**: يعنى څوک چې دا غواړي چې د مصيبت په وخت كښې الله تعالى زما دعا قبلوى نوهغه لره پكار دى چې د راحت په وخت كښې الله تعالى زيات يادوى نوچې كله پرې مصيبت راشي اودالله تعالى څخه سوال كول نو د ده د دعا آواز به آشنا نه وى الله تعالى به ئې خكه دعا زر قبلوى.اگرچې څوک په راحت اوخوشحالي كښې دعا نه كوى نو الله تعالى د هغه دعا هم قبلوى.

[۲۲۳۱] دعا د نه قبليدو سبب

۲۲۳۱-[۱۸] ()① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-"② «ادْعُوا اللّٰهَ وَأَنْتُمْ مُوقِنُونَ بِالْإِجَابَةِ③ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَجِيبُ دُعَاءً مِنْ قَلْبٍ غَافِلٍ لَاهٍ»" ④(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ).

**ترجمه** ① حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② تاسو د دعا د قبوليت يقين ساتلو سره دالله تعالى جل جلاله څخه غوارئ ③ ياد لرئ چې الله تعالى جل جلاله د غافل او لوبې كونكي زړه دعا نه قبلوي (يعني د هغه سړي دعا نه قبليږي چې د هغه زړه د دعا غوښتلو په وخت كې د الله تعالى جل جلاله څخه غافل او په نوروخيزونو كې مشغول وي)④ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړى دى او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات**: ① مُوقِنُونَ: أي أَنْتُمْ مُعْتَقِدُونَ أَنَّ اللّٰهَ لَا يُخَيِّبُكُمْ: دا يقين او اعتقاد وى چه زما دعا به قبليږى او نامراده كيږم به نه، ② قَلْبٍ غَافِلٍ: أَيْ: مُعْرِضٍ عَنِ اللّٰهِ أَوْ عَمَّا سَأَلَهُ: چه زړه ئې غافل وى د الله تعالى نه، يا دا توجه ئې نه وى چه زه څه غوارم ③ لَاهٍ: د لهو نه دي، أَيْ: لَاعِبٍ: لوبې كوى، په بل څه كښې مشغوله وى

(١) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب ما جاء أن دعوة المسلم مستجابة (رقم - ٣٣٨٢)
(٢) اخرجه الترمذى فى كتاب الدعوات عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب (رقم-٣٤٧٩)

**تسهیلات:**

**قوله: وَأَنْتُمْ مُوقِنُونَ بِالْإِجَابَةِ:**

**مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① په دې حدیث کښې هم د دعا د قبلیدو دپاره دا شرط ذکر شوې دې چه هغه دعا قبلیږی چې په اخلاص اوپه کامله توجه سره غوښتلې شی

② د حدیث مطلب دا دې چې هغه دعا قبلیږی چې په هغې کښې د دعا کونکی دا الله تعالی په ذات باندې پوره بروسه وی چې الله تعالی به زما دعا قبلوی اګر چې زه ډیر ګناهګار یم لیکن زما ګناهونه د الله تعالی د لوئې رحمت څخه زیاتې نه دی

**اشکال:** نبي علیه السلام فرمائی چه د دعا د غوښتلو په وخت کښې پوخ یقین پکار دې نو دا دعا به خامخا قبلیږی حالانکه ډیرې دعاګانې خو نه قبلیږی نو بیا دعا کونکې یقین څنګه اولری؟

**داشکال جواب:** دعا کونکې د قبولیت نه محرومه کیږی نه څکه چه ده تا هم هغه شي ملاویږی چه کوم غواړی که دهٔ دعا قبلیدل په ازل کښې نه وی لیکلې شوې نو بیا د دعا په بدل کښې د دهٔ نه تکلیف لرې کړی شي یا به د هغې بدله په آخرت کښې ورکړی دویم دا چه دعا عبادت دې او د عبادت ثواب خو به ضرور ورکولې شی د دې نه خو نه محرومه کیږي (ایضا)

**[۲۲۴۲] په الټه لاس د دعا غوښتلو ممانعت**

---۲۲۴۳-[۱۹] (¹) [۱] وَعَنْ مَالِكِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] " «إِذَا سَأَلْتُمُ اللَّهَ فَاسْأَلُوهُ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ، [۳] وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا» ".

**ترجمه:** [۱] مالك بن یسار ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کله چې تاسو د الله تعالی ﷻ څخه دعا غواړی [۳] د هغه څخه د خپلو لاسونو په شاګانو سوال مه کوئ

**حل اللغات:** ① بِبُطُونِ: د بطن جمع ده خیټې ته وائی دلته دلاس دننه طرف مراد دې ② أَكُفِّكُمْ: دا د کَفّ جمع ده، د مروند پورې چې د لاس کومه حصه وی هغې ته کف وائی ③ بِظُهُورِهَا: د ظهر جمع ده، شا ته وائی، دلته ترې د لاس شا یعنی بهر طرف مراد دې.

**حل اللغات:** ① بطون،

**تسهیلات: قوله: بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ:**

**ددعا یوادب:** د دې مطلب دادې، چه دَ دعاوخت کښې دَدعاد آدابونه لاسونه اوچتول دی داسې چه دَلاسونو مخ یعنی دَ لاس دننه تلی دَ مخ طرف ته وی مطلب داچه په اولته لاسونو سره دعا مه غواړئی اودَ استسقاء دَ دعا حالت دې نه مستثنٰی دې په دې کښې لاسونه

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب الدعاء (رقم-۱۴۸۶)

اولتیه کولوسره دعا غوښتل د جدا مصلحت دوجې نه دی

۲۲۳۳ - ( )[۱] وَفِي رِوَايَةِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: [۲] «سَلُوا اللَّهَ بِبُطُونِ أَكُفِّكُمْ وَلَا تَسْأَلُوهُ بِظُهُورِهَا، [۳] فَإِذَا فَرَغْتُمْ فَامْسَحُوا بِهَا وُجُوهَكُمْ» (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ).

**ترجمه** [۱] په یوه بل روایت کې د ابن عباس رضی الله عنه څخه منقول دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] چې د الله تعالی ﷻ څخه د خپلو لاسونو په شاګانو سوال مه کوئ [۳] او هر کله چې تاسو د دعا څخه فارغه شی نو خپل لاسونه په خپل مخ راتیر کی چې کوم برکت په لاسونو نازل شوی دی هغه مخې ته هم ورسیږي، ابوداؤد.

**[۲۲۳۴] د الله په دربار کښې د دعا نه قبلیدل نشته**

۲۲۳۴ - [ ۲۰ ] ( )[۱] وَعَنْ سَلْمَانَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «إِنَّ رَبَّكُمْ حَيِيٌّ كَرِيمٌ [۳] يَسْتَحْيِي مِنْ عَبْدِهِ إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ إِلَيْهِ أَنْ يَرُدَّهُمَا صِفْرًا» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرَةِ).

**ترجمه:** [۱] حضرت سلمان رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] ستاسو پروردګار ډیر حیاناک دي [یعني هغه د حاجتمندو په شان معامله کوی هغه بغیر غوښتلو ورکونکی دی [۳] او هغه د خپل بنده څخه حیا کوي چې هغه خالي لاس واپس کړي هر کله چې د هغه بنده د هغه طرف ته د دعا د پاره خپل دواړه لاسونه اوچتوي، ترمذي ابوداؤد بیهقي

**حل اللغات:** ① حَيِيٌّ: د فعیل نه، أي: مُبَالِغٌ فِي الْحَيَاءِ: ډیره زیاته حیاء کونکي. ② كَرِيمٌ: وَهُوَ الَّذِي يُعْطِي مِنْ غَيْرِ سُؤَالٍ: کرم کونکي یعنی هغه ذات چه د غوښتلو نه بغیرهم ورکوی. ③ صِفْرًا: أَيْ: خَالِيَتَيْنِ: خالی، تش لاس.

**تسهیلات: قوله:** إِنَّ رَبَّكُمْ حَيِيٌّ:

**د حیا په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① که دا د الله تعالي په حق کښې وی نو د دې مطلب د یو څیز ترک کول او پریخودل دی نو الله تعالی د خپل بنده لاس پریخودل نه غواړی بلکه ضرور ورته څه ورکوی.

② د دې څخه مراد دا دې چه الله تعالی ده سره د احسان معامله کوی.

**[۲۲۳۵] دعا نه پس په مخ د لاسونو رابنکلو فضیلت**

۲۲۳۵ - [ ۲۱ ] ( )[۱] وَعَنْ عُمَرَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا رَفَعَ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ لَمْ يَحُطَّهُمَا [۳] حَتَّى يَمْسَحَ بِهِمَا وَجْهَهُ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

---

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الدعاء (رقم-۱۴۸۵)

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الدعاء (رقم-۱۴۸۸) والترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب (رقم-۳۵۵۶)

[۳] اخرجه الترمذی فی کتاب الدعوات عن رسول الله صلی الله علیه وسلم/باب ما جاء فی رفع الأیدی عند الدعاء (رقم-۳۳۸۶)

**ترجمه** [۱] حضرت عمر رضي الله عنه راوي دی [۲] چې رسول الله ﷺ به په دعا کې خپله دواړه لاسونه اوچتول نو تر هغه وقته پورې به يې نه ښکته کول [۳] تر څو پورې چې په مخ مبارک به يې نه وه راتير کړي، ترمذي.

**حل اللغات:** ① لَمْ يَحُطَّهُمَا: أَيْ: لَمْ يَضَعْهُمَا: نه به نې ښکته کول

**تسهيلات: قوله:** إِذَارَفَعَ:

**په دعا کښې د لاسونو پورته کولو حکم:** دَدې حديث نه په واضح توګه معلوم شو چه په دعاکښې لاسونه اوچتول مسنون دی. دويمه خبره دامعلومه شوه چه په دعاکښې دَ الله تعالى په مخکښې خواره کړې شوی لاسونه دَبرکتونو نه ډکيږي. لهذا دَدعانه پس دا په خپلو مخونو باندې راښکل پکار دی دې دَپاره چه برکت حاصل شي. نن صبا عرب خلق په دعا کښې داسې اهتمام نه کوي.

**[۲۲۳۶] درسول الله ﷺ د دعا جامعيت**

۲۲۳۶ - [۲۲] ()[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - قَالَتْ: [۲] كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "«يَسْتَحِبُّ الْجَوَامِعَ مِنَ الدُّعَاءِ، [۳] وَيَدَعُ مَا سِوَى ذَلِكَ» "(رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ).

**ترجمه:** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي [۲] چې رسول الله ﷺ به هغه دعاوي خوښولې، کومې چې جامع دی [۳] او هغه دعاوي به يې پريښودلې کومې چې جامع نه دی، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① يَسْتَحِبُّ: خوښولې به نې، ② الْجَوَامِعَ: جامع دعاهغه وی په کوم کښې چه الفاظ کم وی مګردنياوی اواخروی فائدې زياتې وی لکه ﴿ اَللّٰهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً ...الخ﴾ ③ يَدَعُ: أَيْ يَتْرُكُ: پريږدی.

**تسهيلات:**

**قوله:** يَسْتَحِبُّ الْجَوَامِعَ مِنَ الدُّعَاءِ:

**دجامع دعا په تعريف کښې اقوال:** ① جامع دعا هغې ته وائي چې نيک مقاصدو باندې مشتمله وی.

② په کومه دعا کښې چې دالله تعالى تعريف وی اود سوال کولوپه آدابومشتمله وی هغه جامع ده

③ مظهر شارح د مشکاة فرمائي جامع دعا هغه ده چې الفاظ ئې کم وی او معنى اومفهوم ئې زيات وی.چې د دنيا او آخرت ټولوخوبيانوباندې مشتمله وی.لکه ربنا آتنا فی الدنيا حسنة وفی الآخرة حسنة وقنا عذاب النار

() اخرجه ابو داود فی کتاب الصلاة،باب الدعاء(رقم-۱۴۸۲)

**[۲۲۴۷] د غائب د غائب دپاره د دعا فضيلت**

۲۲۴۷ - [۲۳] ( ) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "② «إِنَّ أَسْرَعَ الدُّعَاءِ إِجَابَةً ③ دَعْوَةُ غَائِبٍ لِغَائِبٍ» " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُوْدَاوُدَ).

**ترجمه** ① عبد الله بن عمرو رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② ډير زر قبليدونكي دعا هغه ده ③ چې غايب يې غائب د پاره وكړي، ترمذي ابوداؤد

**حل اللغات:** ① أَسْرَعَ: ډير زر (قبليدونكي دعا) ② غَائِبٍ: غائب چه موجود نه وی

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ أَسْرَعَ الدُّعَاءِ إِجَابَةً دَعْوَةُ غَائِبٍ لِغَائِبٍ:

**د غائب دپاره د دعا قبليدل:** د غائب د غائب دپاره دعا په صدق دل او په خلوص نيت سره وي او د ريا نه د لرې كيدو په وجه قبوليت ته ډيره نژدې وى.

**[۲۲۴۸] د نبي كريم صلى الله عليه وسلم حضرت عمر ته د دعا كولو درخواست**

۲۲۴۸ - [۲۴] ( ) ① وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: "② «اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي الْعُمْرَةِ فَأَذِنَ لِي ③ وَقَالَ: أَشْرِكْنَا يَا أُخَيُّ فِي دُعَائِكَ وَلَا تَنْسَنَا" ④ فَقَالَ كَلِمَةً مَا يَسُرُّنِي أَنَّ لِي بِهَا الدُّنْيَا» ⑤" (رَوَاهُ أَبُوْدَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَانْتَهَتْ رِوَايَتُهُ عِنْدَ قَوْلِهِ "وَلَا تَنْسَنَا").

**ترجمه** ① حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه راوي دی ② چې (يو ځل) ما د رسول الله ﷺ نه د عمرې د ادائيګۍ د پاره اجازت وغوښتې نو ماته يې اجازت را كړې ③ او وې فرمايل چې اې زما وروكي وروره! په خپله دعا كې مونږ هم شريكوه او د دعا په وخت مونږ مه هيروه ④ حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ داسې كلمه ارشاد وفرمايله كه د هغه په بدله كې ماته ټوله دنيا هم راكول شوي وي نو ماته به هغوئ مره خوشحالي نه وې ⑤ ابوداؤد، دامام ترمذي رحمه الله روايت په لفظ وَلَا تَنْسَنَا باندې ختم شو.

**حل اللغات:** ① أُخَيُّ: دا د اخ تصغير دې، وَهُوَ تَصْغِيْرُ تَلَطُّفٍ لَا تَحْقِيْرٍ: د محبت په وجه ونيلی شوی دی نه د حقارت دپاره. ② مَا يَسُرُّنِي: أَيْ: لَا يُفَرِّحُنِي: نه خوشحالوی مالره

**تسهيلات:**

**قوله:** وَقَالَ: أَشْرِكْنَا يَا أُخَيُّ فِي دُعَائِكَ وَلَا تَنْسَنَا..الخ:

**د حديث نه مستنبط شوی مسائل:** حضرت عمر فاروق رضي الله عنه د عمرې دپاره د مدينې منورې نه مكې معظمې ته تللو حضورپاك هغه ته اوفرمائيل زما وروكی روره ما په خپلو نيكو

---

[1] اخرجه ابو داود فی كتاب الصلاة،باب الدعاء بظهر الغيب (رقم-۱۵۳۵)

[2] اخرجه ابو داود فی كتاب الصلاة،باب الدعاء(رقم-۱۴۹۸) والترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۶۳۳ وابن ماجة فی كتاب المناسك/باب فضل دعاء الحاج (رقم-۲۸۹۴)

دعاګانو کښې یاد ساته او ما په دعا کښې مه هیره وه

① چه کله دَ یو مسلمان دَ اسلام یولوئی شعار سره تعلق شو نو دَ هغه خپله مرتبه اوچتیږی حضرت عمر ﷜ ته دا مرتبه دَ بیت الله زیارت او دَ هغې په برکت سره ملاؤ شوه

② په حضورپاك کښې بندګی او عاجزی خومره ډیره وه چه خپل یوخادم او امتی ته دَ دعا کولو درخواست کوی.

③ هر مسلمان له پکاردی چه هغه دې په خپلو دعاګانو کښې پوره امت شریك کړی پنځمه خبره دا معلومه شوه چه دَ فاروق اعظم ﷜ خومره لوئی مقام دې

④ دَ لوئی مقام والا سړې دَ خپل ځان نه دکمې مرتبې مقام والا ته دَ دعادرخواست کولې شی

**قوله: فَقَالَ كَلِمَةً:**

**د حضرت عمر ﷜ خوشحالیدل:** حضرت عمر فاروق ﷜ دَ رسول الله ﷺ په دې کلمه باندې دومره خوشحاله شو چه وئی فرمائیل دَدې په بدله کښې که ماته ټوله دنیا ملاؤشی ماته به دَ هغې دومره خوشحالی نه وی.

**د کلمه په مراد کښې دوه اقوال:** ① په ظاهره خوهم دا ښکاری چه دَ دعا کوم درخواست حضورپاك حضرت عمر ﷜ ته اوکړو او په هغې کښې ئی دَ "اشرکنا" کلمه ارشاد اوفرمائیله اودې سره دَ شفقت دَپاره "أُخَيَّ" اې زما وړوکی روره کلمه ئی ارشاد اوفرمائیله حضرت عمر ﷜ هم دَدې طرف ته اشاره فرمائی

② دا هم ممکن دی چه هغه کلمه چرته بل څه وه کومه چه دلته نه ده نقل کړې شوې حضرت عمر ﷜ دَهغې طرف ته دلته صرف اشاره فرمائیلې اول توجیه واضح ده دَدې حدیث نه دَحضرت عمر فاروق ﷜ دَ شان عظمت او دَ حضورپاك په نیز دَهغوی بـه مقام اندازه کیږی.

**[۳۳۹] دَ مظلوم د خیرو څخه ویره**

۲۲۳۹ - [۲۵] (¹) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "[۲] «ثَلَاثَةٌ لَا تُرَدُّ دَعْوَتُهُمْ: [۳] الصَّائِمُ حِينَ يُفْطِرُ، [۴] وَالْإِمَامُ الْعَادِلُ، [۵] وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ يَرْفَعُهَا اللَّهُ فَوْقَ الْغَمَامِ، [۶] وَتُفْتَحُ لَهَا أَبْوَابُ السَّمَاءِ، [۷] وَيَقُولُ الرَّبُّ: وَعِزَّتِي لَأَنْصُرَنَّكِ وَلَوْ بَعْدَ حِينٍ» " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] حضرت ابوهریره ﷜ وایې چې رسول کریم ﷺ وفرمایل [۲] دري سړي دي چې د هغوئ دعا نه رد کېږي [۳] ① روژه دار چې کوم وخت روژه ماتوي ، یعني روژه دار چې افطاري په وخت دعا کوي نو د هغه دعا قبلیږي ځکه چې هغه د عبادت د ادائیګۍ څخه روسته وي او دا چې هغه هغه وخت د عاجزۍ او مسکیني علامت وي، [۴] ② د خلقو سردار

¹) اخرجه ابن ماجة فی کتاب الصیام /باب فی الصائم لا ترد دعوته (رقم-۱۷۵۲)

او حاكم چې عدل او انصاف كوي (په يو بل حديث كې منقول دي چې د يو ساعت عدل د شپيتو كالو د عبادت څخه ښه دى د دې فضيلت او شرف په وجه د عادل سردار او حاكم دعا قبليږي) [۵] ③ د مظلوم دعا كله چې مظلوم دعا كوي نو الله تعالى ﷻ د هغه دعا د وريځو څخه پورته اوچتوي [۶] او د هغه د دعا د پاره د آسمان دروازې كولا وېږي [۷] او پروردگار فرمايي چې قسم دى زما په عزت زه به ضرور ستا مدد كوم اگر چې هغه څه موده وروسته وي (يعني ستا حق به نه ضايع كوم او ستا دعا به نه ردّ كوم اگر چې اوږده موده تيره شي) ترمذي

**حل اللغات:** ① دَعْوَةُ الْمَظْلُومِ: دعا د مظلوم (يعنى خيرې)، ② الْغَمَامِ أَيِ السَّحَابَ: وريځ، ③ وَعِزَّتِي: واؤ قسميه دې او عزتى مقسم به يعنى قسم مې دې وى په خپل عزت باندې.

**تسهيلات:**

**قوله: يَرْفَعُهَا:**

**د مظلوم دعا اوچتول:** يعنى دَ قبلوليت دَپاره دا اسمان طرف ته اوچتولې شى لكه چه الله تعالى دا ډيره زر قبلوى او رد كوى نه. دَ نورو خلقو دعاگانې لا په زمكه باندې وى دَمظلوم دعا دَ الله تعالى دربار ته رسيدلې وى.

**قوله: وَلَوْبَعْدَ حِينٍ:**

**مظلوم سره د مدد يقينى وعده:** سره دَدې كه وخت اولگى خوزه به خامخا ستا امداد كوم څكه چه ماسره وخت لگيدل خو شته ولې داخبره نشته چه دربه نه كړم. په دې حديث كښې دَ دريو كسانودَ دعا ذكر دې. دې سره چه كوم حديث دې هغې كښې دَ پلار اومسافر دَدعا هم ذكر دې او په حديث نمبر : ۲۲۴۰ كښې دَ پنځوكسانودَ دعادَ قبوليت بيان دې لهذا په دريوكښې حصر نه دې.

**[۲۲۵۰] د دريو كسانو دعا ضرور قبليدل**

۲۲۵۰-[۲۶] (۱) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «ثَلَاثُ دَعَوَاتٍ مُسْتَجَابَاتٌ لَا شَكَّ فِيهِنَّ: [۳] دَعْوَةُ الْوَالِدِ، [۴] وَدَعْوَةُ الْمُسَافِرِ، [۵] وَدَعْوَةُ الْمَظْلُومِ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] درې دعاوې قبليږي د هغه په قبوليت كې هيڅ شك نشته [۳] ① يوه د مور او پلار دعا [۴] ② دويمه د مسافر دعا [۵] ③ او دريمه د مظلوم دعا، ترمذي ابوداؤد ابن ماجه.

---

[۱] اخرجه ابو داود فى كتاب الصلاة باب الدعاء بظهر الغيب (رقم-۱۵۳۶) وابن ماجة فى كتاب الدعاء باب دعوة الوالد ودعوة المظلوم (رقم-۳۸۶۲)

**تسهيلات:**

**قوله: ثَلَاثُ دَعَوَاتٍ مُسْتَجَابَاتٍ..الخ:**

دَ پلار دعا دَ اولاد په حق كښې ډيره زر قبليږي دغه شان بددعا ئې هم قبليږي كله چه دَ پلار دعا قبليږي نو دَمور خو په طريقه اولي سره قبليږي ځكه چه هغه خو په شفقت كښې دَ پلار نه زياته ده مسافرسره دَدې چه دعا دَ خپل خان دپاره اوكړي يا دَ نورو دپاره اوكړي دَهغه دعا دَ سفر په وجه قبليږي اوبددعا ئې هم قبليږي

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۳۵۱] هر څيز د الله څخه غوښتل**

|
|---|
| [۲۷]()[۱]عَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ: [۲] «لِيَسْأَلْ أَحَدُكُمْ رَبَّهُ حَاجَتَهُ كُلَّهَا، [۳] حَتَّى يَسْأَلَهُ شِسْعَ نَعْلِهِ إِذَا انْقَطَعَ». |

**ترجمه:** [۱] حضرت انس ﷺ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو كې هر سړي ته پكار دى چې خپل ټول حاجتونه د خپل پروردگار څخه وغواړي [۳] تر دې كه د هغه د چپلو تسمه هم وشليږي نو هغه دې هم د الله ﷻ څخه غواړي، ترمذي،

**حل اللغات:** ① شِسْعَ نَعْلِهِ: أَيْ: شِرَاكُهَا: د پيزار تسمه، وندني، مزي.

**تسهيلات: قوله: لِيَسْأَلْ أَحَدُكُمْ رَبَّهُ حَاجَتَهُ كُلَّهَا:**

**د الله تعالى څخه د معمولى څيز سوال كولو فضيلت:** كه د دهٔ د څپلی تسمه او مزې هم اوشليږي نو ده ته الله تعالى ثواب وركوى دا كنايه ده د دې خبرې نه چه وړوكى نه وړوكې څيز هم د الله نه غواړئ د بل چا نه سوال مه كوئ ځكه چه
الله تعالى په خپلو بندگانو باندې ډير زيات مهربانه دې هغه داسې مهربانه دې چه بې د غوښتو هم وركړه كوى او په نه غوښتو ناراضه كيږى لهذا هر حاجت د الله پاک نه غوښتل پكار دي كه غټ حاجت وى او كه وړوكې هم دا د موحد علامت دي.

|
|---|
| [۲۸]()[۱] زَادَ فِي رِوَايَةٍ عَنْ ثَابِتٍ الْبُنَانِيِّ مُرْسَلًا: "[۲] «حَتَّى يَسْأَلَهُ الْمِلْحَ [۳] وَحَتَّى يَسْأَلَهُ شِسْعَهُ إِذَا انْقَطَعَ»" (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ). |

**ترجمه** [۱] په يو بل روايت كې چې د ثابت بناني څخه يې بطريق ارسال نقل كړى دى دا الفاظ يې هم نقل كړى دى چې [۲] تر دې مالګه دې هم د هغه څخه غواړي [۳] او كه د پنړي (پيزار، چپل، څپلۍ) تسمه يې هم اوشليږي نو هغه دې هم د هغه څخه غواړي، ترمذي

() اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۸۲

() اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۸۳

[ ...] په دعاكښې لاسونه تر څومره اوچتول دي

[۲۲۲۸] ( )[۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ [۳] حَتَّى يُرَى بَيَاضُ إِبْطَيْهِ».

**ترجمه** [۱] حضرت انس ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د دعا په وخت خپل لاسونه دومره اوچتول [۳] چې د ترخونو سفيدي به يې په نظر راتله

**حل اللغات** ① بَيَاضُ إِبْطَيْهِ: د ترخونو سپين والې

**تسهيلات:**

**قوله: يَرْفَعُ يَدَيْهِ فِي الدُّعَاءِ حَتَّى يُرَى بَيَاضُ إِبْطَيْهِ:**

**په دعا كښې د لاسونو اوچتولو اوسط درجه:** ① په دعا كښې د لاسونو اوچتولو درميانه حد هم دغه دې چه نن صبا ټول عرب حضرات په زنګونونوباندې د پاسه لاسونه كيږدي يالږشان د پاسه دعا غواړي په كوم سره تكبرنه ښكاره معلوميږي

② بعض عرب دواړه لاسونه د سرنه اوچت كړي دعاغواړي دا افراط اوتفريط دې او يوه دعا ابتهال ده چه سړې په اضطرار او اضطراب كښې وي او په چغو چغو سره لاسونه اوچت كړي دعا غواړي دا عام معمول نه دې اوبله داخبره چه د استسقاء دعادې نه مستثنى ده

[۲۲۵۴] په دعا كښې د اوږو پورې د ګوتو پورته كول

[۲۲۲۹] ( )[۱] وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ، قَالَ: [۲] «كَانَ يَجْعَلُ أُصْبُعَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ، وَيَدْعُو».

**ترجمه** [۱] سهل ابن سعد ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل كولو سره وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به خپلې دواړي ګوتي يعنى د دواړو لاسونو د ګوتو سرونه د خپلو اوږو برابر اوچتولې او بيا به يې دعا غوښتله

**حل اللغات**: ① حِذَاءَ: برابر ② مَنْكِبَيْهِ: د منكب تثنيه ده. اوږو ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله: يَجْعَلُ أُصْبُعَيْهِ حِذَاءَ مَنْكِبَيْهِ،**

**په رواياتو كښې تعارض:** په اول حديث كښې د لاسونو ډيرو اوچتولو ذكر دې حتى يرى بياض بطيه اودسهل بن سعد په روايت كښې دى چه نبي عليه السلام به د اوږو پورې لاسونه اوچتول او هم دغه شان په راروان روايت كښې دى چه إنه يقول إن رفعكم أيديكم بدعة ما زاد رسول الله على هذا يعنى إلى الصدر په دې رواياتو كښې تعارض دې

[۱]) الدعوات الكبير. باب ما يستحب الداعي من رفع اليدين في الدعا... رقم الحديث ۱۷۱

[۲]) الدعوات الكبير. باب يجعل اصبعيه باحذا منكبيه ويدعو... ۱۷۴

**د تعارض جواب:** دا په مختلف اوقاتو باندې محمول دي دا رنګ رسول الله صلى الله عليه السلام اکثر معمول په دې حديث الباب کښې مذکور دي او نور روايات په مخصوص احوالو باندې محمول دی

**د بدعت وئيلو مصداق:** باقي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه په روايت کښې چې ورته بدعت وئيلې شوي دي نو دا د هغه خلقو د وجې وو څوک چه د مواقعو او حالاتو د اختلاف لحاظ نه ساتي بلکه په هره موقع او د هرې دعا په وخت خپل لاسونه ډير زيات اوچتوي د دې وجې حضرت ابن عمر رضي الله عنه د داسې طرز عمل نه د بيزارۍ اظهار کړې دې او دائې د سنت خلاف ګرځولې دي

**[۲۲۵۵] په دعا کښې په مخ باندې لاسونه راښکل**

٢٢٥٥-[ ٣٠ ] ( )[١]وَعَنِ السَّائِبِ بْنِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنْ أَبِيهِ: [٢]«أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا دَعَا، فَرَفَعَ يَدَيْهِ [٣] مَسَحَ وَجْهَهُ بِيَدَيْهِ» ". [٤] رَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ فِي " الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ ".

**ترجمه** [١] سائب بن يزيد د خپل پلار څخه نقل کوي [٢] چې رسول الله ﷺ چې به دعا غوښتله او خپله دواړه لاسونه به يې پورته کړل [٣] نو په خپل مخ مبارك به يې دواړه لاسونه راتيرول. [٤] مذکوره بالا درې حديثونه بيهقي په دعوات کبير کې نقل کړي دي

**تسهيلات:**

**قوله:** رَفَعَ يَدَيْهِ مَسَحَ وَجْهَهُ بِيَدَيْهِ

**په دعا کښې په مخ د لاس راښکلو قاعده:** علامه طيبي فرماني چه دا حديث په دې خبره دلالت کوي چه نبي عليه السلام چه به کله دعا کولو د پاره لاس اوچتول نو په خپل مخ باندې به ئې راښکل او که د دعا دپاره به ئې لاس نه وو اوچت کړی نو په مخ باندې به ئې نه راښکل لکه ماثوره دعاګانې د روتې. اوده کيدو او ويخيدو دعاګانې په دې کښې لاس اوچتول او په مخ راخکل نشته (مرقات ج ۵ ص ۴۴)

**[۲۲۵۶] په دعا کښې د اوږو پورې لاسونه پورته کول**

٢٢٥٦-[ ٣١ ] ( )[١] وَعَنْ عِكْرِمَةَ، عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: [٢] الْمَسْأَلَةُ أَنْ تَرْفَعَ يَدَيْكَ حَذْوَ مَنْكِبَيْكَ أَوْ نَحْوِهِمَا، [٣] وَالِاسْتِغْفَارُ أَنْ تُشِيرَ بِأُصْبُعٍ وَاحِدَةٍ، [٤] وَالِابْتِهَالُ أَنْ تَمُدَّ يَدَيْكَ جَمِيعًا. [٥] وَفِي رِوَايَةٍ، قَالَ: وَالِابْتِهَالُ هَكَذَا، [٦] وَرَفَعَ يَدَيْهِ وَجَعَلَ ظُهُورَهَا مِمَّا يَلِي وَجْهَهُ (رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ).

**ترجمه** [١] عکرمه د ابن عباس ﷺ څخه نقل کوي چې هغه اوويل [٢] د سوال (دعا) کولو آدب طريقه دا ده چې ته خپل دواړه لاسونه د خپلو اوږو برابر يا د هغه نزدې پورې پورته

---
) روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان كما ذكره صاحب المشكواة.
) اخرجه ابو داود في كتاب الصلاة باب الدعاء (رقم-١٤٨٩)

کړي ۳ د استغفار آدب دا دي چې ته د خپلي ګوتي په ذريعه اشاره وکړي ۴ او په دعا کې انتهائي عجز او مبالغه اختيارول دا دي چې ته خپل دواړه لاسونه يو خاى اوږده کړې، ايعنى دومره يې پورته کړي چې د ترخونو سفيدي په نظر راشي ا، ۵ په يوه روايت کې داسې دي چې هغه اوويل په بددعا کې د انتهائي عاجزي اظهار داسې دي ۶ او په دې ويلو سره هغه خپل دواړه لاسونه پورته کړل او د هغه شا يې خپل مخې ته نزدې کړه يعني څرنګه چې د استغفار په وخت لاسونه اوچتول منقول دي، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① الْمَسْأَلَةُ: مصدر دې په معنى د سوال، ددې مضاف مقدر دې، أَيْ: آدَابُهَا: يعنى د سوال کولو آداب، ② الِابْتِهَالُ: أي: التَضَرُّعُ: عاجزي کول او په دعا غوښتلو کښې مبالغه کول

**تسهيلات:**

**قوله:** وَالِاسْتِغْفَارُ أَنْ تُشِيرَ بِأُصْبُعٍ وَاحِدَةٍ

**په دوو ګوتو دا شارې کولو کراهت:** امام طيبى فرمائى چه په يوه ګوته اشاره کولو نه مراد د شهادت ګوته ده د دې نه مقصود نفس اماره او شيطان ملعون ملامته کول دي او د هغه د وسوسو نه پناه غوښتل دى دلته د يوې ګوتې قيد دې په دوه ګوتو سره اشاره کول مکروه دى په روايت کښې دى چه نبي عليه السلام اوکتل چه يو کس په دوه ګوتو سره اشاره کوله نو نبى عليه السلام ورته اوفرمائيل چه په يوه ګوته اشاره کوه (مرقات ج۵ ص۴۶)

**[۲۲۵۷] په دعا کښې د سينې څخه زيات لاسونه پورته کولو حکم**

—[۳۲] ()[1] ١ وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- أَنَّهُ قَالَ: ٢ إِنَّ رَفْعَكُمْ أَيْدِيَكُمْ بِدْعَةٌ، ٣ مَا زَادَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى هَذَا -يَعْنِي إِلَى الصَّدْرِ- (رَوَاهُ أَحْمَدُ).

**ترجمه** ١ د ابن عمر ﷺ په باره کې روايت دى چې هغه به ويل ٢ ستاسو خپل لاسونه ډير زيات پورته کول بدعت دى ٣ نبي کريم ﷺ به اکثره د دې څخه زيات يعنى د سينې څخه زيات نه اوچتول. احمد

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ رَفْعَكُمْ أَيْدِيَكُمْ بِدْعَةٌ:

**په دعا کښې د لاسونو پورته کولو وضاحت:** دلته نې د سينې نه پورته لاسونه اوچتولو ته بدعت اووې حال دا چه په بعض رواياتو کښ ﴿ ان ترفع ايديك حذومنكبيك ﴾ دې. نو تطبيق به دا وى چه هميشه فوق الصدر اوچتولو ته بدعت ونيلې شوې دې نه بعض وخت يا په اکثر احوالو کښ د سينې نه پورته لاسونه اوچتولو ته بدعت ونيلې شوي دې او صاحب التعليق د منتخب

---

[1] ) اخرجه احمد فى المسند رقم الحديث ۵۳۸۸

نه نقل کړي دي چه په دعا کښې رفع الیدین د احادیث متواتره نه ثابت دی خو د فرض مانځه نه پس په دعا کښې د لاس اوچتولو متعلق صاحب المنتخب وائی چه د یو صحیح حدیث نه ثابت دی او د انس رضي الله عنه نه مرفوعا روایت دي چه (مامن عبد مرمن یبسط کفیه فی دبر کل صلاة ثم یقول اللهم الهی وفی اخر الحدیث الاکان حقا علی الله ان لا یرد یدیه خائبتین)

**حضرت عبدالله بن عمر د بیزارۍ وجه:** په دي خبره باندې خان په ډیر وضاحت سره داسې پوهه کړئ چه د رسول الله ﷺ د لاس اوچتولو د مقدار فرق د حالات او مواقع په اختلاف باندې مبنی وو چه رسول الله ﷺ به خپل لاسونه اکثر خو د سینې پورې اوچتول او په بعض موقوع باندې تر اوږوې پورې او په څه خاص موقع باندې به ئې د اوږو نه هم پورته اوچت کړل، خو ابن عمر رضي الله عنهما چه کومو خلقو ته دا تنبیه اوکړه هغوی به د مواقع او حالات اختلاف ته نه کتل بلکه په هره موقع او د هرې دعا په وخت به ئې خپل لاسونه ډیر زیات اوچتول په دې وجه سیدنا ابن عمر رضي الله عنهما د هغوی د طرز عمل نه د بیزارۍ اظهار اوکړو او دې ته ئې د سنت خلاف اووې.

**[۲۲۵۸] په دعا کښې د خپل خان څخه شروع کول**

[۳۳] ( )[۱] وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- "«إِذَا ذَكَرَ أَحَدًا فَدَعَا لَهُ بَدَأَ بِنَفْسِهِ»» [۳]" (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ صَحِيحٌ).

**ترجمه** [۱] ابي بن کعب رضي الله عنه وائي [۲] چې رسول الله ﷺ به د چا ذکر کولی او بیا د هغه د پاره به یې دعا کوله (یعني د هغه د پاره به یې د دعا کولو اراده کوله، نو مخکې به یې د خان د پاره دعا شروع کوله (د هغه څخه روسته به یې د هغه سري د پاره دعا کوله). [۳] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا حدیث حسن غریب صحیح دی

**حل اللغات:** ① بَدَأَ بِنَفْسِهِ: اول به ئې د خپل خان د پاره دعا غوښتله

**تسهیلات: قوله:** بَدَأَ بِنَفْسِهِ:

**اول ځان د پاره د دعا غوښتلو دوه وجهې:** په دې حدیث کښې فرمائیلی دی چه

① کله به حضور پاک د چا د پاره دعا کوله نو اول به ئی د خان د پاره دعا غوښتله په دې سره امت ته دا تعلیم ورکړې شو چه کله څوک سړې د بل چا د پاره دعا کوی نو هغه له پکار دی چه اول د خپل ذات د پاره دعا اوکړی

① یو خو دې وجې نه چه اول خان او بیا جهان یو طبعی نظام دې

② کله چې سړې پخپله پاک شی نو بیا به د نورو د پاره دعا هم قبلیږی.

---

( ) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۴۴۵

**[۲۲۵۹] دعا نه ضائع کیږي**

۲۲۵۹-[۳٤] (١) [۱] (وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَدْعُو بِدَعْوَةٍ لَيْسَ فِيهَا إِثْمٌ [۳] وَلَا قَطِيعَةُ رَحِمٍ إِلَّا أَعْطَاهُ اللَّهُ بِهَا إِحْدَى ثَلَاثٍ: [٤] إِمَّا أَنْ يُعَجِّلَ لَهُ دَعْوَتَهُ، [۵] وَإِمَّا أَنْ يَدَّخِرَهَا لَهُ فِي الْآخِرَةِ، [٦] وَإِمَّا أَنْ يَصْرِفَ عَنْهُ مِنَ السُّوءِ مِثْلَهَا [۷]» قَالُوا: إِذًا نُكْثِرُ، قَالَ: «اللَّهُ أَكْثَرُ» (رَوَاهُ أَحْمَدُ).

**ترجمه** [۱] ابو سعید خدري ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم مسلمان چې څه دعا غواړي داسې دعا چې د هغه څخه د یو ګناه د شي طلب نه وي [۳] او نه د رشتې ماتولو نو الله تعالی ﷻ هغه ته د هغه دعا په نتیجه کې د دریو څیزونو څخه یو شی ضرور ورکوي [٤] ① یا خو زر د هغه مطلوب هغه ته ورکړي [۵] ② یا دا چې د هغه د پاره هغه دعا د آخرت ذریعه جوړه کړي (چې په دنیا کې د هغه مطلوب نه حاصلیدو په صورت کې د هغه په عوض کې په آخرت کې ورته اجر ورکړي) [٦] ③ یا دا چې هغه د هغه دعا په قدر اندازه د بدۍ څخه بچ کړي، [۷] صحابه ؤ ﷺ په دي اوریدو سره عرض وکړی چې یا رسول الله ﷺ اوس خو به مونږ ډیري دعاوي غواړو ځکه چې مونږ ته د دعاوو ډیري زیاتي فائدي معلومي شوي، نبي کریم ﷺ ورته وفرمایل چې د الله تعالی ﷻ فضل ډیر زیات دی. احمد

**حل اللغات:** ① يَدَّخِرَهَا: ذخیره کوی او جمع ني ساتی (یعنی دغه غوښتلي شوې دعا ورله ذخیره کوی یا دهغې ثواب ورله ساتی). ② نُكْثِرُ: مونږ به زیاتوالي کوو (یعنی د دعاچه دومره ډیري فائدي دی نو مونږ به اوس ډیري ډیري دعاګاني غواړو)

**تسهیلات:** **نوټ:** د دې حدیث تسهیلات په بل ځاني کښې ذکر شوې دي

**[۲۲٦۰] د پنځو خلقو د دعاګانو قبولیت**

۲۲٦۰-[۳۵] (٢) [۱] (وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «خَمْسُ دَعَوَاتٍ يُسْتَجَابُ لَهُنَّ: [۳] دَعْوَةُ الْمَظْلُومِ حَتَّى يَنْتَصِرَ، [٤] وَدَعْوَةُ الْحَاجِّ حَتَّى يَصْدُرَ، [۵] وَدَعْوَةُ الْمُجَاهِدِ حَتَّى يَقْعُدَ، [٦] وَدَعْوَةُ الْمَرِيضِ حَتَّى يَبْرَأَ، [۷] وَدَعْوَةُ الْأَخِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ» [۸] ثُمَّ قَالَ: «وَأَسْرَعُ هَذِهِ الدَّعَوَاتِ إِجَابَةً دَعْوَةُ الْأَخِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ» (رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ).

**ترجمه** [۱] حضرت ابن عباس ﷺ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] پنځه دعاوي دي چې هغه ته شرف قبولیت وربه برخه کیږی (یعني قبلیږي) [۳] ① یو د مظلوم دعا تر دي چې (هغه د ظالم څخه په خپل لاس سره یا د خپلي ژبي په ذریعه)

---

[۱] اخرجه احمد في المسند: ۳/۱۸، واخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل الاجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر (رقم ۳۸ (۳۹) (۲۷۰۰)

[۲] لم اجده.

بدله واخلي انو بيا چونکه دې مظلوم پاتې نشونوځکه د ظالم په حق کښې د ده دعا قبليدو ځه حيثيت پاتې نشوا [۲] ② د حاجي دعا تر دې چې خپل ښار او خپل اهل وعيال ته واپس راشي يا د حج څخه فارغه شي[۵] ③ د غازي ،مجاهد ، جهاد کونکی، دعا يا په طلب د علم و عمل کې د سعي او کوشش کونکی دعا، تر دې چې هغه د جهاد د سعي او کوشش څخه فارغيدو سره کيني [۶] ④ د مريض دعا تر دې چې هغه ښه شي يا مړشي [۷] ⑤ د يو ورور د بل ورور د پاره غائبانه دعا ،[۸] بيا د دې څخه روسته نبي کريم ﷺ وفرمايل چې په دې دعاوو کې د ټولو څخه زر قبليدونکی د يو ورور د خپل ورور د پاره غائبانه دعا ده، بيهقي

**حل اللغات:** ① يَنْتَصِرَ: مدد نې اوکړې شي ،تر دې چه هغه د ظالم څخه په خپل لاس سره يا د خپلې ژبې په ذريعه بدله واخلي، ② يَصْدُرَ: أَيْ: إِلَى أَنْ يَرْجِعَ: چه واپس شي ،خپل وطن يا خپل اهل وعيال ته، ③ يَقْعُدَ: أَيْ: حَتَّى يَفْرُغَ مِنْهَا: چه کيني يعنی چې د جهاد د سعي او کوشش څخه فارغيدو سره کيني ④ يَبْرَأَ: أَيْ: يَتَعَافَى أَوْيَمُوتَ: چه بری شی يعنی د بيماری نه ښه شی يا مړشی ⑤ بِظَهْرِ الْغَيْبِ: پسی شا يعنی غير موجودګئ کښې

**تسهيلات:**

**قوله: دَعْوَةُ الْمَظْلُومِ حَتَّى يَنْتَصِرَ**

**د ينتصر معنى:** يعنی هغه د ظالم نه په خپل لاس يا په خپلې ژبې سره بدله وانه خلی. په لاس د بدلې اغستو مطلب واضح دې د قتل په بدله کښې قتل او د ژبې بدله اغستلو مطلب دا کيدې شی چه هغه ته خيرې يا ردې بدې اووائی

**قوله: وَدَعْوَةُ الْحَاجِّ حَتَّى يَصْدُرَ**

**د حج په مصداق کښې دوه اقوال:** ① حج نه مراد حج اکبر دې يعني حج اوکړی ② حج نه مراد حج اصغر يعنی عمره ده چې عمره اوکړی د دوارو دعاګانې کور ته واپس کيدو پورې قبليږی (مرقات: ج۵ ص۴۸)

**قوله: دَعْوَةُ الْمُجَاهِدِ حَتَّى يَقْعُدَ**

**د مجاهد په مصداق کښې دوه اقوال:** ① مجاهد نه يا خو د الله په لار کښې جهاد کونکې ② يا علم حاصلونکې مراد دې

**قوله: دَعْوَةُ الْأَخِ لِأَخِيهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ**

**د غائبانه دعا قبليدل:** دا حديث په دې خبره دلالت کوی چه په اخلاص نيت سره يو کار اوکړې شی نو هغه قبليږی او هم دغه شان په حديث کښې راځی چه إن الله في عون العبد ما دام العبد في عون أخيه المسلم چه الله د بنده امداد کوی تر څو چه هغه د خپل مسلمان رور مدد کښې لګيا وی

# [ ۱ ]بَابُ ذِكْرِ اللّٰهِ عَزَّوَجَلَّ وَالتَّقَرُّبِ إِلَيْهِ]

**دالله تعالى دذكر او د الله د قربت حاصلولو بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه خمسة وعشرون حديثاً مشتملة على خمس مسائل:**

① فضيلة ذكر الله تعالى: ۱، ۲، ۳، ۴، ۷، ۹، ۱۰، ۱۵، ۱۷، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۵.

② تقرب العبد إلى الله تعالى بالنوافل وجزاءه: ۵، ۶.

③ العفو عن غفلة العبد عن ذكر الله تعالى في بعض الأحيان: ۸.

④ الزجر على ترك ذكر الله تعالى: ۱۲، ۱۳، ۱۴.

⑤ النهي عن كثرة الكلام من غير الذكر: ۱۶.

**د الله تعالى ذكر سره متعلقه آياتونه:**

① قال الله تعالى ﴿ أَلَا بِذِكْرِ اللّٰهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ ﴾ [سورت الرعد الايه:۲۸ پاره۱۳].

② قال الله تعالى ﴿ فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ ﴾ [سورت البقرة الايه:۱۵۲ پاره:۲].

③ قال الله تعالى ﴿ وَلَذِكْرُ اللّٰهِ أَكْبَرُ ﴾ [سورت العنكبوت الايه:۴۵ پاره۲۱].

**د تقرب الى الله ذرايع:**

① تقرب الى الله يعنى د الله پاك قرب حاصلولو سره د ذكر الله په ذريعه د الله پاك تقرب حاصلول هم مراد كيدې شي ②او د نوافل په ذريعه تقرب حاصلول هم مراد كيدې شي

**د ذكر الله قسمونه:** ①د الله پاك ذكر په زړه سره هم وى ②او په ژبې سره هم، ③او افضل دا ده چه په زړه او ژبې دواړو سره د الله پاك ذكر وى او كه په هغې كښې په يو سره وى نو بيا د زړه ذكر افضل دې،

**د زړه د ذكر قسمونه:** اوس د زړه ذكر هم په دوه قسمه دې،

① **ذكر خفى:** يو قسم خو دا دې چه د الله پاك په عظمت كښې، جبروت او ملكوت كښې او د هغه د قدرت په نخښنو كښې كوم چه په زمكه او اسمان كښې دى غور او فكر او استغراق وى داسې قسم ته ذكر خفى وئيلې شي.

**د ذكر خفى فضيلت:** په حديث كښې منقول دى چه هغه ذكر خفى اويا درجې غوره دې كوم چه حفظه (يعنى اعمال ليكونكې ملائك) هم نه اوى پس د قيامت په ورځ چه كله الله پاك ټول مخلوق د حساب كتاب دپاره راجمع كړى نو حفظه (اعمال ليكونكې ملائك) به هغه ټولو ريكارډونو سره حاضر شي كوم چه به هغوى په ليكلو او يادداشت سره محفوظ كړې وى

هغه تول ریکارډونه لیدو سره به الله پاك هغوی ته اوفرمائی چه اوګوری زما د بندګانو د اعمالو په سلسله کښ نور څه باقی پاتې شوي دی (کوم چه ستاسو په دې ریکارډ کښ موجود نه دی) هغوی به عرض اوکړی چه اې ربه! د بندګانو د اعمالو په سلسله کښ چه مونږ ته څه هم معلوم شو او څه چه مونږ یاد اوساتل هغه مونږ په دې ریکارډ کښ راجمع کړل. په دې ریکارډ کښ مونږ داسې یو څیز هم د محفوظ کولو نه نه دې پاتې کړې چه د هغې مونږ ته خبر شوې دې بیا به الله پاك هغه بنده مخاطب کړی او فرمائی به ما سره ستا یو داسې نیکی محفوظ ده چه هغه چاته هم نه ده معلومه او هغه ذکر خفی دې زه به تاته د هغه نیکۍ اجر درکوم

۲ **ذکر عند امر الله او نهیه:** د ذکر بالقلب دویم قسم دا دې چه الله پاك چه بندګانو ته کوم احکامات ورکړې دی که د هغې تعلق د امر د قبیلې سره وی یا د نهی (نه کولو) سره د هغې د ادا کولو په وخت راتلو باندې الله پاك یاد کړې شی د ذکر بالقلب په دې دوه صورتونو کښ اول قسم افضل او اعلی دې

**ذکر لسان کمه اند ازه:** بعض فقهاء کرام فرمائی چه د ذکر اطلاق صرف د ژبې سره د الله پاك ذکر کولو باندې وی. او د قول مختار مطابق د هغې ادنی درجه دا ده چه هغه ئې خپله واوری یعنی د ذکر کونکی د ژبې نه کم از کم په دې درجه کښ جاری شی هغه ئې خپله واوری. د هغه فقهاء کرامو د وینا مطابق د دې نه د کمې درجې ذکر معتبر نه دې.

**په ذکر قلبی ذکر اطلاق:** هم دغه شان دا فقهاء دا وائی چه د زړه د ذکر حیثیت د علم او تصور د قسم. د قلب د فعل خو دې خو هغې ته ذکر نه شی وئیلې کیدې ذکر به هم هغې ته وئیلې شی چه په ژبې سره ادا کړې شی اوس نه شی وئیلې کیدې چه په دې خبرې سره د فقهاء کرام مقصود څه دې؟ که مطلب دا وی چه لغوی طور باندې د زړه په فعل باندې د ذکر اطلاق نه وی نو دا خبره د هغه څیز خلاف ده کومه چه د لغت په کتابونو کښ موجود دې. پس په صحاح او قاموس کښ ئې لیکلې دی چه ذکر د نسیان ضد دې. او ظاهره ده چه دا خپله د قلب فعل دې څکه چه څنګه د نسیان (هیرې) تعلق د قلب سره دې دغه شان د دې ضد یعنی ذکر (یادولو) تعلق هم د زړه سره دې او دا بیله خبره ده چه څه په ژبې سره ادا کیږی هغې ته هم ذکر وئیلې شی

**د ذکر اطلاق په لسان او قلب دواړو کیدل:** حاصل دا دې چه لفظ ذکر د فعل قلب او فعل لسان دواړو ترمینځه مشترك دې څنګه د زړه فعل ته ذکر وئیلې شی هم دغه شان د لسان فعل ته هم ذکر وئیلې شی څنګه چه ذکر باللسان معتبر دې هم دغه شان ذکر بالقلب هم معتبر دې بلکه ذکر بالقلب افضل دې

**دمشائخ طریقت په نیز د ذکر قلبی افضلیت:** مشائخ طریقت رحمهم الله فرمائی چه د ذکر دوه قسمونه

دی قلبی او لساني او د ذکر قلبي اثر د ذکر لساني د اثر نه ډير زيات قوي او افضل دی

**د ذکر قلبي د انکار وجه:** کومو فقهاء کرامو چه د ذکر قلبي نه انکار کړې دې کيدې شي چه د هغوی مراد دا وی چه شريعت مطهره په کومو موقعو باندې د ذکر باللسان تعليم ورکړې دې لکه تسبيحات، قرات او د مانځه نه پس اذکار او اوراد وغيره نو هلته قلبي ذکر نه کافي کيږي بلکه لساني ذکر کيدل پکار دی، د دې فقهاء کرامو مراد دا نه دې چه په ذکر قلبي باندې اخروی ثواب نه مرتب کيږي

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

### [۲۲۱] په ذکر الله کښې د مشغولو خلقو فضيلت

۱ [۱] () ⑴ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ، وَأَبِي سَعِيدٍ (رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا)، قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ⑵ «لَا يَقْعُدُ قَوْمٌ يَذْكُرُونَ اللَّهَ إِلَّا حَفَّتْهُمُ الْمَلَائِكَةُ، ⑶ وَغَشِيَتْهُمُ الرَّحْمَةُ، ⑷ وَنَزَلَتْ عَلَيْهِمُ السَّكِينَةُ، ⑸ وَذَكَرَهُمُ اللَّهُ فِيمَنْ عِنْدَهُ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** ⑴ ابوهريره او ابوسعيد خدري رضي الله عنهما دواړه راويان دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⑵ کله هم چې يو جماعت د الله ﷻ د ذکر د پاره کيني نو هغه فرښتې څنې چاپيره شي کومې چې په لارو کې د اهل ذکر تلاش کوي ⑶ رحمت په هغوئ راخوريږي (هغه خاص رحمت هم چې الذاکرين الله کثيراً والذاکرات د پاره مخصوص دی) ⑷ د هغوئ په زړونو سکينه نازليږي ⑸ او الله تعالى ﷻ د هغه ذکر کونکو تذکره په خپلو ملائکه مقربينو او په ارواح انبياء کې کوي، مسلم

**حل اللغات:** ① حَفَّتْهُمْ: أَيْ: أَحَاطَتْ بِهِمْ: چاپيره کيږي دهغوی نه. ② غَشِيَتْهُمْ: أَيْ: غَطَّتْهُمْ: پټوی او راګيروی هغوی لره. ③ السَّكِينَةُ: أَيْ: الطُّمَأْنِينَةُ وَالْوَقَارُ: سکينه يوخاص قسم تسلي او د زړه اطمينان دې ④ فِيمَنْ عِنْدَهُ: أَيْ: مِنَ الْمَلَائِكَةِ الْمُقَرَّبِينَ وَأَرْوَاحِ الْأَنْبِيَاءِ: څوک چه د الله تعالى سره دی (ددې نه مراد مقربې فرښتې او د انبياء کرامو روحونه دی)

**تسهيلات: قوله: فِيمَنْ عِنْدَهُ:**

**په حديث کښې د قرآن کريم د يو آيات تفسير:** داجمله د ﴿ فَاذْكُرُونِي أَذْكُرْكُمْ ﴾ تفسير دې الله تعالى سره خواکې چه کوم الفاظ دی دې نه مراد هغه فرښتې دی چه دالله تعالى په دربارکښې مقرب دی الله تعالى د فخر اومباهات په توګه دهغه فرښتو په وړاندې د ذاکرينو تذکره څکه کوی چه د انسان دتخليق په وخت کښې فرښتو دانسان د پيدا کولو د مقصد پوښتنه کړې وه اود خپل تقديس اوتسبيح بيان ئې کړې وو

---

۱) اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب فضل الاجتماع على تلاوة القرآن وعلى الذكر (رقم ۳۸-۳۹) - (۲۷۰۰).

## [۲۲۶۲] په نيکو کښې د ذاکرينو سبقت

۲۲۶۲-[۲] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَسِيرُ فِي طَرِيقِ مَكَّةَ، [۳] فَمَرَّ عَلَى جَبَلٍ يُقَالُ لَهُ: جُمْدَانُ، [۴] فَقَالَ: "سِيرُوا، هَذَا جُمْدَانُ، سَبَقَ الْمُفَرِّدُونَ" [۵] قَالُوا: وَمَا الْمُفَرِّدُونَ؟ يَا رَسُولَ اللهِ! [۶] قَالَ: "الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتُ"» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره ﷺ وايي [۲] چې (يو ځل) رسول الله ﷺ د مکې په لار روان وو. [۳] په يو غره باندې تير شو چې د هغه نوم جمدان وو. [۴] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې ځئ چې ځو دا جمدان دی، مفردون سبقت يوورې [۵] صحابه وو ﷺ عرض وکړې چې يا رسول الله ﷺ مفردون څوك دي؟ [۶] نبي کريم ﷺ وفرمايل هغه سړی چې الله ﷻ ډير يادوي او هغه ښځې چې الله ﷻ ډير يادوي، مسلم

**حل اللغات:** ①سِيرُوا: ځئ يعني سفر کوئ ②سَبَقَ: وړاندې شول. ③اَلْمُفَرِّدُونَ: د قافلې څخه وړاندې وتونکی او تيريدونکی.

**تسهيلات:**

**قوله: وَمَا الْمُفَرِّدُونَ؟:**

**د حديث پس منظر او اصلي مفردون:** حضورپاك خپلو صحابه کرامو سره د مکې مکرمې نه واپس مدينې منورې ته تشريف راوړلو چه دحضورپاك تيريدل په "جمدان" غرباندې اوشو دا د مدينې نه د يومنزل په فاصله باندې دې. بعضې صحابه کرامو ته کور يادشو نو زر زر اووتل. حضورپاك اوفرمائيل چه کور رانيزدې شو دا جمدان غر دې زر زر ځئ مفردون وړاندې اووتل اوس د قافلې نه جدا کيدونکو باندې هم د مفردون اطلاق کيدلې شو د صحابه کرامو په ذهن کښې هم دغه وو چه د حضورپاك د کلام مطلب هم دغه دې بياهم د مطلب متعين کولودپاره صحابه کرامو پوښتنه اوکړه يارسول الله! دامفردون څوك دی چه وړاندې اووتل. حضورپاك د اسلوب حکم پهتوګه جواب ورکړو تاسو چه د چاباره کښې تپوس کوئ هغه خوښکاره او واضح دی مفردون هغه خلق دی چه د خپلو بدنونو په ذريعه زمونږ نه وړاندې اووتل د دې تپوس مه کوئ بلکه د تپوس کولوخبره داده چه په نيکو کښې وړاندې کيدونکی مفردون کوم خلق دی نو پوهه شئ چه الله تعالی يادونکی سړی اوښځې دوی په اصل کښې مفردون دی څوك چه په نيکو اعمالوکښې وړاندې شو ځکه چه دغه خلق هم د عامو خلقو د مقاماتونه جدا کيدوسره خپل رب يادوی

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب الحث على ذكر الله تعالى (رقم-۲ - (۴ - (۲۶۷۶)

**[۲۰۳] د الله تعالی ذکر کونکی سړی ژوندی دی او نه ذکر کونکی مړدی**

۲۲۶۳—[۳] (۱) وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : [۲] «مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ، وَالَّذِي لَا يَذْكُرُهُ [۳] مَثَلُ الْحَيِّ وَالْمَيِّتِ» " (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابو موسی ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم سړی چې خپل پروردگار یادوي او کوم سړی چې خپل پروردگار نه یادوي [۳] د دې دواړو مثال د ژوندي سړي او د مړ سړي په شان دی، بخاري مسلم.

**تسهیلات:**

**قوله: مَثَلُ الَّذِي يَذْكُرُ رَبَّهُ:**

**د ذاکر ژوندي سره د تشبیه ورکولو دری وجوهات:** په حدیث مذکور کښې د ذکر کونکې او نه ذکر کونکی مثال د ژوندی او د مړ سره ورکړې شوې دې

① د ژوندی سړی ظاهر په ژوند سره خوشنما وی او باطن ئې په علوم او ادراک سره روښانه وی هم دغه شان د ذکرکونکې ظاهر د اطاعت په نور سره منور وی او باطن کښې د نور معرفت سره روښانه وی اود غیر ذاکر ظاهر د مړی پشان بیکاره وی او باطن کښې ئې تیاره وی.

② د ژوندی انسان په ذریعه ملګرو ته نفع رسي او دشمنانو ته نقصان وی او د مړی نه هیڅ هم نه حاصلیږی هم دغه شان ذاکر انسان سره دوستانو او ملګرو ته فائده او دشمنانو ته نقصان رسی

③ د الله په ذکر سره ذاکرینو ته حیات غیر فانیه حاصلیږی لکه چه وئیلی کیږی اولیاء الله لا یموتون ولکن ینتقلون من دار الی دار (مرقات ج ۴ ص ۵۱)

**[۲۰۴] الله تعالی سره متعلق بنه ګمان ساتل پکاردی**

۲۲۶۴—[۴] (۲) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [۲] «يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي [۳] وَأَنَا مَعَهُ إِذَا ذَكَرَنِي [۴] فَإِنْ ذَكَرَنِي فِي نَفْسِهِ ذَكَرْتُهُ فِي نَفْسِي [۵] وَإِنْ ذَكَرَنِي فِي مَلَإٍ ذَكَرْتُهُ فِي مَلَإٍ خَيْرٍ مِنْهُمْ». " (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابوهریره ﷺ وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله ﷻ فرمایې چې زه د خپل بنده د ګمان نزدې یم چې زما په باره کې یې لري [۳] هر کله چې هغه په زړه یا په ژبه سره ما

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب الدعوات /باب فضل ذکر الله عز وجل (رقم-۶۴۰۷) و مسلم فی کتاب صلاة المسافرین وقصرها /باب استحباب صلاة النافلة فی بیته، وجوازها فی المسجد (رقم) ۲۱۱ - (۷۷۹)

[۲] اخرجه البخاری فی کتاب التوحید /باب قول الله تعالی: ﴿ویحذرکم الله نفسه﴾ [آل عمران: ۲۸] (رقم-۷۴۰۵) ومسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب الحث علی ذکر الله تعالی (رقم-۲ - (۲۶۷۵)

يادوي نو زه د هغه سره يم. [۴] كه هغه په خپل ذات كې يعنى خفيه طور سره په خپل زړه كې ما يادوي نو زه هم هغه په خپل ذات كې يادوم. [يعنى دا نه چې ډواخې هغه ته په پټ طور سره ثواب وركوم بلكه هغه ته از خود د خپل طرف څخه ثواب وركوم د ثواب وركولو كار ل چاته نه سپارم] . [۵] كه هغه ما په جماعت كې يعنى په ظاهري طور سره يادوي نو زه هم د هغه ذكر په جماعت كې كوم، چې د هغه د جماعت څخه ښه دى. بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① ظَنّ: ګمان . ② مَلَأ: أي: جَمَاعَة: ډله، جماعت

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنَا عِنْدَ ظَنِّ عَبْدِي بِي:

**د الله تعالى د بنده سره د هغه د اميد مطابق معامله كول** : زه د خپل بنده ګمان ته نږدې يم. مطلب دا دې چه زما بنده چه زما نسبت څه ګمان او خيال ساتى د هغه دپاره دې هم دغه شان وى او هغه سره هم دغه شان معامله كوم د كوم چه هغه زما نه اميد ساتى او كه زما نه د عفو او معافۍ اميد ساتى نو هغه ته معافى كوم اوكه زما دعذاب ګمان ساتى نوبيا ورته عذاب وركوم.

د دې ارشاد په ذريعه ئې ګويا ترغيب وركړو چه د الله پاك د رحمت او د هغه د فضل او كرم او اميد د هغه په ويره باندې غالب كيدل پكار دى او د دې په باره كښې دا ښه ګمان ساتل پكار دى چه هغه به ماته خپل بې سياره بخښنه او لامحدود رحمت راكوى

د اميد مطلب او د هغې حقيقت دا دې چه عمل اوكړې شى او بيا د بخښنې اميد ساتى. بغير د عمل نه صرف په اميد باندې تكيه كول يخه اوسپنه برابرول دى يعنى د اميد هيڅ فائده نشته.

**قوله:** وَأَنَا مَعَهُ إِذَا ذَكَرَنِي،

**د الله د ذكر فائده:** چه كله هغه ما يادوى نو زه هغه سره يم. د دې مطلب دا دې چه كوم سړې زما په ياد كښې مشغول شى نو زه هغه ته د زياتو نيكو او خيرونو توفيق وركوم په هغه باندې رحمت نازلوم او د هغه مدد او حفاظت كوم

**[۲۳۶۵] ذالله تعالى رحمت بهانه لټوى**

> ۲۳۶۵- [ ۵ ] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " [۲] «يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: " مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا، وَأَزِيدُ، [۳] وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَجَزَاءُهُ مِثْلُهَا أَوْ أَغْفِرُ، [۴] وَمَنْ تَقَرَّبَ مِنِّي شِبْرًا، تَقَرَّبْتُ مِنْهُ ذِرَاعًا، [۵] وَمَنْ تَقَرَّبَ مِنِّي ذِرَاعًا تَقَرَّبْتُ مِنْهُ بَاعًا،

( ) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: ﴿ويحذركم الله نفسه﴾ [آل عمران: ۲۸] (رقم-۷۴۰۵) ومسلم في حدثنا محمد بن عبد الأعلى القيسي. حدثنا معتمر. عن أبيه. بهذا الإسناد ولم يذكر: «إذا أتاني يمشي أتيته هرولة» (رقم-۲۲ - (۲۶۸۷) وابن ماجة في كتاب الأدب/باب فضل العمل (رقم-۳۸۲۱)

**ترجمه** [۱] ابوذر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله جل جلاله فرمايي چا چې يوه نيکي اوکړه نو هغه دپاره يو په اووه سوه دوچنده پورې بلکه د دې څخه زيات ثواب هم ملاوېږي [۳] کوم سړی چې څه بدي وکړي نو هغه ته د هغه بدۍ برابر سزا ورکوم، يا زه هغه هم معاف کوم. [۴] کوم سړی چې د اطاعت او فرمانبردارۍ په ذريعه يوه لويشت (يعني په کم مقدار سره) زما طرف ته راځي، نو زه يو ګز د هغه طرف ته راځم (يعني د هغه د توجه او توجهاتو څخه ډير زيات په هغه د خپل رحمت دروازې خلاصوم)[۵] کوم سړی چې زما طرف ته يو ګز راځي، زه د هغه طرف ته د دواړو لاسونو د خورولو برابر ورځم،

**حل اللغات**: ①وَأَزِيدُ: او زيات ورکوم (چه چاته مې خوښه شي د لس چنده نه تر اووه سوه چنده پورې بلکه ددې نه هم زيات ورکوم) ②تَقَرَّبَ: أَيْ: طَلَبَ الْقُرْبَةَ: رانژدې کيږي (يعني په په اطاعت او فرمانبردارۍ سره ځان رانژدې کول غواړي) ③شِبْرًا: أَيْ: مِقْدَارًا قَلِيلًا: يو لويشت (ددې نه مراد کم نه کم مقدار دې يعني چه څوک لږ هم نږدې کيدل غواړي) ④ذِرَاعًا: شرعي ګز کوم چې ديو لاس برابر وي.

[۱] وَمَنْ أَتَانِي يَمْشِي أَتَيْتُهُ هَرْوَلَةً [۲] وَمَنْ لَقِيَنِي بِقُرَابِ الْأَرْضِ خَطِيئَةً [۳] لَا يُشْرِكُ بِي شَيْئًا [۴] لَقِيتُهُ بِمِثْلِهَا مَغْفِرَةً» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ)

**ترجمه** [۱] کوم سړی چې زما طرف ته خپل طرز سره راځي، زه د هغه طرف ته په منډه سره راځم [۲] او کوم سړی چې د ځمکې برابر هم ګناه سره ما سره يو ځای کيږي،[۳] په شرط د دې چې ما سره يې څوک شريك نه وي جوړکړی، [يعنی په شرك کې مبتلا شوی نه وي] ،[۴] که زه غواړم نو هغه ته به د ځمکې برابر مغفرت ورکړم، مسلم.

**حل اللغات**: ⑤هَرْوَلَةً: وَهِيَ الْإِسْرَاعُ فِي الْمَشْيِ: په تللو کښې جلتي کول يعنی په منډه منډه تلل (دلته دالله تعالی د نزديکت نه مراد دهغه رحمت او ثواب دې) ⑥بِقُرَابِ: د قُرْب نه ماخوذ دې، أَيْ: بِمَا يُقَرِّبُ مِلْأَهَا: د ځمکې برابر ګناه ⑦لَقِيتُهُ: وربه کړم هغه ته (يعنی که زه غواړم نو هغه ته به د ځمکې برابر مغفرت ورکړم)

**تسهيلات**: **قوله**: هَرْوَلَةً:

**دهرولة مفهوم**: منډې ته وائی يعنی کوم سړي چه زما طرف ته زما د عبادت د پاره راځی زه د هغه طرف ته په منډه باندې ورځم ددې حديث خلاصه دا شوه چه د الله تعالی رحمت بهانه لټوی او په منډه منډه د بنده د مغفرت د پاره راځي.

[۲۲۶۶] اولياء الله سره لاس مه اچوه کښې د الله په غضب کښې به راګير شې

۲۲۶۶-[۶] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى قَالَ: "مَنْ عَادَى لِي وَلِيًّا فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ [۳] وَمَا تَقَرَّبَ إِلَيَّ عَبْدِي بِشَيْءٍ أَحَبَّ إِلَيَّ مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ، [۴] وَمَا يَزَالُ عَبْدِي يَتَقَرَّبُ إِلَيَّ بِالنَّوَافِلِ حَتَّى أُحِبَّهُ،

[۱] اخرجه البخاري فی کتاب الرقاق/باب التواضع (رقم-۶۵۰۲)

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى تبارك فرمايي چې كوم سړى چې زما ولي ته ايذا (ضرر) رسوي نو زه د هغه سره د خپل جنګ اعلان كوم [۳] او زما يو مؤمن بنده زما تقرب (د اعمالو څخه) د داسې څه شي په ذريعه نه حاصلوي چې زما په نزد د هغه څيزونو څخه زيات محبوب وي چې ما په هغه فرض كړي دي [۴] او زما هغه بنده چې هغه ته د فرائضو د آدائيګۍ په ذريعه زما تقرب حاصل دی هميشه د نوافلو په ذريعه (يعني د هغه طاعاتو او عباداتو په ذريعه چې د فرائضو څخه علاوه او د فرائضو څخه زايد دي) زما تقرب حاصلوي، تر دې چې زه هغه خپل دوست جوړوم (ځكه چې هغه فرائض او نوافل دواړه اختياروي)

**حل اللغات:** ① عَادَي: أَيْ: آذَي: دشمني كوي يعني تكليف ورته رسوي

> ١ فَإِذَا أَحْبَبْتُهُ كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ، ٢ وَبَصَرَهُ الَّذِي يُبْصِرُ بِهِ، ٣ وَيَدَهُ الَّتِي يَبْطِشُ بِهَا، ٤ وَرِجْلَهُ الَّتِي يَمْشِي بِهَا، ٥ وَإِنْ سَأَلَنِي لَأُعْطِيَنَّهُ، ٦ وَلَئِنِ اسْتَعَاذَنِي لَأُعِيذَنَّهُ، ٧ وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ تَرَدُّدِي عَنْ نَفْسِ الْمُؤْمِنِ، ٨ يَكْرَهُ الْمَوْتَ وَأَنَا أَكْرَهُ مَسَاءَتَهُ، ٩ وَلَابُدَّ لَهُ مِنْهُ» "(رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** [۱] او هر كله چې زه هغه خپل دوست جوړ كړم نو زه د هغه سماعت جوړ شم چې د هغه په ذريعه هغه اوري، [۲] زه د هغه بينائي جوړ شم چې د هغه په ذريعه هغه ويني، [۳] زه د هغه لاس جوړ شم چې د هغه په ذريعه هغه نيول كوي [۴] او زه د هغه پښې جوړ شم چې د هغه په ذريعه ګرځي، [۵] كه هغه زما څخه څه غواړي نو زه يې وركوم، [۶] كه هغه د بديو او مكروهاتو څخه زما پناه غواړي، نو زه هغه ته پناه وركوم [۷] او كوم كار چې زه كونكى يم په هغه كې داسې تردد نه كوم، څرنګه چې د مومن بنده د ساه په قبض كولو كې تردد كوم [۸] ځكه چې هغه مرګ نه خوښوي، حالانكه د هغه ناخوښي زه نه خوښوم [۹] او د مرګ څخه په هيڅ حال كې تيښته نشته ، بخاري

**حل اللغات:** ① سَمْعَهُ: اوريدل د هغه، كوم سره چه هغه آوريدل كوي يعني غوږ ② يَبْطِشُ: أَيْ: يَأْخُذُ: چه نيول ورسره كوي. ③ مَاتَرَدَّدْتُ: التَّرَدُّدُ هُوَ التَّحَيُّرُ بَيْنَ أَمْرَيْنِ لَا يَدْرِي أَيُّهُمَا أَصْلَحُ: په دوه كارونو كښې حيرانيدل چه په دې كښې كوم يو صحيح دې، دې ته تردد وائي. دا تردد دالله تعالى دپاره محال دي، ⑤ مَسَاءَتَهُ: أَيْ: إِيذَاءَهُ بِمَا يَلْحَقُهُ مِنْ صُعُوبَةِ الْمَوْتِ وَكُرْبِهِ: دمرګ په وجه بنده ته تكليف رسيدلو ته مساءت وائي (يعني الله تعالى دا تكليف وركول نه خوښوي ليكن الله تعالى ته ورتلل په مرګ باندې موقوف دي او د مرګ نه خلاصې نشته)

**قوله:** فَقَدْ آذَنْتُهُ بِالْحَرْبِ:

**د تقرب الهي ثمره :**

① د دې يو مطلب هم هغه دې كوم چه د ترجمې نه ظاهر دې يعنې څوك چه زما ولي ته تكليف وركوي د هغه د دې قابل لعنت كار د وجې نه زه هغه سره د جنګ اعلان كوم،

② ب مطلب دا دي چه زه خپل خان سره د هغه د جنگ اعلان کوم پس هغه سړي ...
نه تکليف ورسولو سره گويا ما سره جنگ کونکي دي

**دوه قسمه گناهونو کښې د الله د طرف نه اعلان جنگ**: ائمه کرام ﷺ فرمائی چه داسې هيڅ گناه نشته چه د هغې د مرتکب په باره کښې الله پاک دا فرمانيلي وی چه هغه الله پاک سره اعلان جنگ کوی سوا د دې گناه ①يعنی د الله پاک يو محبوب ته د تکليف ورکولو ② او سود خوړلو نه. د سود خوړونکو په باره کښې هم د الله پاک ارشاد دي چه ﴿ **فاذنوا بحرب من الله ورسوله** ﴾ پس (که تاسو د سود نه منع نه شوئ نو) د الله پاک او رسول ﷺ د طرف نه د جنگ اعلان واورئ

لهذا معلومه شوه چه دواړه گناهونه انتهائی د قابل لعنت او بدترين دی او په دې دواړو کښې د دنيا او آخرت د مکمل تباهئ خطره ده

**د اعلان جنگ کولو وجه:** وجه د هغې دا ده چه د بنده الله پاک سره جنگ کول د هغه په خرابې خاتمې باندې دلالت کوی ځکه چه د چا سره د الله پاک جنگ راغلو هغه کله هم نه شی کاميابيدې

**قوله: مِمَّا افْتَرَضْتُ عَلَيْهِ:**

کوم چه ما په هغه باندې فرض کړی دی، د دې مطلب دا دې چه کوم څيزونه هم ما په هغه باندې واجب کړی دی يعنی اوامر (يعنی د کومو څيزونو د کولو چه مې حکم ورکړې دې د هغې مثل. او مناهی (يعنی د کومو څيزونو نه چې مې د بچ کيدو حکم ورکړې دې د هغې نه، خان ساتل. هغه څيزونو لره اختيارولو سره چه کوم بنده د الله پاک تقرب حاصلوی هغه د تولو نه زيات محبوب دې د هغه څيزونو برابر نور داسې يو څيز نه دې چه هغې لره اختيارولو سره بنده د دې درجې تقرب حاصل کړې شی

**قوله: كُنْتُ سَمْعَهُ الَّذِي يَسْمَعُ بِهِ، الخ:**

**د حديث په مفهوم کښې علماو اقوال:** ① زه د هغه سماعت جوړ شم الخ، (دا خبره د کمال محبت او رضا په خانې کښې ونيلې شی لکه چه د پښتو محاوره ده چه فلانې سړې خو د فلانی لاس او خپې دی اگر چه په حقيقت کښې هغه د هغه لاس او خپې نه جوړيږی خو د دواړو د کمال اتحاد او يوشان والی او د دواړو د انتهائی ملگرتيا د وجې نه داسې ونيلې شی)

②دې باره کښې علامه خطابی رحمه الله فرمائی چه د دې مطلب دا دې چه زه په هغه بنده باندې د هغه افعال او اعمال اسان کړم چه د هغې تعلق د اندامونو سره دې او هغه ته د هغې اعمالو او افعالو د کولو توفيق ورکوم تردې چه گويا زه ئې اندامونه جوړ شم

③ بعض علماء کرامو د دې مطلب دا بيان کړې دې چه الله پاک د هغه بنده حواس او د هغه

اندامونه د خپلې رضا او خوشحالئ وسیله جوړه کړي پس هغه بنده به خپلو غوږونو سره صرف هغه خبره اوري کومه چه د الله پاك په نزد غوره ده یا هم دغه شان هغه په خپلې سترګې سره صرف هغه څیزونه ویني کوم چه الله پاك خوښوي

۴ بعض حضراتو د دې مطلب دا اخستلې دې چه الله پاك په دې بنده باندې خپل محبت غالب کړي چه د هغې په نتیجه کښې دا کیږي چه هغه هغه څیز ته ګوري کوم چه د الله پاك خوښ وي او هم هغه څیز اوري کوم چه الله پاك خوښوي او په هغه معامله کښې الله پاك د هغه مددګار او کارساز وي او د هغه غوږ، د هغه سترګه، د هغه لاس او د هغه خپې د هغه څیزونو نه بچ کوي کوم چه هغه نه خوښوي.

قوله: وَمَا تَرَدَّدْتُ عَنْ شَيْءٍ أَنَا فَاعِلُهُ:

د تردد مطلب: زه تردد کوم یعني الله پاك فرمائي چه زه د خپل هغه عنایت په سبب کوم چه د هغه بنده شامل حال وي د هغه په ژوند ختمولو کښې تردد کوم ځکه چه مرګ د هغه دپاره هیڅ خوښ څیز نه وي خو د مرګ نه چونکه خلاصي نشته او دا مقرر شوې امر دې چه دې دنیا ته چه کوم ساه لرونکې هم راغلې دې هغه به د مرګ غیږې ته ضرور ځي په دې وجه هغه ته مرګ ورکوم،

یا دا چه د هغه مرګ هم د هغه دپاره د خیر سبب وي ځکه چه هغه د مرګ نه پس عظیم الشان سعادتونو او درجات عالیه ته رسیږي، مثلا د الله پاك دربار ته حاضریدل او د جنت وغیره لازوال نعمتونه صرف د مرګ نه پس حاصلیږي.

د تردد تعریف: په دې موقع باندې په دې خبره باندې ځان پوهه کړئ چه د تردد معنی ده د داسې دوه څیزونو ترمینځه اختیار او مخکښې روستو کیدل چه د هغې په باره کښې دا یقیني علم نه وي چه په هغې دواړو کښې کوم یو څیز زیات غوره دې،

اشکال: - ظاهره ده چه د الله پاك په ذات باندې د تردد د دې معنی اطلاق قطعا ناممکن او محال دې؟

جواب: لهذا د الله پاك د دې ارشاد مطلب به دا وي چه زه د خپلې فیصلې په پوره کولو کښې داسې تاخیر او توقف نه کوم څنګه چه یو متردد سړې په خپل کار او معامله کښې کوي خو د مومن بنده د روح قبض کولو معامله داسې ده چه په هغې کښې څه توقف کوم چه په هغه مومن بنده باندې مرګ اسان شي د هغه زړه د مرګ طرف ته مائل شي او پخپله د مرګ راتلو مشتاق شي، او بیا هغه د مقربین په ډله کښې داخلیدو سره په اعلی علیین خپل ځائې جوړ کړي.

[۲۲۶۷] فرښتې د ذکر مجالس لټوي

۲۲۶۷ -[۷] () [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«إِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً يَطُوفُونَ فِي الطُّرُقِ يَلْتَمِسُونَ أَهْلَ الذِّكْرِ، [۳] فَإِذَا وَجَدُوا قَوْمًا يَذْكُرُونَ اللّٰهَ تَنَادَوْا: [۴] هَلُمُّوا إِلَى حَاجَتِكُمْ" [۵] قَالَ: "فَيَحُفُّونَهُمْ بِأَجْنِحَتِهِمْ إِلَى السَّمَاءِ الدُّنْيَا" [۶] قَالَ: "فَيَسْأَلُهُمْ رَبُّهُمْ وَهُوَ أَعْلَمُ بِهِمْ: مَا يَقُولُ عِبَادِي؟" [۷] قَالَ: "يَقُولُونَ: يُسَبِّحُونَكَ وَيُكَبِّرُونَكَ، [۸] وَيَحْمَدُونَكَ وَيُمَجِّدُونَكَ"

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د الله تعالى جل جلاله يو قسم فرښتي (د مسلمانانو په لارو ګرځي) او د ذکر کونکي تلاش کوي (چې د هغوئ سره يو ځاى شي او د هغوئ ذکر واوري) [۳] هر کله چې هغه هغه خلق پيدا کې کوم چې په ذکر الهي کې مشغول وي نو هغه په خپلو کې يو بل ته غږ کولو سره وايي [۴] چې خپل مطلوب طرف ته (يعني د اهل ذکرو سره د ملاقات او د هغوئ د ذکر اوريدو د پاره) زر راشئ [۵] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د دې ځخه روسته هغه فرښتي په هغه خلقو باندې خپل وزرونه د دنيا تر آسمان پورې را خواره کړي [۶] رسول الله ﷺ وفرمايل چې دهغه فرښتو ځخه د هغوئ پروردګار د هغه خلقو په باره کې پوښتنه کوي چې زما بندګان څه وايي (حالانکه پروردګار د هغه فرښتو ځخه ډير زيات د هغه خلقو په حال خبر وي)، [۷] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې فرښتي جواب ورکوي چې هغه ستا تسبيح وايي (پاکي بيانوي) تا يادوي، ستا لويي بيانوي، [۸] ستا تعريف کوي او د بزرګي او عظمت سره تا يادوي،

**حل اللغات:** ① يَطُوفُونَ: أَيْ: يَدُورُونَ: ګرځي راګرځي (په لارو کوڅو کښې). ② يَلْتَمِسُونَ: أَيْ: يَطْلُبُونَهُمْ: ذکر کونکى تلاش کوى. ③ هَلُمُّوا: أَيْ: تَعَالَوْا مُسْرِعِينَ: زر راشئ، ④ فَيَحُفُّونَهُمْ: أَيْ: يَدُورُونَ حَوْلَهُمْ: پتوى هغوى لره يعنى ګير چاپيره تري اودريږى نوهغوى پټ شي يا داچه دهغوى نه ګيرچاپيره خپلې وزرې خوروى د ډير شفقت او احترام نه. ⑤ يُمَجِّدُونَكَ: أَيْ: يَذْكُرُونَكَ بِالْعَظَمَةِ: ستا لوئي او بزرګي بيانوى،

[۱] قَالَ: فَيَقُولُ: هَلْ رَأَوْنِي؟ [۲] قَالَ: فَيَقُولُونَ: لَا وَاللّٰهِ مَا رَأَوْكَ [۳] قَالَ: "فَيَقُولُ: كَيْفَ لَوْ رَأَوْنِي؟" [۴] قَالَ: فَيَقُولُونَ: "لَوْ رَأَوْكَ كَانُوا أَشَدَّ لَكَ عِبَادَةً، [۵] وَأَشَدَّ لَكَ تَمْجِيدًا، وَأَكْثَرَ لَكَ تَسْبِيحًا" [۶] قَالَ: فَيَقُولُ فَمَا يَسْأَلُونَ؟ قَالُوا: يَسْأَلُونَكَ الْجَنَّةَ، [۷] قَالَ: "يَقُولُ: وَهَلْ رَأَوْهَا؟ فَيَقُولُونَ: لَا وَاللّٰهِ يَا رَبِّ مَا رَأَوْهَا [۸] قَالَ: "يَقُولُ: فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا؟" [۹] قَالَ": "يَقُولُونَ: لَوْ أَنَّهُمْ رَأَوْهَا كَانُوا أَشَدَّ عَلَيْهَا حِرْصًا، [۱۰] وَأَشَدَّ لَهَا طَلَبًا، [۱۱] وَأَعْظَمَ فِيهَا رَغْبَةً.

**ترجمه** [۱] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې بيا الله تعالى جل جلاله د هغه فرښتو ځخه پوښتنه کوي چې آيا هغوئ زه ليدلى يم؟ [۲] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د دې په جواب کې فرښتي وايي چې يا قسم په خداى هغوئ ته نه يې ليدلى، [۳] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالى جل جلاله

(۱) اخرجه البخاري في کتاب الرقاق/باب التواضع (رقم-۶۵۰۲) و احمد في المسند ۲/۳۸۲

هغه فرښتو ته فرمايي چې ښه که هغوئ زه ليدلې وي نو بيا به د هغوئ څه کيفيت وو؟[۴] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې فرښتې وايي چې که هغوئ ته ليدلې وې نو بيا ستا عبادت به يې د دې څخه هم زيات کولی،[۵] بزرګي او عظمت سره به يې ډير يادولی او ستا زيات تسبيح به يې کولی،[۶] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې بيا الله تعالیٰ ﷻ د هغوئ څخه پوښتنه کوي چې هغه بندګان زما څخه څه غواړي؟ فرښتې وايي چې هغه ستا څخه جنت غواړي.[۷] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالیٰ ﷻ د هغوئ څخه پوښتنه کوي چې آيا هغوئ جنت ليدلی دی؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل فرښتې وايي چې يا اې پروردګاره! قسم په خدای هغوئ جنت نه دی ليدلی،[۸] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالیٰ ﷻ د هغوئ څخه پوښتنه کوي چې ښه که هغوئ جنت ليدلی وي نو د هغوئ به څه حال وو؟[۹] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې فرښتې جواب ورکوي که هغوئ جنت ليدلی وې نو د جنت د پاره به د هغوئ حرص ډير زياتيدی،[۱۰] د هغه د پاره به د هغوئ خواهش او طلب ډير زيات وو[۱۱] او د هغه طرف ته به يې رغبت ډير زيات وو، [ځکه چې د يو شي په باره کې محض علم راتلل د هغه د ليدو برابر نه دی]،

[۱] قَالَ: فَمِمَّ يَتَعَوَّذُونَ؟" قَالَ: "يَقُولُونَ: مِنَ النَّارِ" [۲] قَالَ: "يَقُولُ: فَهَلْ رَأَوْهَا؟" [۳] قَالَ: "يَقُولُونَ: لَا وَاللّٰهِ يَا رَبِّ مَا رَأَوْهَا؟" قَالَ: "يَقُولُ: فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْهَا؟" [۴] قَالَ: "يَقُولُونَ لَوْ رَأَوْهَا كَانُوا أَشَدَّ مِنْهَا فِرَارًا [۵] وَأَشَدَّ لَهَا مَخَافَةً" [۶] قَالَ: فَيَقُولُ: "فَأُشْهِدُكُمْ أَنِّي قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ". [۷] قَالَ: "يَقُولُ مَلَكٌ مِنَ الْمَلَائِكَةِ: فِيهِمْ فُلَانٌ لَيْسَ مِنْهُمْ، إِنَّمَا جَاءَ لِحَاجَةٍ. [۸] قَالَ: هُمُ الْجُلَسَاءُ لَا يَشْقَى جَلِيسُهُمْ»" (رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ).

**ترجمه** [۱] د دې څخه روسته الله تعالیٰ ﷻ پوښتنه کوي چې ښه دی هغه پناه د څه شي څخه غواړي؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل چې فرښتې جواب ورکوي چې د دوزخ څخه پناه غواړي،[۲] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالیٰ ﷻ د هغوئ څخه پوښتنه کوي چې هغوئ دوزخ ليدلی دی؟[۳] فرښتې وايي چې يا اې زمونږ پروردګاره! قسم په خدای هغوئ دوزخ نه دی ليدلی، نبي کريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالیٰ ﷻ د هغوئ څخه پوښتنه کوي چې که هغوئ دوزخ ليدلی وي نو څه کيفيت به يې وو؟[۴] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې فرښتې جواب ورکوي چې که هغوئ دوزخ ليدلی وي نو د هغه څخه به ډير تښتيدل [يعني د هغه څيزونو څخه به ډير لرې تښتيدل چې دوزخ ته د لويدو سبب جوړيږي][۵] او د هغوئ زړونه به ډير ويرېدونکي وو[۶] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د دې څخه روسته الله تعالیٰ ﷻ فرښتې مخاطب کولو سره فرمايي چې زه تاسو په دې خبره ګواه جوړوم چې ما دوی وبخښل،[۷] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې [په دې اوريدو سره] د هغه فرښتو څخه يوه فرښته وايي چې په ذکر کونکو کې فلانی سړی ذکر کونکی نه دی، ځکه چې هغه د خپل څه کار د پاره راغلو وو ايسا د ذکر کونکو سره کيناستلو، ځکه هغه د دې بشارت مستحق نه دی]،[۸] الله تعالیٰ ﷻ

ورته فرمايي چې اهل ذكر داسې ناست خلق دي چې د هغوئ هم نشين بد نصيب كېږي نه. بخاري

**حل اللغات:** ⑥ الْجُلَسَاءُ: أَيِ الْكَامِلُونَ: د كامل خلقو مجلس،

[۱] وَفِي رِوَايَةِ مُسْلِمٍ، قَالَ: "«إِنَّ لِلّٰهِ مَلَائِكَةً سَيَّارَةً فُضُلًا يَتَتَبَّعُونَ مَجَالِسَ الذِّكْرِ [۲] فَإِذَا وَجَدُوا مَجْلِسًا فِيهِ ذِكْرٌ قَعَدُوا مَعَهُمْ، [۳] وَحَفَّ بَعْضُهُمْ بَعْضًا بِأَجْنِحَتِهِمْ [۴] حَتَّى يَمْلَئُوا مَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ السَّمَاءِ الدُّنْيَا، [۵] فَإِذَا تَفَرَّقُوا عَرَجُوا وَصَعِدُوا إِلَى السَّمَاءِ، [۶] قَالَ: فَيَسْأَلُهُمُ اللّٰهُ، وَهُوَ أَعْلَمُ: مِنْ أَيْنَ جِئْتُمْ؟ [۷] فَيَقُولُونَ: جِئْنَا مِنْ عِنْدِ عِبَادِكَ فِي الْأَرْضِ يُسَبِّحُونَكَ، [۸] وَيُكَبِّرُونَكَ، وَيُهَلِّلُونَكَ، [۹] وَيُمَجِّدُونَكَ، وَيَحْمَدُونَكَ، وَيَسْأَلُونَكَ.

**ترجمه** [۱] او د مسلم په روايت كې دي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل چې د الله تعالی ﷻ ډيري فرشتي داسې دي چې ګرځيدونكي او ډيري زياتې دي (يعني د اعمالو ليكونكو وغيره څخه علاوه دي، د هغوئ مقصد يواځې د ذكر په مجلسونو كې حاضري ده) هغه فرشتي د ذكر مجلسونه تلاش كوي او ګرځي، [۲] هر كله چې يو داسې مجلس پيدا كې چې په هغه كې اكثره ذكر كېږي، نو په هغه كې كيني، [۳] هغه وخت هغه فرښتي په خپلو كې په يو بل باندې خپل وزرونه وغوروي [۴] چې د ذكر والاو د آسمان په منځ كې ځاى د فرشتو څخه ډك شي، [۵] هر كله چې د ذكر د فراغت څخه روسته مجلس برخاست شي، نو هغه فرشتي هم پورته خيژي، او اووم آسمان ته رسيږي، [۶] نبي كريم ﷺ وفرمايل چې الله تعالی ﷻ د هغوئ څخه پوښتنه كوي چې تاسو د كوم ځاى څخه را غلي؟ (حالانكه الله تعالی ﷻ ته د هغوئ په باره كې ښه معلومه ده چې هغه د كوم ځاى څخه راغلي دي) [۷] فرښتي وايي چې مونږ ستا د داسې بنده ګانو څخه راغلي يو چې په زمكه باندې ستا تسبيح وايي، [۸] ستا لوئې بيانوي او ستا كلمه وايي، [۹] تا د بزرګي او د عظمت سره يادوي او ستا څخه يې غواړي،

**حل اللغات:** ⑥ سَيَّارَةً: أَيْ كَثِيرَةَ السَّيْرِ: ډير ګرځيدونكي، د تيزې قافلې په شكل كښې تيز تللو واني ⑧ عَرَجُوا: پورته څي، بره خيجي. ⑨ يُهَلِّلُونَكَ: ستا كلمه يعنی لااله الاالله واني

[۱] قَالَ: وَمَاذَا يَسْأَلُونِي؟ قَالُوا: يَسْأَلُونَكَ جَنَّتَكَ. [۲] قَالَ: وَهَلْ رَأَوْا جَنَّتِي؟ قَالُوا: لَا، أَيْ رَبِّ [۳] قَالَ: وَكَيْفَ لَوْ رَأَوْا جَنَّتِي؟ [۴] قَالُوا: وَيَسْتَجِيرُونَكَ. قَالَ: وَمِمَّ يَسْتَجِيرُونِي؟ قَالُوا: مِنْ نَارِكَ. [۵] قَالَ: وَهَلْ رَأَوْا نَارِي؟ قَالُوا: لَا [۶] قَالَ: فَكَيْفَ لَوْ رَأَوْا نَارِي؟ قَالُوا: يَسْتَغْفِرُونَكَ"

**ترجمه** [۱] الله تعالی ﷻ پوښتنه كوي چې هغه زما څخه څه غواړي؟ فرښتي وايي چې هغه ستا څخه ستا جنت غواړي، [۲] الله تعالی ﷻ فرمايي چې آيا هغوئ زما جنت ليدلی دی؟ [۳] فرښتي وايي چې يا پرودرګاره! الله تعالی ﷻ فرمايي چې كه هغوئ جنت ليدلی وي نو د هغوئ به څه حال وي؟ [۴] بيا فرشتي وايي چې هغه ستا پناه هم غواړي، الله تعالی ﷻ فرمايي چې هغوئ د څه شي څخه زما پناه غواړي؟ فرشتي وايي چې هغه ستا د اور

څخه پناه غواړي، [۵] الله تعالی ﷻ فرمايي چې آيا هغوی زما اور ليدلی دی؟ [۶] فرښتې عرض کوي چې نا، [۶] الله تعالی ﷻ فرمايي چې که هغوی زما اور ليدلی وي نو بيا به د هغوی څه کيفيت وو؟ فرښتې وايي چې هغوی ستا څخه مغفرت (بخښنه) هم طلب کوي.

**حل اللغات:** ⓫ يَسْتَجِيرُونَكَ: ستا څخه نې پناه غوښتله، امن نې غوښتلو

[۱] قَالَ: فَيَقُولُ: قَدْ غَفَرْتُ لَهُمْ، فَأَعْطَيْتُهُمْ مَا سَأَلُوا، [۲] وَأَجَرْتُهُمْ مِمَّا اسْتَجَارُوا [۳] قَالَ: يَقُولُونَ: رَبِّ فِيهِمْ فُلَانٌ عَبْدٌ خَطَّاءٌ، [۴] وَإِنَّمَا مَرَّ فَجَلَسَ مَعَهُمْ. [۵] قَالَ: فَيَقُولُ: وَلَهُ غَفَرْتُ، [۶] هُمُ الْقَوْمُ لَا يَشْقَى بِهِمْ جَلِيسُهُمْ».

**ترجمه** [۱] نبي کريم ﷺ فرمايي چې الله تعالی ﷻ وفرمايي چې ما هغه وبخښل، ما هغوی ته هغه څيز عطا کړ کوم چې هغوی وغوښتلی (يعني جنت) [۲] او ما هغوی ته د هغه څيز څخه پناه ورکړه چې د هغه څخه هغوی پناه وغوښته (يعني د اور څخه) [۳] نبي کريم ﷺ فرمايي چې (په دې اوريدو سره) فرښتې عرض کوي چې اې پروردګاره! په هغوی کې فلانی بنده خو ډير ګنهګار دی؟ [۴] هغه خو د څه کار د پاره تيريدلی چې هلته کينا ستلو، [۵] نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د هغه په جواب کې الله تعالی ﷻ فرمايي چې ما هغه هم وبخښی [۶] ځکه چې هغه ذکر کونکی داسې خلق دي چې د هغوی په سبب او د هغوی په برکت د هغوی هم نشين هم بې نصيب کيږي نه.

**حل اللغات:** ⓫ خَطَّاءٌ: أَيْ: كَثِيرُ الذُّنُوبِ: ډير ګناهونه کونکې، ⓬ لَا يَشْقَى: أَيْ: لَا يَتْعَبُ: نه بدبخته کيږي، بې نصيبه کيږي نه.

**تسهيلات: قوله: فَيَسْأَلُهُمْ:**

**فرښتو نه د خپل بندګانو متعلق د پوښتنه کولو وجه:** يعنی الله تعالی ته ښه معلوم دی ليکن بيا هم دَ فرښتو نه دَ يو يو څيز باره کښې تپوس کوی دې دَ پاره چه فرښتو ته يادګيرنه ورکړی چه دَ آدم عليه السلام دَ تخليق په وخت تاسو وئيلی وو چه دا انسان به فساد کوی عبادت به نه کوی اوس ګورئی چه څنګه په عبادت کښې اخته دي.

**قوله: فُضُلًا:** دا لفظ دَ ملائکو دَپاره دويم صفت دې په فاء باندې فتحه ده او په ضاد باندې سکون دې دويمه نسخه فاء باندې فتحه او ضاد باندې پيش دې. فَضُلًا دَ دواړو ترجمه فاضل اوزائد دي يعنی دا فرښتې دَ خلقو دَ اعمالو ليکلو وغيره تولو ذمه وارو نه فارغ او زياتی فرښتې دی چه هم دَ دغه مجالسو دَپاره مقرر دی دَدوی نور څه کار نشته دې.

**[۲۲۶۸] په عبادت کښې دَ قبض او بسط کيفيت راځي**

۲۲۶۸ - [۸] (۱) [۱] وَعَنْ حَنْظَلَةَ بْنِ الرَّبِيعِ الْأُسَيْدِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: [۲] «لَقِيَنِي أَبُو بَكْرٍ قَالَ: كَيْفَ أَنْتَ يَا حَنْظَلَةُ؟ [۳] قُلْتُ: نَافَقَ حَنْظَلَةُ. [۴] قَالَ: سُبْحَانَ اللَّهِ مَا تَقُولُ؟! [۵] قُلْتُ: نَكُونُ عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ

[۱] اخرجه مسلم في باب فضل دوام الذكر والفكر في أمور الآخرة والمراقبة وجواز ترك ذلك في بعض الأوقات والاشتغال بالدنيا (رقم-۱۲ - (۲۷۵۰)) والترمذي في السنن رقم الحديث ۲۶۳۲ و أحمد في المسند: ۳۴۶/۴.

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يُذَكِّرُنَا بِالنَّارِ وَالْجَنَّةِ كَأَنَّا رَأْيُ عَيْنٍ،[٦] فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَافَسْنَا الْأَزْوَاجَ وَالْأَوْلَادَ وَالضَّيْعَاتِ، نَسِينَا كَثِيرًا.

**ترجمه** [١] حنظله بن ربيع اسيدي ﷺ وايي [٢] چې (يو ځل) ما سره د حضرت ابوبكر صديق ﷺ ملاقات وشو هغه زما څخه پوښتنه وكړه چې اې حنظله! ستا څه حال دى؟ (يعنې نبي كريم ﷺ چې كوم وعظ او نصيحت كوي په هغه ستا استقامت څرنګه دى، [٣] ما اووېل چې حنظله خو منافق شو (يعنې د حال په اعتبار سره نه د ايمان په اعتبار سره،) [٤] حضرت ابوبكر صديق ﷺ اووېل چې سبحان الله! حنظله دا ته څه وايې؟ (يعنې ابوبكر ﷺ په لوى تعجب سره پوښتنه وكړه چې دا څه خبره كوي، د دې مطلب خو بيان كه؟) [٥] ما اووېل چې (په دې كې د تعجب خبره نشته، حقيقت دا دى) چې هر كله مونږ د رسول الله ﷺ سره يو او كوم وخت چې نبي كريم ﷺ مونږ د دوزخ د عذاب څخه ويرېږي يا كوم وخت چې نبي كريم ﷺ مونږ ته د جنت د نعمتونو بشارت اوروي، نو هغه وخت داسې محسوسيږي چې ګويا مونږ جنت او دوزخ خپلو سترګو سره وينو. [٦] خو كله چې مونږ د نبي كريم ﷺ د صحبت څخه جدا شو، او په خپلو ښځو، خپل اولاد، خپلو زمكو او خپلو باغاتو كې مشغول شو نو ډير څه هير كړو (يعنې په خپل دنياوي مشاغلو كې مشغوليدو سره د هغه خبرو ډيره حصه هيره كړو، كومه چې نبي كريم ﷺ مونږ ته د تذكير او نصيحت په طور فرمايي او په مونږ هغه كيفيت باقي نه پاتې كېږي كوم چې دنبي كريم ﷺ په صحبت كې وي

**حل اللغات:** ① نَافَقَ: أَيْ: صَارَ مُنَافِقًا: منافق شو (دا نفاق په اعتبار دحال سره دې په اعتبار د ايمان سره نه دې) ② عَافَسْنَا: أَيْ: خَالَطْنَاهُمْ: يوځاى شو او مشغول شو دهغوى سره. ③ الضَّيْعَاتِ: د ضَيْعَةٌ جمع ده، أَيْ: الْأَرَاضِي وَالْبَسَاتِينَ: زمكې او باغونه وغيره (كوم كار كښې چه د بنده معاش وى هغې ته ضَيْعَةٌ وائى لكه زميندارى، تجارت وغيره)

[١] قَالَ أَبُو بَكْرٍ: فَوَاللَّهِ إِنَّا لَنَلْقَى مِثْلَ هَذَا، [٢] فَانْطَلَقْتُ أَنَا وَأَبُو بَكْرٍ حَتَّى دَخَلْنَا عَلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -. [٣] فَقُلْتُ: نَافَقَ حَنْظَلَةُ يَا رَسُولَ اللَّهِ! [٤] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (وَمَا ذَاكَ؟) [٥] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ! نَكُونُ عِنْدَكَ تُذَكِّرُنَا بِالنَّارِ وَالْجَنَّةِ كَأَنَّا رَأْيُ عَيْنٍ، [٦] فَإِذَا خَرَجْنَا مِنْ عِنْدِكَ عَافَسْنَا الْأَزْوَاجَ وَالْأَوْلَادَ وَالضَّيْعَاتِ نَسِينَا كَثِيرًا.

**ترجمه** [١] حضرت ابوبكر ﷺ وفرمايل اوس چې تا خپل دا حالت بيان كړى دى نو واوره قسم په خداى مونږ هم دې حالت ته رسيدلى يو (يعنې زمونږ هم دا حال دى چې حاضر او غائب كې فرق دى) [٢] د دې څخه روسته زه او حضرت ابوبكر ﷺ دواړه ولاړو تر دې چې د رسول الله ﷺ په خدمت كې حاضر شو. [٣] ما عرض وكړو چې يا رسول الله! ﷺ حنظله منافق شو. [٤] رسول الله ﷺ (هم ډير په تعجب سره) پوښتنه وكړه چې د دې خبرې څه مطلب دى؟ [٥] ما عرض وكړو چې حضرت مونږ چې ستا سره يو او ته مونږ ته په طور د تذكير او

نصيحت د جنت او دوزخ په باره کې بنايي، نو داسې محسوسيږي، لکه چې هغه مونږ په خپلو سترګو سره وينو. [٦] خو کله چې مونږ ستا څخه لاړ شو او خپلو ښځو، اولاد، خپلو ملکو او په باغاتو کې مشغول شو نو مونږ د نصيحت ډيري خبري هيري کړو، (په دي اوريدو سره).

**حل اللغات:** ⑦ تُذَكِّرُنَا: چه ته نبي مونږته نصيحت کوي يا مونږ تري ويروي.

[١] فَقَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ، [٢] لَوْ تَدُومُونَ عَلَى مَا تَكُونُونَ عِنْدِي وَفِي الذِّكْرِ [٣] لَصَافَحَتْكُمُ الْمَلَائِكَةُ عَلَى فُرُشِكُمْ وَفِي طُرُقِكُمْ، [٤] وَلَكِنْ يَا حَنْظَلَةُ! سَاعَةً وَسَاعَةً " ثَلَاثَ مَرَّاتٍ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه:** [١] رسول الله ﷺ وفرمايل چې قسم دی په هغه ذات چې د هغه په قبضه کې زما ساه ده، [٢] که په تاسو باندې هميشه دا کيفيت طاري (خور) وي، کوم چې زما په صحبت او حالت ذکر کې په تاسو وي (يعني تاسو هر وخت صاف دل او د الله څخه بيره کونکی اوسی) [٣] نو يقيناً فرښتي به ستاسو سره ستاسو په بسترو او ستاسو په لارو کې مصافحه جوړ، تازه، پخير) کوي، [٤] ليکن اې حنظله! دا يو ساعت دی او هغه يو ساعت دی، او نبي کريم ﷺ (يعني يَا حَنْظَلَةُ سَاعَةً وَسَاعَةً) دري خله وفرمايل، مسلم

**حل اللغات:** ⑤ لَوْتَدُومُونَ: که تاسو هميشه يئ. ⑥ فُرُشِكُمْ: په بسترو ستاسو کښې. ⑦ سَاعَةً وَسَاعَةً: هغه بل وخت وو او دا بل وخت دي.

**دراوي مختصر تعارف:**

**حنظله بن ربيع:** نوم حنظله کنيت ابوربيع.پوره نوم حنظله بن ربيع بن صيفي بن رباح بن حارث دي.قياس دادې چه دَ اسلام په شروع کښې هغه په اسلام باندې مشرف شوي وو.دَاسلام راوړلونه پس دَ حضور ﷺ مراسلات ليکلوعهده باندې وو.(اسد الغابه ٢/٢٢) دغزوه طائف نه وړاندې حضورپاک ﷺ هغه بنوسقيف له دَ سفير په توګه اوليګلو چه هغه خلق په صلح باندې تيار دی که نه.(اصابة ٢/٤٣) دَحضرت عمر ﷺ په زمانه کښې دَ قادسيه په جنګ کښې هم شرکت کړې وو.(اصابة ٢/٤٣).دَ هغه ايماني واقعه په پورتني حديث کښې ذکر ده دَ خپل زړه کيفيت کورته په تلو سره بدن ليدلو سره هغوی خپل ځان منافق ګڼړلو.

**وفات:** دَ کوفې دَ آباديدو نه پس ئې کوفې ته تشريف يوړو اوچه کله دَ جنګ جمل نه پس قرقيبا ته لاړو نو بيا دَ حضرت امير معاويه ﷺ په زمانه کښې هم هلته وفات شو.(اصابة ٢/٤٣)

**روايات:** دَ هغه نه اته روايات نقل دی.

**تسهيلات:**

**قوله: حَنْظَلَةُ:**

**په حديث کښې د حنظله مصداق** دي نه مراد هغه حنظله نه دي کوم چه غسيل الملائکه وو بلکه دا دويم حنظله دي کوم چه کاتب وحی وو

**قوله: سَاعَةٌ وَسَاعَةٌ:** يعنی "تارةً منافسةً وتارةً معاشفةً" مطلب دادې چه کله هغه اوکله دغه يعنی که کيفيت حضوری دائمی پاتې شی نوفرښتې به په بيدارئی کښې تاسو سره مصافحه اوکړی اوداد حکمت اومصلحت خلاف دی. لهذا کله کيفيت حضوری اوکله کيفيت غيرحضوری کله کيفيت دَ قبض اوکله دَبسط زيات بهتروی.

**قوله: ثَلَاثَ مَرَّاتٍ:** يعنی حضورپاك داجمله درې ځل اوفرمائيله.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۲۶۹] دَ الله تعالی دَ ذکر اهميت**

[۲۲۶۹-۹] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] («أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخَيْرِ أَعْمَالِكُمْ، [۳] وَأَزْكَاهَا عِنْدَ مَلِيكِكُمْ؟ [۴] وَأَرْفَعِهَا فِي دَرَجَاتِكُمْ [۵] وَخَيْرٍ لَكُمْ مِنْ إِنْفَاقِ الذَّهَبِ وَالْوَرِقِ، [۶] وَخَيْرٍ مِنْ أَنْ تَلْقَوْا عَدُوَّكُمْ [۷] فَتَضْرِبُوا أَعْنَاقَهُمْ وَيَضْرِبُوا أَعْنَاقَكُمْ " [۸] قَالُوا: بَلَى. قَالَ " ذِكْرُ اللّٰهِ» ) [۹] رَوَاهُ مَالِكٌ، وَأَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، إِلَّا أَنَّ مَالِكًا وَقَفَهُ عَلَى أَبِي الدَّرْدَاءِ.

**ترجمه** [۱] ابودرداء ﷺ وايې چې (يوه ورځ) رسول الله ﷺ (صحابه ﷺ مخاطب کولو سره) وفرمايل [۲] چې آيا زه تاسو د يو داسې عمل خبره نه کړم چې ستاسو په اعمالو کې ډير بهتر ده [۳] ستاسو د بادشاه په نزد ډير پاکيزه ده [۴] ستاسو درجات ډير بلند کونکې ده [۵] او ستاسو د روپۍ او سره زر خرچ کولو څخه بهتر دی [۶] او د دې څخه بهتر دی چې ستاسو د خپلو دښمنانو (يعني کفارو سره) مقابله شی [۷] او تاسو د هغوی څټونه ووهی او هغه ستاسو څټونه ووهي؟ [۸] صحابه وو ﷺ عرض وکړی چې هو، مونږ ته وښايې چې هغه کوم عمل دی؟ نبي کريم ﷺ وفرمايل چې د الله ذکر. [۹] دا روايت مالك، احمد، ترمذي او ابن ماجه نقل کړی دی، ليکن امام مالك دا روايت د ابودرداء ﷺ څخه په موقوف طريقه نقل کړی دی، ابوداؤد

**حل اللغات:** ① أَزْكَاهَا: أَيْ: أَنْمَاهَا وَأَنْقَاهَا: زياتيدونکې او پاکيزه. ② عِنْدَ مَلِيكِكُمْ: أَيْ: فِي حُكْمِ رَبِّكُمْ: ستاسو د بادشاه يعنی د رب په نزد

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۴۳۷ وابن ماجة فی کتاب الأدب/باب فضل الذکر (رقم-۳۷۹۰) ومالك فی الموطا واحمد فی المسند: ۴۴۷/۶

**تسهیلات:**

**قوله: ذِكْرُ اللّٰهِ:**

**په حدیث کښې یو اشکال** :په ظاهره داسې معلومیږي چه دَدې ذکر نه ذکر قلبی اولسانی مراد دي چه په زړه او ژبه دواړو سره وي خکه چه په اذکاروکښې هم دغه ذکردَ تولو نه افضل دي

اوس سوال دادې چه ذکرالله مستحب دي اوجهاد فرض دي دمستحب درجه دَ فرض نه څنګه زیاته شوه؟

**داشکال جواب**:دَدې جواب دادې چه یو درجه اومقام دَ حیثیت معامله وی اویو دَ ثواب معامله وی جهاد دَ خپل حیثیت په اعتبارسره لوئی دي او فرض دي لیکن کله کله الله تعالی په یومستحب عمل باندې هغه ثواب ورکوی چه دَ فرض نه زیات وی دا اضافی زیاتی ثواب دي دکوم دپاره چه هیڅ قاعده نشته دي لهذا په دې حدیث سره دَ جهاد مقدس مرتبه نه دی غورزول پکار څنګه چه ئې بعض خلق راغورزوی. علامه طیبی رحمه الله فرمائی

"هذالحديث يدل على ان الثواب لايترتب على قدالنصب فى جميع العبادات بل قديأجراللـه تعالى على قليل الاعمال اكثرمما يأجره على كثيرها"

**ترجمه** [۱] داحدیث په دې خبره باندې دلالت کوی چه په عباداتوکښې دَ ثواب مرتبه هرځائی دَ عبادت په مقدار باندې نه وی بلکه کله کله الله تعالی په لږ عمل باندې هغه ثواب ورکوی چه په ډیرو اعمالوباندې نه ورکوی. لکه دَ جهاد په مقابله کښې دلته دَ ذکرالله اضافی ثواب دي

### [۲۲۷۰] بهترین خلق

۲۲۷۰-[ ۱۰ ] ( )[۱]وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲]«جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-، فَقَالَ: أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ؟[۳] فَقَالَ: " طُوبَى لِمَنْ طَالَ عُمُرُهُ، وَحَسُنَ عَمَلُهُ "[۴] قَالَ: يَا رَسُولَ اللّٰهِ! أَيُّ الْأَعْمَالِ أَفْضَلُ؟[۵] قَالَ: "أَنْ تُفَارِقَ الدُّنْيَا وَلِسَانُكَ رَطْبٌ مِنْ ذِكْرِ اللّٰهِ» "(رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] عبد الله بن بسر رضی الله عنه وایې [۲] چې (یو خل) د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې یو صحرایي راغلو عرض یې وکړو چې یا رسول الله! صلی الله علیه وسلم کوم سړی ښه دی؟[۳] رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل خوش بختي ده د هغه سړي د پاره (یعني ښه هغه سړی دی) چې د هغه عمر اوږد شو، او د هغه اعمال نیک شو[۴] هغه عرض وکړی چې یا رسول الله! صلی الله علیه وسلم کوم عمل ښه دی؟[۵] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل دا چې ته د دنیا څخه جدا کېږي نو ستا ژبه د الله په ذکر سره تر (لونده) وي، ترمذي احمد.

( ) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۳٤۳۱ والدارمى فى السنن رقم الحديث ۲۷٤۸ واحمد فى المسند : ٤۳/٥

**حل اللغات** ① عَالَ چه اورد شی، زیات شی، ② تُفَارِقُ: چه ته جدا شې د دنیا نه (یعنی وفات شې). ③ رَطْبٌ: لمده وی، تر وی (یعنی ستا په ژبه د الله ذکر وی).

**تسهیلات: قوله: وَلِسَانُكَ رَطْبٌ:**

**د ژبې د رطوبت مفهوم:** دا د مرگ پورې په ذکر باندې د مداومت څخه کنایه ده په دې طریقه چه ذکر الهی نه دې ژبه خشکه نشی تر دې چه ساه ترې اوخی
دا کنایه ده د ژبې د روانی نه چه هر وخت ستا ژبه د الله په ذکر سره لونده وی.

**قوله: مِنْ ذِكْرِ اللهِ**

**د ذکر په مصداق کښې دوه احتمالات:** ① دلته د ذکر څخه ذکرجلی مراد دې یعنی چې ژبه ئې د الله تعالی په ذکر کښې مشغوله وی.
② د ذکر څخه ذکرخفی مراد دې. یعنی چې زړه کښې دالله تعالی د یاد څخه غافله نه وی بلکه هر وخت ورته الله تعالی یاد وی.

**[۳۷] دَالله تعالی دَذکر حلقې دَ جنت باغونه دی**

۳۷- [۱۱] (۱) ① وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«إِذَا مَرَرْتُمْ بِرِيَاضِ الْجَنَّةِ فَارْتَعُوا" ③ قَالُوا: وَمَا رِيَاضُ الْجَنَّةِ؟ ④ قَالَ: "حِلَقُ الذِّكْرِ»" (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** ① انس رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې تاسو د جنت په باغونو تیریږی نو میوي ښې خوری، ③ صحابه وو رضی الله عنهم عرض وکړی چې یا رسول الله ﷺ د جنت د باغونو څخه څه مراد دي؟ ④ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې د ذکر حلقې. ترمذي

**حل اللغات:** ① فَارْتَعُوا: ښه اوڅرېږئ، یعنی ښه خوراکونه پکښې اوکړئ (دا کنایه ده د ډیر زیات ذکرکولو نه)، ② حِلَقُ: دا د حَلَقَة جمع ده، دخلقو یو ځائې کیناستو او جماعت ته وائی.

**تسهیلات: قوله: حِلَق:**

**د حلقه ذکر په مصداق کښې دوه اقوال:**

① دَدې حدیث رومبې مصداق دَذکرهغه حلقې دی چه خاص کر هم دَدې مقصد دَپاره کینولې شی لکه دَاهل حق په خانقاهونو کښې چه کیږی
② دَدې دویم مصداق دَدینی مدارس هغه طالبان او استاذان دی چه دَدین سبق ونیلو او نورو ته خودلو کښې مشغول وی حفظ ناظره او دَ درس نظامی کتابونو حلقې لکی بعضې خلق دَ خپل وعظ په حلقو باندې دا حدیث لګوی که دَهغوی په حلقو کښې ذکر کیږی یا

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۷۷ واحمد فی المسند : ۶۵/۳

تعليم او تعلم سلسله جاري وي نو بيشكه هغوى به ددې حديث په فضيلت كښې راشي ليكن كه يو جاهل سړې په يو مجلس كښې وعظ كوي په هغې كښې الټه او نيغې خبرې كوي نو دې فضيلت نه څه چه د ګناه سبب دې دکوم نه چه فرښتې تختې

[۲۳۷۲] دالله تعالى د ذكر نه خالي ناسته د خسارې سبب دې

۲۲۷۱ - [۱۲] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ): ② "«مَنْ قَعَدَ مَقْعَدًا لَمْ يَذْكُرِ اللَّهَ فِيهِ ③ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللَّهِ تِرَةٌ، ④ وَمَنِ اضْطَجَعَ مَضْجَعًا لَا يَذْكُرُ اللَّهَ فِيهِ ⑤ كَانَتْ عَلَيْهِ مِنَ اللَّهِ تِرَةٌ»" رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ).

**ترجمه** ① او حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② كوم سړى چې په يو مجلس كې كيني او په هغه كې الله جل جلاله ياد نه كړي، ③ نو د هغه ناسته به د الله تعالى جل جلاله د طرف څخه (يعني د الله تعالى جل جلاله د حكم او د هغه د قضاء وقدر د سبب څخه د هغه د پاره به د حسرت او خسارې خبره وي، ④ او كوم سړى چې په خپله خوابګاه كې پريوزي او په هغه كې الله تعالى جل جلاله ياد نه كړي، ⑤ نو دا به د الله تعالى جل جلاله د طرف څخه د هغه د پاره د حسرت او خسارې خبره وي، ابوداؤد.

**حل اللغات**: ① مَقْعَدًا: أَيْ: مَجْلِسًا: د كيناستو ځاى ته مقعد وائى. دلته ترې مجلس مراد دى ② تِرَةٌ: أَيْ: نُقْصَانٌ وَحَسْرَةٌ: نقصان او تاوان ته وائى. ③ اضْطَجَعَ: څملى. پريوځى. ④ مَضْجَعًا: أَيْ: مَكَانَ ضِجْعَةٍ: د څملاستلو ځاى ته وائى.

**تسهيلات**:

**قوله**: تِرَة:

**د حديث يو آسانه توجيه**: نقصان او خسارې ته وائى په كانت كښې به ضمير مؤنث منلې شي كوم چه به قعدةً يا اضطجاعةً طرف ته راجع وى او ترةً به منصوب كيدو سره د دې خبروى دا توجيه آسانه ده نور توجيهات هم شته غرض دا چه كوم يو انسان هم په يو مجلس كښې كينى هغه له پكار دى چه دالله تعالى څه نه څه ذكر او كړى ګنى هم دغه ناسته به د پاره د نقصان جوړ شي

[۲۳۷۳] دالله تعالى د ذكر څخه د غافله مجلس مذمت

۲۲۷۲ - [۱۳] (۲) ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ (صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ): ② "«مَا مِنْ قَوْمٍ يَقُومُونَ مِنْ مَجْلِسٍ لَا يَذْكُرُونَ اللَّهَ فِيهِ ③ إِلَّا قَامُوا عَنْ مِثْلِ جِيفَةِ حِمَارٍ ④ وَكَانَ عَلَيْهِمْ حَسْرَةً»" (رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ).

(۱) اخرجه ابو داود في كتاب الأدب/باب كراهية أن يقوم الرجل من مجلسه ولا يذكر الله (رقم-۴۸۵۶)

(۲) اخرجه ابو داود في كتاب الأدب/باب كراهية أن يقوم الرجل من مجلسه ولا يذكر الله (رقم-۴۸۵۵) واحمد في المسند: ۳۸۹/۲

**ترجمه** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم خلق چې د يو نشست (مجلس) څخه لاړ شي، او په هغه ناسته کې د الله تعالى ﷻ ذکر نه وي، [۳] نو د هغه خاي څخه د هغوئ اودريدل د مردار خره څخه د اودريدلو په شان دي [۴] او په هغوئ حسرت او افسوس دي، ابوداؤد.

**حل اللغات:** ① جِيفَةِ حِمَارٍ: مردار خر (چه مردار شوې وي او سخا بوئي ترې خيجي) ② حَسْرَةٌ: افسوس، نقصان.

**تسهيلات:** **قوله:** إِلَّا قَامُوا عَنْ مِثْلِ جِيفَةِ حِمَارٍ،

**دغافل مجلس د مرده او سره تشبيه:** په كوم مجلس كښې الله ياد نه كړې شى نو هغه د مردار خر پشان دې او خلق چه كوم هلته نه پاسى هغه داسې حال كښې پاسى چه هغه مردار خر ئې اوخوړو.

**د خره تخصيص هرې وجوهات:** په دې حديث كښې د مردار ځناورو نه ئې خر په خصوصيت سره ذكر كړو

① ځكه چې دا مردار د ټولو نه زيات بيكاره دې

② دا په ځناورو كښې خسيس ځناور دې

③ د ده سره د شيطان مخالطت ډير زيات وي هم دا وجه ده چه د دې هينړيدو په وخت كښې د تعوذ حكم راغلې دې. (مرقات ج۵ ص ۲۲)

[٣٤] هرې فالتو كلام د وبال سبب دي

٣٤—[ ١٤ ] (١) [۱] وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ): "[۲] «مَا جَلَسَ قَوْمٌ مَجْلِسًا لَمْ يَذْكُرُوا اللهَ فِيهِ [۳] وَلَمْ يُصَلُّوا عَلَى نَبِيِّهِمْ [۴] إِلَّا كَانَ عَلَيْهِمْ تِرَةً [۵] فَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُمْ وَإِنْ شَاءَ غَفَرَ لَهُمْ» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] حضرت ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم خلق چې په يوه مجلس کې کيني او هلته نه د الله تعالى ﷻ ذكر وكړى [۳] او نه په خپل نبي ﷺ باندې درود اووائي، [۴] نو هغه مجلس به د هغوئ د پاره د افسوس باعث وي، اوس خواه الله تعالى ﷻ هغه په عذاب کې مبتلا كړي او كه يې وبخښي، ترمذي،

**حل اللغات:** ① لَمْ يُصَلُّوا: درود اونه وائى

**تسهيلات:** **قوله:** فَإِنْ شَاءَ عَذَّبَهُمْ

**دمجلس په اختتام د ذكر الله اهميت:** امام طيبى فرمائى چه دا په تغليظ او تشديد باندې

(١) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٤٤٠ واحمد فى المسند: ٤٥٣/٢

حمل دې په دې حديث کښې نې د صلاة على الرسول ذکر کړو لقوله تعالى: ((وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَلَمُوا أَنفُسَهُمْ جَاءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللَّهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللَّهَ تَوَّابًا رَحِيمًا)): د دې نه دې خبرې ته اشاره ده چه چونکه عموما په مجالسو کښې دروغ او غيبت وغيره ګناهونه کيږي لهذا په مجالسو کښې د حمد او درود شريف ذکر هم کول پکار دى د دې په برکت سره به مجالسو والا ګناهونه معاف شي. که مجلس کښې ذکر نه کوي نو ګناه ترې اوشوه او کفاره نې ادا نه شوه د دې وجې د عذاب سخته ويره ده اوس نې الله په خپل فضل سره معاف کولې هم شي او عذاب هم ورکولې شي ليکن د ذکر کولو په صورت کښې يقيني طور عذاب نه ورکوي بلکه معاف به نې کړي کم از کم د مجلس په خاتمه کښې دعا ضرور لوستل پکار دي

**[۲۲۷۵] د درې قسمه اعمالو فضيلت**

۲۲۷۵-[۱۵] ()[۱] وَعَنْ أُمِّ حَبِيبَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا -، قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللهِ (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ): [۲] "«كُلُّ كَلَامِ ابْنِ آدَمَ عَلَيْهِ لَا لَهُ،[۳] إِلَّا أَمْرٌ بِمَعْرُوفٍ، أَوْ نَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ، أَوْ ذِكْرُ اللهِ» "[۴] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ".

**ترجمه** [۱] بې بې ام حبيبه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د ابن آدم خبرې د هغه د پاره وبال دى، د هغه د پاره فائده نه ده [۳] سوا د هغه کلام څخه چې امر بالمعروف (د نيکۍ د تاکيد کولو تعليم) او نهي عن المنکر (د بدۍ څخه د بچ کيدو تلقين) يا د الله تعالى ﷻ د ذکر د پاره وي، [۴] دا روايت ترمذي او ابن ماجه نقل کړى دى او ترمذي ويلي دي، چې دا حديث غريب دى.

**حل اللغات:** ① عَلَيْهِ: أَيْ: ضَرَرُهُ وَوَبَالُهُ عَلَيْهِ: په ده باندې به دهغې ضرر او وبال وى. ② لَا لَهُ: أَيْ: لَيْسَ لَهُ نَفْعُهُ: يعنى دده د پاره به پکښې هيڅ فائده نه وى.

**تسهيلات:**

**قوله: كُلُّ كَلَامِ ابْنِ آدَمَ عَلَيْهِ لَا لَهُ،**

**دا يعنى خبرو څخه د پرهيز کولو ترغيب،** دَدې حديث دَ ظاهري الفاظونه داسې معلوميږي چه هرمباح کلام هم وبال جان دې داسې به معامله ډيره پيچيده شي لهذا علماء ليکي چه داحديث دَ غيرشرعي اوناخوښه خبرو اترو دَ بندولودَپاره دَ مبالغه په توګه ارشاد فرمائيلې شوې دې. دَ کوم مطلب چه دادې چه دَبنى آدم ټولې خبرې اترې به ده دَپاره په آخرت کښې دَ حسرت او پښيمانتيا سبب وى څکه چه په دې سره دغه سړى ته هيڅ شرعى فائده حاصله نه شوه اګرچه فى نفسه جائز وې او که امربالمعروف اونهى عن المنکروى يا ذکر الله وى نودا څيزونه دَ نفع اوفائدې سبب وى لهذا خپل وخت هم په دې کښې خرچ کول پکاردى

---

[۱] اخرجه ابن ماجة فى كتاب الفتن/باب كف اللسان فى الفتنة (رقم-۳۹۷۴)

[۲۲۷۶] زياتي خبرې زړه سختوي

۲۲۷۶-[۱۶] (۱) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللهِ (صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ): «لَا تُكْثِرُوا الْكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللهِ فَإِنَّ كَثْرَةَ الْكَلَامِ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللهِ قَسْوَةٌ لِلْقَلْبِ وَإِنَّ أَبْعَدَ النَّاسِ مِنَ اللهِ الْقَلْبُ الْقَاسِي» (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** ۱ ابن عمر رضي الله عنهما راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ د ذکر الله څخه بغير زياتي کلام مه کوی، ۳ ځکه چې د ذکر الله څخه بغير د کلام کثرت د زړه د سختي باعث دی ۴ او ياد لرئ چې په خلقو کې د الله تعالی څخه د ټولو څخه لرې هغه سړی دی چې د هغه زړه سخت وي. ترمذي

**حل اللغات**: ۱ قَسْوَةٌ: أَيْ: سَبَبُ قَسَاوَةٍ: د زړه سخت والی ته وائی (يعنی د زړه د سخت والی سبب به وی. ۲ أَبْعَدَ: ډير لرې (د الله د رحمت د نظرنه). ۳ الْقَاسِي: چه سخت وی.

**تسهيلات**:

**قوله**: لَا تُكْثِرُوا الْكَلَامَ بِغَيْرِ ذِكْرِ اللهِ

**د کثرت کلام مصداق**: کثرت کلام نه مراد لغو خبرې دی چه د هغې څه فائده نه وی لهذا تجارتی خبرې، د کور مفيدې خبرې په کثرت کلام کښې نه دی داخلې دارنګ کثرت کلام ئې د سختې باعث ځکه اوګرځولو چه عام طور ډيرې خبرې کولو والاصرف خپله خبره په خلقو باندې منل غواړی او صحيح او حقه خبره نه اوری. ددې وجې ئې کثرت کلام ته د زړه د سختې سبب اوونيلو کما في قوله تعالى: «أَلَمْ يَأْنِ لِلَّذِينَ آمَنُوا أَنْ تَخْشَعَ قُلُوبُهُمْ لِذِكْرِ اللَّهِ وَمَا نَزَلَ مِنَ الْحَقِّ» (سورة الحديد ۱۶)

[۲۲۷۷] ذکر کوونکې ژبه او شکر کذار زړه بهترينه سرمايه ده

۲۲۷۷-[۱۷] (۲) وَعَنْ ثَوْبَانَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «لَمَّا نَزَلَتْ: ﴿وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ﴾ [التوبة: ۳۴] كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي بَعْضِ أَسْفَارِهِ فَقَالَ بَعْضُ أَصْحَابِهِ: نَزَلَتْ فِي الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ لَوْ عَلِمْنَا أَيُّ الْمَالِ خَيْرٌ فَنَتَّخِذَهُ فَقَالَ "أَفْضَلُهُ لِسَانٌ ذَاكِرٌ، وَقَلْبٌ شَاكِرٌ وَزَوْجَةٌ مُؤْمِنَةٌ تُعِينُهُ عَلَى إِيمَانِهِ" رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ۱ حضرت ثوبان رضي الله عنه وايي چې کوم وخت دا آيت نازل شو ۲ وَالَّذِينَ يَكْنِزُونَ الذَّهَبَ وَالْفِضَّةَ الآية، کوم خلق چې سره او سپين زر جمع کوي الخ. ۳ نو هغه وخت مونږ خلق د رسول الله ﷺ سره په يو سفر کې وو ۴ (د دې آيت اوريدو سره) بعضو صحابه وو رضي الله عنهم اوويل چې

[۱] اخرجه الترمذی فی کتاب الزهد عن رسول الله صلى الله عليه وسلم/باب منه (رقم-۲٤۱۱)
[۲] اخرجه ابن ماجة فی کتاب النكاح/باب افضل النساء (رقم-۱۸۵۶) واحمد فی السند: ۲۷۸/۵

د سرو او سپینو زرو په باره کې خو دا آیت نازل شوا او مونږ ته د دې څیزونو حکم او د دې مذمت معلوم شوا، ۵ کاش (ارمان) چې مونږ ته دا معلومه شي چې د سرو او سپینو زرو څخه علاوه بل کوم مال ښه دی؟ چې مونږ هغه جمع کړو، ۶ رسول الله ﷺ وفرمایل چې بهترین څیزونه د الله تعالی ﷻ ذکر کونکی ژبه، شکر اداء کونکی زړه ۷ او مسلمانه ښځه چې د خپل خاوند د ایمان مدد ګاره وي، بهترین مال دی، احمد، ترمذي، ابن ماجه

**حل اللغات:** ① يَكْنِزُونَ: جمع کوی، ② شَاكِرٌ: شکر کونکې، ③ تُعِينُهُ: مدد کوی د خاوند

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَالَ "أَفْضَلُهُ لِسَانٌ ذَاكِرٌ..الخ:**

**د مسلمان د ژوند بهترینه سرمایه:** په دې حدیث کښې درې څیزونه دَ مسلمان دَ ژوند بهترینه سرمایه ګرځولې شوې ده لسان ذاکر قلب شاکر او مؤمن بی بی په ظاهره داسې معلومیږی چه صحابه کرامو ﷺ دَ حضورپاك نه دا سوال اوکړو چه دَ سرو زرو او سپینو زرو جمع کول او سرمایه جوړول خو مونږ ته معلوم شو چه په دې کښې خطره ده افسوس چه مونږ ته دامعلومه شی چه دَ دې ظاهری مال نه علاوه هغه کوم څیز دې کوم چه ذخیره کولو سره خپل مستقبل جوړکړې شی اوهغه ذخیره په راتلونکی وخت کښې پکارراشی په دې باندې حضورپاك دَ دریو څیزونو ذکر اوفرمائیلو یوخو ذکرکونکې ژبه ده دویم شکرکونکې زړه دې او دریم څیز ښځه ده.

**قوله: تُعِينُهُ عَلَى إِيمَانِهِ:**

یعنی خاوندَ ایمان په اعمالو باندې لګوی دَهغه په داسې کارونوکښې بندیز نه اچوی کوم چه ایمان سره متعلق وی پخپله هم مؤمنه ده اودَ خاوند دَپاره هم معاونه ده دا درې هغه سرمایې دی چه ظاهری مال نه دې لیکن په مستقبل کښې ډیر فائده مند دی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۲۸] الله تعالی په ذاکرینو باندې فخر کوی**

۲۲۸۰-[۱۸] [(۱)] ۱ عَنْ أَبِي سَعِيدٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ «خَرَجَ مُعَاوِيَةُ عَلَى حَلْقَةٍ فِي الْمَسْجِدِ، فَقَالَ: ۳ مَا أَجْلَسَكُمْ؟ قَالُوا: جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللّٰهَ. ۴ قَالَ: آللّٰهِ مَا أَجْلَسَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ؟ ۵ قَالُوا: اللّٰهِ مَا أَجْلَسَنَا غَيْرُهُ. ۶ قَالَ: أَمَا إِنِّي لَمْ أَسْتَحْلِفْكُمْ تُهْمَةً لَكُمْ، ۷ وَمَا كَانَ أَحَدٌ بِمَنْزِلَتِي مِنْ رَسُولِ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَقَلَّ عَنْهُ حَدِيثًا مِنِّي،

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل الاجتماع علی تلاوة القرآن وعلی الذکر (رقم ۳۸-۴۰ - (۲۷۰۱) واحمد فی المسند: ۹۲/۴

**ترجمه** [۱] ابوسعيد رضي الله عنه راوي دی [۲] چې (يوه ورځ) امير معاويه رضي الله عنه يوې حلقې ته ورسيدی چې يو په يو مسجد کې لګيدلې وه، هغه د حلقې والاځخه پوښتنه وکړه [۳] چې تاسو دلته څه شی کينولی يئ؟ هغوئ اوويل چې مونږ دلته د الله تعالٰی ﷻ د يادولو په پاره ناست يو. [۴] امير معاويه رضي الله عنه ورته اوويل چې په خدای چې تاسو د الله تعالٰی ﷻ ذکر دلته کينولي يئ. [۵] هغوئ اوويل چې قسم په خدای په دې کې هيڅ شك نشته. چې مونږ يواځې د الله تعالٰی ﷻ ذکر دلته کينولي يو. [۶] امير معاويه رضي الله عنه اوويل چې ګورئ ما په تاسو باندې د تهمت لګولو د پاره تاسو ته قسم نه دی درکړی (يعني تاسو دروغجن ګڼلو سره په تاسو مې قسم وانخستی بلکه ما د نبی کريم صلی الله عليه وسلم د اتباع پيروۍ په وجه قسم درکړی وو، چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم هم داسې فرمايلي وو چې څرنګه په وړاندې حديث کې راځي) [۷] بيا معاويه رضي الله عنه اوويل چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم حديث کم نقل کولو په سلسله کې زما برابر هيڅوك نه وو (يعني ما به احتياط ډير کم احاديث روايت کول، داسې نه چې څه کمی زياتی را څخه وشي او د هغه وبال زما په غاړه پاتې شي، د دې خبرې څخه د حضرت معاويه رضي الله عنه مقصد دا خبرداري وه چې د حديث په روايت کې زما څخه څه هيره نه ده شوې، ځکه چې د نشيان احتمال خو د هغه سړي د پاره وي چې ډير زيات روايت کوي او ښکاره ده چې زه هغه شان نه وم بهرحال معاويه رضي الله عنه اوويل چې دغه شان يوه ورځ رسول الله ﷺ د صحابه وو رضي الله عنهم يوې حلقې ته ورسيدلی.

**حل اللغات**: ① حَلْقَةٍ: دخلقو يو ځاني کيناستو او جماعت ته وائي. ② لَمْ أَسْتَحْلِفْكُمْ: قسم مې نه دی درکړی تاسو ته. ③ تُهْمَةً: تهمت چا باندې دروغ ترلو ته تهمت وائي

[۱] وَإِنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - خَرَجَ عَلَى حَلْقَةٍ مِنْ أَصْحَابِهِ، فَقَالَ: [۲] " مَا أَجْلَسَكُمْ هَاهُنَا؟ [۳] قَالُوا: " جَلَسْنَا نَذْكُرُ اللهَ وَنَحْمَدُهُ عَلَى مَا هَدَانَا لِلْإِسْلَامِ [۴] وَمَنَّ بِهِ عَلَيْنَا. [۵] قَالَ: " آللهِ مَا أَجْلَسَكُمْ إِلَّا ذَلِكَ؟ [۶] " قَالُوا: آللهِ مَا أَجْلَسَنَا إِلَّا ذَلِكَ. [۷] قَالَ: " أَمَا إِنِّي لَمْ أَسْتَحْلِفْكُمْ تُهْمَةً لَكُمْ، [۸] وَلَكِنَّهُ أَتَانِي جِبْرِيلُ فَأَخْبَرَنِي أَنَّ اللهَ عَزَّ وَجَلَّ يُبَاهِي بِكُمُ الْمَلَائِكَةَ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] او نبی عليه السلام د خپلو صحابؤ رضی الله عنهم په يو مجلس باندې راؤوتلونو نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغوئ ته وفرمايل [۲] چې دلته تاسو څه شي کينولي يئ؟ (يعني دلته د څه مقصد د پاره راجمع شوي يئ؟) [۳] صحابه وو رضي الله عنهم عرض وکړی چې (يا رسول الله! ﷺ) مونږ دلته الله تعالٰی ﷻ ياد وو، او د هغه د دې خبرې تعريف کوو چې هغه مونږ ته د اسلام هدايت وکی. [۴] او د هغه په ذريعه يې په مونږ احسان وکی، [۵] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې په خدای قسم تاسو يواځې دې شي دلته کينولي يئ. [۶] صحابه وو رضي الله عنهم عرض وکړی چې قسم په خدای په دې کې هيڅ شك نشته چې مونږ

دي شي دلته كينولي يو. [۷] نو نبي كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ما په تاسو باندې د تهمت لګولو د پاره تاسو ته قسم نه وو دركړى. [۸] بلكه ماته جبرائيل ﷺ راغلو او ماته يې وښودل چې الله تعالى ﷻ د خپلو فرشتو په مخكې په تاسو فخر كوي چې تاسو د هغه ذكر كوى.

**حل اللغات:** ④مَنَّ: احسان نې اوكړو، ⑤يُبَاهِي: فخر كوى

**تسهيلات:**

**قوله: أَنَّ اللهَ عَزَّوَجَلَّ يُبَاهِي بِكُمُ الْمَلَائِكَةَ:**

**په ذاكرينو باندې د فخر كولو مطلب:** د دې مطلب دا دې چې كله ذاكرين حلقه جوړه كړى او ذكر كوى نو الله تعالى فرشتو ته فرمائي چې ((انظروا إلى عبادي هؤلاء)) چې زما دې بندګانو ته اوګورئ چې په دوى باندې ما نفس، خواهشات او شياطين مسلط ښكله كړى دى خو دوى صرف زما په عبادت كښې مشغوله دى په دې وجه دا خلق د تعريف لائق دى چې د مشقت باوجود زما عبادت كوى او تاسو ته په عبادت كولو كښې هيڅ مشقت نشته

**[۲۲۷۹] هر وخت د ذكر كولو نصيحت**

| ۲۲۷۹–[ ۱۹ ] ( )[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- «أَنَّ رَجُلًا قَالَ: [۲] يَا رَسُولَ اللهِ! إِنَّ شَرَائِعَ الْإِسْلَامِ قَدْ كَثُرَتْ عَلَيَّ، [۳] فَأَخْبِرْنِي بِشَيْءٍ أَتَشَبَّثُ بِهِ. [۴] قَالَ: "لَا يَزَالُ لِسَانُكَ رَطْبًا مِنْ ذِكْرِ اللهِ» " [۵] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. |
|---|

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن بسر ﷺ رواي دى چې يو سړي عرض وكړى [۲] چې يا رسول الله ﷺ د اسلام احكام (يعني نوافل) په ما ډير درانه دي (يعني نوافل دومره دي چې زه د خپل ضعف او عجز په بناء د هغه د ادائيګۍ څخه معذور يم) [۳] ځكه ته ﷺ ماته داسې څيزونه وښايه چې په هغه بروسه وكړم ايعني تاسو يو داسې فعل راته وښايه چې د ثواب باعث وي جامع او آسانه وي او هغه په يو زمانه، په يو ځاى او په يو حالت باندې موقوف نه وي، چې زه د فرائضو د آدائيګۍ څخه روسته هغه خپل معمول جوړكړم. او د هغه په وجه د ټولو نوافلو څخه مستغني شما . [۴] نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ستا ژبه (يعني يا خو ستا دا ظاهري ژبه يا د زړه ژبه) د الله تعالى ﷻ په ذكر سره هميشه تره (يعني جاري) ساتل پكار دى. [۵] ترمذي ابن ماجه، امام ترمذي رحمه الله ويلي دي چې دا حديث حسن غريب دى.

**حل اللغات:** ①شَرَائِعَ: أي مَا شَرَعَ اللهُ: دكوم څه چه الله تعالى حكم كړې وى هغې ته شرائع وائى يعنى احكام (خو دلته ترې مراد نوافل دى) ②كَثُرَتْ: أَيْ: غَلَبَتْ عَلَى الْكَثْرَةِ: يعنى د ډيروالى په وجه ترې زه

( ) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۴۲۵ وابن ماجة فى كتاب الأدب /باب فضل الذكر (رقم-۳۷۹۳)

عاجز شوې يم، ډير زياتې بوج دی، ⑨أَتَشَبَّثُ: أَيْ أَتَعَلَّقُ: چه زه پرې منګولې اولګوم، او زه يې اونيسم يعنی عمل پرې اوکړم

**تسهيلات: قوله: أَتَشَبَّثُ بِهِ:**

**يو آسان او ډير ثواب والا عمل:** يعنې داسې عمل راوښايه چه کم خرچ بالانشين په درجه کښې وی په هغې کښې محنت کم وی هرځانی کيدې شی په هرحالت کښې خپلولې شی دې د پاره چه زه هغې پورې اونخلم اوهغه دخپل ځان د پاره حرزجان جوړکړم حضوريانک په جواب کښې اوفرمائيل هروخت ستا ژبه دالله تعالی په ذکر لمده پکار ده چه يووخت کښې اوچه نه وی ددې لوئی اجر دې اودا کم خرچ بالانشين عمل دې.

**[۲۲۸۰] دقيامت په ورځ بهترين خلق**

۲۲۸۰-[۲۰] (١)①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-، «أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- سُئِلَ: ②أَيُّ الْعِبَادِ أَفْضَلُ وَأَرْفَعُ دَرَجَةً عِنْدَ اللهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ؟③قَالَ: (الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتُ). ④قِيلَ: يَارَسُولَ اللهِ وَمِنَ الْغَازِي فِي سَبِيلِ اللهِ؟⑤قَالَ: لَوْضَرَبَ بِسَيْفِهِ فِي الْكُفَّارِ وَالْمُشْرِكِينَ⑥حَتَّى يَنْكَسِرَ وَيَخْتَضِبَ دَمًا، ⑦فَإِنَّ الذَّاكِرَ لِلَّهِ أَفْضَلُ مِنْهُ دَرَجَةً» ". ⑧رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَاحَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ① ابوسعيد ﷛ وايې چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه② چې کوم بنده بهتر دی؟ يعني چې ډير زيات ثواب پيدا کوي، او د قيامت په ورځ د الله تعالی ﷻ په نزد د ډيری اوچتی درجې مالك دی؟③ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې الله تعالی ﷻ ډير زيات يادونکي سړی او ښځې،④ عرض وشو چې يا رسول الله ﷺ آيا دوی د جهاد کونکو څخه هم زيات افضل دی؟ (او بلند مرتبه دی؟)⑤ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې که يو سړی کفار او مشرکين په خپله توره ووهي⑥ تر دې چې د هغه توره ماته شي، او (هغه توره يا خپله مجاهد) په وينو رنګين شي (دا د دې څخه کنايه ده چې هغه شهيد شي)⑦ نو په دې کې شك نشته چې د الله تعالی ﷻ ذکر کونکی سړی په اعتبار د درجې سره د هغه سړي څخه بهتر دی،⑧ احمد ترمذي، ترمذي ﷫ ويلي دي چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات:** ①الْغَازِي: د اسم فاعل صيغه ده، غزا کونکي، دالله تعالی په لاز کښې جهاد کونکی ته غازی وائی ②يَنْكَسِرَ: ماته شی (توره) ③يَخْتَضِبَ: رنګين شی په وينو دغه دغه غازی يا دغه توره)

**تسهيلات:**

**قوله. الذَّاكِرُونَ اللهَ كَثِيرًا وَالذَّاكِرَاتُ:**

**د ذاکرينو عظيم مقام:** ذکر نه مراد هغه ذکر دې چه په ژبه او زړه دواړو سره وی دې نه

۱) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۳۶ واحمد في المسند: ۷۵/۳

معلومه شوه چه د الله ذکر د ډیر ثواب ذریعه ده او قرب الهی د زیاتیدو وسیله ده د دین او رب د ټولو نعمتونو حصول په ذکر الله سره کیږی

**قوله**: افَإِنَّ الذَّاكِرَ لِلّٰهِ أَفْضَلُ مِنْهُ دَرَجَةً:

**د ذاکر په مجاهد باندې فوقیت**: ذکر افضل کیدو وجه ظاهره ده چه ذکر مقصودی عبادت دې او جهاد غیر مقصودی عبادت دې ځکه چه ذکر إعلاءكلمة الله د پاره کیږی دارنګ جهاد د مجاهد غازی کار دې او ذکر کښې د الله نوم دې ظاهره ده چه د الله نوم زمونږ د کار نه افضل دې دارنګ د جهاد بدله جنت دې او د ذکر بدله الله دې کما فی القرآن فاذکرونی أذکرکم

**[۲۲۸۱] دَ الله تعالی ذکر دَ زړه محافظ دې**

| ۲۲۸۱–[۲۱] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«الشَّيْطَانُ جَاثِمٌ عَلَى قَلْبِ ابْنِ آدَمَ، [۳] فَإِذَا ذَكَرَ اللّٰهَ خَنَسَ، [۴] وَإِذَا غَفَلَ وَسْوَسَ»". [۵] رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ تَعْلِيقًا. |
|---|

**ترجمه**: [۱] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] شیطان د انسان د زړه سره مښتی وي، [۳] هر کله چې هغه په زړه سره الله تعالی ﷻ یادوي، نو شیطان شاته شي [۴] او هر کله چې هغه د ذکر الله څخه فارغه شي نو شیطان د هغه په زړه کې وسوسې اچوي. [۵] دا روایت بخاري په طریقه د تعلیق (یعني د سند نقل کولو څخه بغیر) نقل کړی دی (رواه بخاری تعلیقًا).

**حل اللغات**: ① جَاثِمٌ: أَيْ: لَازِمُ الْجُلُوسِ: وریوري لازم او اینختې همیشه ناست وی ② خَنَسَ: أَيْ: انْقَبَضَ الشَّيْطَانُ وَتَأَخَّرَ عَنْهُ: ځان راټول کړی او شاته شي ځان پټولو سره یو طرف ته شی ③ وَسْوَسَ: وسوسه اچوی

**تسهیلات**: **قوله**: جَاثِمٌ: اي لازم الجلوس ودائم اللصوق:

دَ کسې اوږې لاندې شیطان خپل خرتم ورخښوی اوناست وی دَدې اوږې لاندې دَ انسان زړه دې دا خبیث دَ دغې زړه کنټرول کولو کوشش کوی

**قوله**: اَلْخَنَّاس: مطلب دادې یعنی دَ الله تعالی دَ ذکر په وخت شیطان پټیږی مګر چه کله ذکر بندیږی نو شیطان بیا راخی او خپل کار شروع کوی دَ الذي يوسوس هم دغه مطلب دې

**[۲۲۸۲] دَ ذکر الله مثال او عظیم فضیلت**

| ۲۲۸۲–[۲۲] (۲)[۱] وَعَنْ مَالِكٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ -، قَالَ: بَلَغَنِي أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ " [۲] «ذَاكِرُ اللّٰهِ فِي الْغَافِلِينَ كَالْمُقَاتِلِ خَلْفَ الْفَارِّينَ، [۳] وَذَاكِرُ اللّٰهِ فِي الْغَافِلِينَ كَغُصْنٍ أَخْضَرَ فِي شَجَرٍ يَابِسٍ»". |
|---|

۱) لا یوجد فی البخاری.
۲) رواه رزین

ترجمه [۱] امام مالك رحمه الله وايي چې ماته دا روايت رسيدلى دى چې رسول الله ﷺ فرمايي چې [۲] د غافلو په منځ کې د الله تعالى ﷻ ذكر کونکې په تښتيدونكو پسې د جنګ کونکي په شان دى (يعني د هغه سړي په شان دى، کوم چې په ميدان جنګ کې د خپل لښکر څخه تښتيدو څخه روسته تنها د کافرانو په مقابله کې ټينګ ولاړ وي (د داسې سړي ډير زيات فضيلت منقول دى)[۳] او د غافلانو په منځ کې د الله تعالى ﷻ ذكر کونکى په وچه ونه کې د شنې څانګې په شان دى.

**حل اللغات:** ① المُقَاتِلِ: كافروسره جنګ کونکې، ② خَلْفَ: روسته، ③ الفَارِّينَ: أي: المُنهزمين: تښتيدونكى، ④ غُصْنٍ: څانګه، ⑤ أَخْضَرَ: شنه، سرسبزه، ⑥ يَابِسٍ: اوچه

**تسهيلات:**

**قوله: كَغُصْنٍ أَخْضَرَ:**

**د ذاكر او غافل مثالونه:** لکه چه د زميندار په ذهن کښې د شنې څانګې ډير قدر وى هم دغه شان د ذكر کونکى قدر هم د الله سره ډير وى څکه چې ذكر رڼرا ده او غفلت تياره ده د دې وجې ذكر کونکې په غافلو خلقو کښې داسې دي لکه چه په تياره کور کښې ډيوه بليږى

**[۲۲۸۲] د ذاكر د شنې ونې سره تشبيه**

۲۳- ( ) [۱] وَفِي رِوَايَةٍ: " «مِثْلُ الشَّجَرَةِ الْخَضْرَاءِ فِي وَسَطِ الشَّجَرِ، [۲] وَذَاكِرُ اللَّهِ فِي الْغَافِلِينَ مِثْلُ مِصْبَاحٍ فِي بَيْتٍ مُظْلِمٍ، [۳] وَذَاكِرُ اللَّهِ فِي الْغَافِلِينَ يُرِيهِ اللَّهُ مَقْعَدَهُ مِنَ الْجَنَّةِ وَهُوَ حَيٌّ، [۴] وَذَاكِرُ اللَّهِ فِي الْغَافِلِينَ يُغْفَرُ لَهُ بِعَدَدِ كُلِّ فَصِيحٍ وَأَعْجَمٍ» " [۵] وَالْفَصِيحُ: بَنُو آدَمَ، وَالْأَعْجَمُ: الْبَهَائِمُ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

ترجمه [۱] په يوه روايت کې داسې دي چې د ونو په منځ کې د سرسبز او شاداب ونې په شان دى. [۲] او د الله تعالى ﷻ ذكر کونکې په تياره کې د چراغ (ډيوه) په شان دى. [۳] او په غافلانو کې د الله تعالى ﷻ ذكر کونکى داسې سړى دى چې هغه ته الله تعالى ﷻ د هغه په ژوند کې په جنت کې د هغه ځاى ښايي (يعني په ذريعه د مکاشفه يې ورته ښايي يا په خوب کې يا داسې يقين ورته وبخښي لکه چې هغه يې وينې)[۴] او په غافلانو کې الله تعالى ﷻ يادونکي داسې سړى دى چې د هغه ګناه د هر فصيح او اعجم د عدد په اندازه بخښل کيږى. [۵] د فصيح څخه مراد انسان او د اعجم څخه مراد څاروى دى، رزين.

**حل اللغات:** ① مِصْبَاحٍ: أي: سِرَاج: ډيوه، ② مُظْلِمٍ: تياره، ③ مَقْعَدَهُ: د اوسيدو ځاى (دکوم چه دده سره الله تعالى وعده کړې ده، ④ فَصِيحٍ: اى بَنُو آدَمَ: دفصيح نه مراد انسانان دى، ⑤ أَعْجَمٍ: اى الْبَهَائِمُ: د أعجم نه مراد څناور دى ⑥ الْبَهَائِمُ: څناور

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الرقاق/باب: لله مائة اسم غير واحد (رقم-۶۴۱۰) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب في أسماء الله تعالى وفضل من احصاها (رقم-۵ - (۲۶۷۷) وابن ماجة في كتاب الدعاء/باب أسماء الله عز وجل (رقم-۳۸۶۰) وأحمد في المسند: ۲۶۷/۲

**[۲۲۸٤] د عذاب څخه په بچ کيدو کښې د ذکر کردار**

۲۲۸٤-[۲۳]( )[۱] وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: [۲] «مَا عَمِلَ الْعَبْدُ عَمَلًا أَنْجَى لَهُ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ ذِكْرِ اللّٰهِ». رَوَاهُ مَالِكٌ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [۱] معاذ ابن جبل رضي الله عنه فرمايي [۲] چې داسې هيڅ عمل نشته چې بنده يې وکړي، چې هغه د ذکر الله

**تسهيلات:**

**قوله: مَا عَمِلَ الْعَبْدُ عَمَلًا أَنْجَى لَهُ مِنْ عَذَابِ اللّٰهِ مِنْ ذِكْرِ اللّٰهِ**

**د عمل مصداق:** د الله ذکر په ټولو اعمالو کښې افضل دې د عمل نه مراد مسنون يا مستحب يا مطلق نيک عمل دې څه زيات د الله د عذاب څخه نجات (دخلاصي لار) ورکونکې وی، مالك ترمذي ابن ماجه.

**[۲۲۸۵] ذاکر سره د الله تعالى معيت**

۲۲۸۵-[۲٤]( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«إِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى يَقُولُ: أَنَا مَعَ عَبْدِي إِذَا ذَكَرَنِي [۳] وَتَحَرَّكَتْ بِي شَفَتَاهُ»". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] ابو هريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى جل جلاله فرمايي چې هر کله زما بنده ما يادوی نو زه د هغه سره يم (يعني زه د هغه مددګار يم هغه ته توفيق ورکوم او په هغه خپل رحمت او رعايت کوم) ، [۳] او هغه زما د ذکر د پاره دواړي شونډي ښوروی (يعني په زړه او ژبه دواړو سره ذکر کوی). بخاري.

**حل اللغات:** ① شَفَتَاهُ: د شفة تثنيه ده، شونډې.

**تسهيلات:**

**قوله: أَنَا مَعَ عَبْدِي إِذَا ذَكَرَنِي**

**دالله تعالى د معيت وضاحت:** الله تعالى فرمائي چه تر څو پورې بنده زما ذکر کوی نو زه د ته د خير توفيق ورکوم، او خپل رحمت او کرم په ده باندې کوم.

**نوټ:** ياد لرئ چه الله د ربوبيت په اعتبار د هر بنده سره دې او د رحمت عامه په اعتبار د هر مومن سره دې او د رحمت خاصه په اعتبار د هر ذاکر سره او د خاص انواراتو او تجلياتو په اعتبار سره د رسول الله صلي الله عليه و سلم سره دي او د قهر و غضب په اعتبار سره د اهل باطل سره دي

---

( ) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳٤۳۷ وابن ماجة رقم الحديث ۳۷۹۰

( ) اخرجه البخاري تعليقاً في باب (ولا تحرك به لسانک لتعجل به)

[۰۰۰۱] د الله تعالی په ذکر سره د زړونو د زنګ ختمیدل

۰۰۰۰-[۲۵](۱) [۱]عَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا-، عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ: "[۲]«لِكُلِّ شَيْءٍ صَقَالَةٌ[۳] وَصَقَالَةُ الْقُلُوبِ ذِكْرُ اللهِ[۴] وَمَا مِنْ شَيْءٍ أَنْجَى مِنْ عَذَابِ اللهِ مِنْ ذِكْرِ اللهِ "[۵] قَالُوا: وَلَا الْجِهَادُ فِي سَبِيلِ اللهِ؟[۶] قَالَ: " وَلَا أَنْ يَضْرِبَ بِسَيْفِهِ حَتَّى يَنْقَطِعَ» ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي " الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ ".

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن عمر رضی الله عنهما راوی دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د هر شي د پاره صفایي ده.[۳] او د زړونو صفایي د الله تعالی ﷻ ذکر دی.[۴] او داسې هیڅ څیز نشته چې د ذکر الهي برابر د الله تعالی ﷻ د عذاب څخه نجات ورکړي [۵] صحابه وو رضی الله عنهم عرض وکړ چې آیا د الله تعالی ﷻ په لار کې جهاد کول هم داسې نه دي؟[۶] نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې خو که هغه (مجاهد) خپله توره دومره وچلوي یعني په دومره شدت سره حملې وکړي چې د هغه توره ماته شي، بیهقي

**حل اللغات:** ① صَقَالَةٌ: أَيْ: آلَةٌ يُصْقَلُ بِهَا صَدَؤُهُ: د زنګ او خیرې صفا کولو آله. ② أَنْجَى: زیات نجات ورکونکي او خلاصونکي (دعذاب نه)، ③ يَنْقَطِعَ: ماته شي (توره)

**تسهیلات:**

**قوله: حَتَّى يَنْقَطِعَ**

**د ينقطع په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د ينقطع څخه مراد مجاهد دی
② د ينقطع څخه مراد وسله ده. اللهم اجعلنا من الذاکرین المخلصین

---

(۱) الدعوات الکبیر. باب ما جا في فضل الدعا والذکر... رقم الحدیث ۱۸

# [۱۰] کتاب أسماء الله تعالی

**د الله تعالی د نومونو بیان**

**خلاصة الباب:**

**فیه سبعة أحادیث مشتملة علی أربع مسائل:**

① عدد أسماء الله تعالی: ۱، ۲.

② فضیلة إحصاء الأسماء: ۱، ۲.

③ الدعاء بالإسم الأعظم و تعینه: ۳، ۴، ۵، ۷.

④ دعاء ذی النون علیه السلام : ۶.

**د الله تعالی د نومونو په باره کښې قرآنی آیاتونه:**

① قال الله تعالی ﴿ قُلِ ادْعُوا اللّٰهَ أَوِ ادْعُوا الرَّحْمٰنَ ۖ أَيًّا مَّا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ ﴾ [سورت بنی اسرائیل الایه ۱۱۰.)

② قال الله تعالی ﴿ وَلِلّٰهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ فَادْعُوهُ بِهَا ﴾ [سورت الاعراف الایه: ۱۷۰.

**دالله تعالی نومونه توقیفی دي:** په دې خبره باندې ځان پوهه کول پکار دی چه د الله پاک نومونه توقیفی دی یعنی په سماع او اذن شارع باندې موقوف دی چه د هغې مطلب دا دې چه کوم نوم د شرع نه منقول دې هم هغه وئیل پکار دی د خپل طرف نه د عقل په بنیاد یو نوم نه دی اخستل پکار اګر چه هغه نوم د معنی اعتبار سره د شرع نه د منقول نوم په شان ولې نه وی.

**وضاحت:** مثلا الله پاک ته عالم وئیل پکاردی عاقل ورته نه دی وئیل پکار، جواد دې ورته اونیلې شی سخی ورته نه دی وئیل پکار ،شافی وئیل پکاردی طبیب نه دی وئیل پکار بنده له پکار دی چه هغه د الله پاک صفات له په خپل ذات کښې د پیدا کولو حتی المقدور کوشش کوی، پس په وراندې صفحاتو باندې د الله پاک د اسماء د وضاحت په موقع باندې یا د نورو عبارتونو په تشریح کښې د باری تعالی د صفات په حصول کښې چه کوم تلقین کړې شوې دې په هغې باندې پوره طریقې سره عمل کول پکار دی چه د هغه صفاتو د حصول نه پس د خپل ذات انوار الهیه سورې او ژوند ئې د اسلامی اخلاقو اوتعلیماتو نمونه جوړه شی اللهم وفقنا ویسرلنا حصولها

**د یو بزرګ د تربیت عجیبه طریقه:** د یو بزرګ په باره کښې منقول دی چه هغوی ته به کله یو سړې د بیعت دپاره راتلو نو هغه به ورته اول حکم کولو چه اودس کولو سره راشه چه کله به هغه اودس اوکړو نو هغه به د هغه مخکښې د الله پاک اسماء پوره عظمت او جلال سره په اوچت اواز لوستل. بیا به ئې چه په هغه سړی کښې د کوم اسم مبارک تاثیر لیدو هم هغه به

نې ورته تعلیم کولو په دې خیال سره چه په دې سره به مقصود زر حاصلیږي پس هم دغه شان به کیده

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

## [۲۲۸۷] د الله تعالی یوکم سل نومونه یادولو فضیلت

۲۲۸۸-[۱] (١)① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② إِنَّ لِلهِ تَعَالَى تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا، مِائَةً إِلَّا وَاحِدًا، ③ مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ. ④ وَفِي رِوَايَةٍ: وَهُوَ وِتْرٌ يُحِبُّ الْوِتْرَ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② د الله تعالی ﷻ یو کم سل نومونه دي یعنې یو کم سل ③ کوم سړي چې دا نومونه یاد کړي هغه به د ابتداء څخه بغیر د عذاب په جنت کې داخلیږي. ④ په یوه روایت کې دا هم دی چې الله تعالی ﷻ طاق دی او طاق خوښوي، بخاري مسلم

**حل اللغات**: ① أَحْصَاهَا: أَيْ عَدَّهَا وَقَرَأَهَا كَلِمَةً كَلِمَةً: د شمیرلو نه مراد یو یو نوم په ترتیل سره ونیل دي یا د دې نومونو یادول او په معانیو باندې خان پوهه کول دي. ② وِتْرٌ: أَيْ: فَرْدٌ: طاق یعنې چه دویم ئې نه وی نه ورله شبیه وي او نه ورله نظیر.

**تسهیلات**: **قوله**: إِنَّ لِلهِ تَعَالَى تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا..الخ:

**د الله تعالی د نومونو په باره کښې د روایاتو اختلاف او د هغې جواب**: په دې حدیث کښې د ۹۹ نومونو د حصر ذکر دې مگر په راتلونکی احادیثو کښې د څه نورو نومونو ذکر هم ملاویږي علماؤ د دې تعارض لرې کولو د پاره ونیلی دی چه د ۹۹ شمیر کوم په دې حدیث کښې ذکر دې دا هغه شمیر دې د کوم د پاره چه دا خاص بشارت دې چه کوم سړې دا یاد کړی هغه به جنت ته خی د دې خصوصیت چه کوم نومونه دی هغه ۹۹ دی دې نه علاوه نومونه هم دی لهذا ۹۹ کښې حصر نه دې

**د الله پاک د نومونو یادولو فضیلت**: په دې حدیث کښې چه دا ونیلې شوې دی چه د الله پاك یو کم سل نومونه دی نو د دې نه حصر او تحدید نه دې مراد چه د الله پاك بس هم دا نومونه دی ځکه چه د الله پاك ډير نومونه دی پس په وړاندې صفحه کښې به د یو کم سلو نومونو نه علاوه بعض نور نومونه هم ذکر کولې شي انشاء الله. بلکه دلته د نهه نوی د عدد ذکر کولو نه مراد او مقصود دا دې چه په حدیث کښې چه د اسماء باری تعالی کوم خاصیت بیان کړې شوې دې چه کوم سړې هغې لره یاد کړی هغه به جنت ته داخلیږی، هغه د هم هغه نهه نوی نومونو سره مخصوص دې

---

(۱) اخرجه البخاري في صحيحه رقم الحديث ۶۴۱۰ ومسلم في صحيحه رقم الحديث ۵/ ۲۷۷

**قوله: احصاها:**

لفظ ﴿ احصاها﴾ په باره کښ اختلافي اقوال دي امام بخاري وغیره د دې معنی هم هغه لیکلې دی کومه چه په ترجمه کښ ظاهر ده یعنی چه دا نومونه ئې یاد کړل. او هم دا قول زیات صحیح دې، پس په بعض روایتونو کښ د ﴿ احصاها﴾ په ځائې ﴿حفظها﴾ منقول دې بعض علماء کرام فرمائی چه د دې معنی ده چه هغه ئې اولوستلو، یا ئې په هغې باندې ایمان راوړلو، یا ئې د هغې په معانی باندې خان پوهه کړو او د هغې په معانی باندې ئې عمل اوکړو.

**قوله: ﴿ هووتر یحب الوتر﴾**

د دې مطلب دا دې چه الله پاك اعمال او اذکار لره خوښوی او مراد ترې دا دې چه الله پاك په ټولو اعمالو کښ هغه اعمل خوښوی چه د هغې بنیاد په اخلاص باندې وی او کوم چه صرف د الله پاك دپاره اختیار کړې شوې وی

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۲۸۸] دَ الله تعالی مبارك نومونه**

۲۲۸۸-[۲] ()[۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«إِنَّ لِلّٰهِ تَعَالَى تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا [۳] مَنْ أَحْصَاهَا دَخَلَ الْجَنَّةَ، [۴] هُوَ اللّٰهُ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ، [۵] الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ، الْمَلِكُ، الْقُدُّوسُ، السَّلَامُ، الْمُؤْمِنُ، الْمُهَيْمِنُ، الْعَزِيزُ، الْجَبَّارُ، الْمُتَكَبِّرُ، الْخَالِقُ، الْبَارِئُ، الْمُصَوِّرُ، الْغَفَّارُ، الْقَهَّارُ، الْوَهَّابُ، الرَّزَّاقُ، الْفَتَّاحُ، الْعَلِيمُ، الْقَابِضُ، الْبَاسِطُ، الْخَافِضُ، الرَّافِعُ، الْمُعِزُّ، الْمُذِلُّ، السَّمِيعُ، الْبَصِيرُ، الْحَكَمُ، الْعَدْلُ، اللَّطِيفُ، الْخَبِيرُ، الْحَلِيمُ، الْعَظِيمُ، الْغَفُورُ، الشَّكُورُ، الْعَلِيُّ، الْكَبِيرُ، الْحَفِيظُ، الْمُقِيتُ، الْحَسِيبُ، الْجَلِيلُ، الْكَرِيمُ، الرَّقِيبُ، الْمُجِيبُ، الْوَاسِعُ، الْحَكِيمُ، الْوَدُودُ، الْمَجِيدُ، الْبَاعِثُ، الشَّهِيدُ، الْحَقُّ، الْوَكِيلُ، الْقَوِيُّ، الْمَتِينُ، الْوَلِيُّ، الْحَمِيدُ، الْمُحْصِي، الْمُبْدِئُ، الْمُعِيدُ، الْمُحْيِي، الْمُمِيتُ، الْحَيُّ، الْقَيُّومُ، الْوَاجِدُ، الْمَاجِدُ، الْوَاحِدُ، الاحد، الصَّمَدُ، الْقَادِرُ، الْمُقْتَدِرُ، الْمُقَدِّمُ، الْمُؤَخِّرُ، الْأَوَّلُ، الْآخِرُ، الظَّاهِرُ، الْبَاطِنُ، الْوَالِي، الْمُتَعَالِي، الْبَرُّ، التَّوَّابُ، الْمُنْتَقِمُ، الْعَفُوُّ، الرَّؤُوفُ، مَالِكُ الْمُلْكِ، ذُو الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ، الْمُقْسِطُ، الْجَامِعُ، الْغَنِيُّ، الْمُغْنِي، الْمَانِعُ، الضَّارُّ، النَّافِعُ، النُّورُ، الْهَادِي، الْبَدِيعُ، الْبَاقِي، الْوَارِثُ، الرَّشِيدُ، الصَّبُورُ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ" وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه:** [۱] ابوهریره رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] د الله تعالی جل جلاله یو کم سل نومونه دي [۳] کوم سړی چې دا یاد کړي هغه به په جنت کې داخلیږي [۴] هغه الله دی چې د هغه څخه ماسوا بل څوك د عبادت لائق نه دی او د اسم ذات څخه علاوه ۹۹ نومونه دادي [۵] ① الرحمٰن ② الرحیم ③ الملك ④ القدوس ⑤ السلام ⑥ المؤمن ⑦ المهیمن ⑧ العزیز ⑨

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۷٤

الجبار ⑩ المتكبر (۱۱) الخالق (۱۲) البارئ (۱۳) المصور (۱۴) الغفار (۱۵) القهار (۱۶) الوهاب (۱۷) الرزاق (۱۸) الفتاح (۱۹) العليم (۲۰) القابض (۲۱) الباسط (۲۲) الخافض (۲۳) الرافع (۲۴) المعز (۲۵) المذل (۲۶) السميع (۲۷) البصير (۲۸) الحكم (۲۹) العدل (۳۰) اللطيف (۳۱) الخبير (۳۲) الحليم (۳۳) العظيم (۳۴) الغفور (۳۵) الشكور (۳۶) العلي (۳۷) الكبير (۳۸) الحفيظ (۳۹) المقيت (۴۰) الحسيب (۴۱) الجليل (۴۲) الكريم (۴۳) الرقيب (۴۴) المجيب (۴۵) الواسع (۴۶) الحكيم (۴۷) الودود (۴۸) المجيد (۴۹) الباعث (۵۰) الشهيد (۵۱) الحق (۵۲) الوكيل (۵۳) القوي (۵۴) المتين (۵۵) الولي (۵۶) الحميد (۵۷) المحصي (۵۸) المبدئ (۵۹) المعيد (۶۰) المحي (۶۱) المميت (۶۲) الحي (۶۳) القيوم (۶۴) الواجد (۶۵) الماجد (۶۶) الواحد (۶۷) الاحد (۶۸) الصمد (۶۹) القادر (۷۰) المقتدر (۷۱) المقدم (۷۲) المؤخر (۷۳) الاول (۷۴) الاخر (۷۵) الظاهر (۷۶) الباطن (۷۷) الوالي (۷۸) المتعالي (۷۹) البر (۸۰) التواب (۸۱) المنتقم (۸۲) العفو (۸۳) الرؤف (۸۴) مالك الملك (۸۵) ذو الجلال والاكرام (۸۶) المقسط (۸۷) الجامع (۸۸) الغني (۸۹) المغني (۹۰) المانع (۹۱) الضار (۹۲) النافع (۹۳) النور (۹۴) الهادي (۹۵) البديع (۹۶) الباقي (۹۷) الوارث (۹۸) الرشيد (۹۹) الصبور دا حديث ترمذي او بيهقي په دعوات كبير كې نقل كړيدي او ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دی.

**تسهيلات:**

**قوله: إِنَّ لِلَّهِ تَعَالَى تِسْعَةً وَتِسْعِينَ اسْمًا..الخ:**

ددې نومونو جدا جدا خاصيات دی تولو شارحينوليكلي دی علماؤ په دې باندې جدا جدا كتابونه تصنيف كړی دی كوم چه دَاسماء حسنٰی په نوم باندې چهاپ شوی دی تفصيلات هم هلته اوګورئی زه دَ خپل تنګوالی دَلمن دَ وجې تفصيل نه شم كولې بس په هرلوستونكی باندې لازم دی چه دا ياد كړی بركات او فوائد به خپل پخپله ونيلوسره حاصليږی

**د الله پاک يو کم سل نومونه او د هغې تفصيلي وضاحت :**

**( هوالله الذي لا اله الاهو )** دا جمله مستانفه ده يعنی دا يوه خانله جمله او د هغه يو كم سل نومونو بيان دې كوم چه وړاندې ذكر كړې شوې دی

د دې كلمې ډير مراتب دی

① اول دا چه كله منافق دا كلمه لولی او د هغه زړه د دې د تصديق نه خالی وی يعنی هغه د قلبی تصديق او اعتقاد نه بغير صرف د خپل ځان د مسلمان ظاهرولو دپاره دا كلمه په ژبې سره ادا كوی نو دا كلمه د هغه د دنيا دپاره خو نافع جوړيږي شی په داسې طريقه چه د دې د وجې نه د هغه نفس، د هغه مال او د هغه اهل وعيال (د مسلمانانو د لاسونو نه) محفوظ شی خو د آخرت په اعتبار سره دا كلمه هغه ته هيڅ فائده نه وركوی

② دویم دا چه دې کلمې لره په ژبې د لوستلو سره اعتقاد قلبي هم وي خو د تقليد محض په طور باندې. د دې درجې په صحيح کیدو کښې مختلف اقوال دي. صحیح قول دا دې چه دا درجه صحیح ده
③ دریم دا چه دې کلمې لره د لوستلو سره اعتقاد قلبي هم وي خو داسې اعتقاد قلبي وي کوم چه د الله پاك د قدرت نخښنو ته کتلو سره حاصل کړې شوې وي. د اکثر علماء کرامو په نزد دا درجه هم معتبر ده
④ څلورم داچه په ژبې سره د دې کلمې د اداکولوسره اعتقادجازم هم وي کوم چه په دلیل قطعي سره حاصل شوې وي، متفقه طور دا درجه مقبول ده.
⑤ پنځم دا چه ددې کلمې ادا کونکې داسې وي چه هغه د زړه په سترګو سره د دې کلمې معنی ته ګوري یعنی هغه ته کامل طور عرفان حق حاصل وي او هم دا عالي مرتبه ده. دا تفصیل خو په هغه صورت کښې دې چه کله دا کلمه په ژبې سره ادا کړې شي دویم شکل دا دې چه دا کلمه صرف په زړه کښې اوائې یعنی په ژبې سره ئې ادائیګی نه وي په دې صورت کښې دا تفصیل دې چه که د څه عذر مثلاً ګونګی کیدو وغیره په وجه باندې دې کلمې لره په ژبې وغیره سره د ادا کولو نه قاصر وي نو دا کلمه د دنیا او اخرت دواړو دپاره نافع ده یعنی هغه به د دنیا او اخرت دواړو په اعتبار سره خلاصې موندونکې وي او که د څه عذر نه بغیر ئې هم په ژبې سره نه ادا کوي نو بیا به په اخرت کښې ددې نه هیڅ فائده نه وي امام نووي رحمه الله په دې باندې د اهل سنت اجماع نقل کړې ده.
**الله**: دا د الله پاك اسم ذات دې د دې معنی ده هغه ذات چه د عبادت حقدار دې، اکثر علماء کرام فرمائي چه په اسماء باری تعالی کښې دا نوم د ټولو نه لوئې دې، هم دغه شان ونیلې شوې دي چه عوامو له پکار دي چه هغوی دا نوم په خپلو ژبو باندې جاري ساتي او د خشيت او تعظيم په طور دې د الله پاك په دې نوم سره ذکر کوي خواصو له پکار دي چه هغوی د دې نوم په معنی کښې غور او فکر اوکړي او په دې خان پوهه کړي چه د دې نوم اطلاق صرف په هغه ذات باندې کیدې شي کوم چه د صفات الوهيت جامع دې، او خواص الخواص له پکار دي چه هغوی خپل زړه په دې کښې مستغرق اوساتي او د هغه ذات نه علاوه بل طرف ته التفات او نکړي او صرف هم د هغه نه ویرېږي ځکه چه هم هغه حق او ثابت دې د هغه نه علاوه هر يو څيز فاني او باطل دې لکه چه په بخاري کښې منقول دي چه رسول الله ﷺ اوفرمائیل د شاعرانوپه کلام کښې د ټولونه صحیح کلام د شاعر لبید دا مصرع ده؛

**الاكل شئ ماخلا الله باطل** (یاد ساتئ د الله پاك نه سوا هر څيز باطل دې)

**خاصيت**: څوك چه دا اسم ذات ﴿ الله ﴾ زر (۱۰۰۰) کرته اولولي هغه به صاحب يقين شي او

خوك چه ني د مانځه نه پس سل كرته اولولي نو د هغه باطن به فراخه شي او صاحب كشف به شي

**الرحمن**: بيحده مهربانه، **الرحيم**: هميشه مهربانه، د دې دواړو نومونو نه د بنده نصيب دا دې يعنى د صفات باري تعالى د خپلولو په سلسله كښې د دې اسماء تقاضه دا ده چه د الله پاك د ذات طرف ته كامل توجه پيدا شي، هم د هغه په ذات دې توكل او پوره اعتماد اوكړې شي، خپل باطن دې د هغه په ذكر كښې مشغول اوساتلې شي، د غير الله نه دې بې پروائي اوكړې شي، د الله پاك په بندګانو باندې دې رحم اوكړې شي، پس د مظلوم حمايت او مدد دې اوكړې شي او ظالم دې په نيكه طريقه د ظلم نه بچ كړې شي، د الله پاك د عبادت او د هغه د ذكر نه غفلت كونكي دې خبردار كړې شي، د ګناهګار طرف ته دې د رحمت (يعنى يو ګناهګار ته كتلو سره دې د هغه په حالت باندې افسوس اوكړې شي او د الله پاك نه دې د هغه د اصلاح اوفلاح او د هغه د هدايت سوال اوكړې شي، دا خبره ناخوښه ده چه يو ګناهګار سپك اوګنړلې شي او خپل ځان د هغه نه غوره او ښه اوګنړلې شي) نظر اوكړې شي نه دا چه هغه ته سپك اوكتلې شي، د خپل طاقت په مقدار د خلاف شرع كارونو په استيصال كښې دې كوشش صرف كړې شي اود خپل وسعت او همت مطابق دې د محتاجو او ضرورت مندو د حاجتونو او ضرورتونو پوره كولو سعي اوكړې شي

**خاصيت**: خوك چه د هر مانځه نه پس «الرحمن الرحيم» سل كرته اولولي الله پاك به د هغه د زړه نه غفلت، هيره او قساوت لرې كړي او ټول مخلوق به په هغه باندې مهربانه او مشفق شي

**الملك**: حقيقي بادشاه يعنى هغه د زمكې او اسمان او ټول عالم حقيقي بادشاه دې، دواړه جهانه هم دهغه په تصرف او قبضه كښې دى هغه د ټولو نه بې نيازه دې او ټول د هغه محتاج دى

لهذا چه كله بنده د هغه دا حيثيت او صفت اوپيژندلو نو اوس په هغه باندې لازم دي چه دهغه د دربار بنده او غلام او هم د هغه د در ګدا جوړ شي او د هغه د اطاعت او فرمانبردارئ په ذريعه هم د هغه د در نه عزت طلب كړي، هم دغه شان په بنده باندې لازم دي چه د هغه قدرت او تصرف والا دربار سره تعلق پيدا كړي او د هغه نه علاوه د هر چا نه كلية بې نيازى اختيار كړي، نه دې بل چاته خپل حاجت او ضرورت بيانوى او نه دې د چا نه ويريږى او نه دې ترې اميد ساتى، د خپل زړه، د خپل نفس او د خپل قالب د دنيا حاكم دې جوړ شي او خپل اندامونو او طاقتونه دې په قابو كښې ساتلو سره د هغه په اطاعت و عبادت او د شريعت په فرمانبردارئ كښې اولګوى چه په صحيح معنى كښې دخپل وجود د دنيا حاكم اوبللې شي

**خاصيت**: خوك چه دا اسم د اسم القدوس سره يعنى الملك القدوس په پابندئ سره لولي نو

که هغه صاحب ملك او صاحب سلطنت وی نود هغه سلطنت به الله پاك قائم او دائم ساتی او څوك چه صاحب ملك او صاحب سلطنت نه وی نو د دې په برکت سره به د هغه خپل نفس مطيع لو فرمانبردار وی او کوم سړې چه دا د عزت او جاه د حصول دپاره اولولی نو د هغه مقصود به حاصل شی او د دې باره کښې دا عمل مجرب دې

شیخ عبدالرحمن رحمه الله د دې خاصیت دا لیکلې دې چه څوك دا نوم ( الملك ) روزانه یو کم سل کرته لولی نو صرف دا چه هغه به روښانه او طاقت ور وی بلکه حکام او سلاطین به د هغه دپاره مسخر شی او د عزت او احترام او د جاه د زیادت د حصول دپاره مجرب دې

**القدوس**: انتهائی پاك، امام قشیری رحمه الله فرمائی چه کوم سړی ته دا معلومه شوه چه الله پاك انتهائی پاك دې نو اوس هغه له پکار دی چه هغه د دې خبرې خواهش اوکړی چه الله پاك هغه لره په هر حالت کښې د ټولو عیوبو او آفاتو نه لرې او د ګناهونو د نجاست نه پاك کړی

**خاصیت**: څوك چه دا اسم پاك روزانه د زوال په وخت لولی د هغه زړه به صفا کیږی او څوك چه ئې د جمعې نه پس د ( السبوح ) سره یعنی ( القدوس السبوح ) د ډوډئ په ټکړه باندې لیکلو سره هغې لره اوخوری نو د ملائکو صفات به په کښې پیدا شی. او د جنګ په وخت د دشمنانو نه د حفاظت دپاره چه دا څومره لوستلې شی او دې لولی او مسافر چه دا مسلسل لولی نو کله به هم ستومانه او عاجز نه شی او که دا درې سوه او نولس کرته په شیرینئ باندې لوستلوسره په دشمن باندې اوخوړلې شی نو هغه به نرم شی

**السلام**: بې عیب او سلامت، د دې اسم نه د بنده حصه دا ده چه هغه خپل ذات د هر بد کار او هر بد اخلاق نه بې عیبه جوړ کړی قشیری رحمه الله فرمائی چه د دې اسم نه د بنده نصیب دا دې چه هغه په قلب سلیم سره د خپل مولی طرف ته رجوع اوکړی بعض حضرات د دې نه د بنده نصیب دا بیانوی چه "مسلمان د هغه د ژبې او د لاس نه محفوظ او سلامت وی بلکه هغه دې د مسلمانانو سره ډیر زیات د شفقت معامله کوی. چه کله هغه یو داسې مسلمان وینی کوم چه د هغه نه په عمر کښې لوئ وی نو دا دې اوائی چه دا زما نه غوره دې ځکه چه هغه زما په نسبت زیات عبادت او طاعت کړې دې او په ایمان او معرفت کښې په ما باندې سبقت لری. او که یو داسې مسلمان وینی کوم چه په عمر کښې د هغه نه وړوکې وی نو هم دا دې اوائی چه دا زما نه غوره دې ځکه چه هغه زما په نسبت ګناه کمې کړې دی. هم دغه شان که د یو مسلمان زور نه څه قصور اوشی او هغه معذرت اوکړی نو د هغه معذرت قبلولو سره دې د هغه قصور معاف کړې شی

**خاصیت**: که یو سړې دا اسم مبارك په یو بیمار باندې یو سل یولس (۱۱۱) کرته اولولی نو ( انشاءالله ) الله پاك به هغه ته صحت او شفاء ورکوی او که څوك دا مسلسل لولی نو ویره به پرې نه راځی.

**المؤمن** : امن ورکوونکي، د دې اسم نه د بنده نصیب دا دې چه هغه د الله پاك مخلوق نه نه صرف : خپل شر او خپلې بدئ نه بلکه د نورو د شر او بدئ نه نې هم په امن او ساتی

**خاصیت** : څوك چه دا اسم مبارك ډیر لولی یا دې لره لیکلو سره خپل ځان سره ساتی نو الله پاك به هغه د شیطان د شر نه بې ویرې کړی او څوك به هم په هغه باندې قابو بیا نه مومی، هم دغه شان د هغه ظاهر او باطن به د الله پاك په امان کښې وی او څوك چه دې لره ډیر زیات لولی د الله پاك مخلوق به د هغه مطیع او فرمانبردار وی.

**المهیمن** : د هر یو څیز په ښه طریقه حافظ او نګهبان د دې اسم نه د عارف حصه دا ده چه د بدو عادتونو، بدو عقیدو او بدو څیزونو مثلاً حسد او کینې وغیره نه د خپل زړه نګهبانی اوکړی، خپل احوال صحیح اوساتی او خپل طاقت او اندامونه په هغه څیزونو کښې د مشغول ساتلو نه محفوظ اوساتی کوم چه زړه لره د الله پاك د طرف نه په غفلت کښې اچونکی وی

**خاصیت** : څوك چه د غسل کولو نه پس دا اسم یو سل پنځلس کرته اولولی هغه به د غیب او باطن په خبرو باندې خبر شی او څوك چه دا نوم مسلسل لولی هغه به د تولو آفتونو نه پناه بیا مومی او د جنتیانو په جماعت کښې به شامل شی.

**العزیز** : غالب او بې مثله چه څوك هم په هغه باندې نه شی غالب کیدې، د دې اسم نه د بنده حصه دا ده چه په خپل نفس، خپلو خواهشاتو او شیطان باندې غالب شی. په علم عمل او عرفان مکښې بې مثل جوړ شی او د مخلوق وړاندې لاسونه نه خوررولو سره خپل ذات ته عزت ورکړی اود غیر الله وړاندې د سوال لاسونه خوررولو سره خپل ځان ذلیله نه کړی ابو العباس مرسی وائی چه قسم په الله! عزت خو ما د الله پاك د مخلوق نه په اوچت همت اختیارولو (یعنی د چا وړاندې لاس نه خوررولو) کښې لیدلې دې

بعض علماء کرام فرمائی چه الله پاك خو عزیز (غالب او بې مثل) هم هغه چا منلې دې چا چه د هغه احکام او د هغه شریعت لره عزیز (یعنی په خپل ځان باندې غالب) کړو او د هغه په اطاعت او فرمانبردارئ کښې بې مثل جوړ شو) او چا چه په هغه څیزونو کښې د اسانتیا خوښولو او بې پروایئ عادت اختیار کړو هغه د الله پاك عزت اونه پیژندلو (یعنی هغه نې عزیز او نه منلو) د الله پاك ارشاد دې :

﴿ وَلِلَّهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ وَلَكِنَّ الْمُنَافِقِينَ لَا يَعْلَمُونَ ﴾

**ترجمه** [۱] او خاص د الله پاك دپاره دې عزت او د هغه د رسول او د مومنانو دپاره خو منافقان خلق علم نه لری

**خاصیت** : څوك چه دا اسم د سحر نه پس یو څلویښت کرته لولی هغه به په دنیا او آخرت کښې د چا محتاج نه شی او د خوارئ نه پس به عزیز شی، د دې نه علاوه هم د دې اسم ډیر

عجیب عجیب خاصیتونه مذکور دی

**الجبار** : د ورانو کارونو سمونکې، او بعض علماء کرامو ویلي دی چه د دې معنی ده بندګانو لره هغه کار طرف ته راوستونکې د کوم چه اراده کوی. د دې اسم نه د بنده نصیب دا دې چه فضائل او کمال حاصلولو سره دې د خپل نفس خرابیانې برابر کړی او په تقوی، پرهیزګارئ او طاعت باندې همیش والې اختیارولو سره دې په خپل نفس باندې غالب شي او دغه شان د کمال درجې ته دې اورسیږی

قشیری رحمه الله فرمائی چه په بعض کتابونو کښې منقول دی چه الله پاك فرمائی اې زما بنده! (د یو څیز) ته هم اراده کوې او زه هم اراده کوم (یعنی د هغه څیز په باره کښې ستا خواهش جدا وی او زما اراده جدا وی) او کیږی هم هغه د کوم چه زه اراده کوم لهذا که ته په هغې راضی شې د کوم چه زه اراده کوم (یعنی د هغه څیز په باره کښې چه زما د طرف نه کومه فیصله راشی نو د خپل خواهش خلاف هغې لره بغیر د چون چرا نه اومنې او په هغې باندې راضی شې) نو ته چه څه اراده کوې زه به په هغې کښې ستا دپاره کافی شم (یعنی د هغې نعم البدل به درکړم) او که چرته ته په هغې باندې راضی نه شوې کومه چه زما اراده ده نو بیا به زه په هغې کښې ستا دپاره نه کافی کیږم (یعنی تاته به نعم البدل نه درکوم) اوبیا به کیږی هم هغه کومه چه زما اراده وی او ته به محروم پاتې کیږې)

**خاصیت** : څوك چه د مسبحات عشر نه پس دا اسم یویشت کرته اولولی هغه به د ظالمانو د شر نه په امن وی، څوك چه دا اسم همیشه لولی هغه به د غیبت او د مخلوق د بدګوئ نه بې ویرې او په امن کښې اوسیږی او د اهل دولت او اهل سلطنت نه به وی او که څوك دا نوم په ګوتمه باندې نقش کولو سره واچوی نود خلقو په زړونو کښې به د هغه هیبت او عزت کینی

**المتکبر** : انتهائی لوئ والا، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هر کله هغه ته د الله پاك دا لوئې والې معلوم شو نو پکار ده چه هغه د خواهشات نفسانی طرف ته میلان او د لذت شهوانی طرف ته رغبت کولو نه تکبر یعنی پرهیز اوکړی څکه چه د دې څیزونو طرف ته رغبت کول د خناورو کار دې که د هغې طرف ته رغبت کوی نو خناورو سره به شریك شی بلکه د هر هغه څیز نه تکبر کول پکار دې کوم چه باطن لره د حق نه لرې ساتی او الله پاك ته د رسیدو نه علاوه هر یو څیز لره سپك ګنړل او د تواضع او تذلل طریقه اختیارول پکار دی اود خپل ذات نه د تکبر تولو دعوو لره زائل کول پکار دی د دې دپاره چه نفس پاك وی او په هغې کښې د الله پاك محبت ننوځی او دغه شان نه د نفس اختیار باقی پاتې شی او نه د غیر الله سره قرار

**خاصیت** : کوم سړې چه خپلې بې بې سره د مباشرت په وخت د دخول نه مخکښې دا اسم مبارك لس کرته اولولی نو انشاء الله، الله پاك به هغه ته متقی خوئې ورکوی او څوك چه د

خپل هر کار په شروع کښې دا اسم مبارك ډير لولي نو که الله پاك اوغوښتله نو هغه به خپل مراد ته رسيږي

**الخالق** : د مشيت او حکمت مطابق د پيدا کيدونکي څيز اندازه کونکې

**خاصيت** : څوك چه دا اسم مبارك مسلسل لولي الله پاك د هغه دپاره يو فرشته پيدا کوي چه هغه د هغه د طرف نه ترقيامته پورې عبادت کوي، هم دغه شان الله پاك د دې نوم په برکت سره د هغه سرې زړه او مخ روښانه او نوراني کوي

شاه عبدالرحمن ﷫ ليکلې دی چه څوك د شپې دا اسم ډير لولي د هغه زړه او مخ به روښانه شي او په ټولو کارونو باندې به غالب وي.

**البارئ** : پيدا کونکې

**خاصيت** : څوك چه دا اسم په هفته کښې سل کرته لولي الله پاك به هغه لره په قبر کښې نه پريږدی بلکه رياض قدس ته به ئې بوځي او کوم حکيم او معالج چه دا مستقل طور لولي هغه چه څه علاج هم کوی هغه به کامياب وی.

**المصور** : صورت (شکل) جوړونکې. د پورته ذکر شوې درې وارو نومونو نه د انسان برخه دا ده چه هغه کله يو څيز ته اوګوری او چه کله هم د يو څيز تصور اوکړی نو د الله پاك په هغه قدرتونو او عجائباتو کښې دې غور او فکر کوی کوم چه په هغه څيز کښې موجود دی

**خاصيت** : که يوه زنانه شنډه وی او د اولاد د دولت نه محرومه وی نو هغې له پکار دی چه د اووه ورځو پورې روژې اونيسي او روزانه دې د روژه ماتي په وخت يويشت کرته ( المصور ) په اوبو باندې دم کړی او هغه دې اوڅکی انشاء الله. الله پاك به ورته نيك اولاد ورکړی، څوك چه د يو سخت کار په وخت دا اسم اولولي نو انشاء الله هغه کار به اسان شي

**الغفار** : د بندګانو ګناهونو لره بخښونکې او د هغوی عيبونه پټونکې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه دا خبره ښه په ذهن کښې ياده کړی چه ګناهونو لره د الله پاك نه علاوه څوك نه بخښي، هم دغه شان هغه له پکار دی چه هغه د خلقو عيبونه پټ کړی، که د چا نه څه قصوراو خطاء سرزد شي نو هغه ته دې بخښنه اوکړی او په خپل خان دې ټول وختونو کښې خصوصا د سحر په وخت کښې استغفار لازم کړی، څوك چه د جمعې د مانځه نه پس سل کرته دا لولي ( يَاغَفَّارُاغْفِرْلِيْ ذُنُوبِيْ ) اې بخښنه کونکيه! زما ګناهونه اوبخښه! نو الله پاك به هغه د هغه خلقو نه کړی د چا چه بخښنه شوې ده.

**القهار** : غالب چه د هغه د قدرت مخې ته ټول عاجز او مغلوب وی

د دې اسم مبارك نه د بنده برخه دا ده چه هغه په خپلو دشمنانو باندې غالب کيدو سره هغوی خاتته عاجز او مغلوب جوړ کړی او لوئې دشمن نفس او شيطان دې.

**خاصيت** : څوك چه دا اسم ډير لولي الله پاك به د هغه د زړه نه د دنيا محبت ختم کړی او د

هغه خاتمه به په خیر سره کیږي او الله پاك به د هغه په زړه کښې شوق او محبت پیدا کړي،
او څوك چه دا نوم د خپل څه مهم دپاره سل کرته اولولي نو د هغه مهم به اسان شي او څوك
چه د دې په لوستلو باندې همیشوالي اختیار کړي د هغه د زړه نه به د دنیا محبت ختم شي
او که څوك د فرض او سنت مونځونو ترمینځه دا اسم سل کرته د مقهورۍ په نیت اولولي
نو لوئې نه لوئې دشمن به مقهور او مغلوب شي

**الوهاب**: بغیر د بدلې نه ډیر څه ورکونکې، ددې اسم نه د بنده برخه دا ده چه د الله پاك په
لاره کښې خپل نفس او مال بغیر د څه غرض او بغیر د څه عوض او لالچ نه خرچ کړي

**خاصیت**: په چا باندې چه د فقر او لوږې تکلیف او مصیبت وي نو هغه له پکار دي چه هغه
د دې اسم پاك په لوستلو باندې همیش والې اختیار کړي الله پاك به هغه ته د مصیبت نه
داسې نجات ورکړي چه هغه به حیران پاتې شي، او څوك چه دې لره لیکلو سره خپل ځان
سره اوساتي د هغې به هم دغه شان اثر بیامومي، او څوك چه د چاشت نه پس د سجدې یو
آیت کرته اولولي او بیا په سجده کښې سر کیخودلوسره اووه کرته دا اسم پاك اولولي نو
هغه به د مخلوق نه بې پرواه او بې نیازه شي، که څوك خپل یو حاجت پوره کوي نو هغه دې
د نیمې شپې د خپل کور یا مسجد په انګڼر کښې درې کرته سجده اوکړي او بیا دې لاس
اوچتولو سره دا اسم سل کرته اولولي انشاء الله د هغه حاجت به ضرور پوره کیږي

مولانا شاه عبدالعزیز رحمه الله فرمائي چه د رزق د فراخئ دپاره دې د چاشت په وخت څلور
رکعته مونځ اوکړې شي د مانځه نه د فراغت نه پس دې سجدې ته تلو سره یو سل څلور
کرته (یاوهاب) اولوستلې شي او که دومره وخت نه وي نو بیا دې پنځوس کرته اولوستلې
شي انشاء الله په رزق کښې به نې وسعت او فراخي راشي

**الرزاق**: رزق پیدا کونکې او مخلوقات ته رزق رسونکې زرق هغه څیز ته وائي چه د هغې
نه فائده اوچته کړې شي، بیا د دې دوه قسمونه وي ظاهري او باطني. ظاهري هغه دې چه
په هغې سره بدن ته فائده رسیږي مثلاً د خوراك څکاك څیزونه او اسباب یعنې کپړه
وغیره او باطني هغه دې چه په هغې سره نفس او زړه ته فائده رسیږي لکه علوم او معارف
وغیره

د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه په دې خبره باندې کامل یقین او اعتقاد اوساتي چه
د الله پاك نه علاوه بل هیڅ څوك د رزق ورکولو قابل نشته، لهذا هغه دې د رزق امید
صرف د الله پاك نه ساتي او خپل ټول کارونه دې هغه ته سپاري هم دغه شان دې په خپل
لاس او خپل بدن سره خلقو ته بدني او روحاني رزق رسوي، یعنې څوك چه محتاج او
ضرورت مند وي په هغوي دې خپل مال خرچ کوي، کوم چه کم علم او ګمراه وي هغوي ته
دې تعلیم ورکوي او هغوي ته دې هدایت کوي او د هر مسلمان دپاره دې د خیر دعا کوي

وغيره وغيره

د يو عارف نه تپوس اوكړې شو چه ستاسو د خوراك څكاك انتظام څنګه كيږي؟ نو هغه جواب وركړو چه كله نه ماته د خپل خالق عرفان (پيژندګلو) حاصل شوې دې ما كله هم د خپل رزق فكر نه دې كړې هم دغه شان د يو عارف نه تپوس اوكړې شو چه قوت (خوراك) څه دې؟ هغوى اووئيل د ﴿الحى الذى لايموت﴾ (د هغه پاك ذات يعني د الله چه داسې ژوندې دې چه مرګ پرې نه راځي) ذكر

**خاصيت**: څوك چه د صبا راختلو نه پس او د سحر د مانځه نه مخكښې د خپل كور په څلورو وارو ګوټونو كښې دا اسم پاك لس لس كرته اولولي په داسې طريقه چه د خپل ښي طرف نه لوستل شروع كړي او خله د قبلې د طرف نه نه اړوي نو د هغه په كور كښې به غم او غريبي نه راځي

**الفتاح**: حكم كونكې او بعضو وئيلې دى د رزق او رحمت دروازې پرانستونكې. د دې اسم نه د بنده نصيب دا دې چه هغه د خلقو ترمينځه صلح او صفائي او د انصاف دپاره د فيصلې كولو سعي او كوشش كوى او د مظلومانو مدد كوى او هم دغه شان د خلقو د دنياوى او اخروى حاجتونو د پوره كولو اراده اوكړي.

قشيري رحمه الله فرمائي: څوك چه په دې باندې پوهه شو چه الله پاك د رزق او رحمت دروازې پرانستونكې، اسباب برابرونكې او ټولو څيزونو لره صحيح كونكې دې نو اوس به هغه د الله پاك نه علاوه د بل چا سره خپل زړه نه لګوى.

**خاصيت**: څوك چه د سحر د مانځه نه پس په خپله سينه باندې دواړه لاسونه كيخودلو سره اويا كرته دا اسم اولولي نو د هغه د زړه خيرې به ختم شي او هغه ته به د زړه او باطن ډير پاكوالي حاصل شي

**العليم**: د ظاهر او باطن پيژندلو والا چا څه ښه وئيلې دى چه د چا دا علم راغلو چه الله پاك ته زما حال ښه معلوم دې نو اوس د هغه دپاره ضرورى ده چه كه الله پاك هغه لره په څه مصيبت كښې اخته كړي نو هغه به په هغې باندې صبر كوى، هغه ته چه كومه پوهه وركړى په هغې به شكر اوباسى او د هغه نه د خپلو ګناهونو د بخښنې او معافۍ غوښتونكې وى په بعض كتابونو كښې منقول دى چه الله پاك (بندګانو ته) فرمائي كه تاسو ته دا علم نه وى چه په هر حال كښې په تاسو باندې زما نظر وى او زه تاسو وينم نو بيا ستاسو په ايمان كښې كمې دې. او كه تاسو ته دا معلومه وى چه زه تاسو ته هر وخت ګورم نو بيا تاسو ولې په خپلو كتونكو كښې ما د ټولو نه سپك ګڼړې؟ يعني د نورو نه خو تاسو ويريږئ او شرم كوئ چه چرته هغه ستاسو څه بدى او ستاسو يو جرم او نه ويني، د څه بدئ او جرم په وخت نه زما نه ويريږئ او نه شرميږئ او حال دا چه ستاسو په يو يو حركت باندې زما نظر وى چه د

مغې مطلب دا وی چه (نعوذبالله) زما په مقابله کښې تاسو د دنيا والو ته زيات اهميت ورکوئ

**خاصيت**: څوك چه دا اسم ډير زيات لولی الله پاك هغه ته خپل معرفت ډير زيات ورکوی او څوك چه د مانځه نه پس (عالم الغيب) سل کرته لولی، الله پاك به هغه نه صاحب کشف جوړ کړی، او که څوك غواړی چه هغه ته د يو پټ څيز علم حاصل شی نو هغه لره پکار دی چه هغه د ماسخوتن د مانځه نه پس په مسجد کښې سل کرته د دې ذکر کولو سره اوده شی انشاء الله په هغه باندې به د هغه څيز حقيقت راښکاره شی

**القابض**: د بندګانو روزی يا زړه لره تنګونکې او د هغوی روح قبض کونکې

**خاصيت**: که يوسړې دا اسم پاك څلويښتو ورځو پورې روزانه (د ډوډئ وغيره) په څلورو نوالو باندې ليکلو سره اوخوری نو انشاء الله هغه به د لوږې او قبر د عذاب نه په امن وی

**الباسط**: د بندګانو په روزئ کښې وسعت او فراخی پيدا کونکې يا د هغوی زړونه فراخه کونکې

په دې دواړو نومونو (القابض والباسط) کښې د بنده برخه دا ده چه نه خو د يو بلاء او مصيبت په وخت نااميده شی او نه د هغه د ورکړې په وخت بې فکری اختيار کړی او تنګسيا دې د هغه د عدل نتيجه اوګڼړی او په هغې دې صبر اوکړی او فراخی او وسعت دې د هغه د فضل ثمره اوګڼړی او په هغې دې شکر ګزار شی.

قشيري رحمه الله فرمائی چه دا دواړه کيفيت (يعنی د زړه تنګيدل او فراخه کيدل) د عارفينو په زړه باندې راځی چه کله د الله پاك ويره غالب کيږی نو د هغوی زړونه تنګيږی او کله چه د رحمت اميد غالب کيږی نو د هغوی زړه فراخه کيږی. پس د جنيد بغدادی رحمه الله په باره کښې منقول دی چه هغوی اوفرمائيل ويره زړه زما تنګوی، اميد زما زړه فراخه کړی، حق ما راجمع کړی (يعنی د الله پاك په ياد سره زما خاطر جمع وی) او مخلوق ما منتشر کوی (يعنی د مخلوق په صحبت سره زما زړه بې توجه شی) او د بنده د شان تقاضه دا ده چه د تنګسيا او پريشانئ په حالت کښې د بې قرارئ نه پرهيز اوکړی او د وسعت او فراخئ په وخت دې د بې ځايه خوشحالئ او بې ادبئ نه ځان اوساتی چه د دې څيزونو نه لوئې لوئې خلق ويريږی

**خاصيت**: څوك چه د سحر په وخت لاس اوچتولو سره دا اسم پاك لس کرته اولولی او بيا خپل لاسونه په مخ راکاږی نو هغه ته به کله هم دا ضرورت نه راځی چه هغه چاته د خپل ضرورت د پوره کولو دپاره درخواست اوکړی.

**الخافض**: کافرو لره ذليل او خوار کولو سره يا هغوی لره د خپل دربار نه لرې ساتلو سره پست کونکې

**خاصیت** : څوك چه د دې روژې اونبسی او په څلورمه ورځ په یو مجلس کښې دا اسم پاك اویا
زره کرته اولولی نو هغه به په دشمنانو باندې فتح بیا مومی

**الرافع** : د مومنانو مدد کولو سره یا هغوی ته د خپل دربار قرب ورکولو سره اوچتونکې. د
دې دوارو نومونو ﴿ **الخافض والرافع** ﴾ نه د بنده برخه دا ده چه هغه په خپل یو حالت باندې
هم اعتماد اونکړی او نه د خپلو علوماو اعمالو نه په څه څیز باندې اعتماد اوکړی او
هغه څیز دې پست او مغلوب کړی د کوم چه الله پاك د پست کولو حکم کړې دې. مثلا
نفس او خواهش اوهغه څیز دې اوچت کړی د کوم د اوچتولو چه الله پاك حکم کړې دې لکه
زړه او روح

منقول دی چه یو سړې خلقو په هوا کښې په الوتلو باندې اولیدو نو د هغه نه تپوس اوشو چه
ته دې مرتبې ته څنګه اورسیدې؟ هغه اوونیل چه ما خپله هوی (یعنی نفسانی خواهش
شاته ګزار کړو نو الله پاك د فضاء هوا زما دپاره مسخر کړه

**خاصیت** : څوك چه دا اسم پاك د نیمې شپې په وخت یا د غرمې په وخت سل کرته اولولی نو
الله پاك به هغه لره په مخلوق کښې غوره، مالداره او بې نیازه کړی.

**المعز** : عزت ورکونکې، څوك چه دا اسم پاك د ګل په شپه یا د جمعې په شپه کښې یو
څلوېښت کرته اولولی د مخلوق په نظر کښې به د هغه عزت او شوکت پیدا کیږی او د الله
پاك نه علاوه به د چا په خوف او ویره کښې هم نه اخته کیږی.

**المذل** : ذلت ورکونکې، د دې دوارو نومونو (**المعزوالمذل**)نه د بنده نصیب دا دې چه هغه
خلقو لره عزیز اوساتی څوك چه الله پاك د علم او معرفت د وجې نه عزیز ساتلې دی او هغه
خلق دې ذلیل او خوار اوګڼری کوم چه الله پاك د کفر او ضلالت په سبب ذلیل او خوار کړې دی
**خاصیت** : که څوك د چا ظالم او حاسد نه ویریږی نو هغه له پکار دی چه هغه دا اسم پاك
پنځه اویا کرته اولولی د هغې نه پس سجده اوکړی او د الله پاك په دربار کښې داسې عرض
اوکړی. اې الله! د فلانی ظالم او حاسد د شر نه ماته امان راکړه. الله پاك به ورته امان
ورکړی

**السمیع** : اوریدونکې، **البصیر** : لیدونکې، د دې نومونو نه د بنده برخه دا ده چه هغه د
خلاف شرع څیزونو د ونیلو، اوریدلو او کتلو نه پرهیز اوکړی او الله پاك په خپلو اقوالو او
افعالو باندې حاضر او ناظر اوګڼری
امام غزالی رحمه الله فرمائی چا چه د غیر الله نه هغه څیز پټ کړو کوم چه هغه د الله پاك نه نۀ
پټوی هغه ګویا د الله پاك نظر حقیر اوګڼرو. لهذا کوم سړی چه سره د علمه څه ګناه اوکړه
چه الله پاك هغه ته ګوری نو هغه ډیر لوئې جراءت اوکړو او څه لوئې جراءت ئې اوکړو، او
چا چه په دې ګمان باندې څه ګناه اوکړه چه هغه ته الله پاك نه ګوری نو بیا هغه لوئې کفر

وکړو او ډیر لوئي کفر ئې اوکړو، په دې وجه په طور د تعلیق بالمحال وئیلې شی چه که تاسو د خپل رب څه جرم اوکړئ نو داسې ځائې کښې اوکړئ چرته چه هغه تاسو نه وینی مطلب دا دې چه داسې کوم ځائې دې کوم چه د الله پاك د نظر نه پټ وی. او چه هر کله داسې يو ځائې ممکن نه دې چرته چه ئې الله پاك په ګناه کولو باندې نه وينی نو بیا ګناه مه کوه

**خاصیت:** څوك چه دا اسم پاك ( السمیع ) د زيارت په ورځ باندې د چاشت د مانځه نه پس سل کرته يا د يو قول مطابق روزانه د چاشت د مانځه نه پس سل کرته لولی او د لوستلو په درمیان کښې څه کلام نه کوی نو د هغې نه پس چه کومه دعا کوی هغه به قبلیږی او که يو سړې د سحر د سنت او فرض ترمینځه اسم پاك ( البصير ) د کامل او صحیح اعتقاد سره سل کرته اولولی نو انشاء الله د الله پاك د مهربانۍ په نظر سره به مختص وی

**الحکم:** داسې حکم کونکې چه څوك ئې حکم نه شی رد کولې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هر کله هغه معلومه کړه چه الله پاك داسې حاکم دې چه د هغه حکم او فيصله څوك روستو کولې نه شی نو اوس هغه له پکار دی چه د هغه هر حکم اومنی او د هغه د مشيت او قضاء تابعدار شی، لهذا کوم بنده چه د هغه په مشيت او قضاء او قدر باندې قصدا راضی نه وی نو الله پاك به په هغه باندې خپل مشيت او خپله فيصله په زبردستی جاری کوی او څوك چه په رضا او رغبت سره او د زړه په خوشحالئ سره هغه اومنی نو الله پاك به په خپل رحمت اوکرم سره هغه ته ورکړه کوی او هغه به د خوشحالئ او اطمینان ژوند تیروی او هغه به د غیر الله مخې ته د خپل فرياد اوړولو محتاج نه وی.

**خاصیت:** څوك چه دا اسم پاك د جمعې په شپه باندې او د يو قول مطابق د نیمې شپې دومره اوانی چه بیهوشه شی نو الله پاك به د هغه باطن معدن اسرار جوړ کړی

**العدل:** انصاف کونکې، د دې علم نه پس چه الله پاك انصاف کونکې دې بنده له پکار دی چه د هغه په احکاماتو او فيصلو باندې خپل ځان کښې ويره او تنګی پیدا نه کړی بلکه دا يقين دې اوساتی چه هغه چه زما په باره کښې کومه فيصله فرمائیلې ده هغه عين انصاف دې لهذا په هغه باندې د توکل او اعتماد په ذریعه دې راحت او اطمینان پیدا کړی او څه چه الله پاك هغه ته ورکړی د هغې دې هغه ځائې کښې د خرچ کولو نه نهٔ روستو کیږی چرته چه خرچ کول د شريعت او عقل په نزد مناسب دی، او د هغه د عدل نه دې اوویریږی، د هغه د فضل او کرم دې اميدوار وی او په ټولو کارونو کښې دې د افراط او تفريط نه پرهيز کولو سره درمیانی لاره اختيار کړی

**خاصیت:** څوك چه دا نوم د جمعې په شپه باندې د ډوډئ په شلو نمرو باندې لیکلو سره اوخوری الله پاك به ټول مخلوق د هغه دپاره مسخر کړی

**اللطیف:** په خپلو بندګانو باندې نرمی کونکې او باريك بين چه د هغه دپاره لرې او نزدې

بر شي دی . د دې نه د بنده برخه دا ده چه هغه په امور دین او دنیا کښې غور او فکر ... او به نرمی سره خلق حق لاړي ته راوبلی

**خاصیت:** چاته چه اسباب معیشت نه ملاویږی او په فقر او فاقه کښې اخته وی ... په غربت کښې څوك غمخوار نه وی، یا بیمار وی او څوك ئې خیال ساتونکې نه وی ... هغه نور وی چه رشته وغیره وربسې نه راځی نو هغه له پکار دی چه اول بنه طریقې سره ... اوکړی او دوه رکعته مونځ کولو سره دا اسم پاك د خپل مقصد په نیت سره سل کرته اونولی انشاء الله، الله پاك به ئې مشكل اسان كړی، هم دغه شان د جینكو د نصیب بیدارونو، د مرضونو نه د صحت موندلو او د اهم كارونو د تكمیل دپاره دې اسم لره سل كرته نوستلو باندې همیش والې اختیارول پكار دی، د دې اسم متعلق د پیران اخوانیه عمل دا دې چه د هر دینی او دنیوی مهم دپاره په څه خالی ځائې كښې دا اسم د ... د شرطونو سره شپږ سو زره او دری سوه یو څلویښت (١٦٣٤١) كرته اولولستلې شی نو انشاء الله مراد به ورته حاصل شی

**الخبیر:** د زړه د خبرو او د ټولو څیزونو خبر ساتونکې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه كله د هغه دا علم راغلو چه الله پاك زما په رازونو باندې خبردار دې، او زما د زړه د خبرو نه هم خبردار دې نو اوس د هغه دپاره لازم دی چه هغه هم دې لره یاد كړی او د هغه د یاد ورنه دې د هغه نه ما سوا هیر كړی، د ضلالت د لارو نه دې پرهیز اوكړی. په خپل ذات باندې دې د ریا كارۍ ترك او د تقوی اختیار لازم كړی. د باطن په اصلاح كښې دې مشغول وی دهغې نه دې غفلت نه كوی اود دین او دنیا دبهترین اوښه خبرو خبر ساتونكې دې وی

**خاصیت:** څوك چه د نفس اماره د لاسه گرفتار وی هغه دې دا اسم پاك ډیر زیات لولی. كه الله پاك اوغوښتله نو هغه ته به خلاصې ملاؤ شی

**الحلیم:** بردبار چه مومن ته په عذاب وركولو كښې تندی نه كوی بلكه هغه ته مهلت وركوی چه توبه كولو سره كامیاب شی. د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د بد اخلاقه خلقو په تكلیف باندې تحمل اوكړی. كوم خلق چه ئې د لاس د لاندې دی هغوی ته په سزا وركولو كښې تامل اوكړی او د غیض او غضب او غصې نه لرې وی او د حلم هغه د كمال مرتبې ته د رسیدو كوشش اوكړی چه كه څوك هغه سره بدی كوی نو هغه دې ورسره نیكی اوكړی

**خاصیت:** كه څوك دا اسم په كاغذ باندې لیكلو سره وینځی او د هغې اوبه اونې یا فصل ته واچوی نو د نقصان نه به محفوظ وی په هغې كښې به بركت وی او د هغې نه به پوره پوره ثمره ملاویږی.

**العظیم:** په ذات او صفات كښې د فهم او شعور د رسیدو د حد نه هم زیات لوئې، یعنی د خپل ذات او صفات په اعتبار سره د هغه لوئې والې او عظمت دومره دې چه د انسان عقل

او فهم او شعور د هغه د عظمت او لوئي والي ادراك نه شي كولې. د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د عظمت الهي وړاندې كونين هم سپك اوګڼي. د دنيا دپاره دې چاته خپل سر نه ښكته كوي، خپل نفس دې حقير اوګڼي او الله پاك چه د كومو څيزونو د كولو حكم كړې دې هغه دې اختيار كړي، اود كومو څيزونو نه د بچ كيدو چه ئې حكم كړې دې د هغې نه دې اجتناب كولو سره نور څيزونه كوم چه الله پاك ته محبوب دي په هغې كښې مشغول اوسيدو سره خپل نفس ذليل كړي چه د الله پاك رضا او خوشحالي ورته حاصله شي

**خاصيت :** څوك چه د دې اسم پاك په لوستلو باندې مداومت او هميشه والې اختياروي هغه به د الله پاك د مخلوق په نظر كښې عزيز او مكرم وي.

**الغفور :** ډير بخښنه كونكې، د دې اسم نه د بنده نصيب دا دې چه هغه د ورځې شپې په اكثر وختونو كښې خاص كر د سحر په وخت استغفار په خپل ځان باندې لازم اونيسي او هغه سړي ته بخښنه او معافي اوكړي كوم چه هغه ته تكليف او ايذا رسوي

**خاصيت :** په چا چه څه بيماري وي مثلا تبه او د سر درد وغيره يا پرې څه غم او خفګان غالب وي نو هغه له پكار دي چه هغه دا اسم پاك په كاغذ اوليكي اود هغې نقش دې په ډوډئ باندې جذب كولو سره هغه اوخوري، الله پاك به هغه ته شفاء او نجات وركړي. او كه څوك دا ډير زيات لولي نو د هغه د زړه تيارهٔ به ختمه شي

په يو حديث كښې منقول دي چه څوك سجده كوي او په سجده كښې ﴿ يأرب اغفرلي﴾ اې زما ربه ماته بخښنه اوكړه، درې كرته اوائي الله پاك به د هغه وړاندې روستو ګناهونه معاف كړي. كوم سړي ته چه د درد سر تكليف وي يا په بل څه غم او تكليف كښې اخته وي هغه له پكار دي چه د يا غفور مقطعات درې كرته ليكلو سره اوخوري انشاء الله شفاء به ورته ملاؤ شي

**الشكور :** قدردان، لږ عمل باندې زيات ثواب وركونكې، منقول دي چه يو سړي (چه مړ شوې وو) په خوب كښې اوليدې شو نو د هغه نه تپوس اوكړې شو چه الله پاك در سره څنګه معامله اوكړه؟ هغه سړي اووئيل چه الله پاك ما سره حساب اوكړو نو زما د نيكو تله ښكته شوه، (او د ګناهونو تله غالب شوه) چه ناڅاپه د نيكو په تله كښې يوه تهيلۍ راپريوتله چه په هغې سره هغه چابړې اوچت شو، چه كله ما تپوس اوكړو چه دا څه دي نو ماته اوئيلې شو چه دا يو موټې برابر خاوره ده كومه چه تا د يو مسلمان رور په قبر باندې اچولې وه، د دې نه معلومه شوه چه د الله پاك فضل او كرم په څومره معمولي عمل باندې هم بنده ته بې انتهاء ثواب او رحمت وركوي.

د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه د الله پاك شكر ادا كوي په داسې طريقه چه ټول نعمتونه هم د هغه وركړه ګڼړلو سره خپل هر اندام هم په هغه كار كښې مشغول اوساتي د كوم دپاره

چه الله پاك هغه پيدا كړي دي، د خلقو سره دې د حسن سلوك معامله كوي او د هغوي شكر دې ادا كوي ځكه چه په حديث كښې راغلي دي

﴿ لايشكر الله من لايشكر الناس ﴾ هغه څوك د الله پاك شكر نه شي ادا كولې چه د خلقو شكر نه اوباسي

**خاصيت**: د چا چه معيشت تنګ وي يا د هغه د سترګو او زړه په نور كښې كمې پيدا شوې وي نو هغه دې دا اسم پاك يو څلويښت كرته په اوبو باندې لوستلو سره په سترګو باندې راكاږي انشاء الله مالداري به ورته حاصله شي او شفاء به بيا مومي.

**العلي**: عالي شان، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د الله پاك په ظاهري او باطني طاعاتو او عباداتو سره خپل نفس ذليل كړي او خپله ټوله توانائي د علم او عمل په حصول كښې خرچ كړي تردې چه هغه انتهائي كمالات او مراتب عالي ته اورسيږي په حديث شريف كښې منقول دي چه الله پاك اعلي امور خوښوي ځكه چه په دې وجه بنده اعلي مراتب او اوچتو درجاتو ته رسيږي، او ادني امور نه خوښوي، هم په دې وجه د علي رضي الله عنه دا مقوله ده چه اوچت همت د ايمان نه پيدا كيږي

**خاصيت**: څوك چه په دې اسم پاك باندې مداومت كوي يا دې لره ليكلو سره خپل خان سره ساتي نو كه هغه كمتر او بې قدره وي نو عالي شان به شي كه په فقر او غريبۍ كښې اخته وي نو مالداري به ورته حاصل شي او كه د سفر په مشكلاتو كښې اخته وي نو خپل محبوب وطن ته به ئې واپس كيدل نصيب شي

**الكبير**: لوئې او داسې لوئې چه د هغه په لوئې والي كښې څوك د هغه برابر نشته، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د الله پاك لوئې والې هميشه ياد اوساتي تردې چه د هغه نه د ماسوا لوئې والې بالكل هير كړي، د علم او عمل د حصول په ذريعه خپل نفس لره د كامل جوړولو كوشش اوكړي چه د هغه د كمال او د هغه د فيض نه نور مستفيد شي په تواضع او انكسارۍ اختيارولو كښې دې مبالغه اوكړي او خدمت مولي دې په خپل خان باندې لازم كولو سره د بې توجه كيدو او بې ادبۍ نه احتراز اوكړي

**خاصيت**: د دې اسم پاك ډير زيات لوستونكې اوچتې مرتبې والا او عالي قدر وي او كه حكام او مشران د دې اسم پاك په لوستلو باندې مداومت كوي نو په خلقو باندې به د هغه ويره او دبدبه غالب شي او د هغه ټول كارونه به په ښكلې طريقې سره پوره كيږي

**الحفيظ**: عالم لره د آفتونو او نقصاناتو نه محفوظ ساتونكې، د دې اسم پاك نه د بنده برخه دا ده چه هغه خپل اندامونه د ګناهونو نه او باطن د اغيار د كتلو نه محفوظ اوساتي، په خپلو ټولو كارونو كښې د الله پاك د فيصلو او د هغه په مشيت باندې اكتفاء اوكړي او د هغه په قضاء او قدر باندې راضي شي.

د يو بزرګ قول دې چه الله پاك چه د كوم انسان اندامونه محفوظ اوساتل د هغه زړه ئې محفوظ اوساتلو او د چا چه ئې زړه محفوظ اوساتلو د هغه رازونه ئې محفوظ اوساتل

**خاصيت** : كه څوك دا اسم پاك اوليكي او په ښى مټ ئې اوتړى نو هغه به د ډوبيدو، سوزيدو، جادو او نظر بد وغيره نه محفوظ وى

**المقيت** : د بدن او روح دپاره طاقت (خوراك) پيدا كونكې او هغوى ته قوت وركونكې د دې اسم نه د بنده حصه دا ده چه هر كله هغه ته دا معلومه شوه چه هم الله طاقت پيدا كونكې او طاقت وركونكې دې نو اوس هغه له پكار دى چه هغه د هغه د ذكر (يعنى د الله پاك د ياد) وراندې د خپل قوت ذكر (يعنى د خپل خوراك ذكر) هير كړى ځكه چه حقيقى ذكر خو د هغه ذكر او د هغه ياد دې لكه چه د سيدنا سهيل ﷺ نه منقول دى چه كله د هغوى نه دقوت په باره كښې تپوس اوكړې شو نو هغه اوفرمائيل چه د ﴿ حي الذي لايموت ﴾ د ژوندى ذات چه مرګ پرې نه راځى) ذكر دې. هم دغه شان بنده له پكار دى چه هغه خوراك او طاقت د خپل مولى نه علاوه د بل چا نه او نه غوارى د الله پاك ارشاد دې:

﴿وَإِنْ مِنْ شَيْءٍ إِلَّا عِنْدَنَا خَزَائِنُهُ وَمَا نُنَزِّلُهُ إِلَّا بِقَدَرٍ مَعْلُومٍ﴾

**ترجمه**: داسې يو څيز هم نشته مګر مونږ سره د هغې خزانې دى او مونږ نازلوو دې لره په اندازه معلومه

هم دغه شان بنده له پكار دى چه هغه خپل هر متعلق ته قوت وركړى چه د هغې هغه مستحق دې چه نورو ته فائده رسول او ګمراهانو ته هدايت كول او په اوږو باندې خوراك كول د هغه طره جوړه شى.

قشيرى رحمه الله فرمائى: قوت د مختلف نوع وى يو خو هم دا ظاهرى غذا او خوراك چه په هغې باندې د انسان د ژوند بنياد ګنړلې شى، خو بعض بندګان خو داسې دى چه الله پاك د عباداتو توفيق لره د هغوى د نفس غذا، د مكاشفاتو صادريدلو لره د هغوى د زړه قوت او مداومت مشاهدات لره د هغوى د روح غذا جوړه كړى، پس الله پاك چه كله خپل يو نيك بنده په خپل طاعت او عبادت كښې مشغول ساتى او داسې چه هغه بنده خپل خواهشات نفس نه بالكل قطع نظر كولو سره پوره په توجه او صدق او اخلاص سره صرف د خپل مولى طرف ته متوجه اوسيږى نو الله پاك د هغه دپاره يو داسې څوك مقرر كړى كوم چه د هغه خبر اخلى او خدمت ئې كوى او د هغه په ذريعه د هغه د ژوند ضروريات پخپله پوره كيږى. خو چه كله يو بنده د خپل خواهشات نفس د تكميل طرف ته متوجه كيږى نو الله پاك د هغه د خواهش تكميل لره هم هغه باندې پريږدى او د هغه نه د خپل عنايت او مدد سورې اوچت كړى.

**خاصيت** : كه څوك چا لره غريب اووينى يا خپله په غربت كښې اخته شى، يا يو ماشوم په د

خپلې بد خوبۍ نه نه قلاريږي يا ډير ژاړي نو په خالي پياله وغيره باندې دې اسم پاك ليكلو سره دم كړي او بيا په هغه پياله كښې اوبه اچولو سره دې وڅكي ضرورت وي په هغه دې اوڅكي، هم دغه شان كه يو روژه دار ته د هلاكت دې دا اسم پاك په يو ګل باندې لوستلو سره بوئي كړي انشاء الله تعالى په دې تقويت حاصل شي او د روژې نيولو به قابل شي

**الحسيب**: په هر حال كښې كفايت كونكې يا د قيامت په ورځ حساب اخستونكې نه د بنده برخه دا ده چه هغه د محتاجانو دپاره كافي كيدونكې او د هغوى حاجتونه پوره كونكې وي او د خپل نفس محاسبه كوي

قشيري رحمه الله چه په دې موقع باندې كومه خبره كړې ده د هغې مفهوم دا دې چه د بنده دپاره د الله پاك د كافي كيدو مطلب دا دې چه هغه د هغوى په هر حال او هر كار كښې مددګار وي او د هغه هر كار پوره كوي لهذا چه هر كله بنده دا معلومه كړه چه الله پاك زما دپاره كافي او زما هر مراد او هر كار لره پوره كونكې دې نو اوس هغه له پكار دي چه وس هغه په هيڅ دنياوي اسره باندې اعتماد اونكړي بلكه هغه ته د خپل مقصد په حصول كښې د هيڅ دنياوي اسرې نه فائده اونه رسيږي سره د دې چه د هغه په هغه اسره باندې اعتماد هم پاتې شوې وي نو د هغه نه دې خفه او پريشانه كيږي نه بلكه دا يقين دې ساتي چه الله پاك چه زما په تقدير كښې څه فيصله كړې ده په هر صورت به هم هغه كيږي. كه په قسمت كښې حصول مقصد ليكلې شوې وي نو هغه به ضرور حاصليږي اګر كه هغه دنياوي اسره هر څومره نااميده كونكې ولې نه وي او كه په قسمت كښې ئې د مقصد حصول نه دې ليكلې نو هغه به نه حاصليږي اګر كه هغه دنياوي اسره هر څومره زور ولې او نه نګوي و بيا دا چه كوم سړې د الله پاك د طرف نه راپيښيدونكې څيز باندې كوم چه اګر كه د هغه مطلوب نه دې اكتفاء اوكړي نو الله پاك به هغه سړې په هغه څيز باندې راضي او مطمئن كړي كوم چه هغه د هغه سړي دپاره فرمائيلې وي، پس د دې اثر به دا وي چه دا سړې بنده د دې خپل صفت (يعني په رضا باندې راضي كيدلو) په وجه باندې د خپل مطلوب عدم حصول د هغه د حصول په مقابله كښې او فقر لره د مالدارۍ په مقابله كښې په رضا او رغبت اختيار او قبول كړي او د مشاهدې په سبب او د مولى په تصرف سره د حصول مقصد د اسباب او ذرائع په نه ملاويدو به ئې زړه مطمئن شي

**خاصيت**: څوك چه د يو غل يا حاسد يا ګاوندي او يا د دشمن د شر نه ويريږي يا بد نظر لګيدو نه پريشانه وي نو هغه دې يوې هفتې پورې سحر او ماښام اويا كرته ( حسبي الله الحسيب ) (كافي كيدونكې الله پاك زما دپاره كافي دې) اولولي، الله پاك به هغه لره د هغه څيزونو د شر او پريشانۍ نه محفوظ اوساتي

**الجلیل** : اوچتې مرتبې والا، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د صفات کمال په ذریعه خپل نفس لره ډولې کړی او اوچتې مرتبې والاجوړ شی

**خاصیت** : که یو سړې دا اسم پاك په مشك او زعفرانو سره لیکلو باندې خپل ځان سره وساتی یا ئې اوخوری نو ټول خلق به د هغه تعظیم او توقیر شروع کړی

**الکریم** : ډیر سخی او جود کونکې، ډیره ورکړه کونکې چه د هغه ورکړه نه چرته بندیږی او نه د هغه خزانې خالی کیږی، د دې اسم نه د بنده حصه دا ده چه هغه د الله پاك مخلوق نه بغیر د وعدې نه مال او زر ورکړی او د هغوی هر قسم مدد کوی. هم دغه شان د بدو کړونو او بدو اخلاقو نه پرهیز اوکړی

**خاصیت** : څوك چه خپلې بسترې ته رسیدو سره دا اسم پاك دومره اولولی چه په لوستلو لوستلو اوده شی نو د هغه دپاره به ملائك دعا کوی او وائی به (اکرمك الله) الله پاك دې تا ته عزت درکړی، او ته دې مکرم او معزز شې، ونیلې شی چه سیدنا علی ﷺ به دا اسم ډیر زیات لوستلو هم په دې وجه هغوی ته (کرم الله وجهه) ونیلې کیدل

**الرقیب** : د هر یو څیز نگهبانی کونکې، او بعض حضرات وائی چه د بندگانو احوال او افعال پیژندلو والا د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه هر وخت په هر حال کښې په الله پاك باندې نظر ساتی او د هغه نه علاوه د بل چا نه سوال نه کوی چه د ما سوا الله طرف ته د هغه التفات ښکاره شی او الله پاك چه هغه په کومه نگهبانئ او خیال ساتلو باندې مقرر کړې دې د هغې په خیال ساتلو او نگهبانئ کښې د ذرې برابر کوتاهی هم اونکړی

په حدیث کښې راغلې دی چه تاسو ټول راعی یعنی نگهبان یئ او تاسو ټولو نه به د خپل رعیت په باره کښې محاسبه کولې شی یعنی د چا په نگهبانئ او خیال ساتلو باندې چه تاسو متعین کړې شوې یئ د هغوی د خبر اخستلو حال به تاسو نه تپوسلې شی چه تاسو خپل فرض څومره ادا کړو؟

قشیری ﷫ فرمانی د دې ډلې یعنی د اولیاء الله د جماعت په نزد د مراقبې حقیقت دا دې چه په بنده باندې د زړه سره د الله پاك یاد غالب وی او یقین ئې وی چه الله پاك زما په حال باندې خبردار دې لهذا هغه دې په هر حال کښې الله پاك طرف ته رجوع کوی او هر وخت دې د هغه د عذاب نه ویریږی، پس صاحب مراقبه د الله پاك د حیاء او د هغه د هیبت د وجې نه خلاف شرع خبرې د هغه سرې نه زیاتې پریږدې کوم چه د الله پاك د ویرې نه گناه پریږدی، او څوك چه د خپل زړه رعایت کوی یعنی د ضمیر په صحیح تقاضه باندې عمل کوی نو د هغه هیڅ وخت د الله پاك د یاد او د هغه د طاعت نه خالی نه ئی ځکه چه هغه ته ښه معلومه ده چه الله پاك به زما نه د یوې یوې لمحې او یو یو عمل حساب اخلی که هغه وړوکی عمل وی یا لوئې عمل وی

پس د یو ولی په باره کښ منقول دی چه د هغوی د وفات نه پس چا په خوب کښ ... لیدلو نو د هغوی نه ئې تپوس اوکړو چه الله پاك تاسو سره څه معامله اوکړه؟ هغوی اووئیل چه الله پاك زه اوبخښلم او په ما باندې ئې خپل احسان اوکړو خو پوره حساب ئې واخستلو تردې چه ما سره ئې په هغه یو عمل باندې هم حساب اوکړو چه یوه ورځ زما روژه وه چه کله د روژه ماتی وخت شو نو ما د خپل یو دوست د دکان نه د غنم یوه دانه اوچته کړه او بیا مې هغه ماته کړه، دې سره زما خیال راغلو چه د غنم دا دانه زما په ملکیت کښ نه ده، د دې خیال راتلو سره ما هغه دانه د هغې ځائې کښې اوغورځوله، پس اوس چه کله زما حساب واخستلې شو نو د هغه دانې د ماتولو په قدر نیکی زما د نیکو نه واخستلې شوه

د غور کولو خبره ده چه چاته دا خبره معلومه شی چه هغه به یوه ورځ د الله پاك په دربار کښ د دومره وړو وړو خبرو حساب هم ورکوی نو آیا هغه به دا برداشت کړی چه خپل قیمتی عمر په باطلو څیزونو کښ ضائع کړی او خپل وخت غفلتونو او کوتاهیانو ته اوسپاری؟

په حدیث کښ دی چه تاسو (د خپلو اعمالو خپله) محاسبه کوئ د دې نه مخکښ چه تاسو نه ستاسو د اعمالو حساب واخستلې شی.

**خاصیت :** څوك چه خپلې بي بي، خپل اولاد او خپل مال باندې دا اسم پاك اووۀ کرته لوستلو سره د هغوی څلورو واړو طرفونو ته دم کړی هغه به د ټولو دشمنانو او د ټولو آفتونو نه بې ویرې شی

**المجیب :** د عاجزانو دعا قبلونکې او رابلونکو ته جواب ورکونکې. د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه په اوامر او نواهی کښ د الله پاك فرمانبرداری اوکړی او د حاجتمندو حاجتونه پوره کړی

**خاصیت :** څوك چه دا اسم پاك ډیر زیات لولی او بیا دعا کوی نو د هغه دعا به زر قبلیږی او که دا لیکلو سره خپل ځان سره کیږدی نو د الله پاك په امان کښ به وی

**الواسع :** وسیع علم والا او خپل نعمت هر چاته ورکونکې. د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه په خپل علم او سخاوت کښ او معارف او اخلاقو کښې د وسعت پیدا کولو کوشش اوکړی ټولو سره په روڼې تندی باندې ملاؤ شی او د دنیاوی مقاصدو په حصول کښ دې نه فکر مند کیږی

**خاصیت :** څوك چه دا اسم پاك ډیر زیات لولی او په هغې باندې همیش والې اختیاروی الله پاك به هغه ته د قناعت او برکت دولت ورکړی

**الحکیم :** حکمت والا، علم والا. د دې نه د بنده حصه دا ده چه هغه په کتاب الله کښ ذکر شوې اوصاف حمیده خپل کړی او هغې سره د کمال تعلق پیدا کولو کوشش اوکړی او خپل

بول کارونه برابر کړی هم دغه شان هغه له پکار دی چه هغه د سفاهت ،کم عقل توب نه پرهیز اوکړی او هیڅ کار بغیر د باعث حقانی او بغیر د ربانی داعیه نه اونکړی چه : هغه ذات د اسم حکیم سورې ثابت شی

د ذوالنون مصری رحمه الله په باره کښ منقول دی چه هغوی اوفرمانیل چه کله ما واوریدل چه د مغرب په علاقه کښ یو سړې د خپل علم او حکمت په وجه ډیر مشهور او معروف دې نو زه د هغوی د ملاقات دپاره هغوی ته لاړم، تر څلویښتو ورځو پورې د هغه په دروازه باندې پروت اوم او هغوی زما طرف ته قطعا څه توجه او التفات نه فرمانیلو. د دې صورت حال نه چه کله زه تنګ شوم نو یوه ورځ ما د هغوی نه تپوس اوکړو چه جناب عالی د څلویښتو ورځو نه زه دلته پروت یم خو نه خو تاسو زما طرف ته توجه کوی او نه ما سره کلام کوی. تاسو ماته څه نصیحت اوکړئ او څه خبرې راته بیان کړئ چه زه هغه یاد اوساتم. هغوی اوونیل چه ته به پرې عمل کوې یا نه؟ ما اوونیل او! که الله پاك توفیق راکړو نو ضرور به پرې عمل کوم، بیا هغه د حکمت او نصیحت نه دا ډکه خبره ماته اوکړه چه دنیا سره محبت مه کوه، فقر لره غنیمت اوګنړه، مصیبت نعمت اوګنړه، منع یعنی د یو څیز نه ملاویدل عطاء (ورکړه) اوګنړه، غیر الله سره محبت مه اختیاروه او مه د هغوی په صحبت کښ خپل خان مشغول ساته، خواری عزت اوګنړه، مرګ حقیقی حیات اوګنړه، طاعت او عبادت د خپل عزت او احترام ذریعه اوګنړه او توکل خپل معاش اوګنړه

**خاصیت** : که چاته په خپل څه کار کښ پریشانی وی او هغه نه پوره کیږی نو هغه له پکار دی چه هغه په دې اسم پاك باندې مداومت او همیش والې اختیار کړی انشاء الله د هغه کار به پوره کیږی

**الودود** : فرمانبردار بندګانو لره دوست ساتونکې یا د اولیاء الله په زړونو کښ محبوب. د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د الله پاك د مخلوق دپاره هم هغه څیز خوښ کړی کوم چه د خان دپاره خوښوی او په هغوی باندې د خپل وس مناسب احسان کوی. د رسول الله ﷺ دا ارشاد دې چه په تاسو کښ څوك تر هغه وخته پورې د مومن بللو مستحق نه دې ترڅو پورې چه هغه د خپل ورور دپاره هم هغه څیز خوښ نه کړی کوم چه هغه د خپل خان دپاره خوښوی

بندګانو سره د الله پاك دوستی دا ده چه هغه په بندګانو باندې خپل رحمت نازلوی، د هغوی تعریف کوی، هغوی ته خیر او ښیګړه رسوی، او د بندګانو الله پاك لره د دوست ګنړلو مطلب دا دې چه هغوی د الله پاك تعظیم کوی او په خپلو زړونو کښ د هغه هیبت او لونې والې ساتی. په حدیث کښ منقول دی چه الله پاك فرمائی چه زما په دوستانو کښ لونې دوست هغه دې کوم چه د غیر عطاء دپاره زما عبادت کوی، یعنی هغه د ورکړې او

بخښنې په امید باندې نه بلکه صرف زما د رضا او خوشحالۍ د خاطره زما عبادت کوی

**خاصيت** : كه د بنځي او خاوند ترمينځه خفګان پيدا شي او تعلقات انتهائي خراب شي نو دا اسم پاك دې د خوراك په يو څيز باندې زر كرته اولولي او په‌دواړو كښې دې په هغه چې اوخوړلې شي د چا د طرف نه چه خفګان پيدا شوې وی انشاء الله د دواړو ترمينځه به د اتفاق او الفت فضاء بحال شي

**المجيد** : لوئې، عزتمند، د دې نوم نه د بنده نصيب هم هغه دې كوم چه د اسم مبارك (**العظيم**) په باره كښې ذكر كړې شوې دې.

**خاصيت** : د چا چه په خپو پولۍ وی، يا پړې برګې مرض يا جذام لګيدلې وی نو هغه له پكار دی چه هغه په ايام بيض كښې روژې اونيسي او د افطار په وخت دا اسم پاك ډير اولولي او په اوبو باندې دم كولو سره دې اوڅكي كه الله پاك اوغوښتله نو يقينا شفاء به بيا مومي او چاته چه په خپلو همزولو او هم جنس كښې د عزت او احترام په نظر سره نه كتلې كيږی نو هغه دې هر سحر دا اسم پاك يو كم سل كرته اولولي او په خپل ځان دې دم كړی هغه ته به عزت او احترام حاصل شي.

**الباعث** : مړو لره د قبرونو نه پاسونكې، او ژوندې كونكې، او د غافلانو زړه د غفلت نه بيدارونكې د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه جاهل نفسونو ته تعليم وركولو سره او نصيحت كولو باندې د دنيا د بې رغبتۍ احساس وركړی او د اخرت د نعمتونو سره ئې رغبت پيدا كړی او د جهالت او د غفلت د خوب نه ئې بيدار كړی او د هغوی مړۀ زړونه راژوندی كړی پس هغه دې د خپل نفس نه د دې ابتداء اوكړی د هغې نه پس دې بل طرف ته متوجه شي

**خاصيت** : كه څوك دا غواړی چه د هغه زړه ته حقيقي ژوند ملاؤ شي نو هغه دې د اودۀ كيدو په وخت په خپله سينه باندې لاس كيخودلو سره دا اسم پاك يو سل يو كرت لولي الله پاك به د هغه د زړه مړ والې ختم كړی او هغه ته به ژوند وركولو سره هغه د انوار مسكن جوړ كړی.

**الشهيد** : ګواه، په ظاهر او باطن باندې خبردار، قشيري رحمه الله فرمائي چه اهل معرفت، د الله پاك نه د هغه د ذات نه علاوه د بل يومحبوب خواهش نه كوی بلكه حقيقت خو دا دې چه هغوی صرف د هغه په ذات باندې مطمئن او هم د هغه نه خوشحاله وی ځكه چه صرف الله پاك د هغوی په ټولو احوالو باندې نظر ساتي او هم هغه د هغوی په ټولو كارونو او افعالو باندې خبردار دې.

پس الله پاك فرمائي ﴿ **اولم يكف بربك انه على كل شئ شهيد** ﴾ آيا ستا رب ستا دپاره كافي نه دې چه هغه په هر څيز باندې خبردار دې

د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د دې خبرې خيال اوساتی چه د هغه رب هغه لره په هيڅ داسې خائې کښې اونه وينی کوم چه د هغه د رب د طرف نه ممنوع دې يعنی د بدئ ذائې او هغه په هيڅ داسې خائې کښې غير موجود اونه وينی چرته چه ئې د هغه د موجود کيدو حکم کړې دې (يعنی د خير خائې) او د دې يقين په بنا باندې چه الله پاك ته زما حال په نه هم ښه معلوم دې اوزما حالت ته ښه ګوری، د غير الله مخکښې خپل حاجتونه پيش کولو او د غير الله طرف ته د اميد په نظر د رغبت او ميلان ساتلو نه ځان او ساتی، هم دغه شان په بنده باندې د دې اسم يو تقاضه دا هم ده چه هغه هميشه صرف د رشتيا ګواه جوړ شی او صرف د رشتيا رعايت اوکړی.

**خاصيت**: که د يو سړې خوئې نافرمان وی يا د هغه لور غير صالح وی نو هغه له پکار دی چه هغه دې روزانه د سحر په وخت خپل لاس د هغه په تندی باندې پږدی او د هغه مخ دې د سمان طرف ته اوچتولو سره ﴿ ياشهيد ﴾ يويشت کرته لولی، الله پاك به هغه لره صالح او فرمانبردار جوړ کړی.

**الحق**: په شهنشاهئ سره قائم او د خدايئ لائق: د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه کله هغه معلومه کړه چه هم د الله ذات حق دې نو اوس دې د هغه په مقابله کښې د مخلوق يادول او د مخلوق طلب هير کړی، هم دغه شان د دې اسم تقاضه دا هم ده چه بنده په خپلو ټولو اقوالو، افعالو او احوالو کښې حق خبره او حق څيز په خپل ځان باندې لازم کړی

**خاصيت**: که د چا يو څيز ورك شو نو د يو کاغذ په څلورو واړو ګوټونو دې دا اسم پاك اوليکی او د کاغذ په مينځ کښې دې د هغه څيز نوم اوليکی او بيا دې د نيمې شپې دا کاغذ په تلی باندې کيږدی او د اسمان طرف ته نظر کولو سره دې د دې اسم پاك برکت او د هغې د وسيلې په ذريعه د هغه څيز د حصول دعا اوکړی انشاء الله يا خو به ورته هغه څيز هم هغه شان ملاؤ شی يا به ورته د هغې څه حصه ملاؤ شی او که يو قيدی د نيمې شپې سرتور سر دا اسم پاك يو سل اته کرته اولولی نو الله پاك به ورته خلاصې ورنصيب کړی

**الوکيل**: کارساز، د الله پاك ارشاد دې ﴿ وکفی بالله وکيلا ﴾ يعنی الله پاك کارساز کافی دې، او ﴿ وعلى الله فتوكلوا ان كنتم مؤمنين ﴾ که تاسو مومنان ئې نو خپل ځان په الله پاك باندې اوسپارئ، ﴿ ومن يتوكل على الله فهو حسبه ﴾ څوك چه په الله پاك باندې ځان اوسپاری نو الله پاك د هغه دپاره کافی کيږی، او ﴿ وتوكل على الحی الذی لايموت ﴾ او په هغه الله پاك باندې ځان اوسپاره چه ژوندې دې او مرګ پرې نه راځی، او ﴿ وتوكل على العزيز الرحيم ﴾ او په غالب او رحم کونکی الله پاك باندې ځان اوسپاره

د دې اسم نه د بنده نصيب دا دې چه هغه د کمزورو خلقو مددګار او معاون جوړ شی او د

هغوی کاروته کوی د هغوی په ضرورتونو پوره کولو کښ داسې سعی او کوشش اوکړی چه گویا د هغوی وکیل دې

**خاصیت** : که د بجلۍ د غورځیدو ویره وی، د اوبو او د اور نه د نقصان خطره وی او د دې اسم پاك ورد اوکړې شی نو انشاء الله امن به ورته ملاؤ شی او که څوك دا اسم پاك د څه ویرې او خطرې په ځائې اولولی نو هغه بې ویرې اوبې خطرې شی

**القوی المتین** : طاقت والا او په ټولو کارونو کښ برابر، د دې نه د بنده برخه دا ده چه هغه په خواهشات نفسانی باندې غالب او قوی وی، د دین په معامله کښ ډیر تکړه وی او د شرعی احکاماتو په نفاذ او د هغې خورولو کښ د سستۍ نه کار وانخلی

**خاصیت** : که د چا دشمن قوی وی او هغه ئې په دفاع کښ عاجز او کمزورې وی نو هغه دې لږ شان اوړه واغړی او د هغې نه دې یو دپاسه زر گولۍ جوړې کړی بیا دې یوه یوه گولۍ اوچتوی او ﴿ یاقوی ﴾ دې لولی او دا گولۍ دې د دفع د دشمن په نیت چرگ ته اچوی الله پاك به د هغه دشمن مقهور او مغلوب کړی، او که دا اسم پاك د جمعې په شپه باندې زیات اولوستلې شی نو د نسیان مرض به ترې لرې شی، که یو ماشوم د پیو نه پرې کړې شوې وی او هغه ماشوم صبر نه شی کولې نو دا اسم پاك دې لیکلو سره په هغه ماشوم باندې اوڅکلې شی هغه به صبر شی، هم دغه شان که د یوې زنانه په پیو کښ کمې وی نو دا اسم پاك دې لیکلو سره په هغې باندې اوڅکلې شی د هغې په پیو کښ به زیادت پیدا شی، او که څوك د ملك یا حکومت په څه منصب یا د کار موندلو خواهش لری نو هغه دې د اتوار په ورځ په اول وخت کښ د خپل مقصد په نیت سره دا اسم ﴿المتین﴾ درې سوه شپیته کرته اولولی انشاء الله هغه ته به منصب حاصل شی

**الولی** مددگار او مومنانو لره دوست لرونکې، د دې نه د بنده نصیب دا دې چه د مسلمانانو سره جوړ او دوستی اوساتی، د دین په تائید او حمایت کښ دې کوشش اوکړی او د الله پاك د مخلوق په حاجتونو پورا کولو کښ دې کوشش اوکړی

قشیری رحمه الله فرمائی چه د الله پاك د دوستۍ د علاماتو نه دا ده چه الله پاك کوم بنده دوست ساتی هغه ته همیشه د خیر او نیکۍ توفیق ورکوی تردې چه که هغه بنده د بشریت د تقاضې د وجې نه د څه بدۍ اراده هم اوکړی نو الله پاك ئې د هغې د ارتکاب نه بچ کوی او که هغه ناگهانه په هغه بدۍ کښ اخته هم شی نو هغه په هغې کښ اخته نه پریږدی بلکه زر ئې په توبې او انابت سره د هغه بدۍ نه راوباسی پس هم په دې وجه وئیلې شوې دی

﴿ اذا احب الله عبدا لم یضره ذنب ﴾ الله پاك چه کله څوك دوست کړی نو هغه ته گناه نقصان نه شی رسولې

او که په طاعت او عبادت کښ د کوتاهۍ او کمی طرف ته د هغه میلان وی نو الله پاك هغه

په طاعت او عبادت کښې د مشغول کیدو توفیق ورکوی او هم دا خبره د بنده د سعادت علامت جوړیږی حال دا چه د هغې عکس د بنده د شقاوت او بدبختی علامت دې هم دغه شان د الله پاك د دوستئ یو علامت او د هغې یو اثر دا هم وی چه الله پاك د خپلو اولیاء په زړونو کښې د داسې بنده محبت ور دننه کړی چه د هغې په وجه باندې اولیاء الله هغه بنده سره په کمال تعلق او کمال مهربانئ سره ملاویږی

**خاصیت** : څوك چه دا اسم پاك ډیر زیات لولی هغه به د مخلوق د زړه په خبرو باندې خبریږی. او که د یو سړی ښځه یا وینځه داسې سیرت او عادت لری کوم چه د هغه دپاره د تکلیف او ضرر باعث وی نو هغه له پکار دی چه کله د هغه ښځې یا وینځې مخې ته راتلل غواړی نو دا اسم پاك دې ډیر لولی الله پاك به هغې لره د صلاحیت او دوستئ په لاره باندې اولګوی

**الحمید** : د خپل ذات او صفاتو تعریف کونکې، یا تعریف کړې شوې. د دې اسم نه د بنده نصیب دا دې چه همیشه دې د حق تعریف کونکې وي، په صفات کمالیه سره دې خپل ذات ډولی کړی، یا دې د خپل اعمال حسنه یااخلاق حمیده په وجه باندې د الله پاك او د هغه د مخلوق دواړو په نظر کښې داسې ثابت شی چه د هغه تعریف اوکړې شی

**خاصیت** : څوك چه دا اسم پاك ډیر زیات لولی د هغه افعال به غوره شی او که په چا باندې فحش خبرې او بد کلامی غالب وی چه د هغې نه د خپل ځان په محفوظ کولو باندې قادر نه وی نو هغه له پکار دی چه دا اسم پاك دې په یوه پیاله باندې اولیکی یا د بعض حضراتو د قول مطابق دې دا اسم پاك په هغه پیاله باندې نوی کرته اولیکی او همیشه دې د هغه پیالې نه اوبه څکی انشاء الله د فحش خبرو او بد کلامئ نه به محفوظ شی

**المحصی** : د هغه علم د هر یو څیز احاطه کړې ده، او د هغه په نزد د ټول مخلوق تعداد ظاهر دې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه که د حرکت په حالت کښې وی او که د سکون په حالت کښې وی یعنی په هیڅ وخت کښې دې هم په غفلت کښې اخته نه شی او د هغه یوه یوه ساه دې د الله پاك د یاد سره بهرراشی، ځکه چه په حدیث کښې راغلې دی چه اهل جنت به هغه وخت باندې افسوس او ارمان کوی کوم چه ئې بغیر د الله پاك د یاد نه تیر کړې وی دغه شان د دې خبرې دې کوشش کوی چه په خپلو اعمالو او باطنی احوالو باندې خبر وی، او د دې اسم تقاضه دا ده چه الله پاك هغه ته کوم نعمتونه ورکړې دی هغه دې شماری چه د هغې شکر ادا کولو سره د الله پاك مخکښې خپل ځان عاجز او محتاج اوګڼړی او خپل ګناهونه شمار کړی، د هغې د وجې نه دې شرمنده، شرمسار او معذرت کونکې شی او هغه ورځو او لمحاتو لره یادولو سره دې ارمان او افسوس اوکړی کوم چه تړې د الله پاك د طاعت او د هغه د یاد نه خالی تلې وی

**خاصیت**: څوك چه دجمعې په شپه باندې دااسم پاك یودپاسه زرکرته اولولی نوالله پاك به

هغه لره د عذاب قبر او عذاب قيامت نه محفوظ او ساتي

**المبدئ. المعيد** : اول كرت پيدا كونكې، دوباره پيدا كونكې. د دې نومونو نه د بنده برخه دا ده چه هغه په هره معامله او هر څيز كښې د الله پاك طرف ته اول كرت هم او دوباره هم رجوع اوكړي، په نيكئ پيدا كولو كښې سعى او كوشش اوكړي او كوم نيك عمل چه نړئ كولو نه پاتې شوې وي يا چه په كوم عمل كښې څه كمې يا كوتاهي شوې وي د هغې اعاده دې اوكړي يعنى هغه دې دوباره اوكړي

**خاصيت** : د چا د ښځې چه حمل وي او د اسقاط حمل ويره نې وي يا په پيدائش كښې غير معمولي تاخير راځي نو خاوند له پكار دى چه د سحر په وخت دې دا اسم پاك ( المبدئ ) نوى كرته اولولي او د شهادت گوته دې د هغې د خيټې نه څلورو واړو طرفونو ته راكاږي انشاء الله د حمل د ساقط كيدو ويره به نې نه وي او د ولادت نه به ورته په اطمينان او بغير د څه ضرر نه زر فراغت حاصل شي. او څوك چه په دې اسم پاك باندې مداومت كوي يعنى د دې په لوستلو باندې هميش والې اختياروى نو د هغه د ژبې نه به هم هغه لفظ راوځي كوم چه صحيح او د ثواب باعث وي.

كه د چا څوك خپلوان وغيره غائب شوې وي او د هغه د راتلو يا د خيريت د طلب خواهش مند وي نو هغه وخت چه كله د هغه د كور خلق اوده وي دا اسم پاك دې د كور په څلورو واړو گوټونو باندې اويا كرته اولولي او د هغې نه پس دې اوائي يا معيد فلانې سړې ماته راواپس كړې يا نې راته خيريت معلوم كړې. اووه ورځې به هم تيرې نه وي چه يا خو به هغه غائب راواپس شي يا به د هغه خيريت معلوم شي او كه د چا يو څيز ورك شي نو هغه دې دا اسم (المعيد) ډير لولي، انشاء الله هغه ته به خپل څيز ملاؤ شي

**( المحى المميت )** ژوندې كونكې او مړ كونكې، يعنى الله پاك د نور ايمان په ذريعه زړونه ژوندي كوي او په بدن كښې ژوند پيدا كوي، هم دغه شان هم بدن ته مرگ وركوي او زړونو لره د غفلت اوناپوهئ په وجه مړه كوي.

د دې دواړو نومونو نه د بنده برخه دا ده چه هغه په علم سره نفع رسولو باندې د الله پاك مخلوق ته، او د معرفت الهى شمع بلولو سره زړونو ته د ژوند او تازگئ دولت وركړي او نفساني خواهشات، شيطاني خطرات او وسوسې قتل كړي، هم دغه شان نه د حيات غوښتنه اوكړي او نه د مرگ خواهش بلكه د قضاء او قدر الهى تابعدار جوړ شي او دا دعا كومه چه د رسول الله ﷺ نه منقول ده دا دې لولي **( اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مَا كَانَتِ الْحَيَاةُ خَيْرًا لِي وَتَوَفَّنِي إِذَا كَانَتِ الْوَفَاةُ خَيْرًا لِي وَاجْعَلِ الْحَيٰوةَ زِيَادَةً فِي كُلِّ خَيْرٍ، وَاجْعَلِ الْمَوْتَ رَاحَةً مِنْ كُلِّ شَرٍّ )**

**ترجمه** [۱] اې الله ! ماته ژوند راكړه ترڅو پورې چه ژوند زما دپاره غوره وي. او ماته مرگ

کړه چه کله مرګ زما دپاره غوره وی او زما ژوند د هر خیراو نیکۍ د زیادت سبب او مرګ لره د هرې بدۍ نه د آرام سبب جوړ کړه

**خاصیت :** څوك چه په څه درد ، غم او تکلیف کښې او د یو اندام د ضائع کیدو په ویره کښې اخته وی نو هغه دې دا اسم پاك ( **المحی** )اووۀ کرته اولولی الله پاك به هغه ته د ویرې نه خلاصې ورکړی هم دغه شان د اووۀ اندامونو (اووۀ اندامونه ظاهری یعنی دوه لاسونه، دوه خپې، شا، سینه او سر او اووۀ اندامونه باطنی یعنی دماغ، زړه، اینه، پیپړا، توری، او معده) د بیمارۍ لرې کولو دپاره تر اووۀ ورځو پورې دې دا اسم پاك اولوستلې شی او روزانه دې لوستلو سره دم کړې شی، او څوك چه د دې اسم پاك په لوستلو باندې همیش والې اختیار کړی نو د هغه زړه ته به ژوند او بدن ته به قوت حاصلیږی. څوك چه په خپل نفس باندې قادر نه وی چه د اتباع شریعت په معامله کښې د هغه نفس په هغه باندې غالب وی یعنی هغه لره د اتباع شریعت نه منع کوی نو هغه له پکار دی چه د اودۀ کیدو په وخت په سینه باندې لاس کیخوددلو سره (( **الممیت** ))دومره زیات اولولی چه په لوستلو لوستلو اودۀ شی نو الله پاك به د هغه نفس مطیع او فرمانبردار کړی.؟

**الحی :** د ازل نه ابد پورې ژوندې، د دې اسم نه د بنده نصیب دا دې چه د الله پاك د یاد په ذریعه دې ژوندې وی او خپل ځان دې د هغه په لاره کښې قربان کړی یعنی دالله پاك په لاره کښې شهید کیدو سره ابدی حیات حاصل کړی.

**خاصیت :** که یو سړې بیمار وی نو دا اسم پاك دې ډیر لولی یا بل سړې دې په دې بیمار باندې او د بعض حضراتو د قول مطابق دې سترګه وړاندې کولو سره دا ډیر لولی نو الله پاك به ورته صحت ورکړی او څوك چه روزانه اویا کرته دا لولی نو د هغه عمر به فراخه شی او د هغه په روحانی طاقت کښې به اضافه وی.

**القیوم :** خپله هم قائم او د مخلوقاتو قائم ساتونکې او د هغوی خبر اخستونکې، د دې اسم نه د بنده حصه دا ده چه هغه د ما سوا الله نه بالکل بې پرواه شی

قشیری رحمه الله فرمائی څوك چه په دې باندې پوهه شو چه الله پاك قیوم دې نو هغه د تدبیر او د اشتغال د تکلیف او فکر نه خلاصې بیاموندلو او د آرام او تفویض سره ئې ژوند تیر کړو لهذا اوس به هغه نه خو بخل کوی او نه به د دنیا څه قیمتی څیز ته څه اهمیت ورکوی.

**خاصیت :** څوك چه د سحر په وخت دا اسم ډیر لولی نو د خلقو په زړونو کښې به د هغه تصرف ظاهر شی یعنی ټول خلق به هغه سره دوستی او محبت کوی، او که څوك دا اسم ډیر زیات لولی نو د هغه ټول کارونه به د هغه د زړه د خوښې مطابق پوره کیږی.

**الواجد :** غنی چه په هیڅ یو څیز کښې د چا محتاج نه دې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه د ضروری کمالات عالیه په حصول کښې سعی او کوشش اوکړی چه د الله پاك د فضل د

وجې نه د ما سوى الله نه مستغنى او بې پرواه شي

**خاصيت** : كه يو سړې د خوراك كولو په وخت د هرې نمړئ سره دا اسم پاك لولى نو هغه خوراك به د هغه په خيټه كښې نور شي او كه څوك په خلوت كښې دا اسم ډير زيات لولي نو مالدار به شي

**الماجد** عزت مند، د دې نه د بنده برخه هم هغه ده كومه چه د دې نه د مخكښې نوم په سلسله كښې ذكر كړې شوه

**خاصيت** : څوك چه دا اسم په خلوت كښې دومره اولولى چه بې هوشه شي نو د هغه په زړه باندې به انوار الهى ظاهر شي، او كه څوك ددې ذكر ډير زيات كوى نو د الله پاك د مخلوق په نظر كښې به عزت مند شي.

**الواحد - الاحد** : په ذات او صفات كښې يواځې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه په عبادت او بندګئ كښې اخلاص پيدا كړى يعنى د يو الله پاك عبادت اوكړى څنګه چه د هغه رب په خدايئ كښې يواځې دې، او په داسې فضائلو سره خپل ځان ډولى كړى چه د هغه څوك هم جنس د هغه په مثال نه وى.

**خاصيت** : كه د چا زړه د خلوت نه ويريږي نو هغه دې دا اسم پاك يو دپاسه زر كرته اولولى انشاء الله د هغه د زړه نه به ويره ختمه شي او د الله پاك په دربار كښې به مقرب شي او كه د چا د خوې د پيدا كيدو ارمان وى نو هغه دې دا اسم اوليكى او ځان سره دې كيږدى الله پاك به ورته خونې وركړى.

**الصمد** : بې نيازه، هغه د چا محتاج نه دې او ټول د هغه محتاج دى، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه په خپل هر حاجت كښې الله پاك ته رجوع اوكړى، د خپل رزق نه دې بې فكره شي. د هغه په ذات دې توكل اوكړى، د دنيا د ټولو حرامو څيزونو نه دې ځان بچ كړى. د دنياوى زينت څيزونو ته دې رغبت نه كوى، د دنيا د حلال څيزونو دې هم هوس نه ساتى. د الله پاك د مخلوق نه دې ځان بې پرواه ساتى او د الله پاك د مخلوق د حاجتونو پوره كولو دې پوره سعى او كوشش كوى

**خاصيت** ، څوك چه د سحر په وخت يا د نيمې شپې سجده اوكړى او دا اسم مبارك يو سل پنځلس كرته اولولى الله پاك به ئې صادق الحال والقول كړى او د يو ظالم په لاس به هم نه راځى. او څوك چه دا اسم ډير زيات لولى هغه به اوږې نه وى او كه د اودس په حالت كښې ئې اولولى نو د الله پاك د مخلوق نه به بې پرواه شي

**القادر. المقتدر** ، قدرت والا او قدرت ظاهرونكې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه خپل نفس لره د خواهشاتو او لذاتو نه په منع كولو باندې قادر شي.

**خاصيت** : كه يو سړې په اودس كښې د اودس هر اندام لره د وينځلو په وخت اسم پاك القادر

لولی نو هغه به د يو ظالم په لاس نه ګرفتاریږی او هیڅ دشمن به پرې فتحیاب نه شی، او که څه ګران کار ورته راپیښ شی نو یو څلویښت کرته دې دا اسم پاك اولوستلې شی که الله پاك اوغوښتله نو په ښکلې طریقې سره به ئې کار پوره شی

که یوسړې اسم پاك ( **المقتدر** ) په پابندئ سره لولی نو غفلت به ئې په بیدارئ کښې بدل شی او څوك چه اوده کیدو نه پس د پاسیدو په وخت دا اسم پاك شل کرته لولی نودهغه ټول کارونه به دالله پاك طرف ته راجع شی

**المقدم والمؤخر** : دوستانو ته د خپل عزت مند دربار قرب ورکولو سره وړاندې کونکې، او دشمنان د خپل لطف او کرم نه جدا کولو سره روستو کونکې، ددې دواړو پاکو نومونه دبنده نصیب دا دې چه هغه په نیکو کښې پیش قدمی اختیارولو سره خپل خان وړاندې کړی، یعنی د نورو په مقابله کښې خپل خان افضل کړی او هغه خلق راوړاندې کړی کوم چه د الله پاك په عزت مند دربار کښې مقربین دی یعنی هغوی عزیز اولری او نفس، شیاطین او هغه خلق کوم چه د الله پاك د دربار نه رټلې شوې دی شاته ګزار کړی، هم دغه شان خپل ټول کارونه د ضابطې او قاعدې مطابق پوره کړی، مثلا اول هغه کار او عمل اوکړی کوم چه د ټولو نه زیات ضروری دې او کوم چه الله پاك د ټولو نه زیات مقدم کړې وی او د ټولو نه روستو هغه عمل اختیار کړی کوم چه د ټولو نه کم ضروری وی

**خاصیت** : که یو سړې د جنګ په میدان کښې اسم پاك ( **المقدم** )اولولی یا هغې لره لیکلو سره خپل خان سره کیږدی نو هغه ته به هیڅ قسم تکلیف نه رسیږی او څوك چه دا اسم پاك ډیر لولی نو د هغه نفس به د طاعت الهی دپاره فرمانبردار او مطیع شی

څوك چه اسم پاك ( **المؤخر** ) سل کرته اولولی د هغه زړه ته به د غیر الله سره قرار نه ملاویږی، او څوك چه روزانه دا اسم پاك سل کرته اولولی نو د هغه ټول کارونه به پوره کیږی او څوك چه دا يو څلویښت کرته لولی نو د هغه نفس به مطیع او فرمانبردار شی

**الاول - الاخر** : د ټولو نه اول او د ټولو نه روستو، د دې نه د بنده برخه دا ده چه د الله پاك په عباداتو او د هغه د احکاماتو په پوره کولو کښې تندی اوکړی، او د الله پاك دپاره خپل نفس قربان کړی چه حیات ابدی ورته حاصل شی

**خاصیت** : که د چا نارینه اولاد نه کیږی نو هغه دې دا اسم پاك ( **الاول** )څلویښت ورځو پورې روزانه څلویښت کرته لولی د هغه مراد به پوره کیږی بعض حضرات فرمائی چه خونې، مالداری یا ورته د بل څه څیز حاجت او تمنا وی نو د څلویښتو جمعو په شپو کښې دې هره شپه یو کرت دا اسم پاك اولولی انشاء الله د هغه ټول حاجتونه به پوره کیږی

**الظاهر - الباطن** : د خپل مصنوعاتو او مخلوقاتو په اعتبار سره کوم چه د هغه په کمال صفات باندې دلیل دې ښکاره او د خپل حقیقت په اعتبار سره د وهم او خیال نه پټه

**خاصيت** : څوك چه د اشراق د مانځه نه پس اسم پاك "الظَّاهِرُ" پنځه سوه کرته اولولي نو الله پاك به د هغه سترګي روښانه او منور کړي، که د طوفان او باران وغيره ويره وي نو دا اسم پاك دې زيات نه زيات لولي امن او عافيت به ورته حاصل شي، که دا اسم د کور په ديوالونو اوليکلې شي نو هغه ديوالونه به محفوظ او سلامت وي

څوك چه روزانه ﴿ يَا بَاطِنُ ﴾ درې ديرش کرته لولي الله پاك به د هغه نه صاحب اسرار الهي جوړ کړي، او که څوك په دې باندې مداومت اختيار کړي نو په هغه باندې چه د چا هم نظر پريوځي د هغه به دوست جوړ شي.

**الوالي** : کارساز او مالك، د دې اسم پاك نه د بنده برخه هم هغه ده کومه چه د اسم پاك ﴿الوكيل﴾ په ضمن کښ نقل کړې شوې ده.

**خاصيت** : که څوك دا غواړي چه د هغه يا د هغه نه علاوه د بل چا کور معمور او اباد وي او د بارانونو او آفتونو نه محفوظ وي نو هغه له پکار دی چه هغه دې د اوبو په يوه کوزه باندې دا اسم پاك اوليکي او په هغه کوزه کښ دې اوبه واچوي او هغه کوزه دې د کور په ديوالونو باندې اووهي، کور او ديوالونه به ئې سلامت وي.

بعض حضراتو ليکلې دی چه اسم پاك ﴿ الوالي ﴾ درې سوه کرته لوستلو سره به هم دا مقصد حاصل شي او که د يو انسان د مسخر کولو په نيت دا اسم پاك يولس کرته اولوستلې شي نو هغه انسان به مطيع او فرمانبردار شي

**المتعالي** : اوچتې مرتبې والا، د دې اسم نه د بنده برخه هم هغه ده کوم چه د اسم پاك ﴿ العلي ﴾ په سلسله کښ نقل کړې شوې دې.

**خاصيت** : که څوك دا اسم پاك ډير زيات اولولي نو هغه ته چه څه مشکلات هم وي هغه به حل شي او بعض حضراتو وئيلي دی چه کومه زنانه د حمل په ورځو کښ دا اسم پاك لولي نو هغه به د حمل د ټولو پريشانو او تکليفونو نه نجات بيا مومي.

**البر** : انتهائي احسان کونکې، د دې اسم نه د بنده نصيب دا دې چه هغه د خپل مور، پلار، استاد ،بزرګان دين،عزيز او خپلوانو اوټولو تعلق دارانو سره د حسن سلوك معامله اوکړي

**خاصيت** : د طوفان، باد او باران او د څه بلا او مصيبت په وخت دا اسم پاك لوستل پکار دی انشاء الله څه نقصان به ورته نه رسيږي، که دا اسم پاك اووۀ کرته لوستلو سره وړوکې ماشوم د الله پاك په امان کښ ورکړې شي نو هغه ماشوم به د بالغ کيدو پورې د هر آفت او بلا او هر تکليف او مصيبت نه محفوظ وي بعض حضرات وائي چه که يو سړي په شرابو څکلو او زنا کښ اخته وي نو هغه دې هره ورځ سل کرته دا اسم پاك لولي الله پاك به د هغه زړه د هغه ګناهونو نه واړوي.

**التواب**: توبه قبلونكې. د توبې اصل معنى ده رجوع كول يعنې را ګرځيدل چه كله د دې لفظ نسبت د بنده طرف ته كيږي نو د دې نه مراد وي. د ګناه نه اوړيدل. يعنې په څپله كړي باندې پښيمانه او شرمنده كيدو سره د الله پاك طرف ته رجوع كول او چه كله ئې د حق تعالى طرف ته نسبت كيږي نو د دې لفظ مراد وي "د رحمت او توفيق سره را ګرځيدل يعنې د بنده طرف ته د رحمت او توفيق په نظر متوجه كيدل" د دې تفصيل لره په ذهن كښې د ساتلو نه پس خان پوهه كړئ چه كله يو بنده په يوه ګناه كښې اخته كيږي نو الله پاك ورته د توبې اسباب برابروي. هغه ته د توبې توفيق وركوي او هغه لره د ګناه د سزاګانو نه ويرولو سره د عذاب ويره وركولو سره او د آخرت د سزا احساس وركولو سره هغه د غفلت د خوب نه بيداروي او د هغه په زړه او شعور كښې د خپل جرم احساس او ګناه باندې پښيمانتيا او د شرمنده كيدو توفيق وركوي، د دې نه پس هغه بنده په توبه او ندامت سره د حق تعالى طرف ته رجوع كوي او بيا الله پاك په خپل فضل او رحمت سره د هغه بنده طرف ته متوجه كيږي يعنې هغه بخښي لهذا په حقيقت كښې د الله پاك توبه يعنې توجه د بنده په توبه يعنې د هغه په رجوع باندې مقدم وي، كه د الله پاك توجه نه وي نو بنده ته د رجوع توفيق نه ملاويږي هم په دې وجه اوفرمائيلې شو چه ﴿ ثُمَّ تَابَ عَلَيْهِمْ لِيَتُوبُوا ﴾ (الله پاك د هغوى طرف ته متوجه شو چه هغوى توبه اوباسى)

ع توبه كنم بشكنم توبه دهي نشكنم

په دې وجه بنده له پكار دى چه هغه دې د الله پاك د رحمت اميدوار وي، د توبې د قبوليت يقين دې ساتى، د نااميدئ دروازه دې بنده كړي په داسې طريقه چه د هغه د رحمت د نزول نه نااميده نه شي، د نورو خطاګانې دې معاف كړي د معذرت كونكي معذرت دې قبول كړي اګركه هر څومره كرته د معذرت قبلولو موقع راشي، كه د چا نه څه قصور او كوتاهي اوشي نو نه صرف دا چه هغه دې معاف كړي بلكه په انعام او اكرام سره دې د هغه طرف ته متوجه شي، د الله پاك نه دې توبه طلب كړي، په ګناهونو باندې دې شرمنده او نادم شي، د عبرت غوږونه دې كولاو ساتي او په توبه كښې دې تاخير نه كوي چه په دې حكم ﴿ عجلوا التوبة قبل الموت ﴾ (د مرګ نه مخكښې په توبه كښې تندى اوكړئ) عمل راشي

په دې موقع باندې يو عبرت ناكه واقعه واورئ، وئيلې شي چه د يو بادشاهئ يو وزير وو چه د هغه نوم عيسى بن عيسى وو يوه ورځ هغه د شهسوارانو د يو جماعت سره روان وو او څنګه چه عام طور كيږي خلقو خپل مينځ كښې تپوسونه كول چه دا څوك دې؟ دا څوك دې؟ په لاره كښې يوه بوډئ هم ناسته وه هغې چه د خلقو تپوسونه واوريدل نو وې وئيل چه خلق تپوس كوى چه دا څوك دې؟ څوك دې، دا يو بنده دې كوم چه د الله پاك د نظر نه پريوتلې دې او په دې حالت كښې اخته دې (يعنې په دنياوى جاه وجلال كښې داسې مصروف او

مضمن دي. عیسی بن عیسی دا خبره واوریدله، بیا څه وو فورا خپل کور ته و بس شو
وزارت ته ئې لته ورکړه او د توبې په دولت سره مشرف شو، او دغه شان ئې ټول دنیاوي
مرتبې او مصروفیات شاته گزارولو سره په مکه مکرمه کښې مقیم شو او هم هلته منجوړ شو
خاصیت که یو سړي د چاشت د مانځه نه پس دا اسم پاك درې سوه شپیته (۳۶۰) کرته
لوي نو الله پاك هغه ته د توبه نصوح (یعنی داسې پخه توبه چه د هغې نه پس گناه صادره نه
شي) توفیق ورکړی او که یو سړي دا اسم پاك ډیر زیات لولي نو د هغه ټول کارونه به انجام
او صلاح ته رسیږي او نفس ته به ئې د عبادت نه بغیر سکون او قرار نه ملاویږي. او څوك
چه د چاشت د مانځه نه پس دا لولي ﴿ اللهم اغفرلي وتب علي انك انت التواب الرحیم ﴾ نو
انشاء الله د هغه گناه به معاف کولې شي.

**المنتقم** : د کفارو او سرکش خلقو نه د عذاب په ذریعه بدله اخستونکي، د دې اسم نه د
بنده برخه دا ده چه هغه د لویو دشمنانو نه چه هغه نفس او شیطان دي بدله اخلي او د ټولو
نه لوئې دشمن نفس اماره دې د هغه سزا دا ده چه کله هغه په یوه گناه کښې اخته شي یا په
عبادت کښې څه کوتاهي اوکړي نو د هغه نه دې انتقام واخلي په داسې طریقه چه هغه په
سزا او سختئ کښې اخته کړي، پس د بایزید بسطامي رحمه الله په باره کښې منقول دي چه هغوی
اوفرمائیل د شپې به زه په اوراد او وظائفو کښې مشغول اوم چه یوه شپه زما نفس تکاسل
اوکړو دهغې په سزا کښې ما دا اوکړل چه تر یو کاله پورې مې خپل نفس د اوبو نه محروم کړو

**خاصیت** : څوك چه د خپل دشمن په ظلم او زیاتي باندې صبر او دفاع نه شي کولې هغه دې
د درې جمعو پورې دا اسم پاك په پابندئ سره اولولي د هغه دشمن به دوست شي او د هغه
د ظلم نه به ورته خلاصې ملاؤ شي، هم دغه شان که د هر مقصد د حصول دپاره د دې
مقصد په نیت سره دا اسم پاك د نیمې شپې په وخت اولوستلې شي نو د هغه مقصد به
حاصل شي

په یو بل روایت کښې کوم چه د ابوهریره رضي الله عنه نه علاوه د یو بل صحابي نه منقول دې په دې
موقع باندې د باري تعالی یو اسم ﴿ المنعم ﴾ هم نقل کړې شوې دې څوك چه په دې اسم پاك
﴿ المنعم ﴾ باندې مداومت کوي هغه به کله هم د چا محتاج نه شي

**العفو** : گناهونه او تقصیرات معاف کونکې، د دې اسم نه د بنده برخه هغه ده کوم چه د
﴿ الغفور ﴾ په ضمن کښې نقل کړې شوې دې، شیخ عبدالحق رحمه الله په شرح اسماء حسنی کښې
لیکي چه ﴿ العفو ﴾ چه د هغې معنی ده سیئات لره محو کونکې او گناهونو لره معاف
کونکې، اگر چه د معنی او مفهوم په اعتبار سره ﴿ غفور ﴾ ته نزدې دې خو ﴿ عفو ﴾ د غفور نه
زیات بلیغ دې ځکه چه د غفران معنی ده ستر او کتمان، په دې وجه به د غفار معنی وي

ګناهونو لره پټونکې او عفو موجود لره معدوم کول دی چه د هغې مطلب دا دې چه ګناهونو لره معاف کولو سره ختمونکې
لهذا که بنده هر څومره ګناهګار ولې نه وی د الله پاك د شان عفو د وجې نه دې د هغه د طرف نه د معافئ او بخښنې پوره اميدوار وی هم په دې وجه ونيلې شی چه د هيڅ ګناهګار سره دې د تحقير او تذليل سلوك اونکړې شی ځکه چه دا هيڅ بعيد نه ده چه الله پاك هغه ته د حدود شرع او د احکام دين د پابندئ په وجه بخښنه اوکړی او د هغه ټول ګناهونه بالکل ختم کړی.

رد مکن بدرا چه داني در ازل نام او در نامه نيکان بود

ور رود بر جائي نيکان اين ګمان بر تو روز جزا تاوان بود

د دې اسم پاك په بنده دا تقاضه ده چه هغه د خلقو تقصيرات او د هغوی د خطاګانو نه سترګې پټولو سره هغوی معاف کړی چه د ﴿الكاظمين الغيظ والعافين عن الناس﴾ غصې لره زغملو والاو خلقو لره معاف کونکی په ډله کښې داخل شی.

**خاصيت** : څوك چه ډير زيات ګناهګار وی هغه له پکار دی چه هغه دې اسم پاك لره خپل ورد جوړ کړی انشاء الله د هغه ټول ګناهونه به معاف شی.

**الرؤف** : ډير مهربان، د دې نه د بنده برخه هم هغه ده کوم چه د اسم پاك ﴿الرحيم﴾ په ضمن کښې ذکر کړې شوې دی.

منقول دی چه د يو سړی ګاونډی ډير بد وو چه کله هغه وفات شو نو هغه سړی د هغه د جنازې مونځ اونکړو روستو هغه بل چا په خوب کښې اوليدو نو د هغه نه ئې تپوس اوکړو چه الله پاك تا سره څه معامله اوکړه؟ هغه سړی اوونيل چه زه خو الله پاك اوبخښلم خو لږ هغه سړی ته (چا چه د جنازې مونځ نه وو کړې) دا ضرور اوايه چه ﴿لو انتم تملكون خزائن رحمة ربي اذا لامسكتم خشية الانفاق﴾ (که زما د رب د رحمتونو خزانې ستاسو په ملکيت کښې وې نو تاسو به د هغې د خرچ کيدو د ويرې نه ضرور لاس بند کړې وې) دا ګويا هغه په جنازه نه کونکی باندې طعن اوکړو چه زما رب خو ډير مهربانه دې هغه زه اوبخښلم او که چرته ستا وس شوې وې نو معلومه نه ده چه تاسو به ما سره څه سلوك کولې

**خاصيت** ، که يو سړې دا غواړی چه هغه يو مظلوم د ظالم د لاسونو نه بچ کړی نو هغه دې دا اسم پاك لس کرته اولولی ظالم به د هغه سفارش قبول کړی او د خپل ظلم نه به قلار شی، که يو سړې په دې اسم پاك باندې مداومت کوی نو د هغه زړه به نرم وی ټول به دوستان ساتی او ټول به هغه لره دوستان ساتی.

**مالك الملك** ، د ټول جهان مالك، د دې اسم نه د بنده نصيب هم هغه دې کوم چه د اسم پاك

( المك ) په ضمن كښې تير شوي دي. شاذلي رحمه الله فرمائي چه دې اسم سره به يوه ذره ډيره بانديې اوديږه. يعني صرف د الله پاك په دروازه بانديې چه ستا دپاره ډيرې ذرې ...
پرانستلې شي او صرف يو بادشاه يعني الله پاك ته خپل ستا نسكته كړه چه ستا محكم
دير ستونه نسكته شي د الله پاك ارشاد دي ( وان من شئ الا عندنا خزائنه ) داسې يو څيز
نشته چه د هغې مونږ سره خزانې نه وي،

**خاصيت** : څوك چه په دې اسم پاك بانديې مداومت كوي نو هغه به مالدار شي او د هغه د
دنيا او آخرت ټول كارونه او مقاصد، به نيك ثمره او انجام ته اورسيږي د دې نه پس د ذكر
كيدونكې اسم پاك ( ذوالجلال والاكرام ) هم دا خاصيت دي

**ذوالجلال والاكرام** : د عظمت او كرم خاوند، چا چه د الله پاك جلال اوپيژندلو نو د هغه په
دربار كښې دې تذلل اختيار كړي او چا چه د هغه اكرام اوليدو نو د هغه شكر گزار دې
شي. پس نه خو دې د غير الله اطاعت او فرمانبرداري اوكړي او نه دې د الله پاك نه علاوه
بل چا ته خپل حاجت بيان كړې شي د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د خپل ذات و
نفس دپاره د بزرگۍ د حصول كوشش اوكړي او د الله پاك د بندگانو سره ښه سلوك اوكړي

**المقسط** : عدل كونكې. د دې نه د بنده برخه هغه ده كوم چه د اسم پاك ( العدل ) په ضمن
كښې تير شوي دي

**خاصيت** : څوك چه دا اسم پاك سل كرته اولولي هغه به د شيطان د شر او د هغه د وسوسو نه
محفوظ وي او كه اووه سوه كرته ئې اولولي نو د هغه چه څه مقصد وي هغه به پوره شي

**الجامع** : په قيامت كښې خلقو لره جمع كونكې. د دې نه د بنده نصيب دا دي چه هغه د علم
او عمل او كمالات نفسانيه او بدنيه جامع جوړ شي او د الله پاك په ذات كښې محويت او
استغراق او غور او فكر. د ذكر الله په ذريعه د زړه سكون او خاطر جمعي. د الله پاك د
ذات او صفات معرفت په شان د صفات حميده سعادتونه خپل ځان كښې جمع كړي

**خاصيت** : د كوم سړي خپلوان او د كور خلق وغيره چه منتشر او خواره وي هغه دې د
چاشت په وخت غسل اوكړي او د اسمان طرف ته دې مخ اوچت كړي او دا اسم پاك دې لس
كرته داسې اولولي چه هر كرت دې يوه يوه گوته بندوي او بيا دې د هغې نه پس خپل دواړه
لاسونه په بانديې راكاږي. انشاء الله په لږه موده كښې به هغوي ټول جمع او رايوځائې شي

**الغني** : د هر څيز نه بې پرواه

**خاصيت** : څوك چه د حرص او طمع په مصيبت كښې اخته وي هغه دې د خپل بدن په هر اندام
بانديې لاس ږدلو سره اسم پاك ( الغني ) اولولي او لاس دې د هغه اندام دپاسه نه د لاندې
طرف ته راولي الله پاك به ورته د دې مصيبت نه خلاصي وركړي، او څوك چه دا اسم پاك

روزانه اويا كرته لولي د هغه په مال كښ به بركت وي او كله به هم محتاج نه شي
**المغني** : چاله چه غواړي بې پرواه كونكې، د دې نومونو نه د بنده نصيب دا دې چه د ما سوى الله نه دې استغناء او بې پروائى اختيار او د الله پاك نه سوا دې څوك هم خپل حاجت روا نه ګڼړي
**خاصيت** : څوك چه مسلسل تر لسو جمعو پورې مسلسل دا اسم پاك لولي په دې طريقه چه د هرې جمعې په ورځ باندې ئې زر كرته اولولي نو د مخلوق نه به بې پرواه شي
**المانع** : خپلو بندګانو لره د دين او دنيا د هلاكت نه منع كونكې. د دې اسم نه د بنده نصيب دا دې چه خپل نفس او طبيعت لره د خواهشات نفساني نه منع كولو سره خپل ځان د ديني او دنياوي نقصان نه محفوظ اوساتي
**خاصيت** كه د ښځې او خاوند ترمينځه خفګان وي نو بسترې ته د تلو په وخت دې دا اسم يو شل كرته اولولي الله پاك به ئې د غصې او خفګان نه بچ كړي.
شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله په شرح اسماء حسنى كښ اسم پاك ( المانع ) نه مخكښ اسم پاك ( المعطي ) هم نقل كړې دې او هغوى د دې دواړو نومونو ترجماني او وضاحت داسې كړې دې چه هغه چاته اوغواړي وركړي او چه چاته غواړي هغه ته ئې نه وركوي. ( الالامانع لما اعطى ولا معطي لما منع ) پوهه شه! چاته چه هغه وركړي هغې لره څوك هم منع كونكې نشته او چاته چه نه وركوي هغه ته څوك هم وركونكې نشته، لهذا چه هر كله بنده پوهه شو چه صرف الله پاك ( معطي ) وركونكې دې او مانع (منع كونكې) دې، نو د هغه د وركړې اميدوار او د هغه د منع نه دې په ويره كښ اوسيږي
په بنده باندې د دې اسم تقاضه دا ده چه هغه د الله پاك نيكو بندګانو او مستحقينو ته د خپل عطاء نه وركړي او فاسقانو ته دې د وركړې نه منع شي. يا دا چه خپل روح ته دې د حضور او طاعت انوار وركړي او خپل نفس او طبيعت دې د خواهشاتو او هوس نه منع كړي د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې كوم چه دلته ذكر كړې شوې دې د ( المعطي ) ذكر نشته. پس د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه د دې روايت د وجې نه د ( منع ) وضاحت په رد او هلاك سره كولې شي
د دې نه پس حضرت شيخ د اسم پاك المعطي خاصيت دا ليكلى چه كوم سړې ( المعطي ) لره خپل ورد جوړ كړي او ( يامعطي السائلين ) ډير لولي نو د چا نه د سوال كولو به محتاج نه شي.
**الضار - النافع** ؛ چاته چه اوغواړي ضرر وركوي، او چاته چه اوغواړي نفع وركوي.
قشيري فرمائي چه په دې اسماء حسنى كښ دې طرف ته اشاره ده چه ضرر او نفع او هر

خیر د الله پاك د قضاء او قدر نه دي لهذا چه كوم سړي د هغه د حكم يعني د قضاء و قدر تابعدار وي هغه به د راحت او سكون ژوند بيا مومي او څوك چه د هغه تابعدار نه وي هغه به په آفت او مصيبت كښ اخته كيږي

پس الله پاك فرمائي

﴿ من استسلم لقضائي وصبر على بلائي وشكر على نعمائي كان عبدي حقاً ومن لم يستسلم لقضائي ولم يصبر على بلائي ولم يشكر على نعمائي فليطلب رباً سوائي ﴾

چا چه زما قضاء او قدر (فيصله) تسليم كړه، زما په ازميښتونو ئې صبر اوكړو او زما په نعمتونو باندې ئې شكر اوكړو هغه زما رشتينې بنده دې، او چا چه زما قضاء او قدر تسليم نه كړو، زما په ازميښتونو باندې ئې صبر اونكړو او زما د نعمتونو شكر ئې ادا نه كړو نو هغه دې زما نه علاوه بل رب طلب كړي

شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله په شرح اسماء حسنى كښ د دې دواړو نومونو ﴿ الضار ﴾ او ﴿ النافع ﴾ د وضاحت په سلسله كښ دا ليكلي دي چه د خير او شر او نفع او ضرر مالك صرف الله پاك دې، او گرمي او يخني او خشكئ او ترئ كښ درد او تكليف او غم او پريشانئ كښ شفا لره پيدا كونكې هم هغه دې، دا دې قطعا گمان اونكړې شي چه دا څيزونه بذات خود فائده وركوي، زهر پخپله هلاكول كوي، خوراك پخپله مړول كوي. او اوبه پخپله تنده ماتوي بلكه دا ټول اسباب عادي دي په دې معنى چه دا عادت قائم دې چه الله پاك دا اسباب جوړ كړي دي چه پورته ذكر شوي څيزونه د هغې په واسطې پيدا كوي كه هغه غواړي نو دا څيزونه د دې واسطو او اسباب نه بغير هم پيدا كولې شي او كه غواړي نو د دې واسطو باوجود هم دا څيزونه پيدا كيدو ته نه پريږدي هم دغه شان د عالم علويات او سفليات ټول څيزونه او ټول اجزاء صرف د واسطې او اسباب په درجه كښ دي كوم چه د الله پاك د قدرت كامله د اثر نه لاندې دي او د دې ټولو حيثيت په نسبت د قدرت ازليه هم هغه دې كوم چه د ليكونكي په لاس كښ د قلم وي لهذا بنده له پكار دي چه هغه ټول نقصانات او ټولې فائدې د الله پاك فيصلې اومني، عالم اسباب دې د هغه د قدرت زير اثر اوگڼړي د الله پاك د حكم او قضاء تابعدار كيدو سره دې خپل ټول كارونه هم هغه ته اوسپاري چه هغه د يو داسې ژوند حامل جوړ شي كوم چه د مخلوق نه محفوظ، مامون او مطمئن وي

نقل كړې شوي دي چه يو كرت سيدنا موسى عليه السلام د غابښونو د درد نه پريشانه كيدو سره د الله پاك په دربار كښ فرياد اوكړو نو د هغه خاې نه ورته حكم اوشو چه فلانئ گيا په غابښونو باندې اومږه چه ارام درته ملاؤ شي، سيدنا موسى عليه السلام هغه گيا په غابښونو باندې اومږله نو ارام ورته ملاؤ شو، څه موده پس ئې بيا په يو غابښ باندې درد شو نو هغوى هم

هغه ګیا استعمال کړه، دې کرته درد د کمیدو په ځاې نور هم زیات شو. د الله پاك په دربار کښې ئې عرض اوکړو اې الله! دا خو هم هغه ګیا ده د کوم د استعمال چه تا ماته حکم کړې وو خو اوس د دې په استعمال باندې درد نور هم زیات شو! د الله پاك د دربار نه په عتاب سره دا ارشاد اوشو هغه کرت تا زمونږ طرف ته توجه کړې وه نو مونږ شفا درکړې وه، او دې کرته تا د ګیا طرف ته توجه اوکړه نو مونږ دې په درد کښې اضافه اوکړه د دې دپاره چه ته پوهه شې چه شفاء ورکونکې خو مونږ یو نه ګیا

په بنده باندې د دې اسم تقاضه دا ده چه د امر الهی او حکم شریعت په ذریعه د الله پاك د دین دشمنانو ته ضرر اورسوی او هغوی خبردار کړی او د الله پاك بندګانو ته فائده اورسوی او د هغوی مدد اوکړی.

**خاصیت**: که یو سړی ته یو حال او مقام ملاؤ وی نو هغه دې دا اسم پاك (**الضار**) د جمعې په شپو کښې سل کرته لولی الله پاك به هغه ته په دې مقام باندې استقامت ورکړی او هغه به د اهل قرب مرتبې ته اورسیږی. او که څوك په کشتۍ یا د اوبو په جهاز کښې سفر کوی نو هغه دې روزانه دا اسم پاك باقاعده لولی انشاء الله هغه ته به هیڅ نقصان نه رسیږی، او د خپل هرکار په شروع کښې دې (**النافع**) یو څلویښت کرته لولی نو د هغه ټول کارونه به د خواهش مطابق انجام ته اورسیږی.

**النور**: اسمان لره په ستورو سره، زمکې لره په انبیاوء او علماوء وغیره سره او د مسلمانانو زړونو لره د معرفت او طاعت په نور سره روښانه کونکې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د ایمان او عرفان په نور سره خپل ذات روښانه کړی

**خاصیت**: څوك چه د جمعې په شپه سورة نور اووه کرته اولولی او دا اسم پاك یو دپاسه زر کرته اولولی نو الله پاك به د هغه په زړه کښې نورانیت پیدا کړی او څوك چه روزانه سحر د دې اسم پاك د لوستلو التزام کوی نو د هغه زړه به منور شی

**الهادی** لاره ښودونکې، د دې اسم نه د بنده برخه دا ده چه هغه د الله پاك بندګانو ته د الله پاك لاره اوښائی، دا خبره حضرت شیخ رحمه الله په شرح اسماء حسنی کښې په وضاحت سره داسې بیان کړې ده چه د هدایت مطلب دې "لاره ښودل او منزل مقصود ته رسول" لهذا الله پاك د ټولو لار ښودونکو راهنما دې، که څوك د دنیا په لاره باندې وی نو بیا هم هغه راهنما دې او که څوك د اخرت په لاره باندې ځی نو بیا هم لاره ښودونکې د هغه ذات دې

حاصل دا چه د الله پاك د انواع هدایت څه حد او شمار نشته (**الذی اعطی کل شیٔ خلقه ثم هدی**) هغه داسې ذات دې چه هر څیز ته ئې وجود ورکړو او بیا ئې ورته لاره اوښودله، پس دا حق تعالی دې کوم چه ماشوم ته د ځیتې نه د بهر راتلو سره د مور د سینې نه د پیو څکلو لاره ښائی، چرګوټی ته د هګۍ نه راوتلو سره د دانې د خوراك لاره ښائی او د شاتو مچۍ ته

د څنګه عجیب او غریب کور جوړولو لاره ښائي، حاصل دا چه د کائنات یو یو فرد په څپله یوه یوه لحظه او یو یو فعل کښې د هغه د هدایت او رهنمايئ باندې موقوف دې
په خو د ټولو نه افضل او د ټولو نه عظیم الشان هدایت هغه لاره ښودل دی کوم چه هغه لره الله پاك ته او د دیدار باری تعالی نعمت عظمی ته رسوی اود خواص په باطن کښې د توفیق الهی او د اسرار تحقیق هغه نور پیدا کوی کوم چه د هدایت، معرفت او طاعت سبب جوړیږی
په بندګانو کښې د دې اسم پاك (الهادی) نه د ټولو نه زیات فائده اوچتونکی انبیاء، اولیاء او علماء دی کوم چه د الله پاك مخلوق ته د صراط مستقیم طرف ته لاره ښودونکی دی خصوص د سید الانبیاء او خاتم الرسل رسول الله ﷺ ذات مبارك د دې اسم پاك حقیقی سوزې دې کوم چه دې په دنیا کښې د پوره انسانیت او پوره کائنات د ټولو نه لوئې او د ټولو نه اوچت مرتبې والا راهنما او رهبر دې. ﴿ اهدنا الصراط المستقیم صراط الذین انعمت علیهم غیر المغضوب علیهم ولا الضالین ﴾
حضرت ذوالنون مصری رحمه الله فرمائی چه درې څیزونه داسې دی کوم چه د عارفینو په صفت عالیه کښې شمارلې شی، ۱ زړه تنګی او غمژن خلق د فراخئ او خوشحالئ طرف ته راوستل. ۲ غافلینو ته د الله پاك رحمتونه وریادول، ۳ د توحید په ژبه باندې مسلمانانو ته د حق لاره ښودل، یعنی د هغوی د زړونو توجه د دنیا نه د دین طرف ته او د معاش نه د معاد طرف ته اړول.
**خاصیت**: څوك چه لاس اوچتولو سره او خپل مخ د اسمان طرف ته کولو سره دا اسم پاك (الهادی) ډیر زیات لولی او بیا خپل لاسونه په خپلو سترګو او مخ باندې راکاږی نو الله پاك به هغه ته د اهل معرفت مرتبه ورکی
(البدیع) عالم لره بغیر د مثال نه پیدا کونکې، بعض حضرات فرمائی چه څوك چه په قول او فعل کښې په خپل نفس باندې سنت لره امیر (حاکم) جوړ کړی هغه د حکمت خبرې کوی یعنی د هغه ذهن، د هغه فکر، اود هغه ژبه د حکمت او شریعت په ډهانچه کښې ځائې شی، او څوك چه په خپل قول او فعل کښې خپل نفس باندې خواهش لره امیر جوړوی هغه د بدعت خبرې کوی، یعنی د هغه ذهن، د هغه فکر او د هغه ژبه صرف په بدعاتو کښې اخته وی.
قشیری رحمه الله فرمائی چه زمونږ د مسلك درې اصول دی، ① په اخلاقو او افعالو کښې او خوراك څښاك کښې چه هغه حلال وی د رسول الله ﷺ تابعداری کول. ② همیشه رشتیا ونیل. ③ په ټولو اعمالو کښې نیت لره مخلص کول. او دا دې هم یاد وی چه څوك د بدعتی په باره کښې مداهنت کوی یعنی هغه سره نرمی کوی نو الله پاك د هغه د اعمالو نه

د سنت حلاوت اوچتوی او څوك چه د بدعتي په ليدو باندې خاندي يعني د بدعتي سره د عزت او احترام معامله كوی نو الله پاك د هغه د زړه نه د ايمان نور ختم كړی

**خاصيت** : په چا باندې چه څه غم راشي يا ورته څه گران كار پيښ شي نو هغه دې ﴿ يأبديع السموات والارض ﴾ اويا زره كرته اولولي او د يو قول مطابق دې زر كرته اولولي نو انشاءالله غم به ئې لرې شي او د هغه كار به پوره شي، او كه څوك په اودس كښې قبلې ته مخ كولو سره دا اسم دومره اولولي چه اوده شي نو هغه چه په خوب كښې د كوم څيز د ليدو خواهش كوی هغه به وينی

**الباقی** : هميشه باقي پاتې كيدونكې

**خاصيت** : څوك چه دا اسم پاك د جمعې په شپه كښې سل كرته اولولي نو د هغه به ټول اعمال قبليږی او هيڅ غم او خفگان به ورته نه رسيږی

**الوارث** : د موجوداتو د فناء كيدو نه پس باقي پاتې كيدونكې او د ټولو مخلوقاتو مالك. څنگه چه اوئيلې شو د "وارث" نه مراد د موجوداتو د فناء كيدو نه پس باقي، چه ټول املاك د خپل مالكانو د فناء كيدو نه پس به د هغې طرف ته رجوع اوكړی، خو دا مطلب د وارث د ظاهری مفهوم په اعتبار سره دې گڼې په حقيقت كښې د كائناتو يو يو څيز علي الاطلاق د ازل نه ابد پورې په ملكيت كښې بغير د څه تغير او تبدل نه هم هغه مالك دې ټول ملك او ملكوت د غير د شركت نه بغير هم د هغه دپاره دی او هم هغه د ټولو حقيقي مالك دې پس ارباب بصائر هميشه دا آواز ﴿ لمن الملك اليوم لله الواحد القهار ﴾ په غور سره اوری

لهذا بنده له پكار دی چه هغه دې د خپل مال او ميراث په فكر كښې نه وی بلكه په دې باندې دې خان پوهه كړی چه د دې هر څه پريخودلو نه پس د دنيا نه تلل دی. هم په دې وجه وئيلې شی چه ﴿ موتوا قبل ان تموتوا ﴾ د عارفانو شعار دې

په بنده باندې د دې اسم تقاضه دا ده چه هغه دې په هغه اعمالو كښې خپل ژوند صرف كړی كوم چه د باقيات صالحات نه دې لكه تعليم او تعلم او صدقه جاريه وغيره، هم دغه شان د دين د علوم او معارف دې پوره سعي او كوشش سره زيات نه زيات حاصل كړی چه په صحيح معنی كښې د انبياو ﷺ وارث جوړ شي

**خاصيت** : كوم سړې چه د نمر راختلو په وخت دا اسم پاك سل كرته لولي هغه ته به هيڅ غم او مصيبت نه رسيږی او څوك چه دا اسم ډير زيات لولي د هغه ټول كارونه به په ښكلې طريقې سره پوره كيږی

**الرشيد** : د عالم راهنما. بعض حضرات فرمائی چه خپل بنده ته د الله پاك لاره ښودل دا دی چه هغه د ده نفس ته د خپل طاعت او عبادت لاره ښائی، د هغه زړه ته د خپل معرفت لاره ښائی او د هغه روح ته د خپل محبت لاره ښائی، او د كوم بنده د نفس د برابرولو دپاره چه

الله پاك هغه ته لاره ښائي دهغې علامت دادې چه الله پاك دهغه په تولوكارونوكښې توفيق
اوتفويض الهام فرمائي
منقول دی چه يوه ورځ ابراهيم بن ادهم رحمه الله اوږې شو نو هغوی يو سړی ته يو څيز ورکړو
کوم چه هغوی سره موجود وو او هغه ته ني اوونيل چه دا خان سره گانړه اوساته او د خوړ ن
انتظام اوکړه. چه کله هغه سړې د هغه خائې نه هغه څيز اخستلو سره د هغه خائې نه لاړو نو
ناځاپه هغه سره يو بل سړي ملاؤ شو کوم چه د يو خچر سره راروان وو په هغه خچر باندې
څلويښت زره ديناره بار وو، هغه سړی د ابراهيم بن ادهم په باره کښې تپوس اوکړو او وې
ونيل چه دا څلويښت زره ديناره د ابراهيم رحمه الله ميراث دې کوم چه هغوی ته د هغوی د وَلَد
نه رسيدلې دې، زه د هغوی غلام يم، د ميراث دا مال مې د هغوی خدمت ته راوړې دې. د
دې نه پس هغه سړې ابراهيم ته راغلو او څلويښت زره ديناره نې هغوی ته حواله کړل
ابراهيم رحمه الله اوفرمائيل چه که ته رشتيا وائې چه ته زما غلام نې او دا مال هم زما دې نو زه
ت د الله پاك د رضا دپاره آزادوم او دا څلويښت زره ديناره هم تاته در بخښم بس اوس ته
زما د خوا نه لاړ شه؛ هغه سړې د هغه خائې نه لاړو نو ابراهيم اوونيل اې الله! ما خو ستا
مخکښې صرف د ډوډۍ خواهش کړې وو تا ماته په دومره مقدار کښې دنيا راکړه، پس قسم
دې ستا په ذات پاك چه که اوس ته ما د لوږې نه هم مړ کړې نو ستا نه به هيڅ نه غواړم
**خاصيت** : که يو سړې د خپل څه کار په باره کښې څه فيصله نه شی کولې نو هغه دې د
ماسخوتن د مانځه او د اودهٔ کيدو ترمينځه دا اسم پاك زر کرته اولولی د هغه کار په باره
کښې چه څه صحيح او مفيد وی هغه به پرې ظاهر شي، او څوك چه په دې اسم پاك باندې
مداومت کوی د هغه تول کارونه به بغير د سعی او کوشش نه پوره کيږی
**الصبور** : صبر کونکې چه گناهگارو ته په سزا ورکولو کښې تندی نه کوی، په لغت کښې د
صبر معنی ده منع کيدل. او په صبور هغه دې کوم چه د گناهگارو په نيولو او هغوی ته په
سزا ورکولو کښې تندی نه کوی صبور د معنی او مفهوم په اعتبار سره حليم ته نزدې دې
خو په دواړو کښې فرق دا دې چه ( صبور) په دې خبره باندې دلالت کوی چه اگرچه في الحال
نې صبر اوکړو خو په اخرت کښې به نې رانيسی او عذاب به ورکوی، او حليم د بردبارۍ په
مفهوم کښې مطلق دې
بعض حضرات وائي چه د صبور معنی دا ده چه بنده ته د هغه په مصيبت او تکليف کښې
صبر ورکونکې، لهذا د امانت په بار باندې صبر ورکونکې، د شهواتو او خواهش په
مخالفت باندې صبر ورکونکې او د عباداتو په ادا کولو کښې په مشقت باندې صبر
ورکونکې هم هغه الله سبحانه وتعالی دې، په دې وجه هر بنده له پکار دی چه هغه په هر
مصيبت او غم او هر آفت او تکليف کښې د الله پاك نه صبر اوغواړی او د هغه د نافرمانۍ نه

دي لري او سيري، هم دغه شان د دې اسم د بنده نه دا تقاضه ده چه هغه په هيڅ كار كښې تندي اونكړى بلكه وقار او طمانيت او تمكين اختيار كړى او په هر غم او تكليف كښې دې د الله پاك نه پناه طلب كړى ﴿ رَبَّنَا أَفْرِغْ عَلَيْنَا صَبْرًا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ، يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اصْبِرُوا وَصَابِرُوا وَرَابِطُوا وَاتَّقُوا اللَّهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴾

په مشائخو كښې د يو كس دا قول خومره د معرفت نه ډك دې چه "د صبر جام اوڅكه كه مړ كړې شوې نو شهيد به شې او كه پاتې شوې نو سعيد (نيك بخته) به شې

**خاصيت :** چاته چه څه غم مشقت، درد او تكليف او څه مصيبت پيښ شي نو دا اسم پاك دې درې ديرش كرته اولولي، د باطن اطمينان به بيامومي، د دشمنانو د ژبې بندولو او تيختې، د حاكمانو د خوشحالولو او د خلقو په زړونو كښې د مقبوليت دپاره د نيمې شپې په وخت يا په غرمه كښې دا اسم پاك لوستل ډير خاصيت او تاثير لري.

په مشكاة كښې د سيدنا ابوهريره رضي الله عنه په روايت كښې چه د الله پاك يو كم سل نومونه راغلى دي د هغې وضاحت ختم شو.

**په قرآن مجيد كښې د الله تعالى نومونه:** ملا على قاري رحمه الله فرمائي چه په قران كريم او احاديث كښې د دې نومونو نه علاوه نور هم څه نومونه منقول دي پس په قران كريم كښې دا نومونه هم راځى. ﴿ الرب، الاكرم، الاعلى، الحافظ، الخلاق، الساتر، الستار، الشاكر، العادل، العلام، الغالب، الناظر، الفالق، القدير، القريب، القاهر، الكفيل، الكافي، المنير، المحيط، الملك، المولى، النصير، احكم الحاكمين، ارحم الراحمين، احسن الخالقين، ذوالفضل، ذو الطول، ذو القوة، ذو المعارج، ذوالعرش، رفيع الدرجات، قابل التوب، الفعال لما يريد، مخرج الحي من الميت ﴾

**په احاديثو كښې د الله تعالى نور نومونه:** او په احاديثو كښې دا نومونه هم راځى، ﴿ الحنان، المنان، المغيث ﴾ هم دغه شان د دې نه علاوه د نور واسمانى كتابونو مثلا تورات وغيره نه د الله پاك بعض نومونه نقل كولې شي.

**[۲۲۸۹] دالله تعالى اسم اعظم**

۲۲۸۹ــ[۳] ()[۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ -: «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: [۲] اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ [۳] لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، الْأَحَدُ، الصَّمَدُ، [۴] الَّذِي لَمْ يَلِدْ، وَلَمْ يُولَدْ [۵] وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ [۶] فَقَالَ: " دَعَا اللَّهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ [۷] الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى، [۸] وَإِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ» " رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه:** [۱] بريده رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د يو سړي څخه دا دعا غوښتل واوريدل

[۱] اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة باب الدعاء (رقم-۱۴۹۳) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۵۴۲ وابن ماجة فى كتاب الدعاء باب اسم الله الأعظم (رقم-۳۸۵۷)

[۲] چې اې الهي: زه ستا څخه اخپل مقصد او مطلوب په دې وسیله سره! غواړم چې ته الله یې [۳] ستا څخه ما سوا بل معبود نشته ، نه داسې یکتا او بې نیاز یې [۴] چې نه خو د هغه څخه څوك پیدا دی او نه هغه د چا څخه پیدا دی [۵] او د هغه هیڅوك برابراوسیال نشته [۶] د دې اوریدو سره، نبي كریم صلى الله علیه وسلم وفرمایل چې دې سړي په اسم اعظم سره د الله تعالى ﷻ څخه دعا وغوښتله، [۷] داسې اسم اعظم چې د الله تعالى ﷻ څخه د دې په ذریعه سوال كول كیږي نو هغه سوال پوره كوي [۸] او هر كله چې د دې په ذریعه دعا غوښتل كیږي نو الله تعالى ﷻ هغه قبلوي (یعني هغه دعا اكثره قبلیږي) ترمذي، ابوداؤد

**حل اللغات** ① الصَّمَدُ: بې نیازه چه هیچاته نې حاجت نه وی او ټول خلق ورته محتاج وی (د دې لفظ نوري هم ډیرې معاني دی خو مشهوره معنی نې همدا ده) ② الأَعْظَمِ: يَعْنِي الْعَظِيمَ: ډیر لوئي

**د اسم اعظم مصداق:** زیاته صحیح خبره خو هم دا ده چه اسم اعظم د الله پاك په نومونو كښې پټ دې د تعیین سره د هغې چاته هم علم نشته لكه لیلة القدر خو جمهور علماء كرام فرمائی چه اسم اعظم لفظ الله دې. او د قطب رباني سیدنا عبدالقادر جیلاني رحمه الله د قول مطابق په دې شرط سره چه كله په ژبې سره لفظ ﴿ الله ﴾ادا شی نو په زړه كښې د الله پاك نه علاوه څوك هم نه وی یعنی د اسم پاك تاثیر به هغه وخت وی چه كله د الله پاك د رابللو په وخت زړه د ما سوا الله نه بالكل خالي وی.

د اسم اعظم په سلسله كښې د علماء كرامو نور هم اقوال دی پس د باب په اخر كښې به هغه ابواب نقل كول شی كوم ته چه علماء كرامو د خپلې خپلې رائې او تحقیق مطابق اسم اعظم ونیلې دې

علماء كرامو په سوال او دعا كښې دا فرق نقل كړې دې چه د سوال معنی ده طلب كول لكه ونیلې شی ﴿ اللهم اعطنی ﴾ (اې الله! ماته فلاني څیز راكړه) او د هغې په جواب كښې د الله پاك عطاء یعنی د هغه وركړه ده. او د دعا معنی ده رابلل. لكه چه اوئیلې شی ﴿ یاالله ﴾ او د دې په مقابله كښې د الله پاك د طرف نه اجابت یعنی قبلول دی لكه چه الله پاك د بنده په بله باندې اوفرمائی ﴿ لبیك یاعبدی ﴾ (وایه زما بنده څه غواړې)

**[۲۲۹۰] په اسم اعظم سره د دعا كولو قبولیت**

۲۲۹۰- [۴] (1) [۱] «وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: كُنْتُ جَالِسًا مَعَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْمَسْجِدِ وَرَجُلٌ يُصَلِّي، [۲] فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ بِأَنَّ لَكَ الْحَمْدَ، [۳] لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ الْحَنَّانُ الْمَنَّانُ [۴] بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ

(1) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة،باب الدعاء(رقم-۱۴۹۵) والنسائى فى كتاب الدعاء /باب اسم الله الأعظم (رقم-۳۸۵۸)واحمد فى المسند:۳/۱۲۰

وَالْأَرْضِ ۵ يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ۶ يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ أَسْأَلُكَ. ۷ فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "دَعَا اللّٰهَ بِاسْمِهِ الْأَعْظَمِ ۸ الَّذِي إِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ ۹ وَإِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى" . رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ۱ انس ﷛ راوي دى چې زه د رسول الله ﷺ سره په مسجد کې ناست وم او يو سړى مونځ کولى، ۲ هغه د مانځه څخه روسته دا دعا وغوښتله چې يا الهي زه ستا څخه خپل مطلب په دي وسيله سره غواړم چې ټول تعريفونه تالره دي ۳ ستا څخه علاوه بل معبود نشته ، ته ډير مهربانه، ډير ورکونکى يې ۴ او د آسمانونو او زمکو پيدا کونکى يې ۵ اې د بزرګۍ او د بخشش مالکه! ۶ اې ژوندیه! اې خبر ګيري کونکيه! زه ستا څخه سوال کوم ۷ ، د دي اوريدو سره، رسول الله ﷺ وفرمايل چې دې سړي د الله تعالى ﷻ څخه د هغه په نوى نوم سره دعا وغوښتله، ۸ داسې لوى نوم چې د الله تعالى ﷻ څخه د هغه په ذريعه دعا وغوښتل شي نو الله تعالى ﷻ هغه قبلوي ۹ او هر کله چې د هغه په ذريعه سوال کول کيږي نو هغه سوال پوره کوي، ترمذي، ابوداؤد ، نسائي، ابن ماجه.

**حل اللغات**: ① الْحَنَّانُ : ډير مهربان، ② الْمَنَّانُ :دا د مِنَّة نه دي، په معنى د نِعْمَة سره، أَيْ كَثِيرُ الْعَطَاءِ: يعنى ډير زيات ورکونکې، ③ بَدِيعٌ: نوې پيدا کونکې، نااشنا پيدا کونکې

**د اسم اعظم تحقيق** : د اسم اعظم د تعين په باره کښ د علماء کرامو مختلف اقوال دي

① بعض حضراتو خو لفظ ﴿ الله ﴾ ته اسم اعظم وئيلي دي،

② څه علماء فرمائى چه ﴿ بسم الله الرحمن الرحيم ﴾ اسم اعظم دي،

③ چا لفظ ﴿ هو ﴾ ته اسم اعظم وئيلي دي

④ بعض حضراتو ﴿ الحى القيوم ﴾ ته اسم اعظم وئيلي دي

④ بعض حضراتو ﴿ مالك الملك ﴾ ته اسم اعظم وئيلي دي

⑤ بعض حضراتو كلمه توحيد ته او بعض حضراتو ﴿ الله الذى لا اله الا هو رب العرش العظيم ﴾ ته اسم اعظم وئيلي دي

⑥ د امام زين العابدين ﷫ په باره کښ منقول دى چه هغوى د الله پاك په دربار کښ عرض اوکړو چه ماته اسم اعظم بيان کړئ نو هغوى ته په خواب کښ اوښودلې شو چه ﴿ لا اله الا الله ﴾ دي.

⑦ بعض علماء کرام فرمائى چه اسم اعظم په اسماء حسنى کښ پټ دي.

⑧ بعض حضرات فرمائى چه ﴿ اللهم ﴾ اسم اعظم دي.

⑨ د بعض سلف نه منقول دى چه چا ﴿ اللهم ﴾ اووې هغه گويا د الله پاك د هغه ټولو

نومونو په ذریعه دعا اوغواړه دغه شان قول د حسن بصری رحمه الله نه هم منقول دې

⑨ بعض حضراتو ﴿ الم﴾ته اسم اعظم وئیلې دې.

بعض حضرات مثلاً امام جعفر صادق رحمه الله فرمائی چه څوك په اسماء الهی کښې په کوم اسم سره هم الله پاك لره په حضور او استغراق سره یاد کړی چه هغه وخت د هغه په باطن کښې د هغې نه علاوه هیڅ هم نه وی نو هم هغه اسم اعظم دې او د هغې په ذریعه غوښتلې کیدونکې دعا قبلیږی.

⑩ امام ابو سلیمان دارانی رحمه الله وائی چه ما د یو شیخ کامل نه تپوس اوکړو چه اسم اعظم کوم یو دې؟ نو هغوی اووې چه آیا ته خپل زړه پیژنې؟ ما اووې او : هغوی اوفرمائیل چه کله ته اوګورې چه ستا زړه د الله پاك طرف ته متوجه او نرم شوې دې نو هغه وخت د الله پاك نه خپل حاجت اوغواړه هم دغه اسم اعظم دې.

⑪ نقل کړې شوې دی چه ابو الربیع رحمه الله ته چا اووې چه ماته د اسم اعظم په باره کښې بیان کړئ نو هغوی اووې چه دا اولیکه ﴿ اطع الله یعطیك ﴾د الله پاك فرمانبرداری کوه هغه به ستا درخواست قبلوی، په دې سره دهغوی مراد دا وو چه د الله پاك اطاعت او فرمانبرداری اسم اعظم دې څکه چه د دې په وجه باندې الله پاك رحمت کوی او قبلول کوی

هم دغه شان ئې اوفرمائیل چه د عارف بسم الله الرحمن الرحیم وئیل د ﴿کن﴾وئیلو په شان دی. یعنی څنګه چه الله پاك د لفظ ﴿کن﴾وئیلو په ذریعه څه غواړی پیدا کوی هم دغه د بنده دپاره ﴿ بسم الله﴾ ده چه هغه د کوم کار په شروع کښې ﴿ بسم الله﴾وائی د هغې په برکت سره هغه کار پوره کیږی

⑫ بعض محققین فرمائی چه دا دعا ټولو اقوالو لره جامع ده یعنی بزرګان دین چه کومو دعا ګانو ته اسم اعظم وئیلې دې هغه ټول په دې کښې راځی

﴿ اللهم انی اسئلك بأن لك الحمد لا اله الا الله انت یاحنان یامنان یابدیع السموات والارض یاذا الجلال والاکرام یاخیر الوارثین یا ارحم الراحمین یاسمیع الدعاء یاالله یاالله یاعالم یاسمیع یاعلیم یاحلیم یا مالك الملك یاسلام یاحق یاقدیم یاقائم یاغنی یامحیط یاحکیم یاعلی یاقاهر یارحمن یارحیم یاسریع یا کریم یامخفی یامعطی یامانع یامحیی یامقسط یاحی یاقیوم یااحد یاصمد یارب یارب یارب یارب یارب یا وهاب یاغفار یاقریب لا اله الا انت سبحانك انی کنت من الظالمین، انت حسبی ونعم الوکیل﴾

په ذکر شوې دعا کښې چه څومره اسماء ذکر کړې شو دا ټول اسم اعظم دی.

**تسهيلات:**

**قوله:** أَنْتَ الْحَنَّانُ الْمَنَّانُ

**بغیره استحقاق د الله تعالی ورکړه:** د حنان معنی ده ډیر مهربان او د منان معنی ده ډیر احسان کونکی په دې کښې اشاره ده چه الله تعالی څه هم ورکوی بغیر د استحقاق نه نې ورکوی هغه د خپل فضل او کرم د وجې ورکوی دی. په یوه نسخه کښې د ابن ماجه سره و الدارمی هم دې

**[۲۲۹] په دوو سورتونو کښې د اسم اعظم بیان**

۲۳۰-[۵] ()[۱] وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ:[۲] "«اسْمُ اللّٰهِ الْأَعْظَمُ فِي هَاتَيْنِ الْآيَتَيْنِ: [۳] ﴿وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ﴾ [البقرة: ۱۶۳] [۴] وَفَاتِحَةِ آلِ عِمْرَانَ: [۵] ﴿الٓمٓ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ﴾ [آل عمران: ۱-۲] » رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] بي بي اسماء بنت یزید رضي الله عنها وایي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] د الله تعالی جل جلاله د تولو څخه لوی نوم (اسم اعظم) په دی دوو آیتونو کې دی [۳] وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَاحِدٌ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ، او ستاسو معبود هغه یو معبود دی، د هغه څخه علاوه بل معبود نشته او هغه بخښونکی او مهربانه دی [۴] او د سورة آل عمران د ابتدایي آیت الٓمٓ اللّٰهُ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ، الم الله چې د هغه څخه علاوه بل معبود نشته هغه ژوندی دی او خبر ګیري کونکی دی. ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه، دارمي

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت اسماء بنت یزید رضي الله عنها:** نوم اسماء، کنیت ام سلمه، اسماء بنت یزیدبن السکن بن رافع ذ هجرت نه پس دیوڅوبنځو سره ذحضور ﷺ په خدمت کښې حاضري شوې او مسلمانانې شوې. په ۱ هـ کښې چه کله ذحضرت عائشه رضي الله عنها رخصتی اوشوه نو چه کومو ښځو هغه جوړوله په هغوی کښې حضرت اسماء رضي الله عنها هم وه. ۱۵ هـ کښې په جنګ یرموك کښې هغې ذ خپلې خیمې په لرګی باندې ۹ رومیان مردار کړل. (اصابة)

علامه ابن حجر رحمه الله فرمائی کانت ذات العقل والدین. یعنی هغه په عقل اودین دواړو سره متصف وه. ذحضورپاك ﷺ خدمت به ئې کولو (۳). ډیره میلمه دوسته وه یوځل هغې کره حضرت شهر بن حوشب راغلو نوهغې خوراك کیخودو نو حضرت شهر بن حوشب انکاراوکړو نوهغې ذحضور ﷺ واقعه واوروله په کوم کښې چه اشاره وه چه انکار بنه نه

[۱]) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب الدعاء،(رقم-۱۴۹۶) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۴۳ والبن ماجة فی کتاب الدعاء /باب اسم الله الأعظم (رقم-۳۸۵۵)

دي په دي باندي شهر بن حوشب اوونيل بيابه داسي غلطي نه كوم (۴)

**وفات** د هغې د وفات باره كښې د اسماء الرجال والا خاموش دى

**مرويات** د هغې نه ۸۱ روايات نقل دى.

**[۲۲۹۲] د يونس عليه السلام د دعا قبوليت**

۲۲۹۲-[۶] (۱) [۱] وَعَنْ سَعْدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - : [۲] «دَعْوَةُ ذِي النُّونِ إِذْ دَعَا رَبَّهُ وَهُوَ فِي بَطْنِ الْحُوتِ [۳] ﴿لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِينَ﴾ [الأنبياء: ۸۷] [۴] لَمْ يَدْعُ بِهَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ فِي شَيْءٍ [۵] إِلَّا اسْتُجِيبَ لَهُ» "رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [۱] حضرت سعد ﷜ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] ماهى والا يعنى د حضرت يونس ﷤ هغه دعا چې هغه د ماهى په نس (خيټه) كې د خپل پروردګار څخه غوښتي وه دا ده [۳] لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ سُبْحَانَكَ إِنِّي كُنْتُ مِنَ الظَّالِمِيْنَ . ستا څخه علاوه بل معبود نشته ته پاك يې بيشكه زه د ظلمانو څخه وم، [۴] كوم مسلمان سړى چې د دې دعا په ذريعه د الله ﷻ څخه څه شى غواړي [۵] نو الله ﷻ د هغه سوال پوره كوي. احمد، ترمذي

**حل اللغات**: ① ذِي النُّونِ: أَيْ: صَاحِبِ الْحُوتِ: يعنى ماهى اوكب والا د دي نه مراد حضرت يونس ﷤ دي. الْحُوتِ: كب، مهي

**تسهيلات**:

**قوله**: دَعْوَةُ ذِي النُّونِ إِذْ دَعَا رَبَّهُ..الخ:

**د ذى النون نه څوك مراد دى؟**: ذى النون يعنى د كب والا دعا دي نه مراد حضرت يونس ﷤ دي چې د نينوى او موصل په علاقه كښې قوم ته دعوت وركړو قوم انكار اوكړو هغه بددعا وركړه په هغې كښې تاخير كيدلو دې د ښار نه اووتلو الله تعالى ته دا وتل خوښ رانغله په امتحان كښې د اچولو د پاره نى سمندر ته اوغورزولو كب تير كړو هغوى دعا اوونيله الله تعالى مهربانى اوكړه بيا واپس راغلو نو قوم نى ورته استقبال اوكړو او مسلمانان شو بيا هم په دغه قوم كښې د حضرت يونس ﷤ انتقال اوشو

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۲۹۳] د اسم اعظم تحقيق**

۲۲۹۳-[۷] (۲) [۱] «عَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: دَخَلْتُ مَعَ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - الْمَسْجِدَ عِشَاءً [۲] فَإِذَا رَجُلٌ يَقْرَأُ وَيَرْفَعُ صَوْتَهُ [۳] فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ أَتَقُولُ: هَذَا مُرَاءٍ؟ [۴] قَالَ: "بَلْ مُؤْمِنٌ مُنِيبٌ [۵]"

---

(۱) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۵۷۲ واحمد فى المسند : ۱/۱۷۰

(۲) اخرجه رزين

قَالَ: وَأَبُو مُوسَى الْأَشْعَرِيُّ يَقْرَأُ، وَيَرْفَعُ صَوْتَهُ، [٦] فَجَعَلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَتَسَمَّعُ لِقِرَاءَتِهِ،

**ترجمه** [١] حضرت بریده ﷺ راوي دي چې (یو ځل) زه د رسول الله ﷺ سره د ماسخوتن د مانځه د پاره په مسجد کې داخل شوم [٢] هلته څه ګورم چې یو سړی (په مانځه کې) قرآن کریم وایي او ځپل آواز اوچتوي، [٣] ما اوویل چې یا رسول الله ﷺ آیا تاسو به دې سړي ته ریاکار نه وایي؟ (یعنی آیا دا سړی منافق نه دی چې د ښوونې او اورولو د پاره دومره په زور زور سره قرآن کریم وایي؟) [٤] نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې یا . بلکه مؤمن دي چې (د غفلت څخه د ذکر طرف ته) رجوع کوي، [٥] بریده ﷺ وایې چې ابوموسی یعني هغه سړی چې د هغه په باره کې پورته ذکر وشو چې هغه په اوچت آواز سره قرآن کریم ویلی) په پورته آواز سره یې قرآن کریم ویلی [٦] نو رسول الله ﷺ د هغه قرائت ته غوږ کیښودلو،

① مُرَاءٍ: أَيْ: مُنَافِقٌ: مراء ریاکار ته وائی ددې نه مراد منافق دې ② مُنِيبٌ: أَيْ رَاجِعٌ: رجوع کونکي (د غفلت نه ذکر طرف ته).

[١] ثُمَّ جَلَسَ أَبُو مُوسَى يَدْعُو، [٢] فَقَالَ: اللَّهُمَّ إِنِّي أُشْهِدُكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللَّهُ [٣] لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، أَحَدًا، صَمَدًا، [٤] لَمْ يَلِدْ وَلَمْ يُولَدْ [٥] وَلَمْ يَكُنْ لَهُ كُفُوًا أَحَدٌ. [٦] فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " لَقَدْ سَأَلَ اللَّهَ بِاسْمِهِ [٧] الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى، [٨] وَإِذَا دُعِيَ بِهِ أَجَابَ " [٩] قُلْتُ: يَا رَسُولَ اللَّهِ أُخْبِرُهُ بِمَا سَمِعْتُ مِنْكَ؟ قَالَ " نَعَمْ "

**ترجمه** [١] بیا ابوموسی ﷺ (یا خو په تشهد کې یا د مانځه څخه روسته د دعا د پاره) کیناستلو دعا ئې غوښتله [٢] او په بارګاه الهي کې یې داسې عرض کولی چې اې الهي! زه تا ګواه جوړولو سره ستا په حق کې دا اعتقادلرم او اقرار کوم چې ته الله یې [٣] ستا څخه ما سوا بل معبود نشته . ته داسې یکتا او بې نیاز یې [٤] چې نه د هغه څخه څوك پیدا دی او نه هغه د چا څخه پیدا دی [٥] او د هغه هیڅوك همسر (سیال) نشته، [٦] رسول الله ﷺ (د دې اوریدو سره) وفرمایل چې ده د الله ﷻ په هغه نامه سره سوال وکی [٧] داسې نوم چې کله د هغه په ذریعه سوال وشي نو الله ﷻ هغه سوال پوره کوي، [٨] او کله چې د دې په ذریعه دعا وغوښتل شي، نو دعا قبلیږي [٩] نو حضرت بریده ﷺ وایې چې ما عرض وکړی چې یارسول الله! ﷺ ما چې ستا څخه دا خبره واوریده، نو دا خبره ابوموسی ﷺ ته ورسوم؟ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هو،

[١] فَأَخْبَرْتُهُ بِقَوْلِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] فَقَالَ لِي: أَنْتَ الْيَوْمَ لِي أَخٌ صَدِيقٌ، [٣] حَدَّثْتَنِي بِحَدِيثِ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ». - رَوَاهُ رَزِينٌ.

[١] ما ابوموسی ﷺ ته د نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد ګرامي ورسوی [٢] نو هغه اوویل چې د نن ورځې څخه ته زما رښتینی ورور یې [٣] چې تا د رسول الله ﷺ دا ارشاد ماته را ورسوی، رزین

**حل اللغات** ⑦ أَعْطَيْتَنِي: ربښتوني ورور

**تسهیلات:**

**قوله**: لَقَدْ سَأَلَ اللّٰهَ بِاسْمِهِ الَّذِي إِذَا سُئِلَ بِهِ أَعْطَى..الخ:

**٥ اسم اعظم په تعین کښې اقوال**؛ دې نه وړاندې اشاره کړې شوې ده چه اسم اعظم دَ الله تعالی په نومونو کښې پټ دې هيڅ يو څيز دَدې مصداق نه دې ليکن څه علماؤ دَدې دَ تعين باره کښې څه ليکلی دی.

① دَ بعضې علماؤ په نيز لفظ الله اسم اعظم دې دَ بعض حضراتو په نيز دادی چه بسم الله الرحمن الرحيم اسم اعظم دې. څه علماؤ لفظ "هو" ته اسم اعظم وئيلې دې کوم چه سلطان باهو دَ تولونه زيات استعمال کړې دې. بعضو الحی القيوم او بعضو مالك الملك او بعضو الله الذی لا اله الا هو رب العرش العظيم اسم اعظم گرځولې دې.

② امام زين العابدين رحمه الله دَ الله تعالی نه اسم اعظم اوغوښتلو نو په خوب کښې ورته اوخودلې شو چه لا اله الا الله اسم اعظم دې.

③ بعض سلف فرمائی چه لفظ اللهم اسم اعظم دې. بعضو الم ته اسم اعظم وئيلې دې دَدې باب په يو څو احاديثو کښې حضور اکرم بعض دعاگانې اسم اعظم گرځولې دې. دا زيات مستند دی ليکن که چرته دلته دا اووئيلې شی نو بې ځايه به نه وی چه کيدې شی چه اسم اعظم دَ څه خاص الفاظو دَترکيب نوم نه دې بلکه هر هغه کلمه يا جمله کومه چه دَ الله تعالی په ډيرزيات تعريف بلندې مشتمل وی هم هغه اسم اعظم دې

# [ ۱ ] بَابُ ثَوَابِ التَّسْبِيحِ وَالتَّحْمِيدِ وَالتَّهْلِيلِ وَالتَّكْبِيرِ

## د تسبیح، تمهید، تهلیل او تکبیر ثواب

**خلاصة الباب:**

**فيه تسعة وعشرون حديثاً مشتملة على ست مسائل:**

① فضيلة كلمة التحميد: ۱، ۲، ۶، ۱۸، ۱۹، ۲۰، ۲۲، ۲۵، ۲۹۔

② فضيلة كلمة سبحان الله وبحمده: ۳، ۴، ۵، ۷، ۸، ۱۱۔

③ فضيلة كلمة التوحيد: ۹، ۱۳، ۱۶، ۱۷، ۲۱، ۲۴۔

④ فضيلة كلمة لا حول ولا قوة إلا بالله: ۱۰، ۱۸، ۲۷، ۲۸،

⑤ فضيله الحمد: ۱۳، ۱۴، ۱۵۔

⑥ الحث على التسبيح: ۱۲، ۲۳۔

قال الله تعالى ﴿ وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴾ [سورت الاحزاب الايه: ۴۲. وقال الله تعالى ﴿ فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ ﴾ [سورت نصر الايه: ۳. وقال الله تعالى ﴿ وَكَبِّرْهُ تَكْبِيرًا ﴾ [سورت بنی اسرائیل الایه: ۱۱۱.
تسبیح نه مراد سبحان الله او د تسبیح مادې سره متعلق ټول کلمات مراد دی د تحمید نه مراد الحمد لله او د تهلیل نه مراد لااله الاالله وئیل او تکبیرنه مراد الله اکبر وئیل دی

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۳] د ټولو نه غوره او محبوب کلمات**

۲۳۰۳ - [۱] ()[۱] عَنْ سَمُرَةَ بْنِ جُنْدُبٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «أَفْضَلُ الْكَلَامِ أَرْبَعٌ: سُبْحَانَ اللَّهِ[۳] وَالْحَمْدُ لِلَّهِ[۴] وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ[۵] وَاللَّهُ أَكْبَرُ» "[۶] وَفِي رِوَايَةٍ: " «أَحَبُّ الْكَلَامِ إِلَى اللَّهِ أَرْبَعٌ: [۷] سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ، [۸] لَا يَضُرُّكَ بِأَيِّهِنَّ بَدَأْتَ» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه:** [۱] سمره ابن جندب رضی الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د انسان په کلام کې د ټولو ښه بهتر کلام څلور دي: او هغه دا دي ① سبحان الله، الله ډير پاک دی [۳] ② الحمد لله، ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي [۴] ③ لااله الاالله، د الله ﷻ څخه ماسوا بل معبود نشته [۵] ④ الله اکبر، الله ﷻ ډير لوی دی، [۶] او په يوه روايت کې دي چې رسول کريم ﷺ وفرمايل د الله تعالی ﷻ په نزد د ټولو څخه خوښ کلام څلور دي: [۷] ① سبحان الله ②

[۱] ) اخرجه مسلم في كتاب اداب رقم الحديث ۵۷۲۴

الحمد لله ③ لا اله الا الله ④ الله اكبر [۸] د دې څخه د هرې كلمې څخه چې هم شروع وكړې ستا د پاره نقصان رسونكى نه دى. مسلم

**حل اللغات** ① بَدَأْتَ: چه ته ئې شروع اوكړې

**تسهيلات:**

**قوله: أَفْضَلُ الْكَلَامِ:**

**د حديث په مفهوم كښې دوه اقوال:** د دې حديث دوه مفهومه دى

① رومبى مفهوم دا دې چه د الله تعالى د كلام نه پس د انسان په كلام كښې دا څلور كلمې د ټولونه افضل دى داقيد څكه لګولې شوې دې چه كوم كلمات په قرآن كښې وى او د الله تعالى كلام وى هغه د ټولونه افضل دى د قرآن نه علاوه د الله تعالى په كلام كښې دغه پورتنى كلمات افضل دى

② دويم مفهوم دا دې چه د انسان په كلماتو كښې دغه څلور كلمات د ټولونه افضل دى يعنى الله تعالى ته محبوب او خوښې دى. لكه څنګه چه هم په دې حديث كښې په دويم روايت كښې ذكر دى

**د مذكوره څلورو كلماتو د فضيلت وجه:** بهرحال په دغه څلورو كلماتو كښې د الله تعالى نه د صفات سلبيه د نفى كلمات هم موجود دى كوم چه د سبحان الله لفظ دې او د الله تعالى د صفات ثبوتيه د اثبات د پاره هم كلمات موجود دى هم د دغه جامعيت د وجې نه دا غوره دى بايتهن بدأت يعنى په دې سره هيڅ فرق نه پريوځى چه تاد كومې كلمې نه شروع كړې ده مذكوره ترتيب هم جائز دې او د ترتيب نه بغير هم لوستل فائده مند دى

**[۲۲۹۵] الله تعالى ته د كائناتو څخه خوښه وظيفه**

۲۲۹۵ - [۲] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«لَأَنْ أَقُولَ: سُبْحَانَ اللهِ، وَالْحَمْدُ لِلهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ، وَاللهُ أَكْبَرُ [۳] أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ» (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره ﷺ وايى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] سبحان الله والحمد لله ولا اله الا الله والله اكبر. ويل [۳] بلا شبه زما په نزد د هغه څيز څخه چې په هغه نمر راخيژي، يعنى دنيا او د دنيا د څيزونو څخه، زيات خوښ دى. مسلم.

**حل اللغات**: ① طَلَعَتْ: راخيژى (نمر)

**تسهيلات:**

**قوله: أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا طَلَعَتْ عَلَيْهِ الشَّمْسُ**

---

( ) اخرجه البخارى فى كتاب الدعوات باب فضل التسبيح (رقم-۶۴۰۵) ومسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-۲۸ - (۲۶۹۱) واحمد فى المسند ۳۷۵/۲

**د مذکوره کلماتو د دنيا وما فيها څخه د افضليت وجوهات:**

① دنيا فاني ده او د دې کلماتو ثواب باقي دې

② دنيا د الله پاک نه غافله کونکې ده او دا کلمات د الله تعالى ياد راوستونکى دى

**[٢٢٩٦] سل ځله د سبحان الله وبحمده لوستلو فضيلت**

٢٢٩٦–[٣] (١) وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«مَنْ قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ حُطَّتْ خَطَايَاهُ وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ» (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړي چې په يوه ورځ کې سل ځله سبحان الله وبحمده اووائي نو د هغه ګناهونه ختميږي ③ اګر چې هغه د دريا ب د زګ برابر وي (يعني هر څومره زيات ولې نه وي) بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① حُطَّتْ: أَيْ: سَقَطَتْ: غورزيږي، ورانيږي ② زَبَدِ: زګ (کوم چه په سندونو کښې د اوبو د پاسه وي) ③ الْبَحْرِ: درياب (د سمندر زګ کنايه ده د زياتوالى نه)

**تسهيلات:** **قوله:** مَنْ قَالَ: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ..الخ:

**د سبحانه الله وبحمده ويلو طريقه:** افضل او اولى هم دغه دى چه دا وظيفه سل ځل په يوځائى اووئيلې شي په مينځ کښې فرق نه وي ليکن علامه طيبى رحمه الله فرمائى چه دا کلمات د سحر نه واخله ترماښامه پورې په متفرق توګه باندې هم ووئيلى شى تول ګناهونه چه معاف کيږى د دې نه صغيره ګناهونه مراد دى ځکه چه د کبيره د پاره د توبه ضرورت وى او کبائر ضعيف کيږى ليکن که ورسره توبه هم اوکړې شى نو بيا کبائر هم معاف کيږى په دې شرط چه د حقوق العباد نه نه وى

**[٢٢٩٧] صبا ماښام سل ځله د لوستلو وظيفه**

٢٢٩٧–[٤] (٢) وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: "«مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ وَحِينَ يُمْسِي: سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ مِائَةَ مَرَّةٍ لَمْ يَأْتِ أَحَدٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ إِلَّا أَحَدٌ قَالَ مِثْلَ مَا قَالَ أَوْ زَادَ عَلَيْهِ»" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② چا چې د سحر په وخت کې او د ماښام په وخت کې سل ځله سبحان الله وبحمده وويل، ③ نو د قيامت په ورځ به هيڅ سړى د دې عمل څخه ښه څه عمل رانه وړي، ④ علاوه د هغه سړي څخه چې هغه د هغه په شان يا د هغه څخه زيات ويلي وي. بخاري مسلم

---

[١] اخرجه البخاري في كتاب الدعوات/باب فضل التسبيح (رقم-٦٤٠٥) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-٢٨ - (٢٦٩١) واحمد في المسند ٢/٣٧٥

[٢] اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-٢٩ - (٢٦٩٢)

**تسهيلات:**

**قوله:** أَوْزَادَعَلَيْهِ:

**په حديث کښې يو اشکال او د هغې جواب:** سوال دادې چه په دې حديث کښې دَ رومبی سرې افضليت ختمولوڼ پاره اوفرمائيلې شو چه راتلونکی يو سړې دغه شان سل ځل دا تسبيح اووئيل نوهغه به افضل وی حالانکه په دې کښې هيڅ افضليت نشته دې. اولنی سړی هم سل ځل اووئيل اوهغه هم دَده په شان سل ځل اووئيل نو افضليت به څنګه حاصل شی؟ دَدې آسان جواب دادې چه دَحديث په آخر کښې "او"چه کوم لفظ دې دادَ واؤ په معنی کښې دې مطلب داشو چه دافضيلت هغه سړی ته حاصليږی چه سل ځل ئې اووائی او څه زيات اووائی

**[۲۲۹۸] دوه کلمې الله تعالی ته محبوب دی**

۲۲۹۸-[۵] (۱) ۱ وَعَنْهُ: قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "۲ «كَلِمَتَانِ خَفِيفَتَانِ عَلَى اللِّسَانِ، ۳ ثَقِيلَتَانِ فِي الْمِيزَانِ، ۴ حَبِيبَتَانِ إِلَى الرَّحْمٰنِ: ۵ سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهِ، ۶ سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيمِ» " (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ)

**ترجمه** ۱ ابوهريره ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ دوه کلمې دي چې په ژبه سره په ويلو کې اسانه دی، ۳ خو په ترازو (تله) کې درنې دي (يعني د هغه ثواب به په ميزان عمل کې دروند وي) ۴ او دمهربان الله ﷻ په نزد ډيرې محبوبې دي ۵ او هغه دوه کلمې دا دي؛ سبحان الله وبحمده سبحان الله العظيم، يعنی الله ﷻ پاک دی او د خپل حمد سره موصوف دی، ۶ پاک دی الله ﷻ چې ډير لوی دی، بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① خَفِيفَتَانِ: أَيْ تَجْرِيَانِ عَلَيْهِ بِالسُّهُولَةِ: سپکې دی يعنی په وئيلو کښې ډيرې آسانې دی
② ثَقِيلَتَانِ: ډيرې وزنی او درنې دی.

**تسهيلات: قوله:** حَبِيبَتَانِ:

**د حبيبتان څخه مراد:** دادَ "محبوبتان" په معنی کښې دې مراد دادې چه دَدې ويونکې الله تعالی ته محبوب کيږی.

**قوله:** خَفِيفَتَانِ:

**د خفيفتان په مطلب کښې څلور اقوال:** ① دَ سپکوالی مطلب دادې چه دَدې مشقت کم دې ثواب ئې زيات دې په دې وجه دکم خرچ بالانشين په شان دې.
② يا داسې اووايئ چه په دې کښې څه مشهور شديد حرف نشته دې په دې وجه سپکې دی

۱) اخرجه البخا ر ی فی کتاب الأيمان والنذور / إذا قال: والله لا أتکلم اليوم. فصلی. أو قرأ. أو سبح. أو کبر. أو حمد. أو هلل. فهو علی نيته (رقم-۶۶۸۲) ومسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار / باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-۳۱ - (۲۶۹۴)

۞ په دا سې اوو ايه چه د حضور پاك په بيان كښې كومه سجع ده د غې سجع دا خفيف حوړې كړې دي

۞ په دا چه دا تشويق سپكې جوړې كړې دى يعنې هره كلمه د وړاندې كلمې شوق ورکوی کله چه اوونيلې شو "کلمتان" نو اوريدونكى متوجه شو چه كله د "حبيبتان" لفظ غلو نو اوريدونكو اوكتل نو چه كله "ثقيلتان" اوونيلې شو نو اوريدونكو د ډيرې خوشحالئى او سخت محبت نه اوونيل چه "سبحان الله" داكوم دولت لرې شان زر اوښايئى نو دې په جواب كښې دا كلمې "سبحان الله وبحمده" په دې كښې د الله تعالى د صفات سلبيه دنفى د پاره يوه جمله ده او د صفات ثبوتيه د اثبات د پاره دويمه جمله ده نو د الله تعالى كمال او مكمل تعريف په دې كښې راغلو

**[۳۳] د زرو نيكوالا دعا**

ــــ[۶] ()۱ وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۲ كُنَّا عِنْدَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ ۳ أَيَعْجِزُ أَحَدُكُمْ أَنْ يَكْسِبَ كُلَّ يَوْمٍ أَلْفَ حَسَنَةٍ ۴ فَسَأَلَهُ سَائِلٌ مِنْ جُلَسَائِهِ كَيْفَ يَكْسِبُ أَحَدُنَا أَلْفَ حَسَنَةٍ ۵ قَالَ يُسَبِّحُ مِائَةَ تَسْبِيحَةٍ فَيُكْتَبُ لَهُ أَلْفُ حَسَنَةٍ ۶ أَوْ يُحَطُّ عَنْهُ أَلْفُ خَطِيئَةٍ، رَوَاهُ مُسْلِمٌ،

**ترجمه** ۱ سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه وايي ۲ (يوه ورځ) چې مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو، نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل ۳ چې آيا په تاسو كې يو سړى په دې قادر دى، چې هره ورځ زر نيكى حاصلې كړي؟ ۴ په مجلس كې موجود صحابه و رضي الله عنهم كې يو صحابي پوښتنه وكړه چې يا رسول الله! ﷺ په مونږ كې كوم سړى (روزانه په آسانۍ سره) يو زر نيكې څرنګه حاصلولى شي؟ ۵ نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې هغه دې سل خله سبحان الله اووائي، د هغه د پاره يو زر نيكې وليكل شي (په دې حساب چې په هره نيكې باندې لس نيكې ليكل كيږي) ۶ يا د هغه يو زر (صغيره او كه الله ﷻ وغواړي نو كبيره) ګناه رژول كيږي، مسلم

**حل اللغات:** ۞ أَيَعْجِزُ: آيا عاجز دې يعنې قدرت او وس نې نه رسي

۱ وَفِي كِتَابِهِ فِي جَمِيعِ الرِّوَايَاتِ عَنْ مُوسَى الْجُهَنِيِّ أَوْ يُحَطُّ قَالَ أَبُو بَكْرٍ الْبَرْقَانِيُّ ۲ وَرَوَاهُ شُعْبَةُ وَأَبُو عَوَانَةَ وَيَحْيَى بْنُ سَعِيدٍ الْقَطَّانُ عَنْ مُوسَى ۳ فَقَالُوا وَيُحَطُّ بِغَيْرِ أَلِفٍ هَكَذَا فِي كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ.

**ترجمه** ۱ ابوبكر برقاني رحمه الله وايي چې په صحيح مسلم كې د موسى جهني څخه چې كوم روايتونه منقول دي په هغه ټولو كې لفظ او يُحَطُّ نقل شوى دى، ۲ او شعبه رحمه الله، ابو عوانه او يحيى ابن سعيد قطان د موسى جهني څخه دا روايت نقل كړى دى ۳ چې په هغه

---

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-۳۷ - (۲۶۹۸) واحمد فى المسند ۱/۱۷۴

کې نفظ د ویحط بغیر ألف ذکر کړی دی او په کتاب حمیدي یعنی جمع بین الصحیحین کې هم دغه شان منقول دی

**حل اللغات** ② يَحُطُّ : اوبه غورزیږي، وران به کړي شي

**تسهیلات: قوله: وَيَحُطُّ:**

**د اویحط کلمې تحقیق:** حط یحط دغورزولوپه معنی کښې راخی دلته د گناهونومعاف کیدل مراددی دلته داخبره یادساتئی چه اویحط دَ او کلمه دَ واؤ په معنی کښې ده لهذا اوس به هیڅ اعتراض نه راځي مطلب دا چه زر نیکیانې به ملاویږی او یوزر گناهونه به ئې معاف کیږی داهم دَ کم خرج بالاتنین دَ قبیل نه دي

**[۲۳۰۰] د فرشتو دپاره منتخب شوی ذکر**

۲۳۰۰- [۷] (۱) ① وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: «سُئِلَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَيُّ الْكَلَامِ أَفْضَلُ؟ ② قَالَ: "مَا اصْطَفَى اللَّهُ لِمَلَائِكَتِهِ: سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** ① ابو ذر رضی الله عنه وایي چې د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وشوه چې کوم کلام بهتر دی؟ ② رسول الله ﷺ وفرمایل چې هغه کلام چې الله ﷻ د خپلو فرشتو د پاره چن کړی دی او هغه دا دی سبحان الله وبحمده، مسلم

**حل اللغات:** ① اصْطَفَى : أي: الَّذِي اخْتَارَهُ: چه غوره کړي او منتخب کړي ئې دي

**تسهیلات:**

**قوله: مَا اصْطَفَى اللَّهُ لِمَلَائِكَتِهِ: سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ**

**د سبحان الله وبحمده عظیم فضیلت:** الله تعالی خوښ کړه د دې مطلب دا دې چه الله په خپل ذکر کښې دا کلمه د خپلو فرشتو دپاره خوښه کړې ده او د دې کلمې د ډیر فضیلت د وجې ئې فرشتو ته حکم کړې چه دا کلمه همیشه وائې او هغه کلمه سبحان الله و بحمده ده

**[۲۳۰۱] په دعاکښې دَ کیفیت اعتبارشته دَ کمیت نشته دي**

۲۳۰۱- [۸] (۲) ① «وَعَنْ جُوَيْرِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا - أَنَّ النَّبِيَّ خَرَجَ مِنْ عِنْدِهَا بُكْرَةً حِينَ صَلَّى الصُّبْحَ ② وَهِيَ فِي مَسْجِدِهَا، ③ ثُمَّ رَجَعَ بَعْدَ أَنْ أَضْحَى وَهِيَ جَالِسَةٌ ④ قَالَ: مَا زِلْتِ عَلَى الْحَالِ الَّتِي فَارَقْتُكِ عَلَيْهَا؟ " ⑤ قَالَتْ: نَعَمْ قَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " ⑥ لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ⑦ لَوْ وُزِنَتْ بِمَا قُلْتِ مُنْذُ الْيَوْمِ لَوَزَنَتْهُنَّ: ⑧ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ عَدَدَ خَلْقِهِ ⑨ وَرِضَاءَ نَفْسِهِ، ⑩ وَزِنَةَ عَرْشِهِ، ⑪ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهِ» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب فضل سبحان الله وبحمده (رقم - ۸٤ - (۲۷۳۱)

[۲] اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التسبیح أول النهار وعند النوم (رقم -۷۹ - (۲۷۲۶) وابن ماجة فی کتاب الأدب /باب فضل التسبیح (رقم -۳۸۰۸)

**ترجمه** [۱] بي بي جويريه ﷞ چې د نبي کريم صلي الله عليه وسلم بي بي مبارکه ده دا نقل کوي چې يوه ورځ رسول الله ﷺ سحر وخت د سحر د مانځه د پاره د هغې څخه ووتې [۲] او هغه په خپله مصلى ناسته وه، [۳] کوم وخت چې رسول الله ﷺ د څاښت په وخت کې واپس تشريف راوړی نو هغه په خپل ځای يعنی مصلي باندې هغه رنګه ناسته وه [۴] رسول الله ﷺ دي ليدو سره، وفرمايل چې په کوم حالت کې چې ته ما دلته پرېښې وې، آيا هغه شان مسلسل ناسته يې؟ يعني د سحر د وخت څخه تر اوسه پورې چې د څاښت وخت راغلو دی په مصلى باندې ناسته دغه شان په ذکر الهي کې مشغوله يې؟ [۵] هغې اوويل چې هو. رسول الله ﷺ ورته وفرمايل [۶] چې زما ستا څخه د تلو وروسته څلور کلمې درې خله وويلی، هغه څلور کلمې داسې دي [۷] که هغه د هغه څيز سره وتلل شي، چې د هغه په ويلو کې ته د ورځې د ابتداء څخه تر اوسه پورې مشغوله يې (يعني په ذکر کې) نو يقينً دا څلور کلمې به په هغه څيز درنې وی (يعني د هغه څلورو کلمو ثواب به په هغه پوره وخت ذکر الهي کې ستا د مشغوليت د ثواب څخه زيات وي) [۸] او هغه څلور کلمې دا دي! سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ عَدَدَ خَلْقِهٖ وَرِضَا نَفْسِهٖ وَزِنَةَ عَرْشِهٖ وَمِدَادَ كَلِمَاتِهٖ، زه د الله ﷻ پاکي بيانوم. او د هغه تعريف کوم د هغه د مخلوقاتو د تعداد په اندازه، [۹] او د هغه د ذات د مرضی په موافق [۱۰] او د هغه د عرش د وزن مطابق [۱۱] او د هغه د کلمو د مقدار په شان. مسلم

**حل اللغات:** ① بُكْرَةً: أَيْ: أَوَّلَ نَهَارِهِ: سحر وختی يعنی د ورځې په شروع کېږي. ② أَضْحَى: وَهِيَ ارْتِفَاعُ النَّهَارِ قَدْرَ رُمْحٍ: دڅاښت وخت يعنی کله چه نمر د يو غشی په اندازه راپورته شوې وی ③ وَزَنَتْ أَيْ: قُوبِلَتْ: وزن اوکړې شی يعني يوبل سره ئې مقابله اوکړې شی. ④ زِنَةَ عَرْشِهٖ: په وزن يا په مقدار د عرش. ⑤ مِدَادَ: دا مصدر دې. په معنی د مقدار سره، وَهُوَ الزِّيَادَةُ وَالْكَثْرَةُ: دلته ترې مراد زياتوالي اوکثرت دې

**دراوي مختصر تعارف:**

**حضرت جويريه رضی الله عنها:** نوم جويريه دَ پلار نوم حارث بن ضرار دا دَ قبيله بنو مصطلق سردار وو. شکل ئې ډير ښائسته ووبرابراندامونه ئې وو. دَ حضرت جويريه رومبنی نکاح هم خپل خاندان کښې رافع بن صفوان سره شوې وه خو چه کله ۵ھ دو شعبان کښې غزوه مريسيع اوشوه نو په دې کښې حضرت جويريه اونيولي شوه. اول دا د ثابت بن قيس په حصه کښې راغله نو هغه دا په ۱۹ اوقيه سرو زرو باندې مکې تبه جوړه کړه. بيا د مال په سلسله کښې دا حضوراکرم ﷺ ته هم پيش شوه. حضور ﷺ ارشاد اوفرمائيلو آيا زه ستادَطرف نه دکتابت مال اداکړم او بيا تاسره نکاح اوکړم؟ ته په دې باندې رضا ئې؟ هغه راضی شوه نو حضور ﷺ رقم ورکړو او هغې سره ئې نکاح هم اوکړه. طبقات ابن سعد کښې دی دَ کتابت دا مال دَ هغې پلار ادا کړې وو کله چه

هغه آزاده شوه نوبيا حضوراكرم ﷺ هغې سره نكاح اوكړه.(طبقات ابن سعد:۴۸/۸)
حضرت جويريه ﷞ به ډير دعبادت ژوند تيرولو.

**وفات:** حضرت جويريه ﷞ ۵۰ھ كښې دَ دنيا نه رخصت شوه انالله وانا اليه راجعون. دغه وخت دَ هغې عمر ۶۵ كاله وو. مروان دَ جنازې مونځ اوكړو او جنت البقيع كښې خښه شوه.

**تسهيلات:**

**قوله:** لَقَدْ قُلْتُ بَعْدَكِ أَرْبَعَ كَلِمَاتٍ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ..الخ:

**په ذكر الله او دعا كښې د كيفيت اعتبار دې،** دلته حضرت جويريه ﷞ دَ سحر دَ مونځ نه پس ډير وخته پورې كيناسته او ډيرې دعاګانې ئې اوكړې ليكن حضورپاك صرف څلور كلمې اولوستلې چه دَ كيفيت اوشان والا وې په دې وجه دَهغې وزن زيات معلوم شو. دَ الله تعالى په ذكر كښې او دغه شان په هره دعا كښې دَ كيفيت اعتبار دې دَ كميت اوكثرت اعتبار نشته دې. دغه شان مثلاً يوسړې لفظ الله يا لفظ الحمد لله داسې په مزه سره وائي چه په دې كښې لس سيكنډه خرچ شو او يوسړې په لس سيكنډه كښې زر زر پنځه ځل وائي ددې نه دَ هغه يوځل ونيلو ثواب زيات دې په وخت او خيال باندې ثواب ملاويږي.

**[۳۰۲] دَشيطان نه دَبچ كيدو آسانه طريقه**

۲۳۰۳–[۹] (۱) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، [۳] لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ [۴] فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ كَانَتْ لَهُ عَدْلَ عَشْرِ رِقَابٍ، [۵] وَكُتِبَتْ لَهُ مِائَةُ حَسَنَةٍ، [۶] وَمُحِيَتْ عَنْهُ مِائَةُ سَيِّئَةٍ، [۷] وَكَانَتْ لَهُ حِرْزًا مِنَ الشَّيْطَانِ يَوْمَهُ ذَلِكَ حَتَّى يُمْسِيَ [۸] وَلَمْ يَأْتِ أَحَدٌ بِأَفْضَلَ مِمَّا جَاءَ بِهِ [۹] إِلَّا رَجُلٌ عَمِلَ أَكْثَرَ مِنْهُ» ". (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره ﷜ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړى چې دا كلمات لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ. د الله ﷻ څخه ماسوا بل معبود نشته چې يكتا دي، د هغه خوك شريك نشته. [۳] د هغه د پاره بادشاهت دى او د هغه د پاره تعريف دى او هغه په هرشي قادر دى. [۴] په ورځ كې سل خله اووائي، هغه ته د سل غلامانو د آزادولو ثواب حاصليږي. [۵] د هغه د پاره سل نيكۍ ليكل كيږي. [۶] د هغه سل ګناهونه لرې كيږي [۷] او هغه ته په هغه ورځ كې تر ماښامه پورې د شيطان څخه پناه حاصليږي [۸] او د قيامت په ورځ به هيڅوك د هغه د راوړلي عمل څخه بهتر هيڅ عمل را نه وړي [۹] علاوه د هغه سړي څخه چې هغه دا كلمات د هغه څخه زيات ويلي وي، بخاري مسلم

**حل اللغات:** ① رِقَابٍ: دا د رَقَبَةٍ جمع ده، څټ ته وائي دلته ترې غلام او مرئي مراد دي. ② مُحِيَتْ: أَيْ: أُزِيلَتْ: ختميږي، لرې كيږي. ③ حِرْزًا: أَيْ: حِفْظًا: حفاظت، پناه حاصليدل

[۱] اخرجه البخارى فى كتاب الدعوات/باب فضل التهليل (رقم-۶۴۰۳) ومسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-۲۸ - (۲۶۹۱)) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۵۳۵ واحمد فى المسند:۶۰/۵.

**تسهيلات:**

**قوله: فِي يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ.. الخ:**

**په تسبيحاتو او دعا ګانو کښې د يو خاص تعداد حيثيت او حکمت:** شارع علیه السلام په تسبيحاتو او دعاګانو کښې کوم شمير خودلي دي دا مقدار د تاثير د پاره د شرط درجه لرې د دې نه په کم کښې به مطلوب حاصل نه شي اوس که يو سړي د دې نه زيات اووائي نو مطلوب به حاصليږي که نه؟ نو علامه نووي رحمه الله وغيره ليکلي دي چه په دې کښې به هم هغه تاثيروي باقي د يو خاص عدد ذکرولې کيږي نو دا مفوض الى الله والى رسوله دي مونږ له د دې حکمت نه دی لټول پکار د توللو نه لوئي حکمت هم دغه دي چه شارع علیه السلام فرمائيلي دي

**[۲۳۰۳] د جنت خزانه حاصله کول**

۲۳۰۳-[۱۰] (۱)۞ «وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ۞ كُنَّا مَعَ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي سَفَرٍ ۞ فَجَعَلَ النَّاسُ يَجْهَرُونَ بِالتَّكْبِيرِ، ۞ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: "يَا أَيُّهَا النَّاسُ ارْبَعُوا عَلَى أَنْفُسِكُمْ، ۞ إِنَّكُمْ لَا تَدْعُونَ أَصَمَّ وَلَا غَائِبًا، ۞ إِنَّكُمْ تَدْعُونَ سَمِيعًا بَصِيرًا، وَهُوَ مَعَكُمْ، ۞ وَالَّذِي تَدْعُونَهُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ عُنُقِ رَاحِلَتِهِ"

**ترجمه** ۞ ابو موسى اشعري رضی الله عنه وايي ۞ چې (يو ځل) مونږ خلق د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره په يو سفر کې وو. ۞ چې خلقو په يوه موقع په زوره زوره تکبير ويل شروع کړل. ۞ نبی کريم صلى الله عليه وسلم (د دې اوريدو سره) وفرمايل چې اې خلقو! خپل ځانونه کنټرول کړئ [يعنى په دومره اوچت آواز سره تکبير مه وايئ] ۞ ځکه چې تاسو (د تکبير په ذريعه چا کوڼ يا غير موجود نه بولئ يا نه يادوئ. ۞ بلکه هغه يادوئ. چې اوريدونکى او ليدونکى دى. او هغه ستاسو سره دى [يعنى هغه ستاسو په حال خبردار دی. تاسو چې چيرته يئ. خواه په اوچت آواز سره يې ياد کړئ يا په قلار آواز سره دواړه برابر دي]. ۞ او څوك چې تاسو راوبلې هغه په تاسو کې هر سړي ته د هغه د سورلي ترغاړې څخه هم زيات نزدې دى.

**حل اللغات:** ① ارْبَعُوا: أي: ارْفُقُوا: نرمى اوکړئ، قابو اوساتئ. ② أَصَمَّ: کوڼ. ③ عُنُقِ: غاړه. ④ رَاحِلَتِهِ: سورلي (د ډير نزديکت نه کنايه ده)

۞ قَالَ أَبُو مُوسَى: وَأَنَا خَلْفَهُ أَقُولُ: ۞ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ فِي نَفْسِي ۞ فَقَالَ: "يَا عَبْدَ اللَّهِ بْنَ قَيْسٍ أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَنْزٍ مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ؟ ۞ فَقُلْتُ: بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ، قَالَ: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ»" (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** ۞ ابوموسى رضی الله عنه وايي چې ما (هغه وقت) په نبی کريم صلى الله عليه وسلم پسې په اوښ باندې يا پياده وم ۞ ما په خپل زړه کې دا ويل (لاحول ولاقوة الابالله) ۞ نبی کريم

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الدعوات/باب الدعاء إذا علا عقبة (رقم-۶۳۸۴) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب استحباب خفض الصوت بالذكر (رقم) ۴۴ - (۲۷۰۴)

صلى الله عليه وسلم وفرمایل چې اې عبد الله ابن قیس !دا د حضرت ابوموسی ﷺ نوم دی. آیا ونه ښایم زه تاته د جنت د خزانو څخه یوه خزانه او نه ښایم ؟ ما عرض وکړو چې هو یا رسول الله ﷺ ضرور یې راوښایه نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې هغه خزانه لَاحَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِالله ده، بخاري مسلم

**تسهیلات:**

**قوله:** يَجْهَرُونَ بِالتَّكْبِيرِ

**د تکبیر په مصداق کښې درې اقوال:** ① ددې مطلب دا دې چه په اوچت خائې باندې د ختلو په وخت کښې چه کوم تکبیر مسنون دې هغه ئې په اوچت اواز سره ونیل

② دې تکبیر نه مراد ذکر هم کیدې شی

③ دې نه مراد مطلقا تعظیم دې چه د تکبیر نه علاوه ته هم شامل دې.

**قوله:** مِنْ كُنُوزِ الْجَنَّةِ

**حیعلتین باندې د کنز داطلاق وجه:** دې ته ئې خزانه ځکه اووئیله چه دا په نفاست کښې د خزانې په پشان ده او د خلقو په حفاظت کښې د دې لوستونکې د دې کلماتو د برکت نه داسې فائده اخلی لکه د دنیاوی خزانو په شان

**د لاحول ولا قوة په معنی کښې دوه اقوال:** ① لاحول ولاقوة إلابالله د حول معنی ده. د شر دفع کولو طاقت. او د قوة معنی ده د خیر حاصلو ذریعه اوس معنی دا شو چه د ګناه نه د بچ کیدو طاقت او د نیکې کولو قوت نشته مګر د الله د طرف نه

② د حول معنی ظاهری طاقت او د قوة معنی ده باطنی قوت اوس معنی دا شوه چه بنده کښې د الله د مدد نه بغیر نه ظاهری طاقت شته او نه باطنی طاقت یعنی د الله د فضل او کرم نه بغیر بنده نه د ګناه نه بچ کیدې شی او نه نیکی کولې شی بنده د الله نه چه کله کټ شی نو هیڅ نه دې نه په ده کښې حول شته او نه قوة مګر د الله سره چه واصل شی نو بیا هر څه جوړ شی ده کښې حول هم راشی او قوة هم لهذا إلابالله کښې باء د الصاق د پاره ده چه د الله سره چه بنده واصل شی نو دې هر څه دې ګنی دې هیڅ نه دې.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۳۳] په جنت کښې ونې اولګولې**

۲۳۰۴-[۱۱] ( )① عَنْ جَابِرٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«مَنْ قَالَ سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيمِ وَبِحَمْدِهِ ③ غُرِسَتْ لَهُ نَخْلَةٌ فِي الْجَنَّةِ»" (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۳۲

**ترجمه** [۱] جابر رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړى چې سبحان الله العظيم وبحمده اووائي [۳] د هغه د پاره په جنت كې د خرماوو ونه لګول كيږي. ترمذي

**حل اللغات** ① غُرِسَتْ: كرلې كيږي، لګول كيږي

**تسهيلات:**

**قوله: غُرِسَتْ لَهُ نَخْلَةٌ فِي الْجَنَّةِ**

**د مذكوره تسبيح د كجوري سره د تشبيه وجه:** د كجورې سره مشابهت په كثرت نفع او په لذيذ او په عمده كيدو كښې دې كما في قوله: تعالى((أَلَمْ تَرَ كَيْفَ ضَرَبَ اللَّهُ مَثَلًا كَلِمَةً طَيِّبَةً))(وهي كلمة التوحيد)((كَشَجَرَةٍ طَيِّبَةٍ))(وهي النخلة)

**[۲۳۰۵] هر صبا د الله تعالى د تسبيح وئيلو اعلان**

٢٣٠٥—[١٢] (١)[١] وَعَنِ الزُّبَيْرِ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «مَا مِنْ صَبَاحٍ يُصْبِحُ الْعِبَادُ فِيهِ إِلَّا مُنَادٍ يُنَادِي: [٣] سَبِّحُوا الْمَلِكَ الْقُدُّوسَ» "(رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ).

**ترجمه** [۱] زبير رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] داسې يو سحر نه وي چې په هغه كې يوه فرښته په زوره دا آواز كوي [۳] چې پاك بادشاه د هغه د پاكي سره ياد كړي، ترمذي

**حل اللغات:** ① سَبِّحُوا: أي: نَزِّهُوا: پاكي بيانوئ، ② الْمَلِكَ: بادشاه، ③ الْقُدُّوسَ: د مبالغي صيغه ده، ډير پاك چه د هر قسم عيب نه پاك وي

**تسهيلات:**

**قوله: إِلَّا مُنَادٍ يُنَادِي: سَبِّحُوا الْمَلِكَ الْقُدُّوسَ**

**د مذكوره جملې په مقصود كښې دوه اقوال:**

① يعني روزانه د سحر په وخت كښې يوه فرښته د تاكيد د پاره اوازونه كوي چه تاسو ((سبحان الملك القدوس)) اووائي يا ((سبوح القدوس رب الملائكة والروح))اوائي

② يا د دې معنى دا ده چه روزانه سحر يوه فرښته خلق خبروى چه خلق دې دا يقين او اعتقاد اوكړى چه د دوى رب د ټولو عيوبو و نقائصو نه پاك دې

**[۲۳۰۶] بهترين ذكر او بهترين دعا**

٢٣٠٦—[١٣] (٢)[١] وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [٢] «أَفْضَلُ الذِّكْرِ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، [٣] وَأَفْضَلُ الدُّعَاءِ: الْحَمْدُ لِلَّهِ» "رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [۱] جابر رضي الله عنه راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د ټولو ښه بهتر ذكر لا اله الا الله دى [۳] او د ټولو ښه بهتره دعا الحمد لله ده، ترمذي ابن ماجه

---

[۱] اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٦٢٠

[۲] اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٤٤٣ وابن ماجة فى كتاب الأدب/باب فضل الحامدين (رقم-٣٨٠٠)

**تسهیلات:**

**قوله** لَاإِلٰهَ إِلَّااللهُ:

**لا اله الا الله ته د افضل الذکر ویلو وجه:** ته بهترین دعاځکه اوونیلې شوه چه دا د اسلام او ایمان بنیادی کلمه ده دَدې نه بغیر نه عقائد صحیح کیدې شی او نه دَاحکامو او اعمالو څه اعتبار دې دې کلمې سره دَ انسان دَ باطن ټول باطل معبودان څنګه چه راپریوځی دغه شان دا کلمه په زړه کښې کیناستو نه پس کله په ژبه باندې راځی نودَ انسان ظاهری معبودان باطله راغورزوی.

**په حدیث کښې یو اشکال:** الحمد لله بهترینه دعاګرځولې شوې ده حالانکه په دې کښې په ظاهره څه دعانشته دې؟

**داشکال دوه جوابونه:** ① شارحین لیکی چه په حمد کښې دَ الله تعالی تعریف دې اودکوم یوسخی چه کله تعریف کیږی نوهغه صرف تعریف باندې دَغوښتلونه بغیر ورکړه کوی اومال ورکوی. دغه شان الله تعالی دیر لوئی دې اودَعظمت په ټولو کمالاتو باندې متصف دې کله چه دَهغه تعریف کیږی نوهغه تعریف کونکی ته دومره ورکوی چه څومره په غوښتلو باندې هم نه شی ورکولې. په دې وجه اوفرمائیلې شو چه الحمد لله بهترین سوال دې.

② دویمه وجه داده چه الله تعالی منعم حقیقی دې دَهغه تعریف په حقیقت کښې دَهغه دَ نعمتونو شکر اداکول دی اوشکر په حقیقت کښې دَ یو نعمت په بدله کښې راځی او په نعمت باندې شکر اداکول دَ برکت سبب جوړیدو سره په نعمت کښې زیاتوالې کوی لکه ﴿لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ﴾ [سورت ابراهیم الایه: ۷. کښې چه دَزیادت وعده ده هم په دې وجه الحمد لله بهترین سوال اوګرځولې شو دَدې حدیث نه پس ورسره حدیث کښې دَدې حقیقت بیان موجود دې په کوم کښې چه شکر دَحمد جزء ګرځولې شوې ده.

**[۲۳۰۷] دالله تعالی حمدنه‌کول شکرپه اداکول دی**

۲۳۰۷-[۱۴] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو-رَضِيَ اللهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ-صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«الْحَمْدُ رَأْسُ الشُّكْرِ ③ مَا شَكَرَ اللهَ عَبْدٌ لَا يَحْمَدُهُ»".

**ترجمه** ① عبد الله ابن عمرو رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② حمد (د الله ﷻ تعریف) د شکر سر دی ③ کوم بنده چې د الله ﷻ حمد ونه که هغه د الله ﷻ (کامل) شکر اداء نه کی.

**حل اللغات:** ① رَأْسُ: سر، اصل، بنیاد.

(۱) اخرجه البیهقی فی شعب الایمان (رقم -۴۵۹۵)

**تسهيلات:**

**قوله. الْحَمْدُ رَأْسُ الشُّكْرِ**

**د حمد او شکر په مينځ کښې نسبت او فرق:** حمد صرف په ژبه کيږي او شکر په ژبه، زړه او اعضاؤ سره کولې شي د دې وجې حمد د شکر يو شاخ دې هم دا وجه ده چې خلق وائي «ما شكر الله عبد لا يحمده» چه کوم بنده د الله شکر نه ادا کوي نو هغه د الله حمد نه دې کړې

**په حمد باندې د راس الشکر د اطلاق وجه:** حمد ته ئې د شکر راس د دې وجې اوونيل چه دا د ژبې فعل دې او د الله تعالى نعمت او د هغه تعريف په ژبه سره کيږي چونکه ژبه د نورو اندامونو نائب ده د دې وجې حمد هم ګويا چې اجمالا شکر دې او تفصيلاً د شکر جزو اعظم دي

**[۲۳۰۸] په سختئ او راحت کښې د الله تعالى د حمد وئيلو فضيلت**

۲۳۰۸-[۱۵] ( )[۱] وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] "«أَوَّلُ مَنْ يُدْعَى إِلَى الْجَنَّةِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ [۳] الَّذِينَ يَحْمَدُونَ اللَّهَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ»" (رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي شُعَبِ الْإِيمَانِ).

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د قيامت په ورځ چې کوم خلق چې به مخکې جنت ته بلل کيږي [۳] هغه به هغه خلق وي. چې د خوشحالی په وخت کې هم او د سختئ په وخت کې هم د الله جل جلاله تعريف کوي. يعني په دواړو صورتونو کې راضي برضا وي، دا دواړه روايتونه بيهقي په شعب الايمان کې نقل کړی دی

**حل اللغات:** ① يَحْمَدُونَ: ثنا اوصفت بيانوي، تعريفونه کوی ② السَّرَّاءِ: خوشحالی، صحت.
③ الضَّرَّاءِ: غريبی، بيماری

**تسهيلات:**

**قوله: يَحْمَدُونَ اللَّهَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ:**

**د الله تعالى په قضا د رضا فضيلت:** يعني په دې خلقو باندې چې څنګه حالت هم راځی په هر حال کښې د الله پاک حمد کوی راضی بالقضا اوسيږی د حالاتو تبديلی دوی لره نه بدلوی چونکه داسې خلق د الله پاک نه راضی وی د دې وجې الله پاک هم دوی نه راضی وی او د الله پاک د رضا بدله جنت ده

---

[۱]) اخرجه البيهقي في شعب الايمان (رقم -۴۳۷۳)

[۲۳۰۰] د موسى عليه السلام د الله په دربار کښې د مخصوص ذکر مطالبه

۲۳۰۰-[۱۶] (۱) [۱] (وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«قَالَ مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ: يَا رَبِّ عَلِّمْنِي شَيْئًا أَذْكُرُكَ بِهِ، وَأَدْعُوكَ بِهِ. [۳] فَقَالَ: يَا مُوسَى قُلْ: لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ. [۴] فَقَالَ، يَا رَبِّ كُلُّ عِبَادِكَ يَقُولُ هٰذَا، [۵] إِنَّمَا أُرِيدُ شَيْئًا تَخُصُّنِي بِهِ، [۶] قَالَ: يَا مُوسَى لَوْ أَنَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعَ وَعَامِرَهُنَّ غَيْرِي، [۷] وَالْأَرَضِينَ السَّبْعَ وُضِعْنَ فِي كِفَّةٍ، [۸] وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ فِي كِفَّةٍ [۹] لَمَالَتْ بِهِنَّ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ»". رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه** [۱] ابوسعيد خدري ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] حضرت موسى ﷺ عرض وکړی چې اې پروردګاره! ماته يو داسې شی راوښايه چې د هغه په ذريعه زه ت يادوم. او ستا څخه دعا غواړم؟ [۳] پروردګار ورته وفرمايل چې اې موسى (ﷺ) لااله الاالله وايه. [۴] موسى ﷺ عرض وکړی چې اې زما پروردګاره! ستا ټول بندګان (يعني موحدين) دا کلمه وايي، [۵] زه خو داسې شی غواړم چې زما د پاره يې مخصوص کړې (چې په هغه کې زما هيڅوک شريک نه وي) [۶] الله ﷻ وفرمايل چې اې موسى (ﷺ)! که اووه آسمانونه او زما څخه علاوه د هغه ټول اوسيدونکي (يعني ټولې فرښتې) [۷] او اوه زمکې په يو پله کې کيخودل شي، [۸] او لااله الاالله يعنې د دې ثواب په دويم پله کې کيخودل شي [۹] نو يقيناً د دې څيزونو د تلې څخه به د لااله الاالله تله درنه وي. شرح السنة

**حل اللغات:** ① تَخُصُّنِي: ته يې ما دپاره خاص کړې (چه بل څوک پکښې راسره شريک نه وي)
② عَامِرَهُنَّ: أَيْ سَاكِنَهُنَّ: عامر نه مراد دهغې اوسيدونکي او حفاظت او انتظام کونکي دي
③ لَمَالَتْ: أَيْ لَرَجَحَتْ عَلَيْهِمْ وَغَلَبَتْهُنَّ: غالبه او درنه به شي

**تسهيلات: قوله:** قَالَ مُوسَى عَلَيْهِ السَّلَامُ: يَا رَبِّ عَلِّمْنِي شَيْئًا..الخ:

الله تعالى د حضرت موسى ﷺ په زړه کښې د الهام په توګه داواچول چه هغه دې داسې سوال اوکړی چه په جواب سره ئې ټول خلق مستفيد شي نو الله تعالى په جواب کښې د لااله الاالله عظمت او حقيقت واضح کړو چه د الله تعالى نه سوا ټول څيزونه او کائنات مکمل دانچه که د تلې په يوچاړی کښې کيخودې شي او لااله الاالله په دويم چاړی کښې کيخودې شي نودا چاړې به درونده وي

**په حديث کښې يو اشکال:** دلته په ذهن کښې دا اشکال پيدا کيږی چه حضرت موسى ﷺ دالله تعالى نه د يو خاص دعا سوال کړې وو په کوم کښې چه د هغوی اختصاص وی او هغه د ټولونه غوره وی الله تعالى په جواب کښې د لااله الاالله نښاندهی اوفرمائيله چه په حقيقت کښې د موسى ﷺ د سوال د جواب سره مطابقت نه لري ځکه چه په دې کښې څه

[۱] اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۳۰ وابن ماجة في كتاب الأدب/باب فضل لا إله إلا الله (رقم - ۳۷۹۴)

تخصيص او اختصاص نشته بلکه دا خو د دنيا ټول خلق لولي لوني خو بيشکه دي ليکن د موسى عليه السلام تخصيص چرته دي؟ او سوال خو د تخصيص وو؟

**داشکال جواب**: که په ژور نظر سره اوګورې نو د الله تعالى د خودلونه پس د حضرت موسى عليه السلام دا سوال د يو محال څيز سوال وو ځکه چه د لااله الاالله نه بل لوني څه څيزنه وو او اتفاق سره دا کلمه چا سره خاص نه ده بلکه د ټولو د پاره عام ده او حضرت موسى عليه السلام خو د ټولونه د ښکلي څيز تخصيص غوښتلو په دې وجه الله تعالى اوفرمائيل چه هم دغه کلمه لوله دې نه غوره څه څيز نشته دې باقي ما په خپل رحمت سره دا عام کړې ده لکه چه هوا عام ده اوبه عام دی نمر سپوږمئ عام دی کوم څيزچه څومره قيمتي وی د الله تعالى په نيزهغه هم دغه شان عام وی.

**[۲۳۱۰] د اور څخه د حفاظت وظيفه**

-۲۳۱۰-[۱۷] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ، وَأَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا- قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«مَنْ قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ، صَدَّقَهُ رَبُّهُ، [۳] قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا وَأَنَا أَكْبَرُ، [۴] وَإِذَا قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، [۵] يَقُولُ اللَّهُ: لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا وَحْدِي، لَا شَرِيكَ لِي، [۶] وَإِذَا قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، [۷] قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا، لِيَ الْمُلْكُ وَلِيَ الْحَمْدُ، [۸] وَإِذَا قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، [۹] قَالَ: لَا إِلَهَ إِلَّا أَنَا لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِي [۱۰] " وَكَانَ يَقُولُ: " مَنْ قَالَهَا فِي مَرَضِهِ ثُمَّ مَاتَ لَمْ تَطْعَمْهُ النَّارُ» " (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ).

**ترجمه** [۱] ابو سعيد او ابوهريره رضي الله عنهما دواړه راويان دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې دا وايي لااله الاالله والله اکبر، د الله جل جلاله څخه سوا بل معبود نشته او الله جل جلاله ډير لوی دی. نو د هغه رب هغه رښتني کوي يعني الله جل جلاله هغه په دې اقرار او اعتماد قائم لري. او دا اقوا ل قبول فرمايي [۳] او د هغه د وينا مطابق الله جل جلاله فرمايي لااله الاانا وآنا اکبر. بيشکه زما څخه ماسوا بل معبود نشته زه ډير لوی يم. [۴] هر کله چې هغه سړي دا اووائي لااله الاالله وحده لاشريك له. د الله جل جلاله څخه ماسوا بل معبود نشته چې يکتا دی. د هغه څوك شريك نشته. [۵] نو الله جل جلاله فرمايي لااله الاانا وحدی لاشريک لی. بل معبود نشته زه معبود يکتا يم زما څوک شريک نشته. [۶] څه وخت چې بنده اووائي لااله الاالله له الملك وله الحمد. د الله څخه ماسوا بل معبود نشته د هغه د پاره بادشاهت دی او د هغه د پاره تعريف دی [۷] نو الله جل جلاله فرمايي چې لااله الاانا لی الملک ولی الحمد. د الله جل جلاله څخه سوا بل معبود نشته زما د پاره بادشاهت دی او خاص زما د پاره تعريف دی. او [۸] هر کله چې هغه سړی اووائي. لااله الاالله ولاحول ولاقوة الابالله. د الله جل جلاله ماسوا بل معبود نشته. او د ګناهونو څخه بچ کيدل او په اطاعت قوت پيدا کول د هغه په مدد سره

۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۴۹۰ وابن ماجة فی کتاب الأدب/باب فضل لا إله إلا الله (رقم-۳۷۹۴)

دي. [۹] نو الله ﷻ فرمايي چې زه يكتا معبود يم د ګناه څخه بچ كيدل په طاعت قوت موندل زما په مدد كيږي [۱۰] او رسول الله ﷺ به فرمايل كوم سړى چې مذكوره بالا كلمات د الله ﷻ د جوابونو څخه علاوه په خپله بيماري كې وايي او بيا مړ شي نو د دوزخ اور به هغه نه سوزي، يعني هغه به د دوزخ د اور څخه محفوظ وي، ترمذي ابن ماجه

**حل اللغات** ① صَدَّقَهُ: تصديق ئې ګڼړى يعني ريښتيى ګوى ئې، ② لَمْ تَطْعَمْهُ: أَيْ لَمْ تَأْكُلْهُ: نه به ئې خوري (دا استعاره ده د اور رسيدلو او سوزولو نه يعني نه به ئې سوزوي).

**[۳۱] دَ تسبيح ارولو ثواب**

[۱۸] ()[۱] «وَعَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّهُ دَخَلَ مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - عَلَى امْرَأَةٍ [۲] وَبَيْنَ يَدَيْهَا نَوًى أَوْ حَصًى، تُسَبِّحُ بِهِ [۳] فَقَالَ: " أَلَا أُخْبِرُكِ بِمَا هُوَ أَيْسَرُ عَلَيْكِ مِنْ هَذَا أَوْ أَفْضَلُ؟ [۴] سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ [۵] وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ [۶] وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا بَيْنَ ذَلِكَ [۷] وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ [۸] وَ " اللهُ أَكْبَرُ مِثْلَ ذَلِكَ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ مِثْلَ ذَلِكَ [۹] وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مِثْلَ ذَلِكَ [۱۰] وَلَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ مِثْلَ ذَلِكَ» [۱۱] (رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ).

**ترجمه** [۱] سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه روايي دي چې (يوه ورځ) هغه د رسول الله ﷺ سره يوى ښځې ته ورغلى [۲] هغه وخت د هغه بي بي په مخكې د خرماوو هډوكي يا واړه كاڼړي پرتي وي او په هغه يې تسبيح ويل (يعني د هغه په ذريعه يې تسبيحات شميرل) [۳] نبي كريم صلى الله عليه وسلم (د دي ليدو سره) ورته وفرمايل چې آيا زه تاته يو داسې تسبيح ونه ښايم چې (نه يواځې) د دې تسبيح [يعني د دې ډيرو هډوكو يا كاڼړو باندې د تسبيح ويلو] په مقابله كې ستا د پاره ډير اسانه هم وي، بلكه هغه تسبيح ډير ښه دى، [۴] [او هغه تسبيح دا دى چې ته يې وايه] سُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي السَّمَاءِ وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا خَلَقَ فِي الْأَرْضِ وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا بَيْنَ ذَلِكَ وَسُبْحَانَ اللهِ عَدَدَ مَا هُوَ خَالِقٌ، الله ﷻ لره پاكي ده د هغه مخلوق د تعداد په اندازه چې په آسمان كې دى [۵] او الله ﷻ لره پاكي ده، د هغه د مخلوق د تعداد په اندازه چې په زمكه كې دى. [۶] او الله ﷻ له پاكي ده د هغه مخلوق د تعداد په اندازه چې د آسمان او زمكي په منځ كې دى. [۷] او الله ﷻ لره پاكي ده، د هغه مخلوق د تعداد په اندازه چې د دې څخه روسته يا د ازل څخه روسته تر ابد پورې پيدا كيدونكى دى. [۸] او الله اكبر هم دغه شان وايه، او الحمدلله هم دغه شان وايه. [۹] او لااله الاالله هم دغه شان وايه. [۱۰] او لاحول ولاقوة الابالله هم دغه شان وايه. [۱۱] ترمذي ابوداود، ترمذي ويلي دي چې دا حديث غريب دى

**حل اللغات:** ① نَوًى: د نَوَاةٌ جمع ده، وَهِيَ عَظْمُ التَّمْرِ: د كجورو هډوكو ته وائى ② حَصًى: واړه كاڼړى.

---

[۱]) اخرجه ابوداود فى كتاب الصلاة باب التسبيح بالحصى (رقم - ۱۵۰۰) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۶۳۹

**تسهیلات:**

**قوله:** نَوًى أَوْحَصًى:

**د مروجه تسبیو حکم او دلیل:** راوی ته په دې کښې شك شوې دې چه کوم يو نَوًى لفظ وو که حصًى وو. دا حدیث دَ نن صبا مروجه تسبیح دَ جواز دَپاره دلیل دې سره دَدې چه دَ حضورپاك په زمانه کښې داشان په تارونو کښې دَ تسبیح دانې نه وې پیللې شوې لیکن صرف داسې په استعمال کښې راوړلې شوې دی اومطلوبه تعداد حاصلولو دَپاره یوه ذریعه اختیارکړې شوې ده چه دَ گټکو او وړوکانړو په صورت کښې وو. حضورپاك په دې باندې نکیر اونه فرمائیلو بلکه دَدې نه َ آسانې طریقې نشاندهی نی کړې ده. لهذا که نن صبا دَ زمانې دَ جدت دَ وجې نه په زمکه باندې خواره شوی گټکو په ځائی په یوتارکښې اوپیللې شو اودَ مطلوبه تعدادَ حصول دَپاره دا استعمال کړې شو نو په دې کښې دَ بدعت کیدو یا ناجائز کیدو کومه یوه خبره ده بلکه داحدیث دَ تسبیح دَ ثبوت دَپاره په منزله دَ اصل موجود دې تسبیحات دَالله تعالی دَ ذکر دَپاره مذکرات دی اودا دَ شیطان دَپاره کوړا ده په احادیثوکښې دَ بعضې وظائفو دَپاره خاص شمیر ذکر دې مثلاً سل خل استغفار دې ۳۳ خل الحمدلله او سبحان الله دی.۳۴خل الله اکبر حکم دې. دا شمیر خو به آخر په څه څیز سره کولې شی هغه څیزکه دَ تسبیح دانې وی نو په حقیقت کښې داپخپله دَمامورېه په حکم کښې داخل دی. په گوتوباندې شمیرهم جائز دې مګر دَدې حساب کول گران دی

**قوله:** وَاللَّهُ أَكْبَرُ مِثْلَ ذَٰلِكَ:

**د کلام په قائل کښې دوه احتمالات:** ①-یاخودا کلام پخپله دَحضورپاك دې اوبنکاره هم دغه ده په دې کښې حضورپاك دَ سابقه جملودَ تفصیل طرف ته اختصارکولوسره اشاره فرمائیلې ده. پوره عبارت داسې دې یعنی "والله اکبرعددماخلق الخ"

② یا داکلام دَ راوی دې چاچه په حدیث کښې اختصار اوکړو ونی فرمائیل چه حضورپاك په سابقه جملو کښې څنګه فرمائیلی وو هم هغه شان نی دلته هم اوفرمائیل چه "والله اکبر عددماخلق الخ"

**[۲۲۳] دَتسبیح ،تهلیل او تحمید اوتکبیر عظیم ثواب**

۲۲۳-[۱۹] ( )[۱] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«مَنْ سَبَّحَ اللَّهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ؛ [۳] كَانَ كَمَنْ حَجَّ مِائَةَ حَجَّةٍ، [۴] وَمَنْ حَمِدَ اللَّهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ؛ [۵] كَانَ كَمَنْ حَمَلَ عَلَى مِائَةِ فَرَسٍ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، [۶] وَمَنْ هَلَّلَ اللَّهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ؛ [۷] كَانَ كَمَنْ أَعْتَقَ مِائَةَ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، [۸] وَمَنْ كَبَّرَ اللَّهَ مِائَةً بِالْغَدَاةِ وَمِائَةً بِالْعَشِيِّ؛ [۹] لَمْ يَأْتِ فِي ذَٰلِكَ

[1]) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۵۳۸

أَحَدٌ بِأَكْثَرَ مِمَّا أَتَى بِهِ [۱۰] إِلَّا مَنْ قَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ، أَوْزَادَ عَلَىٰ مَا قَالَ» ". [۱۱] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] عمرو ابن شعيب د خپل پلار بزرگوار څخه او هغه د خپل نيکه محترم څخه نقل کوي. چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړی چې سل خله د ورځې په ابتدائي حصه کې او سل خله د ورځې په آخري حصه کې سبحان الله اووائي [۳] نو هغه د ثواب په لحاظ د هغه سړي په شان دی، چې هغه سل خله نفلي حجونه کړي وي. [۴] کوم سړی چې سل خله د ورځې په ابتدائي حصه کې او سل خله د ورځې په آخري حصه کې الحمد لله اووائي [۵] نو د هغه سړي په شان دی، چې هغه سل سړي د الله ﷻ په لار کې په سلو آسانو باندې سپاره کړل او جهاد يې واستول. [۶] کوم سړی چې سل خله د ورځې په ابتدائي حصه کې او سل خله د ورځې په آخري حصه کې لا اله الا الله اووائي. [۷] هغه د هغه سړي په شان دی. چې هغه د حضرت اسمعيل عليه السلام په اولاد کې سل انسانان آزاد کړي وي. [۸] او کوم سړی چې سل خله د ورځې په ابتدائي حصه کې او سل خله د ورځې په آخري حصه کې الله اکبر ووېلي. [۹] نو د قيامت په ورځ به يو سړی د دې ثواب څخه زيات ثواب اخستو سره رانشي. کوم چې هغه راوړي وي. [۱۰] علاوه د هغه سړي څخه چې هغه د هغه په شان يعني الله اکبر په مذکوره تعداد کې ويلي وي، نو دا سړی به د ثواب د درجې په اعتبار سره د هغه برابر وي. يا هغه سړی چې هغه د دې څخه زايد ويلي وي (نو دا به هم د هغه څخه افضل وي) [۱۱] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حسن غريب دی

**حل اللغات**: ① سَبَّحَ: د الله تسبيح يعنی سُبْحَانَ الله اووائی ② الْغَدَاةِ: أَيْ: أَوَّلَ النَّهَارِ: د ورځې شروع يعنی سحر ③ الْعَشِيِّ: أَوَّلَ اللَّيْلِ: د شپې شروع يعنی ماښام ④ هَلَّلَ: تهليل يعنی لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ اووائی

**تسهيلات**:

**قوله**: مِائَةَ حَجَّةٍ:

**د سلو حجونو کولو مطلب او مفهوم**:

مطلب چه دَحج يو اصلی ثواب دې هغه به هم دغه سړی ته ملاويږی چاچه پيسې خرچ کړې وخت نی ورکړو اومحنت کولوسره پخپله لاړو يو دَحج اضافی ثواب وی هغه الله تعالی په دغه ذکرونو باندې ورکوی فلااشکال

**قوله**: وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ:

**د ولد اسماعيل قيد فائده**: دَدې تصريح ضرورت څکه پيښ شو چه په انسانانوکښې دَ عربوخلق دَ عجمو په مقابله کښې افضل دی نومطلب داشوچه دَداسې غلامانو ثواب به ملاويږی چه دَ اسماعيل عليه السلام دَ اولاد نه اعلی اوښکلي غلام وی.

**قوله** أَوْزَادَ او په معنی د واؤ دې د فصل اول حديث نمبر ۲۳۰۶ لاندې تفصيل تېر شوې دې ضرور يې اوګورئ

**[۲۳۱۳] تسبيح وئيلو سره نيمه تله ډکيدل**

۲۳۱۳-[۲۰] (۱) ۱ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو -رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ "«التَّسْبِيحُ نِصْفُ الْمِيزَانِ، ۳ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ يَمْلَؤُهُ، ۴ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ لَيْسَ لَهَا حِجَابٌ دُونَ اللهِ ۵ حَتَّى تَخْلُصَ إِلَيْهِ»". ۶ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ. وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ وَلَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه** ۱ عبد الله ابن عمرو رضی الله عنهما راوي دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ۲ سبحان الله وئيل نيم ميزان اعمال يعني د ميزان اعمال هغه پله چې د نيكيو د تللو د پاره مخصوص ده ډكوي ۳ الحمد لله وئيل پوره ميزان د اعمالو ډكوي. ۴ او د لا اله الا الله د وئونكي د پاره الله ﷻ ته په رسيدو كې هيڅ پرده حائل نه ده. ۵ دا يې سيده الله ﷻ ته رسوي. ۶ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړيدی، او وئيلي يې دي چې دا حديث غريب دی د دې اسناد قوي نه دی

**حل اللغات:** ① يَمْلَؤُهُ: ډكوي هغه يعنی ميزان ② حِجَابٌ: پرده، حائل. ③ تَخْلُصَ: أَيْ: تَصِلَ: رسوي يې

**تسهيلات:**

يعني "سبحان الله" سره نيمه تله ډكيږي او باقي نيمه په "الحمدلله" سره ډكيږي نود دواړو ملاويدو سره يوه تله مكمل كيږي پاتې شوه "لااله الاالله" نودذې خوهډو حساب نشته. معلومه شوه چه "لااله الاالله" افضل دي

**[۲۳۱٤] د كلمې طيبې په ورد سره د جنت دروازې پرانستيدل**

۲۳۱٤-[۲۱] (۲) ۱ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۲ "«مَا قَالَ عَبْدٌ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ مُخْلِصًا قَطُّ ۳ إِلَّا فُتِحَتْ لَهُ أَبْوَابُ السَّمَاءِ ۴ حَتَّى يُفْضِيَ إِلَى الْعَرْشِ مَا اجْتَنَبَ الْكَبَائِرَ»". ۵ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** ۱ ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل ۲ هر كله چې يو بنده د زړه د اخلاصه يعني بغير د رياء لااله الاالله وايي. ۳ نو د دې كلمې د پاره د آسمان دروازې كولاؤ شي ۴ تر دې چې هغه عرش ته رسي، يعنی زر قبليږي، په شرط د دې چې دا كلمه وئونكي د كبيره ګناهونو څخه ځان ساتي. ۵ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړی دی او وئيلي يې دي چې دا حديث غريب دی

**حل اللغات:** ① مُخْلِصًا: أَيْ: مِنْ غَيْرِ رِيَاءٍ: د زړه په اخلاص يعنی بغير د رياء (او بغير د منافقت نه)، ② يُفْضِيَ: أَيْ: يَصِلَ: رسيږي

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۵۸٤
(۲) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۶۶۰

**تسهیلات:**

**قوله** مَا اجْتَنَبَ الْكَبَائِرَ:

**د کبائرو څخه اجتناب داصل ثواب دپاره عدم شرطیت:** داجمله داصل ثواب د صحیح کیدو اونه کیدو دپاره شرط نه دي بلکه د زر قبلیدو دپاره شرط دي که چرې ګناه نشته دي نو داکلمه د یر زر عرش پورې رسی او که چرې ګناه موجود وی نو زر نه خی

**[۲۳۱۵] د جنت په خالي زمکه کښې تسبیحات ونې دي**

۲۳۱۵ - [۲۲] ()[۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«لَقِيتُ إِبْرَاهِيمَ لَيْلَةَ أُسْرِيَ بِي، [۳] فَقَالَ: يَا مُحَمَّدُ، أَقْرِءْ أُمَّتَكَ مِنِّي السَّلَامَ، [۴] وَأَخْبِرْهُمْ أَنَّ الْجَنَّةَ طَيِّبَةُ التُّرْبَةِ، [۵] عَذْبَةُ الْمَاءِ، [۶] وَأَنَّهَا قِيعَانٌ، [۷] وَأَنَّ غِرَاسَهَا سُبْحَانَ اللَّهِ، وَالْحَمْدُ لِلَّهِ، وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَاللَّهُ أَكْبَرُ» ". [۸] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ، غَرِيبٌ إِسْنَادًا.

**ترجمه** [۱] ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] په کومه شپه چې ماته د معراج سعادت نصیب شو، هغه شپه په اووم آسمان کې د حضرت ابراهیم علیه السلام سره زما ملاقات وشو (چې د بیت المعمور سره یې تکیه لګولی ناست وو) [۳] نوابراهیم علیه السلام ماته وفرمایل چې اې محمد صلی الله علیه وسلم! خپل امت ته زما سلام وایه [۴] او هغوئ ته وښایه چې د جنت خاوره پاکیزه ده، او هغه د خاورې په ځای مشك او زعفران ده. [۵] د هغه اوبه خوږې دي. [۶] د هغه میدان اوار او د ونو څخه خالي دی، [۷] او د هغه ونې دي، سبحان الله والحمدلله ولا اله الا الله والله اکبر. [۸] امام ترمذي رحمه الله دا روایت نقل کړی دی او ویلي یې دي چې دا روایت: اسناد په اعتبار سره غریب دی

**حـل اللغـات:** ① أُسْرِيَ: چه بوتللې شوم یعنی د معراج سعادت رانصیب شو ② طَيِّبَةٌ: پاکه، خوشبویه. ③ التُّرْبَة: خاوره (دجنت خاوره په دمشک اود زعفران وی) ④ عَذْبَةُ الْمَاءِ: خوږې اوبه (یعنی دیرې خوندناکې به وی) ⑤ قِيعَانٌ: د قَاعٌ جمع ده، وَهِيَ الْأَرْضُ الْمُسْتَوِيَةُ: هوارې شاړې زمکې ته وائی چه اونې بوتی پکښې نه وی ⑥ غِرَاسُهَا: د غَرْس جمع ده، وَهُوَمَا يُغْرَسُ: هغه څیز ته وائی کوم چه اوکرلې شی (یعنی تخم چه د کرلو نه پس راوخیژی)

**تسهیلات: قوله:** وَأَنَّهَا قِيعَانٌ:

**په حدیث کښې یو اشکال:** دا د قاع جمع ده د صحراخالی میدان ته وائی سوال دادې چه په جنت کښې خو باغونه شته لیکن د دې تو له زمکه خونه خالی ده اونه په ټولو کښې باغونه دی بلکه عمارتونه وغیره څیزونه هم دی حالانکه د دې حدیث نه معلومیږی چه ټول خالی میدان دې؟

---

() اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۵۲۹

**د اشکال جواب:** ددې جواب دادې چه کومه زمکه د باغونودیاره خاص کړې شوې ده د هغې باره کښې نې اوفرمائیل چه هغه خالي ده په هغې کښې ونې اولګونی د ټول جنت باره کښې نه دی فرمائیلي

**[۳۴] په ګوتو باندې تسبیحات ویل افضل دی**

―[۲۳] (¹) [۱] وَعَنْ يُسَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - وَكَانَتْ مِنَ الْمُهَاجِرَاتِ، قَالَتْ: قَالَ لَنَا رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «عَلَيْكُنَّ بِالتَّسْبِيحِ وَالتَّهْلِيلِ، وَالتَّقْدِيسِ، [۳] وَاعْقِدْنَ بِالْأَنَامِلِ، [۴] فَإِنَّهُنَّ مَسْئُولَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ، [۵] وَلَا تَغْفُلْنَ فَتَنْسَيْنَ الرَّحْمَةَ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] بي بي یسیره رضي الله عنها چې مهاجرو بیبیانو څخه وه وایې چې رسول الله ﷺ مونږ ښځو ته وفرمایل [۲] چې سبحان الله، لااله الاالله، سبحان الملك القدوس، ویل د ځان د پاره ضروري وګرځوي، [۳] او دا مذکوره تسبیحات په خپلو ګوتو شمیري. [۴] ځکه چې د دې ګوتو څخه به پوښتنه کېږي، او هغوئ ته به ګویائي ورکول شي. [۵] او یاد لرئ. د ذکر څخه غفلت مه کوئ، [یعنی ذکر مه پرېږدئ]، ګیني د رحمت څخه به تاسو هیر کړل شي. یعنی که ذکر پرېږدي نو د بې شمیره فائدو څخه به محرومې شي، ترمذي ابوداؤد

**حل اللغات:** ① التَّهْلِيلِ: یعنی لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ ② التَّقْدِيسِ: یعنی سُبْحَانَ الْمَلِكِ الْقُدُّوسِ. ③ اعْقِدْنَ: أَيْ: عُدَّنَ: شمیرل کوی (ددغه تسبیحاتو). ④ مَسْئُولَاتٌ: أَيْ: يُسْأَلْنَ: تپوس به ترې کولې شی (دقیامت په ورځ چه څه موکړی دی). ⑤ مُسْتَنْطَقَاتٌ: أَيْ: مُتَكَلِّمَاتٌ: دخبرو کولو طاقت به ورکولې شی نوچه خپل صاحب به ګواهي ورکوی.

**تسهیلات:**

**قوله:** فَإِنَّهُنَّ مَسْئُولَاتٌ مُسْتَنْطَقَاتٌ:

**د قیامت په ورځ دګوتو ګواهي ورکول:** د قیامت په ورځ به الله تعالی ددې ګوتو نه تپوس کوی چه تاسو په دنیا کښې څه کول ګوتو ته به د جواب ورکولو د پاره الله تعالی ګویائي (د خبرو طاقت) ورکړی. ګوتې به د خپل مالک د هغه نیک او بد اعمالو ګواهي ورکوی چه کوم د ګوتو په ذریعه شوی وو کما فی قوله تعالی ((اَلْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلٰٓى اَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَآ اَيْدِيْهِمْ وَتَشْهَدُ اَرْجُلُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ)) د دې وجې نبي علیه السلام اوفرمائیل چه تسبیحات په ګوتو شمارئ ددې د پاره چه د قیامت په ورځ ستاسو ددې نیک عمل ګواهي ورکړی.

---

(¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب التسبیح بالحصی (رقم - ۱۵۰۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۶۵۳

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲۳۱۷] بهترینه وظیفه**

۲۳۱۷-[۲۴] (¹) [۱] عَنْ سَعْدِ بْنِ أَبِي وَقَّاصٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: [۲] «جَاءَ أَعْرَابِيٌّ إِلَى رَسُولِ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فَقَالَ: [۳] عَلِّمْنِي كَلَامًا أَقُولُهُ، [۴] قَالَ: "قُلْ: لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، [۵] اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا، [۶] وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا، [۷] وَسُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ، [۸] لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ". [۹] فَقَالَ: فَهَؤُلَاءِ لِرَبِّي، فَمَا لِي؟ [۱۰] فَقَالَ: "قُلْ: اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي، وَارْحَمْنِي، [۱۱] وَاهْدِنِي، وَارْزُقْنِي وَعَافِنِي» ". شَكَّ الرَّاوِي فِي "عَافِنِي". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] سعد ابن ابي وقاص ﷺ راوي دی [۲] چې (يوه ورځ) يو صحرايي د رسول الله ﷺ په خدمت اقدس کې حاضر شو، [۳] چې حضرت ماته څه داسې ذکر راوښايه، چې هغه زه وايم (يعني هغه زه خپل ورد جوړ کړم) [۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې دا کلمات اوولیلو لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ اللهُ أَكْبَرُ كَبِيرًا وَالْحَمْدُ لِلَّهِ كَثِيرًا وَسُبْحَانَ اللهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ د الله ﷻ ماسوا بل معبود نشته . هغه يکتا (ايکې يو) دی د هغه څوك شريك نشته ، [۵] الله ﷻ ډير لوی دی په لوی سره [۶] او د الله ﷻ د پاره ډير تعريف دی. [۷] او پاکي ده د الله ﷻ د پاره چې د ټول عالم پالونکی دی [۸] ګناه څخه د ځان ساتنې طاقت او د عبادت کولو قوت د الله ﷻ په مدد سره دی چې غالب د حکمت خاوند دی. [۹] هغه صحرايي عرض وکړی چې دا کلمات خو زما د پروردګار د ذکر د پاره دی. زما د پاره هغه کوم کلمات دي (چې د هغه په ذريعه زه د ځان د پاره دعا غواړم؟) [۱۰] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې داسې دعا غواړه. اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي وَارْحَمْنِي وَاهْدِنِي وَارْزُقْنِي وَعَافِنِي، اې زما پروردګاره! ما وبخښې (په ټولو حرکاتو او سکناتو کې د طاعت د توفيق په ذريعه) په ما رحم وکړي [۱۱] (د بهتر اعمالو او احوالو طرف ته) ماته هدايت وکړي. د حلال مال څخه ماته روزي راکړي. او ماته عافيت عطا کړي. د راوي په لفظ عافني باره کې شك دی. چې آيا په روايت کې دا لفظ هم دی يا نه. مسلم

**تسهيلات: قوله:** وَعَافِنِي:

**په معصيت باندې مصيبت ته ترجيح ورکول:** د عافيت معنی ده د معصيت نه امن يعنی ما داسې مصيبت کښې مبتلا نه کړې چه د هغې انجام زما د پاره بد وی د دې څخه معلومه شوه چه د معصيت نه بهتر مصيبت دې لکه حضرت يوسف عليه السلام د معصيت په مقابله کښې مصيبت له ترجيح ورکړه او دعا ئې اوغوښته «قَالَ رَبِّ السِّجْنُ أَحَبُّ إِلَيَّ مِمَّا يَدْعُونَنِي إِلَيْهِ»

---

¹) اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب فضل التهليل والتسبيح والدعاء (رقم-۳۳ - (۲۶۹۶)

**[۲۳۱۸] په ذکر سره د ګناهونو رژيدل**

۲۳۱۸-[۲۵] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - مَرَّ عَلَى شَجَرَةٍ يَابِسَةِ الْوَرَقِ، [۲] فَضَرَبَهَا بِعَصَاهُ، فَتَنَاثَرَ الْوَرَقُ، [۳] فَقَالَ: " إِنَّ الْحَمْدَ لِلّٰهِ، وَسُبْحَانَ اللّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ، وَاللّٰهُ أَكْبَرُ، تُسَاقِطُ ذُنُوبَ الْعَبْدِ [۴] كَمَا تَسَاقَطَ وَرَقُ هٰذِهِ الشَّجَرَةِ» ". [۵] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] انس رضي الله عنه راوي دی چې (يو وخت) رسول الله ﷺ د وچو پاڼو والا د يوې ونې سره تيريدلی، [۲] نو په خپله عصاء مبارکه باندې يې د هغه ونې څانګې ووهلې چې د هغه په وجه څنې پاڼې غورځيدل شروع شو، [۳] بيا نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې الحمد لله، سبحان الله، لااله الاالله، او الله اکبر، ويل د بنده ګناهونه داسې رژوي [۴] څرنګه چې د دې ونې څخه پاڼې رژيږي، [۵] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** ① يَابِسَةِ: اوچه، ② الْوَرَقُ: پاڼې، ③ فَتَنَاثَرَ: أَيْ: تَسَاقَطَ: راپريوتلې، راغورځيدلې

**[۲۳۱۹] د آفاتونه د بچ کيدو وظيفه**

۲۳۱۹-[۲۶] (۲) [۱] وَعَنْ مَكْحُولٍ، «عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا - قَالَ: قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " أَكْثِرْ مِنْ قَوْلِ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ [۳] فَإِنَّهَا مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ» ". [۴] قَالَ مَكْحُولٌ: فَمَنْ قَالَ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، [۵] وَلَا مَنْجَى مِنَ اللّٰهِ إِلَّا إِلَيْهِ، [۶] كَشَفَ اللّٰهُ عَنْهُ سَبْعِينَ بَابًا مِنَ الضُّرِّ، أَدْنَاهَا الْفَقْرُ. [۷] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هٰذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِمُتَّصِلٍ [۸] وَمَكْحُولٌ لَمْ يَسْمَعْ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ.

**ترجمه** [۱] مکحول رحمه الله د ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ ماته وفرمايل [۲] چې لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، په کثرت سره وايه [۳] ځکه چې دا د جنت د خزانو څخه يوه خزانه ده، [۴] مکحول رحمه الله وايي چې کوم سړی دا اوواني لَاحَوْلَ وَلَاقُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ وَلَامَنْجَا مِنَ اللّٰهِ إِلَّا إِلَيْهِ، يعنی د ضرر او د نقصان د دفع کولو قوت او د نفع حاصلولو طاقت د الله جل جلاله حفاظت د هغه د قدرت د طرف څخه دی، [۵] او د الله جل جلاله د عذاب څخه نجات د هغه (د رضا او د رحمت په توجه) منحصر دی، [۶] نو الله جل جلاله د هغه څخه د ضرر او نقصان اويا قسمونه لرې کوي، چې په هغه کې ادنی قسم فقر (محتاجي) ده، [۷] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړی دی او ويلي يې دی چې د دې روايت سند متصل نه دی، [۸] ځکه چې د ابوهريره رضي الله عنه څخه د مکحول رحمه الله سماعت ثابت نه دی

**حل اللغات:** ① كَنْزِ الْجَنَّةِ: أَيْ: مِنْ ذَخَائِرِهَا: د جنت خزانه يعنی ذخيره، ② لَامَنْجَى: أَيْ: لَا مَهْرَبَ وَلَا مَخْلَصَ: نه څه تيښته شته او نه خلاصون، ③ كَشَفَ: أَيْ: دَفَعَ: لرې به کړي

---

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۵۹۹

(۲) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۶۷۱ واحمد فی المسند: ۴/۳۳۳

**تسهیلات:**

**قوله: كَشَفَ اللَّهُ عَنْهُ سَبْعِينَ بَابًا مِنَ الضُّرِّ:**

**د حوقلة فضائل:** دا د جنت خزانه ده د دې مطلب دا دې چه لاحول ولا قوة الا بالله د جنت يوه ذخيره ده د دې ويونکی ته به په هغه ورځ نفع اورسوی چه په هغه ورځ به نه مال پکار راځی او نه اولاد او رشته دار کما في قوله تعالى: ((يَوْمَ لَا يَنْفَعُ مَالٌ وَّلَا بَنُوْنَ)) ددې وجې چه کوم کس دا کلمه وائی نو هغه په خپل زړه کښې دا يقين ساتی چه الأمر بيد الله چه هر کار د الله په مرضئ سره کيږی هيڅ نفع او نقصان د الله د مرضئ نه بغير نه کيږی او د يو څيز حاصليدل او نه حاصليدل دا هم د الله په مرضئ سره دی په دې وجه هغه په هر راتلونکی مصيبت باندې صبر کوی او خپل ټول امور رب السموات والأرض ته حواله کوی او هغه په تقدير او قضاء باندې راضی اوسی او دغه شان د الله بنده جوړ شی داسې کس زبدة الأولياء و الأصفياء کښې شميرلې کيږی

**[۲۳۲۰] لاحول ولا قوة د ۹۹ بيمارو شفاء**

۲۳۲۰–[۲۷] (۱) ۞ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۞ "«لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ دَوَاءٌ مِنْ تِسْعَةٍ وَتِسْعِينَ دَاءً ۞ أَيْسَرُهَا الْهَمُّ»".

**ترجمه** ۞ ابوهريره رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ لاحول ولا قوة الا بالله، د يو کم سل ۹۹ (دنياوي او اخروي) بيمار يو دوايي ده ۞ چې په هغه کې ادنى بيماري (دنياوي او اخروي) غم دى

**حل اللغات:** ① دَوَاءٌ: دوائی، علاج، ② الْهَمُّ: غم (دنياوی لکه معاش يا اُخروی)

**تسهیلات:**

**قوله: دَاءً أَيْسَرُهَا الْهَمُّ:**

**په حوقلة سره د څلورو څيزونو حفاظت:** دواء نه مراد دنياوی و اخروی دواړه دی الْهَمُّ که دا د دين غم وی او که د دنيا او د معاش غم وی او که د معاد بهر حال غم د زړه د تنګئ او د قوت د کمزورئ او د اعضاؤ د کمزورئ سبب جوړيږی او د غم نه حفاظت هم نعمت دې کما في قوله تعالى: في يونس عليه السلام ((فَاسْتَجَبْنَا لَهُ وَنَجَّيْنَاهُ مِنَ الْغَمِّ وَكَذَٰلِكَ نُنْجِي الْمُؤْمِنِينَ)) (الانبياء ۸۸)

**[۲۳۲۱] د عرش لاندې څخه نازليدونکې ذکر**

۲۳۲۱–[۲۸] (۲) ۞ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ۞ "«أَلَا أَدُلُّكَ عَلَى كَلِمَةٍ مِنْ تَحْتِ

---

[۱] اخرجه ابن ابی الدنيا ذکره فی الکنز العمال رقم ۱۹۵۶

[۲] اخرجه الحاکم فی المستدرک

الْعَرْشِ مِنْ كَنْزِ الْجَنَّةِ: [۳] لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، [۴] يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى: أَسْلَمَ عَبْدِي، وَاسْتَسْلَمَ» رَوَاهُمَا الْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضی الله عنه وایي چي رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] آیا تاته پوه دا سي کلمه ونه ښایم، چي د عرش د لاندي څخه د جنت د خزانو څخه نازله شویده؟ [۳] او هغه دا ده! لاحول ولاقوة الا بالله. [۴] هر کله چي یو بنده دا کلمه وایي نو الله تعالی ﷻ فرمایي چي زما بنده تابعدار او ډیر فرمانبردار شو. دا دواړه حدیثونه بیهقي دعوات کبیر کي نقل کړي دي

**حل اللغات:** ① أَسْلَمَ: أي: انقاد: تسلیم شو یعنی غاړه ئي کیخوده او تابعدار شو ② اسْتَسْلَمَ: أي: انقاد انقيادا کاملا: یعنی کامل طریقې سره ئي تابعداری اختیار کړه او خپل ټول کارونه ئي الله ته اوسپارل

**[۲۳۲۲] د سبحان الله عجیبه فضیلت**

۲۳۲۲- [۲۹] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا -: أَنَّهُ قَالَ: [۲] سُبْحَانَ اللّٰهِ هِيَ صَلَاةُ الْخَلَائِقِ، [۳] وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ كَلِمَةُ الشُّكْرِ، [۴] وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ كَلِمَةُ الْإِخْلَاصِ، [۵] وَاللّٰهُ أَكْبَرُ تَمْلَأُ مَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ، [۶] وَإِذَا قَالَ الْعَبْدُ: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ، [۷] قَالَ اللّٰهُ تَعَالَى: أَسْلَمَ وَاسْتَسْلَمَ. رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه** [۱] ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چي فرمایي [۲] سبحان الله، د مخلوقاتو مونځ دی. [۳] الحمد لله د شکر کلمه ده. [۴] لااله الاالله د اخلاص کلمه ده. یعنی کلمه د توحید ده چي هغه د خپل ویونکي د پاره د اور څخه د نجات سبب دی [۵] او د الله اکبر ثواب د زمکي او آسمان منځ ډکوي. [۶] او هر کله چي یو بنده په حضور قلب سره لاحول ولاقوة الا بالله وایي [۷] نو الله ﷻ فرمایي چي دا بنده فرمانبردار شو او ډیر فرمانبردار شو. رزین

**حل اللغات:** ① صَلَاةُ: أي: عبادتها وانقيادها: مونځ خو ددي نه مراد تابعدار کېدل دي ② الْخَلَائِق: د خليقة جمع ده دمخلوقاتو په معنی کښي دي

**تسهیلات:**

**قوله:** صَلَاةُ الْخَلَائِقِ:

**صلوة الخلائق څخه مراد:** یعنی د سبحان الله چه کومه کلمه ده دا د ټولو مخلوقاتو عبادت دي اویه مخلوقات کښي ټول کائنات داخل دي که انسان وی اوکه حیوان یا جنات وی که فرښتي وی یا جمادات وی که نباتات وی مطلب داشوچه داټول په ټول د الله تعالی په تسبیح کښي مشغول وی نو تسبیح د مخلوقاتو عبادت دي قرآن کریم کښي دي.

﴿وَإِنْ مِّنْ شَيْءٍ إِلَّا يُسَبِّحُ بِحَمْدِهِ وَلٰكِنْ لَّا تَفْقَهُونَ تَسْبِيحَهُمْ﴾ [سورت بنی اسرائیل الایه: ۴۴].

---

(۱) رواه رزین

# [ ۲ ] بَابُ الإِسْتِغْفَارِ وَالتَّوْبَةِ

د استغفار او توبې بيان

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعون حديثاً مشتملة على عشر مسائل:**

① استغفار النبي ﷺ ۱، ۲، ۳، ۲۶، ۲۹، ۳۴، ۳۷.
② الأمر بالتوبة والاستغفار: ۳، ۴.
③ السعي للتوبة: ۵.
④ حب الله تعالى الاستغفار والتوبة: ۶، ۱۰، ۱۴، ۱۵، ۲۵، ۲۷، ۲۸، ۳۵، ۳۶.
⑤ غاية قبول التوبة: ۷، ۹، ۲۰، ۲۲، ۲۳، ۳۸.
⑥ قبول الله التوبة من العباد: ۷، ۸، ۱۱، ۱۴، ۱۵، ۱۷، ۱۸، ۲۱، ۲۵، ۲۷، ۳۹، ۴۰.
⑦ الكلمات المنقولة للاستغفار: ۱۳، ۲۹، ۳۰.
⑧ الزجر على من يقنط الناس من مغفرة الله تعالى: ۱۲، ۲۴.
⑨ فوائد الاستغفار سوى المغفرة: ۱۳، ۱۶، ۱۹، ۳۳.
⑩ فضيلة الاستغفار للغير: ۳۱، ۳۲.

**په ترجمة الباب کښې د توبې او استغفار تحقيق:** استغفار د باب استفعال مصدر دې د دې معنی طلب المغفرة دې مغفرت مصدر ميمی دې د دې لغوی معنی پټول دی ليکن د مغفرت اصطلاحی تعريف "محو الذنب وازالة اثره" يعنی ګناه معاف کول او محو کول او د هغې اثر ختمول دی

**د توبې لغوی او اصطلاحی تعريف:** توبه د تاب يتوب مصدر دې د دې لغوی معنی رجوع کول او واپس کيدل دی د توبې اصطلاحی تعريف علامه مير سيد شريف الجرجانی په التعريفات کښې داسې کړې دې "التوبة فی الشرع الرجوع عن الافعال المذمومة الی الممدوحة"

**د توبې د قبليدو څلور شرائط:** د توبې د قبليدو درې شرطونه دی ① رومبې شرط دا چه په ژبه سره توبه اوکړی او د ګناه نه شاته شی

② دويم شرط دا دې چه په خپلو کړو باندې په زړه کښې شرمندګی اوښه خپيمانتياوی

③ دريم شرط دا چه د آئنده د پاره دغه ګناه ته د نيزدې نه ورتلو کلکه اراده وی داخو وه د حقوق الله سره د توبه خبره

④ که چرې حقوق العباد کښې د کوتاهنی نه توبه کول غواړی نو د هغې د پاره څلورم شرط دا دې چه د چا حق ئې راګير کړې دې هغه دې ادا کړی نو بيا به ئې توبه قبليږی که غصب کړې شوې مال نه واپس کوی نو په دغه صورت کښې توبه قبوله نه ده

**په لفظ توبه او استغفار کښې يوه ضابطه او کليه:** دلته په ترجمة الباب او عنوان کښې د

استغفار نه پس د توبه لفظ زيات كړې شوې دې ددې متعلق دومره عرض دې چه توبه او استغفار د فقير او مسكين په شان دى كه چرې جدا جدا ذكروى نو په دې كښې ترادف او اجتماع ده د دواړو معنى يوه ده او كه يوبل سره ذكر شى نو په دې كښې افتراق دې لكه چه ونيلى شوى دى "الفقير والمسكين اذا اجتمعا افترقا واذا افترقا اجتمعا" اوس دلته دا الفاظ په يوځائى ذكر دى نو په اصولى توګه په دې كښې فرق او تفريق ضرورى دې يوفرق خو دا دې چه د استغفار تعلق هغه ګناه سره دې كوم چه وړاندې زمانه كښې شوې وى يعنى استغفار زمانه د وړاندې زمانې سره خاص ده يعنى وقاية شر ما مضى او توبه د مستقبل د ګناه نه د منع كيدو نوم دې نو لكه چه استغفار ګناه پريخودل شو او توبه اطاعت اختيارول شو هم دغه وجه ده چه په قرآن او حديث كښې استغفار وړاندې ذكر كړې شوې دې او بيا توبه لكه "استغفروا ربكم ثم توبوا اليه"

**د توبې او استغفار شرعى حكم:** د كفر او شرك د ارتكاب نه پس توبه او استغفار د جنت د داخليدو د پاره شرط دې او كله چه د يو انسان نه معصيت او ګناه اوشى نو په هغه باندې توبه او استغفار واجب كيږى ګنى د جهنم د داخليدو خطره ده دې نه علاوه يو استغفار دا سې هم دې چه د يو نيك كار د كولو نه پس نى سړې كوى دې د پاره چه كه څه قصور پاتې شوې وى نو چه هغه لرې شى په داسې موقع باندې استغفار كول مستحب دى

د انبياء كرامو عليهم السلام استغفار به هم په داسې موقعو باندې كيدو ضرورى نه ده چه استغفار په يو ګناه باندې متفرع وى ممكن ده چه ګناه بالكل نه وى او د استغفار حكم وركړې شوې وى نو استغفار په ګناه باندې متفرع منل او بيا د هغې د پاره ګناه لټول بې عقلى هم ده او ناپوهتيا هم ده

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۳۳۳] د رسول الله ﷺ توبه او استغفار**

۲۳۳۳–[۱] (۱) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ [۳] فِي الْيَوْمِ أَكْثَرَ مِنْ سَبْعِينَ مَرَّةً". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] ابو هريره ﷺ راوي دى چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په الله ﷻ مې دې قسم وي چې زه الله تعالى ﷻ نه استغفار كوم او توبه كوم [۳] په ورځ كې د اويا خله څخه زيات. بخاري

---

[۱] اخرجه البخاري في كتاب الدعوات باب استغفار النبي صلى الله عليه وسلم في اليوم والليلة (رقم-۶۳۰۷) وابن ماجة في كتاب الأدب باب الاستغفار (رقم-۳۸۱۶) وأحمد في المسند: ۳۴۱/۲

**تسهيلات: قوله:** وَاللّٰهِ إِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ. الخ:

**د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د توبې او استغفار كولو توجيهات:** دَ حضور اكرم ﷺ توبه او استغفار دَ څه ګناه دَ وجې نه نه وه انبياء كرام خودَ كبائر نه مخكښې دَ نبوت نه او روستو دَ نبوت نه معصوم وي

① دلته "استغفار من الطاعة" دَ قبيل نه دي چه په عبادت كښې كيدې شي دَ اعلى په ځائې غير اعلى صورت پيدا شوې وي نو ځكه "حسنات الابرار سيئات المقربين" دَ قاعدې لاندې به ئې استغفار كولو

② يا دَ امت دَ تعليم دَپاره به ئې كولو كومه هستى چه معصوم او مغفور وي هغه دومره محنت كوي نو چه كوم په ګناهونو كښې ككړ خلق دي هغوى ته دَدې نه دَزيات محنت ضرورت دې دَ اوياء ځل ذكر كول كيدې شي چه دكثرت نه كنايه وي صرف دَ اوياؤ تحديد مقصود نه وي

[۲۳۳۳] دَزړه خيرې لرې كولو دَپاره استغفار كول پكار دي

۲۳۳۳-[۲] (¹) ① وَعَنِ الْأَغَرِّ الْمُزَنِيِّ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِي، ③ وَإِنِّي لَأَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه:** ① اغر مزني رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② دا خبره ده چې زما په زړه پرده اچول كېږي ③ او زه په ورځ كې سل ځله الله تعالى ﷻ ته استغفار كوم. مسلم

**حل اللغات:** ① لَيُغَانُ: أَيْ يَسْتُرُ وَيُغَطِّي: پرده پرې اچولې شي يعنى پټولې شي په پرده كښې

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت الاغر بن يسار المزني:** د دوى نوم الاغر د پلار نوم ئې يسار وو د مزني يا جهني قبيلې سره ئې تعلق ساتلو بعضو وئيلي دي چه دا دواړه هم يوه قبيله ده خو د محققينو په نيز دا جدا جدا قبيلې دي د دوى نه په ابوداود او ترمذى كښې هم روايات منقول دي خو عالمه اسلام رحمه الله فرمائي چه په صحاح ستؤ كښې د دوى نه روايت منقول نه دې (۳)

**وفات:** په ۹۳ هجرى كښې د سلو كانو نه د زياتو كالو په عمر كښې وفات شوې وو د وفات نه وړاندې ئې خپل شاګرد ثابت بناني رحمه الله ته فرمائيلي وو چه زما د ژبې نه لاندې د نبى كريم ﷺ ويښته مبارک كيږده هغوى د حكم تعميل اوكړو په دغه وخت كښې ئې روح اووتلو قطن بن كلام رحمه الله ئې د جنازې مونځ اوكړو د خپل كور سره نزدې په ،،لف،، نوم ځائې كښې دفن شو

¹) اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب استحباب الاستغفار والاستكثار منه (رقم-٤١ - ٢٧٠٢) واحمد في المسند ٤١١/٥

تسهيلات:

**قوله: إِنَّهُ لَيُغَانُ عَلَى قَلْبِي:**

غان يغين نه يغان دَ مجهول صيغه ده غين او غيم نرنى اوريخ ته هم وئيلى شى او معمولى تيارې ته هم وئيلى شى او پردې ته هم وئيلى شى ددې په شرح كښې ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى "اى يطبق ويغشى اويستر ويغطى" په اردوكښې ددې ترجمه "دهكنا" سره اوكړې شى نو ډير مناسب به وى

**ه ليغان على قلبى په معنى كښې ډوړې اقوال:** په دې جمله كښې دَ رسول الله ﷺ دَ قلب اطهرخبره راغلې ده په دې وجه دَ ادب په حواله سره په دې حديث باندې دَ پوهيدلو په اعتبارسره ډير مشكل جوړشوې دې اوپه دې جمله كښې دَ شارحينو مختلف اقوال هم دى

① بعض شارحينوفرمائيلى دى چه داحديث دَ متشابهات دَ قسم نه دې لهذا مايعنى بشان الرسول وئيلوسره خاموش پاتې كيدل بهتردى

② امام الصوفياء امام ابوالحسن شاذلى رحمه الله هم دَدغه متشابه متعلق فرمائى "هوغين الانوار لاغين الاغيار" ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى "هوغين الانوارلاغين الاغيار" دادَ صوفياء داسې اطلاقات دى دَ كوم دَ پوهې دَپاره چه دَ يولوئى صوفى ضرورت دې ددوارو عبارتونو مطلب دادې چه داهم دَ خپلو سورې دې دَ پردونه دې

③ ملاعلى قارى رحمه الله ليكلى دى چه امام لغت شيخ اصمعى رحمه الله نه ددې غين باره كښې سوال اوكړې شو نوهغوى اوفرمائيل چه دادَ چا دَ زړه دَ خبرې باره كښې پوښتنه كونى؟ سائل اووئيل دَ قلب نبى ﷺ متعلق تپوس كوو هغوى جواب وركړو "لوكان عن قلب غيره لافسره" دا هم دغه طرف ته اشاره ده چه دادَ متشابهات نه دى ملاعلى قارى رحمه الله فرمائى "لايقاس الملوك بالحدادين" قاضى عياض رحمه الله او ابن ملك رحمه الله هم توجيهات كړى دى كوم چه ملاعلى قارى رحمه الله ذكركړى دى ليكن دَ عوامو اوخواصو دَ پوهې په اعتبارسره چه كومه خبره ليكلې شوې ده هغه علامه طيبى رحمه الله ليكلې ده فرمائى چه دَحضورپاك قلبى تعلق به هروخت دَ خپل رب سره وو ليكن كله كله دَ مباح څيزونو مثلاً خوراك څښاك اودَ نفس خواهش نكاح، ماكولات اومشروبات اودَ منكوحاتو اومرغوباتو طرف ته به توجو په ارادى يا غيرارادى توگه كيدله هم دغه څيزونوبه دَ حضورپاك دَ قلب منور دَپاره حجاب جوړيدل او هم دغه څيزونه به دَ حضورپاك او دَ رب تعالى په مينځ كښې يوقسم حائل جوړيدل په كوم چه به حضورپاك استغفار فرمائيل دې دَپاره چه دَ زړه دا دهند لرې شى او زړه صفاشى دا څيزونه سره ددې چه گناه نه ده ليكن دَ حضورپاك دَ اوچت شان په نسبت سره دادَ تنزل درجه وه كومه چه دَ گناه په شان گنړلې شوه اوددې دَپاره استغفاراوكړې شو

د علامه طيبي رحمه الله د دې تحقيق نه حديث په خپل ظاهري مفهوم باقي پاتې شو او په پوهه کښې هم راغله دا هم هغه قسم دې د کوم باره کښې چه صوفيه، د قبض او بسط د کيفيت سوره رکوي نو دا قبض به په بسط کښې بدلولو د پاره استغفار کيدلو د ملاعلي قاري رحمه الله جمله زما ډيره خوښه ده "لايقاس الملوك بالحدادين" يعنې چه نسبت خاک را با عالم پاک بعض شارحينو ليکلي دي چه دا غين خلاف اولي امور په ارتکاب سره کيدلو د اعلي او ادنی فرق وو د افضل او غير افضل خبره وه کومه چه د حسنات الابرار سيئات المقربين د اصول لاندې نه او خودلې شوه او د استغفار اهتمام او کړې شو د طيبي رحمه الله د کلام خلاصه هم دغه ده

**[٢٣٢٥] د نبي عليه السلام روزانه سل ځله استغفار کول**

٢٣٢٥—[٣] (١) وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ " «يَا أَيُّهَا النَّاسُ تُوبُوا إِلَى اللهِ، ٣ فَإِنِّي أَتُوبُ إِلَيْهِ فِي الْيَوْمِ مِائَةَ مَرَّةٍ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ١ اغر مزني رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ اې خلقو الله تعالی جل جلاله ته توبه وکاږئ. ٣ زه په ورځ کې سل ځله د الله تعالی جل جلاله په مخکې توبه کوم، [نو تاسو ته بطريق اولی پکار دی چې په هر ساعت کې زر ځله توبه کاږئ]، مسلم

**تسهيلات:**

**قوله.** تُوبُوا إِلَى اللهِ

**د ترقۍ په حصول کښې الله تعالی ته احتياج:** د حديث نه معلومه شوه چه هر مومن خپل حالت او مقام کښې د کمال ترقی د پاره د رجوع الی الله ته محتاج وی او هر کس په خپل حق عبديت کښې کوتاهي کونکی وی کما فی قوله تعالی: ((كَلَّا لَمَّا يَقْضِ مَا أَمَرَهُ))

**[٢٣٢٦] يو جامع حديث**

٢٣٢٦—[٤] (١) ١ وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيمَا يَرْوِي عَنِ اللهِ - تَبَارَكَ وَتَعَالَى - ٢ أَنَّهُ قَالَ: " «يَا عِبَادِي إِنِّي حَرَّمْتُ الظُّلْمَ عَلَى نَفْسِي، ٣ وَجَعَلْتُهُ بَيْنَكُمْ مُحَرَّمًا، فَلَا تَظَالَمُوا. ٤ يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ هَدَيْتُهُ ; ٥ فَاسْتَهْدُونِي أَهْدِكُمْ. ٦ يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ جَائِعٌ إِلَّا مَنْ أَطْعَمْتُهُ ; ٧ فَاسْتَطْعِمُونِي أُطْعِمْكُمْ.

**ترجمه** ١ ابوذر رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ د هغه حديثونو په سلسله کې چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د الله تبارك وتعالی څخه روايت کول ٢ او فرمايل يې چې (يو حديث قدسي دا هم دی چه) الله تعالی جل جلاله فرمايي چې اې زما بنده ګانو! ما په خپل ځان

---

١) اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب استحباب الاستغفار والاستكثار منه (رقم-٤٢ - (٢٧٠٢)

٢) اخرجه مسلم في - كتاب البر والصلة والآداب /باب تحريم الظلم (رقم) ٥٥ - (٢٥٧٧)

ضه حرام کړی دی (یعني زه د ظلم څخه پاك یم او ظلم زما په حق کې ناشونی دی، څرنګه چې ستاسو په حق کې)، [۲] څکه ما ستاسو په منځ کې هم ظلم حرام ګرځولی دی! نو تاسو په خپلو کې په یو بل باندې ظلم مه کوی، [۴] اې زما بنده ګانو تاسو ټول ګمراه یې، علاوه د هغه سړي څخه چې هغه ته زه هدایت وکړم، [۵] نو تاسو ټول زما څخه هدایت غواړی. زه به تاسو ته هدایت کوم، [۶] اې زما بنده ګانو تاسو ټول اوږي یې (یعني د طعام محتاج یې) علاوه د هغه سړي څخه، په چا چې زه وخوړم، او هغه ته د رزق وسعت او فراخي ورکړم (او مستغني یې جوړکړم) نو تاسو زما څخه طعام (رزق وروزی) غواړی. زه به یې په تاسو خوړم.

**حل اللغات:** ① ضَالٌّ: ګمراه (د دین دنیا دواړو د سعادتونو نه ناخبره) ② فَاسْتَهْدُونِي: أي: اطْلُبُوا هِدَايَةً مِنِّي: تاسو ټول زمانه هدایت غواړئ ③ جَائِعٌ: أيْ: مُحْتَاجٌ إِلَى الطَّعَامِ: اوږې چه د خوراک محتاجه وی ④ فَاسْتَطْعِمُونِي: أي: اطْلُبُوا الطَّعَامَ مِنْ جَنَابِي: تاسو زمانه خوراک غواړئ

> [۱] يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ عَارٍ إِلَّا مَنْ كَسَوْتُهُ ، [۲] فَاسْتَكْسُونِي أَكْسُكُمْ . [۳] يَا عِبَادِي إِنَّكُمْ تُخْطِئُونَ بِاللَّيْلِ وَالنَّهَارِ ، [۴] وَأَنَا أَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا ، [۵] فَاسْتَغْفِرُونِي أَغْفِرْ لَكُمْ . [۶] يَا عِبَادِي إِنَّكُمْ لَنْ تَبْلُغُوا ضَرِّي فَتَضُرُّونِي ، [۷] وَلَنْ تَبْلُغُوا نَفْعِي فَتَنْفَعُونِي . [۸] يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ ، وَآخِرَكُمْ ، وَإِنْسَكُمْ ، وَجِنَّكُمْ [۹] كَانُوا عَلَى أَتْقَى قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ مِنْكُمْ ، [۱۰] مَا زَادَ ذَلِكَ فِي مُلْكِي شَيْئًا

**ترجمه** [۱] اې زما بنده ګانو! تاسو ټول بربند (یعني د ستر پوښي د پاره د جامو محتاج یې) علاوه د هغه سړي څخه چاته چې زه د اچولو د پاره ورکړم، [۲] نو تاسو ټول زما څخه لباس غواړی. زه به تاسو ته لباس درکوم. [۳] اې زما بنده ګانو تاسو اکثره شپه او ورځ خطاوي کوی [۴] او زه تاسو ته خطاوي بخښم، [۵] نو تاسو زما څخه بخښش (بخښنه) غواړی، زه به درته بخښش (بخښنه) کوم. [۶] اې زما بنده ګانو! تاسو هیڅ کله ماته ضرر نه شی رسولی. چې ماته نقصان ورسوی [۷] او هیڅ کله ماته نفع نشې رسولی. چې ماته فائده ورسوی (یعني په ګناه کولو سره بارګاه صمدیت ته څه نقصان نشته او د طاعت کولو څخه څه فائده نشته . بلکه د دواړو نقصان او فائده یواځې تاسو ته رسیږي، مخې ته د دې تفصیل فرمایې چه) [۸] اې زما بنده ګانو که تاسو مخکې او وروستني انسانان او جنات (یعني یو ځای کیدو سره هم تاسو څخه د یو) [۹] پرهیزګار زړه په شان جوړ شی، [۱۰] نو دې سره زما په مملکت کې هیڅ زیاتوالی نه کیږي (یعني که تاسو ټول دومره پرهیزګار او نیک جوړ شی، څومره چې یو سړی پرهیزګار او نیك جوړیدی شي، مثلاً تاسو ټول د حضرت محمد ﷺ په شان پرهیزګار جوړشی چې د زمکې په مخ یو سړی هم داسې باقي پاتې نشي، چې د هغه په زړونبهر د فسق او فجور او ګناه او معصیت لږ څه اثر هم وي، نو په سره زما په سلطنت او مملکت کې ادنې شان زیاتوالی هم نه کیږي)

**حل اللغات** ⑤عَارٍ أَيْ: مُحْتَاجٌ إِلَى سَتْرِ عَوْرَتِهِ: بربنډ چه د بدن پټولو دپاره کپړې ته محتاج وي ⑥ فَاسْتَكْسُونِي أَيْ: اطْلُبُوا مِنِّي الْكُسْوَةَ: زمانه جامې اوغواړئ ⑦ضَرِّي: زما نقصان، ضرر، ⑧نَفْعِي: زما نفع، فائده،

①يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ، وَإِنْسَكُمْ، وَجِنَّكُمْ، ②كَانُوا عَلَى أَفْجَرِ قَلْبِ رَجُلٍ وَاحِدٍ مِنْكُمْ ③مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِنْ مُلْكِي شَيْئًا. ④يَا عِبَادِي لَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ، وَإِنْسَكُمْ، وَجِنَّكُمْ قَامُوا فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ، ⑤فَسَأَلُونِي فَأَعْطَيْتُ كُلَّ إِنْسَانٍ مَسْأَلَتَهُ ;⑥مَا نَقَصَ ذَلِكَ مِمَّا عِنْدِي ⑦إِلَّا كَمَا يَنْقُصُ الْمِخْيَطُ إِذَا أُدْخِلَ الْبَحْرَ. ⑧يَا عِبَادِي إِنَّمَا هِيَ أَعْمَالُكُمْ أُحْصِيهَا عَلَيْكُمْ، ⑨ثُمَّ أُوَفِّيكُمْ إِيَّاهَا. ⑩فَمَنْ وَجَدَ خَيْرًا فَلْيَحْمَدِ اللَّهَ. ⑪وَمَنْ وَجَدَ غَيْرَ ذَلِكَ فَلَا يَلُومَنَّ إِلَّا نَفْسَهُ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ① اې زما بنده ګانو! که ستاسو مخکني او وروستني انسانان او جنات (غرض ټول) ② يو خاى كيدو سره د يو بدكار زړه په شان جوړ شي (يعني تاسو ټول يو خاى كيدو سره د شيطان په شان جوړ شي)③ نو په دې سره زما د مملکت يو ادنى شي ته هم نقصان نشي رسيدى.④ اې زما بنده ګانو! که ستاسو مخکې او وروستني انسانان او جنات (غرض ټول يو خاى كيدو سره) په يو خاى ودريږي.⑤ او زما څخه بيا وغواړي، او زه هر يوه ته د هغه د غوښتلو مطابق (په يوه وخت او يو خاى کې) ورکړم.⑥ نو زما دا ورکول به د هغه څيز څخه چې ما سره دى، دومره کموى،⑦ څومره چې يوه ستن په سمندر کې لويدو سره (د هغه اوبه کموي)⑧ اې زما بنده ګانو پوهه شي زه ستاسو اعمال ياد لرم،(او هغه ستاسو د پاره ليکم) .⑨ زه به تاسو ته د هغه پوره پوره بدله درکوم.⑩ نو کوم سړى چې خير تر لاسه کړى (يعني هغه ته د الله تعالى ﷻ نيک توفيق حاصل شي او د خير عمل وکړي) نو هغه ته پکار دى چې هغه د الله تعالى ﷻ تعريف وکړي.⑪ او کوم سړى چې د خير څخه علاوه تر لاسه کې (يعني د هغه څخه څه ګناه وشي) نو هغه دې خپل نفس ملامت کړي (ځکه چې د هغه څخه ګناه سرزد كيدل د نفس د تقاضى څخه وشو) مسلم

**حل اللغات**: ⑨أَفْجَرِ: صيغه د اسم تفضيل ده ډير لوئې فاجر، ⑩الْمِخْيَطُ: أَيْ: الْإِبْرَةُ: ستن کوم سره چه جامه ګنډلې شي ⑪أُحْصِيهَا: أَيْ: أَحْفَظُهَا وَأَكْتُبُهَا: ليکم او محفوظ کوم، ⑫أُوَفِّيكُمْ: أَيْ: أُعْطِيكُمْ جَزَاءَ أَعْمَالِكُمْ وَافِيًا تَامًّا: يعنى تاسو ته ستاسو د عملونو پوره پوره بدله درکوم

**تسهيلات: قوله: كَمَا يَنْقُصُ الْمِخْيَطُ**

**دالله په خزانو کښې کمې نه راتلل**: د دې تشبيه په باره کښې علامه طيبى فرمائى چه ستنه سمندر ته پريوځى او د سمندر اوبه کمې کړى نو دا غير محسوس څيز دې او په عقل اوشعور کښې نه راځى ګويا چه دا كالعدم ده د وجې نې دې سره مشابهت ورکړو ګنى د الله په خزانه کښې د ادنى نه ادنى درجه کمى هم نه راځى ځکه چه د الله خزانې غير محدود او اغستونکى محدود دى د غير محدود سره د محدود څه نسبت كيدې شى

**[۲۳۲۷] ذاخلاص توبه رحمت راكاږي**

۲۳۲۷-[ ۵ ] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «كَانَ فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ رَجُلٌ قَتَلَ تِسْعَةً وَتِسْعِينَ إِنْسَانًا، [۳] ثُمَّ خَرَجَ يَسْأَلُ، فَأَتَى رَاهِبًا، فَسَأَلَهُ [۴] فَقَالَ: أَلَهُ تَوْبَةٌ؟ قَالَ: لَا ; [۵] فَقَتَلَهُ، وَجَعَلَ يَسْأَلُ، فَقَالَ لَهُ رَجُلٌ: [۶] ائْتِ قَرْيَةَ كَذَا وَكَذَا، [۷] فَأَدْرَكَهُ الْمَوْتُ فَنَاءَ بِصَدْرِهِ نَحْوَهَا،

**ترجمه:** [۱] ابوسعيد خدري ﷺ راوي دی فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په بني اسرائيلو (د موسیٰ ﷺ په قوم کي) يو سړی وو، چې هغه يو کم سل ۹۹ سړي قتل کړي وو. [۳] بيا دخلقو څخه د پوښتني کولو د پاره ووتی (د پاره د دې چې که زه توبه وکاږم. نو قبوله به شي که نه) په دې سلسله کې هغه يو عابد او زاهد ته راغلو د هغه څخه يې پوښتنه وکړه [۴] چې آيا د الله ﷻ په دربار کې د لوی ګناه کونکي د پاره توبه شته ؟ (يعني آيا د هغه توبه قبليدی شي که نا؟) هغه عابد او زاهد ورته اوويل چې نا. [۵] نو هغه سړي (د دې اوريدو سره) هغه عابد او زاهد هم قتل کی، بيا د نورو خلقو څخه پوښتني کولو سره ګرځيدلی، [۶] يو سړي ورته اوويل چې ته فلاني کلی ته لاړشه هغه داسې او داسې دی (يعني د هغه کلی او علاقې نوم يې واخيستی او د هغه تعريف کولو سره يې ورته اوويل چې هغه ډيره ښه کلی دی، هلته يو عالم وسړي چې تاته به ستا د توبې د قبليدو فتوی درکړي. نو هغه سړی د هغه کلي طرف ته روان شو، او لا نيمې لارې ته رسيدلی وو. چې اچانك مرګ راګير کی (هغه چې د مرګ علامات محسوس کړل) [۷] نو خپله سينه يې د هغه کلي طرف ته ورمخکې کړه (يعني کوم وخت چې هغه لره مرګ راغلو نو هغه پرېوتی او په ځکيدلو يې خپله سينه د هغې آبادی طرف ته ورمخکې کړه هغه د نيمې لارې څخه زياته لاړ وهلی وه).

**حل اللغات:** ① رَاهِبًا: أَيْ: عَابِدًا زَاهِدًا: راهب هغه عبادت ګذار او پرهيزګار ته وائي چه دخلقو نه جدا يو خاني کښې په عبادت کښې مشغوله وی (د بني اسرائيلو عبادت ګذار ته به راهب وئيلې شو، ② فَنَاءَ: أَيْ: نَهَضَ وَمَالَ: ورمخکښې شو، مائل شو ③ بِصَدْرِهِ: صدر سينې ته وائي

[۱] فَاخْتَصَمَتْ فِيهِ مَلَائِكَةُ الرَّحْمَةِ وَمَلَائِكَةُ الْعَذَابِ، [۲] فَأَوْحَى اللهُ إِلَى هَذِهِ أَنْ تَقَرَّبِي، [۳] وَإِلَى هَذِهِ أَنْ تَبَاعَدِي، [۴] فَقَالَ: قِيسُوا مَا بَيْنَهُمَا [۵] فَوُجِدَ إِلَى هَذِهِ أَقْرَبُ بِشِبْرٍ فَغُفِرَ لَهُ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] بيا د هغه روح قبض کولو په وخت کې د رحمت فرشتې او د عذاب فرشتې سره په جګړه شوې، [۲] الله تعالیٰ ﷻ هغه کلی ته (چې د هغه طرف ته هغه توبه کښونکی روان

[1]) اخرجه البخاري في كتاب أحاديث الأنبياء/باب حديث الغار (رقم-۳۴۷۰) ومسلم في كتاب التوبة/باب قبول توبة القاتل وإن كثر قتله (رقم-۴۶ - (۲۷۶۶)

وو حکم اوکړو چې هغه مړي ته نزدي راشي [۳] او هغه کلی ته د کوم ځخه چې هغه قتل کولو نه پس راروان وو، حکم ورکړو چې هغه د مړي ځخه لرې شي. [۴] نو الله تعالی ﷻ هغه فرشتو ته وفرمایل چې تاسو د دواړو کلو په مینځ کې پیمانش (کچ، وکړئ) که مړی هغه کلی ته نزدې وي چیرته چې هغه د توبې د پاره روان وو، نو هغه دي د رحمت فرشتو ته حواله شي او که هغه کلی ته نزدې وي د کوم ځخه چې هغه د قتل کولو نه پس را روان وو د عذاب فرشتو ته یې حواله کړئ! [۵] نو فرشتو چې کچ (پیمانش) اوکړو، نو هغه د توبې د پاره چې د کوم کلي طرف ته روان وو، هغه ته یوه لویشت نزدې وو، نو الله ﷻ هغه وبخښلو (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ⑨ فَاخْتَصَمَتْ: جګړه او اختلاف اوکړو (فرشتو) ⑤ تَبَاعَدِي: لرې شه. ⑥ قِيسُوا: أي قَدِّرُوا: اندازه اولګوئ، ناپ کړئ. ⑦ شِبْرٍ: لویشت.

**تسهیلات:**

**قوله:** أَلَهُ تَوْبَةٌ؟:

**د توبې ترغیب:** دا اوږد حدیث دَتوبه ترغیب ورکوی دَ ناحق قتل تعلیم نه ورکوی راهب دغه سړی قتل کړو ځکه چه راهب هغه بالکل ناامیده کړې وو په راهب باندې چونکه یره غالب شوه او دهشت کښې پریوتلو چه دَ ۹۹ کسانو قاتل څنګه معاف کیدې شی حالانکه که دَ دغه مقتولینو وارثان هغه معاف کړی نو هغه سړې معاف کیږی بهرحال دَ سلو شمیر پوره شو اودا سړې بیاهم دَ توبه دَپاره سرګردان او پریشان منډې وهلې چه ناڅاپی مرګ راغلو اودې مړشو دَ رحمت او دَ عذاب دَ فرښتو په مینځ کښې جګړه جوړه شوه چه څوك به دَ ده روح په قبضه کښې اخلی.

**قوله: فَنَاءَ بِصَدْرِهِ:** یعنی چه داسړې کله دَ مر کیدودَپاره په زمکه راپریوتلو نودَ سینې په طرف لږشان وړاندې طرف ته راښکلې شو دادَې سړی دَ اخلاص دلیل دې دَ فرښتو جګړه الله تعالی ختمه کړه اودا سړې ئې اوبخښلو

**په حدیث کښې یو اشکال:** دلته یو مشهورسوال دې هغه دا چه دَدې سړی په ذمه کوم ګناهونه وو دَهغې تعلق حقوق الله سره نه وو بلکه حقوق العباد سره دَهغې تعلق وو نودا سړې څنګه معاف شو وارثانوخو معاف کړې نه وو؟

**د اشکال جواب:** علامه طیبی دا سوال اوچت کړې دې اوهم هغوی دَدې دا جواب ورکړې دې چه الله تعالی کله دَ دې بنده نه راضی شو اودَ هغه توبه ئې قبوله کړه نو اوس به دَ غه مقتول او دَده وارثان هم الله تعالی راضی کوی بهرحال داحدیث دَ توبې ترغیب ورکوی دَ قتل نه دَ سابقه امتونو نه دَچا حزئی واقع ده زمونږ دَپاره ضابطه نه ده

[۲۳۲۸] د ګناهګارانو وجود ضروري دی

۲۳۲۸ -[۶] ()[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ سَلَّمَ - "[۲] «وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَوْ لَمْ تُذْنِبُوا لَذَهَبَ اللّٰهُ بِكُمْ،[۳] وَلَجَاءَ بِقَوْمٍ يُذْنِبُونَ، [۴] فَيَسْتَغْفِرُونَ اللّٰهَ فَيَغْفِرُ لَهُمْ» ". رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] قسم دي په هغه ذات چې د هغه په قبضهٔ قدرت کې زما ساه ده، که تاسو خلق ګناه نه کوئ، نو الله تعالى جل جلاله به تاسو (خلي )ختم کړي[۳] او ستاسو په ځاې به داسې خلق پيدا کړي چې ګناه به کوي [۴] او د الله جل جلاله څخه به بخښش او مغفرت غواړي، او بيا به الله تعالى جل جلاله هغه وبخښي مسلم

[۲۳۲۹] الله تعالى د بنده د توبې په انتظار کښې

۲۳۲۹ -[۷] ()[۱] وَعَنْ أَبِي مُوسَى - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «إِنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ يَدَهُ بِاللَّيْلِ لِيَتُوبَ مُسِيءُ النَّهَارِ،[۳] وَيَبْسُطُ يَدَهُ بِالنَّهَارِ لِيَتُوبَ مُسِيءُ اللَّيْلِ،[۴] حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا». رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] ابوموسى رضي الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى جل جلاله د شپې خپل لاس غوړوي چې په ورځ کې ګناه کونکي توبه وکاړي.[۳] او په ورځ کې خپل لاس غوړوي چې په شپه کې ګناه کونکي توبه وکاړي،[۴] تر دې چې نمر د مغرب د طرف څخه راوخيژي (مسلم)

**تسهيلات:**

قوله: يَبْسُطُ يَدَهُ بِاللَّيْلِ:

**د بسط په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① بسط عبارت دې د طلب نه څکه چه د خلقو عادت دې چه دوی د چا نه څه غواړی نو اغستلو د پاره لاسونه اوږدوی نو الله تعالى چه د شپې لاس اوږدوی نو مطلب دا چه ګناه ګار د توبې طرف ته رابلی

② د بعضې عالمانو په نيزدلاس خورولو نه مراد د عفو مهربانۍ رحمت او مغفرت وسعت دې د الله پاک مهربانی ډيره وسيع ده ګناهګارانو باندې هر وخت مهربانی کولو ته تيار دې خوبالخصوص په شپه کښې بيا د الله تعالى رحم او کرم ډيرزيات وی

**قوله:** حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا: د دې مطلب دا دې چه کله نمر د مشرق په ځاې د مغرب نه راوخيژی نو دغه وخت به د توبې دروازه بنده شی لقوله: تعالى يوم يأتي بعض آيات ربك لاينفع نفسا إيمانها ابن الملک فرمائی چه ددې حديث معنى او مفهوم دا دې چه قرب

---

() اخرجه مسلم فی کتاب التوبة /باب سقوط الذنوب بالاستغفار توبة(رقم-۱۱ - (۲۷۴۹) واحمد فی المسند ۳۰۹/۲

() اخرجه مسلم فی کتاب التوبة /باب سقوط الذنوب بالاستغفار توبة(رقم-۱۱ - (۲۷۴۹) واحمد فی المسند ۳۹۵/٤

قبمت کښې چه کله طلوع شمس د مغرب نه اوشی نو د هغې نه پس به توبه نه قبليږی خاص کر د هغه خلقو چه کوم دغه نخښې په وخت کښې موجود وی آو چه کوم خلق د دې نه پس پیدا شی نو د هغوی نیک عمل به هم قابل قبول وی، د هغوی توبه به هم قبليږی ځکه چه هغوی د دغه نښې مشاهده نه ده کړې (مرقات ج۵ ص ۱۳۰)

**[۲۲۳۰] دګناه په اقرار سره د ګناه معاف کيدل**

۲۳۳۰-[۸] ( ) ① وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -: ② "«إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا اعْتَرَفَ ثُمَّ تَابَ ③ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ام المؤمنين (د مؤمنانو مور) بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې بنده د خپلې ګناه په ندامت او شرمندګۍ سره اعتراف کوي او بيا توبه وکاږي. ③ نو الله ﷻ د هغه توبه قبلوي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① اعْتَرَفَ: أَيْ: أَقَرَّ: اقرار او اعتراف اوکړی (دخپلو ګناهونو) ② تَابَ: توبه اوباسی. رجوع اوکړی الله ته، ③ تَابَ اللّٰهُ: أَيْ: قَبِلَ تَوْبَتَهُ: يعنى الله تعالى دهغه توبه قبلوی

**تسهيلات: قوله:** تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ

**د بنده توبه قبلول:** چه کله بنده د ګناه اعتراف اوکړی او خالصه توبه اوباسی نو الله تعالى مهرباني اوکړی د ده توبه قبلوی کما فی قوله تعالى: ((وَهُوَ الَّذِي يَقْبَلُ التَّوْبَةَ عَنْ عِبَادِهِ وَيَعْفُوا عَنِ السَّيِّئَاتِ)) (الشورى ۲۵)

**[۲۲۳۱] دتوبې حد**

۲۳۳۱-[۹] ( ) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«مَنْ تَابَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا ③ تَابَ اللّٰهُ عَلَيْهِ»". رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړی چې د مغرب د طرف څخه د نمر ختو څخه مخکې توبه وکاږي ③ نو الله تعالى ﷻ د هغه توبه قبلوي (مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله.** مَنْ تَابَ قَبْلَ أَنْ تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا.. الخ:

**توبه تر کوم وخته پورې قبليږی؟:** سړې چه کله دَ عالم اخرت مشاهده اونه کړی دی نه وړاندې هروخت دَ توبه ګنجائش شته اوکه دَ زنکدن په حالت کښې دَ آخرت څه نظاره اووینی یا

---

( ) اخرجه البخاری فی كتاب المغازی باب حديث (رقم-٤١٤١) ومسلم فی باب فی حديث الإفك وقبول توبة القاذف (رقم-٥٦- (٢٧٧٠)

( ) اخرجه مسلم فی كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار باب استحباب الاستغفار والاستكثار منه (رقم-٤٣- (٢٧٠٣) و احمد فی المسند ٥٠٦/٢

فرښته اوويني نو د داسې سړي توبه به نه قبليږي هم دا حالت به راتلونکي حديث کښې مانرغره په الفاظ سره بيان کړې شوي دي يعني کوم وخت چه د غيب پرده اوچته شي او هرڅه ښکاره شي بيا توبه قبوله نه ده د مغرب نه دنمر راختلو سره به هم د توبې د قبليدو دروازه بنديږي

**[٢٢٢٣] الله تعالى په توبه کولو سره ډير خوشحاليږي**

٢٢٢٣-[١٠] (١) ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ٢ «لَلَّهُ أَشَدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ حِينَ يَتُوبُ إِلَيْهِ مِنْ أَحَدِكُمْ، ٣ كَانَتْ رَاحِلَتُهُ بِأَرْضِ فَلَاةٍ، فَانْفَلَتَتْ مِنْهُ، ٤ وَعَلَيْهَا طَعَامُهُ وَشَرَابُهُ، ٥ فَأَيِسَ مِنْهَا، فَأَتَى شَجَرَةً، ٦ فَاضْطَجَعَ فِي ظِلِّهَا، قَدْ أَيِسَ مِنْ رَاحِلَتِهِ، ٧ فَبَيْنَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ هُوَ بِهَا قَائِمَةً عِنْدَهُ، ٨ فَأَخَذَ بِخِطَامِهَا، ثُمَّ قَالَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ: ٩ اللَّهُمَّ أَنْتَ عَبْدِي وَأَنَا رَبُّكَ ؛ ١٠ أَخْطَأَ مِنْ شِدَّةِ الْفَرَحِ» . رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ١ انس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ٢ الله تعالى جل جلاله د هغه سړي څخه چې د هغه په مخکې توبه وکاږي، دومره زيات خو شحاليږي څومره چې په تاسو کې هغه سړی هم نه خوشحاليږي، ٣ چې د هغه سورلی په ځنګل [بيابان] کې وي. او بيا هغه ورکه شي ٤ او په هغه سورلی باندې د هغه طعام (روټی وغيره) هم وي او اوبه هم وي، ٥ او هغه د هغې د تلاش کولو څخه پس) نا اميده شوی وي او يوي ونې ته راشي، ٦ د خپلې سورلی څخه د نا اميدی په حالت کې انتهايي غمجن او پريشانه پريوزي، ٧ بيا په دې حالت کې نا څاپه هغه خپله سورلی د خان سره ولاړه ويني، ٨ نو د هغه سوارلی مهار نيولو سره په انتهايي خوشحالئ کې (د جذبات څخه مغلوب کيدو سره) دا اووائي ٩ چې اې الله جل جلاله ته زما بنده يې او زه ستا رب يم، ١٠ د زياتې خوشحالی څخه د هغه د ژبې څخه دا غلط الفاظ ووځي (مسلم)

**حل اللغات:** ① فَلَاةٍ: أَيْ: مَفَازَةٌ: ځنګل، بيابان. ② فَانْفَلَتَتْ: أَيْ: نَفَرَتْ: اوتختی، اورکه شی. ③ فَأَيِسَ: نا اميده شی. ④ فَاضْطَجَعَ: پريوځي، څملي. ⑤ بِخِطَامِهَا: أَيْ: زِمَامِهَا: خطام واګو ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله: لَلَّهُ أَشَدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ**

**د بنده په توبه دالله تعالى خوشحاليدل:** دا حديث په شدت فرح باندې دلالت کوي چه څنګه بنده په داسې حالت کښې ډير خوشحاليږي نو هم دغه شان ګناه ګار بنده چه کله د الله تعالى مخې ته توبه و استغفار اوکړي نو الله تعالى ددې نه زيات خوشحاليږي او د هغه ګناهونه معاف کوي

[١] اخرجه مسلم في كتاب التوبة /باب في الحض على التوبة والفرح بها(رقم-٧ - (٢٧٤٧)

په غلطۍ سره كفريه كلمه وئيلو سره عدم كفر: د دې حديث نه معلومه شوه چه په غلطۍ سره د كفر كلمه وئيلو سره نه بنده كافر كيږي او نه د هغه په نكاح اثر پريوځي ليكن د اسې بنده نه چه كله د خپلې غلطۍ اطلاع اوشي نو فورا دې توبه و استغفار اوكړي

**[۲۳۳۳] الله تعالى بار بار توبه قبلوي**

۲۳۳۳-[۱۱] ( ) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«إِنَّ عَبْدًا أَذْنَبَ ذَنْبًا [۳] فَقَالَ: رَبِّ أَذْنَبْتُ فَاغْفِرْهُ، [۴] فَقَالَ رَبُّهُ: أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَيَأْخُذُ بِهِ؟ [۵] غَفَرْتُ لِعَبْدِي. [۶] ثُمَّ مَكَثَ مَا شَاءَ اللَّهُ، [۷] ثُمَّ أَذْنَبَ ذَنْبًا [۸] فَقَالَ رَبِّ أَذْنَبْتُ ذَنْبًا فَاغْفِرْهُ:

ترجمه [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د دې امت څخه يا د تيرو امتونو څخه يو بنده گناه وكړه، [۳] بيا هغه اوويل چې اې زما پروردگاره! ما گناه كړې ده. ته زما گناه وبخښې، [۴] الله تعالى جل جلاله (فرشتو ته) وفرمايل چې آيا زما دا بنده پوهيږي چې د هغه يو پروردگار شته (چې څوك غواړي او كله يې غواړي) د هغه گناه بخښي او (څوك چې غواړي او كله چې غواړي) د هغه په گناه مواخذه كوي [۵] (نو پوهه شئ) چې ما خپل بنده وبخښو. [۶] هغه بنده تر هغه مودې پورې چې الله جل جلاله وغوښتل د گناه څخه منع وو. [۷] د هغې څخه روسته هغه بيا گناه وكړه، [۸] او عرض يې وكړو چې اې زما پروردگاره! ما گناه كړېده. ته زما دا گناه وبخښې

حل اللغات: ① أَذْنَبَ ذَنْبًا: يوه گناه ئې اوكړه.

[۱] فَقَالَ رَبُّهُ: أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَيَأْخُذُ بِهِ؟ [۲] غَفَرْتُ لِعَبْدِي. [۳] ثُمَّ مَكَثَ مَا شَاءَ اللَّهُ، ثُمَّ أَذْنَبَ ذَنْبًا، [۴] قَالَ: رَبِّ أَذْنَبْتُ ذَنْبًا آخَرَ فَاغْفِرْهُ لِي. [۵] فَقَالَ: أَعَلِمَ عَبْدِي أَنَّ لَهُ رَبًّا يَغْفِرُ الذَّنْبَ وَيَأْخُذُ بِهِ؟ [۶] غَفَرْتُ لِعَبْدِي فَلْيَفْعَلْ مَا شَاءَ»". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

ترجمه [۱] الله تعالى جل جلاله فرشتو ته فرمايې چې آيا زما دا بنده په دې پوهيږي چې د هغه يو پروردگار دې چې گناه بخښي، او په هغې مواخذه كوي؟ [۲] ما دا بنده وبخښو. [۳] هغه بنده تر هغه پورې چې الله جل جلاله وغوښتل د گنا څخه منع وو، د هغې څخه روسته هغه بيا گناه وكړه. [۴] او عرض يې وكړو چې اې زما پروردگاره! ما گناه كړېده، ته زما گناه وبخښې [۵] الله تعالى جل جلاله فرشتو ته فرمايې چې آيا زما بنده په دې پوهيږي چې د هغه يو پروردگار دې چې گناه بخښي، او په هغې مواخذه كوي؟ [۶] ما دا بنده وبخښو. نو تر څو پورې چې هغه استغفار كوي. څه چې غواړي كوي دې (بخاري مسلم)

حل اللغات: ② فَلْيَفْعَلْ: أي فَلْيَعْمَلْ: نو كوي دې. ③ مَاشَاءَ: چه څه ئې خوښه وي.

[1] ) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد /باب قول الله تعالى: «يريدون أن يبدلوا كلام الله» [الفتح: ١٥](رقم-٧٥٠٧) ومسلم في كتاب التوبة /باب قبول التوبة من الذنوب وإن تكررت الذنوب والتوبة (رقم-٢٩ - (٢٧٥٨) وأحمد في المسند ٢/ ٤٠٥

تسهيلات:

**قوله** أَعَلِمَ عَبْدِي:

**د توبې ترغيب نه چې ورپورې خندا:** يعنى ولې زما بنده دااوګنړل چه دهغه پورب دې اوهغه قادر مطلق دې دګناهونود وجې نه يوانسان راګيروى هم اومعاف کوى هم چه کله دده دومره اوچته عقيده ده نوما خپل بنده معاف کړو اوس چه څه غوارى کوى په دې قسم احاديثو سره مسلمانانوته دَ توبه ترغيب او شوق ورکولې شى دَ ګناه ترغيب نه ورکوى

**[۲۳۳۴] په يومسلمان باندې دَ دوزخ حکم مه لګوئ**

۲۳۳۴–[۱۲] (۱) ⓵ وَعَنْ جُنْدُبٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- حَدَّثَ: ⓶ "«أَنَّ رَجُلًا قَالَ: وَاللّٰهِ لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِفُلَانٍ، ⓷ وَأَنَّ اللّٰهَ تَعَالَى قَالَ: مَنْ ذَا الَّذِي يَتَأَلَّى عَلَيَّ أَنِّي لَا أَغْفِرُ لِفُلَانٍ، ⓸ فَإِنِّي قَدْ غَفَرْتُ لِفُلَانٍ وَأَحْبَطْتُ عَمَلَكَ»". أَوْ كَمَا قَالَ. رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ⓵ جندب رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ⓶ په دې امت کې يا په تيرو امتونو کې يو سړي اوويل چې قسم په خداى الله تعالى جل جلاله فلانى سړى نه بخښي. ⓷ بيا نبى کريم صلى الله عليه وسلم دا بيان اوکړو چې الله تعالى جل جلاله وفرمايل کوم سړى دى چې زما قسم خوړلو سره وايي، چې زه فلانى سړى نه بخښنم ⓸ اپه دې خبره پوهه شه! چې ما هغه سړي وبخښو، او ستا عمل مې ضائع کړو (يعني ستا قسم مې دروغ کړو) مسلم.

**حل اللغات:** ① يَتَأَلَّى: أَيْ يَتَحَكَّمُ عَلَيَّ وَيَحْلِفُ بِاسْمِي: چه زما په باره کښې فيصله کوى او زما په نوم قسم کوى ② أَحْبَطْتُ عَمَلَكَ: ضائع مې کړوستا عمل (يعنى ستا دا قسم خوړل مې دروغ اوګرځول)

تسهيلات:

**قوله:** لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لِفُلَانٍ:

**په چا دَ جنتى يا دوزخى قطعى حکم لګول:** دَ چا متعلق دَ جنتى يا دوزخى قطعى حکم نه دى لګول پکار ځکه چه دا دَ غيب معامله ده په مذکوره حديث کښې قسم خوړونکى دومره جراءت کړې دې چه قسم خوړلوسره ئې اوويل والله دَ فلانکى سړى به کله هم الله تعالى بخښنه اونه کړى داسې په يقين قسم خوړلو سره وينا کول په اصل کښې په الله تعالى باندې يوفيصله مسلط کول شو هم دې طرف ته اشاره ده چه مَنْ ذَا الَّذِي يَتَأَلَّى عَلَيَّ..الخ.

**[۲۳۳۵] سيدالاستغفار**

۲۳۳۵–[۱۳] (۲) ⓵ وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ⓶ "

[۱] اخرجه مسلم فى كتاب البر والصلة والآداب/باب النهي عن تقنيط الإنسان من رحمة الله تعالى (رقم-۱۳۷ - (۲۶۲۱)
[۲] اخرجه البخاري فى كتاب الدعوات باب أفضل الاستغفار (رقم-۶۳۰۶) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۴۵۳

«سَيِّدُ الاِسْتِغْفَارِ أَنْ تَقُولَ. اللّٰهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ،[۲] خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ،[۳] وَأَنَا عَلٰى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ،[۵] أَعُوذُبِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ،[۶] أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ[۷] وَأَبُوءُ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي[۸] فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ» ".[۹] قَالَ: "وَمَنْ قَالَهَا مِنَ النَّهَارِ مُوقِنًا بِهَا[۱۰] فَمَاتَ مِنْ يَوْمِهِ قَبْلَ أَنْ يُمْسِيَ[۱۱] فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ،[۱۲] وَمَنْ قَالَهَا مِنَ اللَّيْلِ وَهُوَ مُوقِنٌ بِهَا[۱۳] فَمَاتَ قَبْلَ أَنْ يُصْبِحَ فَهُوَ مِنْ أَهْلِ الْجَنَّةِ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] شداد بن اوس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] افضل استغفار دا دی چې ته داسې دعا وغواړې اللّٰهُمَّ أَنْتَ رَبِّي لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ خَلَقْتَنِي وَأَنَا عَبْدُكَ وَأَنَا عَلٰى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ أَعُوذُبِكَ مِنْ شَرِّ مَا صَنَعْتُ أَبُوءُ لَكَ بِنِعْمَتِكَ عَلَيَّ وَأَبُوءُ لَكَ بِذَنْبِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ اې الله! ته زما پروردګار يې، ستا څخه علاوه معبود نشته ،[۳] تازه پيدا کړم، او زه ستا بنده يم [۴] زه ستا په عهد يم (يعني په عهد او ميثاق باندې قائم يم) او ستا په وعده يم (يعني تا چې د حشر وغيره په باره کې کومه وعده کړيده، په هغې کامل يقين لرم) [۵] زه د خپل طاقت په قدر د هغه بدې (يعني د ګناه) څخه ستا پناه غواړم، چې په هغې کې زه اخته يم،[۶] زه ستا د نعمتونو چې تا په ما پيرزونه کړي ده، اقرار کوم [۷] او د خپلو ګناهونو هم اعتراف کوم نو ته ما وبخښې،[۸] ځکه چې ګناهونه ستا څخه علاوه بل څوک نشي بخښلې.[۹] بيا نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې کوم سړي دا کلمات د ورځې د دې په معنی ديقين کولو سره وايي[۱۰] او بيا د ماښام کيدو څخه مخکې مړ شی[۱۱] نو هغه د جنتيانو څخه دی [۱۲] او څوک چې په شپه کې دا اووائي او د دې په معنی او مفهوم يقين ولری [۱۳] او د سحر کيدو څخه مخکې مړ شي، نو هغه د جنتيانو څخه دی. (بخاري)

**حل اللغات:** ① عَهْدِكَ: أَيْ: أَنَا مُقِيمٌ عَلَى الْوَفَاءِ بِعَهْدِ الْمِيثَاقِ: يعنی زه ستا په ميثاق (الست بربکم) باندې قائم يم، پوره کوم يې، ② وَعْدِكَ: وَأَنَا مُوقِنٌ بِوَعْدِكَ يَوْمَ الْحَشْرِ وَالتَّلَاقِ: يعنی زما يقين او ايمان دې ستا د حشر او ملاقات په وعده باندې، ③ صَنَعْتُ: کوم عمل چه ما کړي دي ④ أَبُوءُ: أَيْ: أُقِرُّ: زه اقرار کوم، ⑤ مُوقِنًا: أَيْ: مُعْتَقِدًا: چه يقين او اعتقاد ئې وی.

**تسهيلات:**

**قوله:** سَيِّدُ الاِسْتِغْفَارِ:

**مذکوره کلماتو ته د سيد الاستغفار ولېلو وجه:** چونکه په دې کلماتو کښې د الله وحده لاشريک له د الوهيت او عبوديت او د هغه د خالقيت اعتراف دې او دې کښې د هغه عهد اقرار دې چه هغه د بندګانو نه اغستې وو او په هغې وعده باندې د اميد اظهار دې چه الله تعالی د بنده سره کړې ده دغه شان په دې کښې د ګناهونو د شر نه پناه غوښتل دی چه کوم د بنده نه صادر شوی دی او په دې کښې د ګناهونو په کولو باندې د ندامت اظهار دې او ائنده د نه کولو عزم هم دې ځکه ورته سيدالاستغفار وائی

**قوله** وَأَنَا عَلَى عَهْدِكَ وَوَعْدِكَ مَا اسْتَطَعْتُ:

**د عهد او وعد په مصداق کښې دوه اقوال:**

① د عهد نه مراد د عالم ميثاق عهد دې او د وعدې څخه مراد د قيامت د ورځې په راتلو باندې د يقين کولو وعده ده چې زما ستاسو د قيامت د راتلو په وعده پوره يقين دې

② د عهد څخه مراد دا دې چې زه په تاسو باندې د ايمان راوړلو په وعده قائم يم او د وعدې څخه مراد په ايمان کښې چې کومه وعده ما کړې ده چې زه به ستاسو په احکامو باندې عمل کوم نو په هغه وعده زه قائم يم.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[۲۳۶] د الله تعالی غفاريت**

۲۳۳۴—[۱۴] (¹) ① عَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«قَالَ اللهُ -تَعَالَى-: يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ مَا دَعَوْتَنِي وَرَجَوْتَنِي ③ غَفَرْتُ لَكَ عَلَى مَا كَانَ فِيكَ وَلَا أُبَالِي، ④ يَا ابْنَ آدَمَ لَوْ بَلَغَتْ ذُنُوبُكَ عَنَانَ السَّمَاءِ، ⑤ ثُمَّ اسْتَغْفَرْتَنِي، غَفَرْتُ لَكَ وَلَا أُبَالِي، ⑥ يَا ابْنَ آدَمَ إِنَّكَ لَوْ لَقِيتَنِي بِقُرَابِ الْأَرْضِ خَطَايَا، ⑦ ثُمَّ لَقِيتَنِي لَا تُشْرِكُ بِي شَيْئًا، ⑧ لَأَتَيْتُكَ بِقُرَابِهَا مَغْفِرَةً»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ① انس رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله تعالی جل جلاله فرمايي چې اې ابن آدمه! تر څو پورې چې ته زما څخه د ګناهونو معافي غواړې، او زما څخه اميد لرې. ③ زه به تا بخښم تا چې څه بد عمل هم کړی وي، او ماته د دې پروانشته (يعني ته خواه هر څومره ګنهګار يې، تا لره بخښل زما په نزد څه لويه خبره نه ده.) ④ اې ابن ادمه! که ستا ګناه د آسمان بلنديو ته هم ورشي، ⑤ او ته زما څخه بخښنه وغواړې نو زه به تا بخښم. او ماته د دې پروا نشته. ⑥ اې ابن آدمه! که ته ما سره په داسې حال کې ملاو شې، چې ستا سره د ګناهونو څخه ډکه زمکه وي، ⑦ په شرط د دې چې تا ما سره څوك شريك نه وی جوړ کړی (يعني په شرك کې مبتلا شوې نه يې) ⑧ نو زه به تاته د بخښش او د مغفرت څخه د ډکې زمکې سره راشم (ترمذي)

**حل اللغات:** ① دَعَوْتَنِي: أَيْ: تَدْعُونِي: چه ته زمانه دعا غواړې، ② رَجَوْتَنِي: أَيْ: تَرْجُونِي: زمانه اميد ساتې. ③ لَا أُبَالِي: د باب مفاعله نه د مضارع صيغه ده، زه هيڅ پرواه نه کوم ④ عَنَانَ السَّمَاءِ: أَيْ: سَحَابَهَا: په اوريځو باندې د دې اطلاق کيږی مراد ترې نه د آسمان اوچتوالې دې ⑤ بِقُرَابِ الْأَرْضِ: أَيْ: بِمِلْئِهَا: يعنی د ډکې زمکې برابر

(¹) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۰۸

**تسهيلات قوله** مَا دَعَوْتَنِي وَرَجَوْتَنِي

**دالله تعالی د طرفه ګناهګارته د معافی وعده:** دلته ما مصدریه ظرفیه دي یعنی ترڅو پورې چه ته زما نه غواړې او زما نه امید ساتې نو زه به تا معاف کوم لیکن شرط دا دي چه ته ګنهګار نې غدار یعنی مشرک او کافر نه يې

**قوله** عَنَانَ السَّمَاءِ

**دعنان په مصداق کښې څلور اقوال:** ① ویرخه مراد ده

② آسمان ته په نظر کولوسره چې څومره مسافت باندې نظرلګی هغه مراد دي

③ د آسمان کنارې او اړخونه مراد دی

④ آسمان ته نسبت ددې د تاکید په طور دې لکه څنګه چې په دې قول د الله تعالی کښې دي ﴿فَخَرَّ عَلَيْهِمُ السَّقْفُ مِن فَوْقِهِمْ﴾

—()[۱]وَرَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالدَّارِمِيُّ، عَنْ أَبِي ذَرٍّ. [۲]وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] او احمد او دارمي دا روایت د ابوذر ﵁ څخه نقل کړې دي. [۲] او امام ترمذي ﷫ ویلي دي چې دا حدیث حسن غریب دی

**[۲۳۲۸] دالله تعالی دغفاریت یقین ساتلو فائده**

—[۱۵] ()[۱]وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - عَنْ رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: "[۲] «قَالَ اللَّهُ تَعَالَى: مَنْ عَلِمَ أَنِّي ذُو قُدْرَةٍ عَلَى مَغْفِرَةِ الذُّنُوبِ[۳] غَفَرْتُ لَهُ وَلَا أُبَالِي،[۴] مَا لَمْ يُشْرِكْ بِي شَيْئًا» ". رَوَاهُ فِي: "شَرْحِ السُّنَّةِ".

**ترجمه** [۱] ابن عباس ﵄ د رسول الله ﷺ څخه نقل کوی چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله تعالی ﷻ فرمایي چې کوم سړې په دې پوهه شو چې زه (یعنې الله تعالی ﷻ) د ګناهونو په بخښلو قادر یم. [۳] نو هغه به وبخښم. او ماته د دې هیڅ پروا نشته [۴] په دې شرط چې هغه ما سره څوك شریك نه جوړوي (شرح السنه)

**حل اللغات** ① ذُوقُدْرَةٍ قدرت والاذات. د قدرت مالک

**تسهیلات:**

**قوله** مَنْ عَلِمَ أَنِّي ذُوقُدْرَةٍ عَلَى مَغْفِرَةِ الذُّنُوبِ غَفَرْتُ لَهُ وَلَا أُبَالِي

**دالله په صفاتو د ایمان راوړلو فائده:** یعنی الله تعالی فرمائی چه یوسړي صرف دومره پوهیږی اودې پخه عقیده هم لری چه زه د قدرت مالك یم او د بخښلو اختیار او قدرت هم ماسره

[۱]) اخرجه الدارمی فی رقم -۲۷۸۸ واحمد فی المسند: ۱۴۷/۵

[۲]) اخرجه البغوی فی شرح السنة رقم الحدیث ۴۱۹۱ والحاکم فی المستدرک ۴/ ۲۶۲

دي اوزه د شرك نه علاوه هره ګناه معاف کوم زما متعلق د اسې عقیده لرونکی نوله ګناه زه معاف کوم لکه چه دې سرې زما صفات جلالیه اوجمالیه اومنل او په ما باندې نې ښه ګمان اوکړو نو "اناعندظن عبدي بي" د اصول مطابق ما هغه معاف کړو داحدیث قدسي دې

**[۲۳۲۹] الله تعالی د استغفار په وجه د پرېخه ورکوي**

۲۳۳۰ - [۱٦] (۱) ۱ وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ "«مَنْ لَزِمَ الِاسْتِغْفَارَ جَعَلَ اللّٰهُ لَهُ مِنْ كُلِّ ضِيقٍ مَخْرَجًا، ۳ وَمِنْ كُلِّ هَمٍّ فَرَجًا، ۴ وَرَزَقَهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ۱ ابن عباس رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ څوك چې استغفار په خان لازم کړي، نو الله تعالی ﷻ د هغه د پاره د هرې تنګی څخه د وتلو لار اوباسي. ۳ او هغه ته د هر رنځ او غم څخه نجات ورکوي. ۴ او هغه ته د داسې ځاې څخه پاك او حلال رزق ورکوي چې د هغه ځاې څخه یې ګمان هم نه وی (احمد، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① ضِيقٍ: أَيْ: شِدَّةٍ وَمِحْنَةٍ: تنګسیا یعنی سختي او پریشانی ② مَخْرَجًا: أَيْ: طَرِيقًا: د وتلو لار. ③ هَمٍّ: غم، پریشانی. ④ فَرَجًا: أَيْ: خَلَاصًا: فراخي یعنی نجات او خلاصي. ⑤ لَا يَحْتَسِبُ: أَيْ: لَا يَظُنُّ: ګمان به نه کوی

**تسهیلات: قوله:** مَنْ لَزِمَ الِاسْتِغْفَارَ..الخ:

په دې حدیث کښې دې آیت طرف ته اشاره کړې ده چه ﴿ فَقُلْتُ اسْتَغْفِرُوا رَبَّكُمْ إِنَّهُ كَانَ غَفَّارًا ۝ يُرْسِلِ السَّمَاءَ عَلَيْكُمْ مِدْرَارًا ۝ ﴾ [سورت نوح الایه: ۱۱-۱۰]. او داحدیث د دې آیت ماخوذ او د دې اقتباس دې ﴿ وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ يَجْعَلْ لَهُ مَخْرَجًا ۝ وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لَا يَحْتَسِبُ ﴾ [سورت طلاق الایه: ۲].

**[۲۳۳۰] په ګناه باندې اصرار نه دې کول پکار**

۲۳۳۰ - [۱۷] (۱) ۱ وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ "«مَا أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ، ۳ وَإِنْ عَادَ فِي الْيَوْمِ سَبْعِينَ مَرَّةً»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ۱ حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ۲ کوم سړي چې (په خپله ګناه باندې) استغفار اوکړو، هغه په خپله ګناه باندې اصرار ونه کړو. ۳ اګر چې هغه په ورځ کې اویا [۷۰] خله ګناه وکړي (ترمذي ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① مَا أَصَرَّ: أَيْ: مَا دَامَ: ټینګ پاتې نه شو، همیشوالې نې ا ونه کړو ② إِنْ عَادَ: أَيْ: وَلَوْ رَجَعَ: اګرچه دې واپس شي، بیا اوګرځي

---

(۱) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب فی الاستغفار (رقم - ۱۵۱۸) وابن ماجة فی کتاب الأدب باب الاستغفار (رقم - ۳۸۱۹) واحمد فی المسند: ۲٤۸/۱

(۲) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة باب فی الاستغفار (رقم - ۱۵۱٤) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳٦۳۰

**تسهيلات**

**قوله** مَا أَصَرَّ مَنِ اسْتَغْفَرَ.. الخ:

**په ګناه باندې د اصرار کولو قباحت:** کوم سړي چه په يوه ګناه باندې مداموالې اختيار وي هم دغه په ګناه باندې اصرار دې په ګناه باندې اصرار يو قبيح امر دې خکه چه په دې سره صغيره ګناه کبيره جوړيږي اوپه کبيره ګناه باندې اصرار سره د کفر د حد پورې د رسيدو خطره ده

په دې حديث کښې دَ توبه او استغفار ترغيب دې دکوم خلاصه چه داده کوم سړې چه په خپله يوه ګناه باندې ملامته وي اودَ هغې نه استغفار کوي نوهغه سړې په ګناه باندې دَ اصرار کولو دَحد نه اوځي که هغه ګناه صغيره وي او که کبيره وي اوکه په ورځ کښې هغه دَدې اويا خل ارتکاب کړې وي يا دَدې نه ئې هم زيات ارتکاب کړې وي

بهرحال توبه اواستغفار او اصرار دواړه نه شي يوځائې کيدې په دې حديث کښې دَ توبه ډيرلونې ترغيب دې اخلاص شرط دې ګڼې نه.

سبحه بر کف توبه بر لب دل پُر از ذوقِ گناه    معصيت را خنده مى آيد بر استغفار ما

**[۳۳] دَتوبه کونکو فضيلت**

۲۳۴۱-[۱۸] (۱) وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «كُلُّ بَنِي آدَمَ خَطَّاءٌ، [۳] وَخَيْرُ الْخَطَّائِينَ التَّوَّابُونَ». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] انس ﷺ راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر انسان خطا کار دې (يعني هر انسان ګناه کوي اعلاوه د انبياء کرامو ﷺ خخه خکه چې هغوی معصوم عن الخطاء دي) [۳] او بهترين خطا کار هغه دې چې توبه اوکاږي (ترمذي، ابن ماجه، دارمي)

**حل اللغات:** ① خَطَّاءٌ: أي: كَثِيرُ الْخَطَأِ: ډير ګناهونه کونکې

**تسهيلات:**

**قوله** كُلُّ بَنِي آدَمَ خَطَّاءٌ:

**نکته:** که دا کل مجموعي وی نو انبياء ددې نه مستثنى دی

**دتوابين په مفهوم کښې درې اقوال:** ① بهترين خطا کار هغه دی چه د معصيت نه توبه اوکړی او د طاعت په ذريعه الله ته رجوع کونکې وی

② بهترين خطا کار هغه دی چه غفلت پريږدی او د انابت په ذريعه د ذکر طرف ته رجوع اوکړی ③ بهترين خطا کار هغه دی چه د غيبت نه د حضور طرف ته رجوع اوکړی.

[۱] اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۲۶۱۶ وابن ماجة في كتاب الزهد/باب ذكر التوبة (رقم-۴۲۵۱) واحمد في المسند ۱۹۸/۳

[۲۳۴۳] ګناه کولو سره په زړه باندې تور داغ جوړيږي

۲۳۴۳-[۱۹] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَذْنَبَ كَانَتْ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فِي قَلْبِهِ، ③ فَإِنْ تَابَ وَاسْتَغْفَرَ صُقِلَ قَلْبُهُ، ④ وَإِنْ زَادَ زَادَتْ حَتَّى تَعْلُوَ قَلْبَهُ، ⑤ فَذَلِكُمُ الرَّانُ الَّذِي ذَكَرَ اللّٰهُ تَعَالَى: ⑥ ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ﴾ [المطففين: ۱۴]. ⑦ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** ① ابوهريره ﷜ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې مؤمن ګناه کوي، نو د هغه په زړه کې يوه توره نقطه پيدا شي. ③ بيا که د هغه ګناه څخه توبه اوکاږي، او استغفار کوي، نو د هغه زړه (د هغه توري نقطي څخه) صفا کيږي ④ او که زياته ګناه کوي، نو هغه توره نقطه زياتيږي تر دې چې د هغه په زړه خوره شي. ⑤ نو دا هغه زنګ دی، چې د هغې په باره کې الله ﷻ دا فرمايلي دي ⑥ كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ مَا كَانُوا يَكْسِبُونَ. داسې هيڅ کله نه ده، بلکه د هغوئ په زړونو زنګ وهلي دې هغه کفر او شرك چې هغوی به کولو. [تر دې چې د هغوئ په زړونوکي خير او نيکي بالکل پاتې نه شوه] ⑦ دا روايت احمد. ترمذي. ابن ماجه نقل کړی دی او امام ترمذي ﷫ فرمايلي دي چې دا حديث حسن صحيح دي

**حل اللغات**: ① نُكْتَةٌ: أَيْ الْأَثَرُ: ټاکي. نښان (دګناه اثر مراد دي)، ② سَوْدَاءُ: توره. ③ صُقِلَ: أَيْ نُظِّفَ. صفا کيږي. ④ تَعْلُوَ: زياتيږي. ⑤ الرَّانُ: زنګ.

**تسهيلات**:

**قوله**: إِنَّ الْمُؤْمِنَ إِذَا أَذْنَبَ كَانَتْ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ فِي قَلْبِهِ..الخ:

**د خير او شر دواړو مرکز**: دَ انسان زړه دَ خير اوشر دواړو دَپاره مرکز دې فرښتې په دې کښې په نيکو الهاماتو سره دَنيکئی کړلو کوشش کوی او شيطان په دې کښې خرابو وسوسو سره دَ بدئی کولو کوشش کوی اوس چه کله شيطان انسان په بدئی باندې تيار کړو او دَ ګناه تور داغ په زړه باندې اولګيدو نو په نيکئی سره او په توبه اواستغفارسره دغه داغ ونخلې کيږی او زړه ئی بيا صفا کيږی ليکن که يو انسان دَ ګناه نه پس استغفار نه کوی نه توبه کوی اونه نيك عمل کوی نودغه داغ زياتيږی تردې چه دَ هغه پوره زړه راګير کړی هم دَدې نوم ران دې اوهم دغه مهر جباريت دې ﴿كَلَّا بَلْ رَانَ عَلَى قُلُوبِهِمْ﴾ اسورت مطففين: ۱۴. کښې هم دې طرف ته اشاره ده په دې حديث کښې دَ توبه او استغفار ترغيب ورکړې شوې دې

[۱] اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۳۹۰ وابن ماجة فی وابن ماجة فی كتاب الزهد/باب ذكر التوبة (رقم-۴۲۵۱) واحمد فی المسند: ۲/۲۹۸

[۲۳۳۲] د توبې د قبليدو آخري وخت (غرغره) د سا مرلي له راتلو نه مخکښې دې

۲۳۳۲-[۲۰] (۱) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«إِنَّ اللّٰهَ يَقْبَلُ تَوْبَةَ الْعَبْدِ ③مَا لَمْ يُغَرْغِرْ»". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ① ابن عمر رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله تعالى د بنده توبه تر هغه وخته پورې قبلوي، ③ ترڅو پورې چې (د زنکدن) د غرغرې کيفيت شروع نشي. (ترمذي، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① يُغَرْغِرْ: أَيْ: مَا لَمْ تَبْلُغِ الرُّوحُ إِلَى الْحُلْقُومِ: د روح وتلو يعنې د زنکدن وخت، دغه وخت ته غرغره وائي

**تسهيلات:**

**قوله:** مَا لَمْ يُغَرْغِرْ:

**د غرغره څخه مراد:** دَ زنکدن په حالت کښې چه کله دَ پوره بدن نه روح اوخي او په حلق کښې راشي بند شي او اوس څو لمحې پس وتل غواړي هم دغه وخت ته غرغره نوم ورکړې شوي دي مقصد دادې چه کله په انسان باندې دَ عالم غيب پرده ښکاره شي او هغه دَ عالم آخرت دَ کوم يو څيز هم مشاهده کوي هغه وخت دَ توبه سلسله ختميږي دغه شان دَ ماښام نه دَ نمر دَ راختلو نه پس دَ توبې دروازه بنديږي.

[۲۳۳۳] دَ الله تعالى دَ مغفرت وسعت

۲۳۳۳-[۲۱] (۲) ①وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ-رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ-صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ②"«إِنَّ الشَّيْطَانَ قَالَ: وَعِزَّتِكَ يَا رَبِّ ③لَا أَبْرَحُ أُغْوِي عِبَادَكَ مَا دَامَتْ أَرْوَاحُهُمْ فِي أَجْسَادِهِمْ، ④فَقَالَ الرَّبُّ عَزَّ وَجَلَّ: وَعِزَّتِي وَجَلَالِي ⑤وَارْتِفَاعِ مَكَانِي ⑥لَا أَزَالُ أَغْفِرُ لَهُمْ مَا اسْتَغْفَرُونِي»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** ① ابوسعيد رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② شيطان الله جل جلاله ته اوويل چې قسم دې ستا په عزت اې زما پروردګاره! ③ زه به ستا بندګان هميشه ګمراه کوم. ترڅو پورې چې د هغوی روحونه د هغوی په بدنونو کې وي، ④ پروردګار عزوجل وفرمايل چې قسم دې زما په عزت او بزرګي خپله باندې ⑤ او د خپلې مرتبې په بلندي باندې، ⑥ زما بندګان چې ترڅو پورې زما څخه بخشش (بخښنه) غواړي. زه به هميشه هغوی بخښم (احمد)

**حل اللغات:** ① لَا أَبْرَحُ: أَيْ: لَا أَزَالُ: هميشه به ني کوم، ② أُغْوِي: أَيْ: أُضِلُّ: ګمراه کوم به، ③ وَعِزَّتِي: دلته واو قسميه دې، يعنې قسم مې دې وي په عزت خپل، ④ وَجَلَالِي: أَيْ: عُلُوِّ مَرْتَبَتِي: قسم مې

(۱) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۰۳ وابن ماجة في وابن ماجة في كتاب الزهد/باب ذكر التوبة (رقم-۴۲۵۳) واحمد في المسند: ۲/۱۳۲

(۲) اخرجه احمد في المسند: ۳/۲۹

دي وي به خپل لوني شان او بزرگي باندي. ⑤وارتفاع مكاني أي ورفعة مكاني قسم مي دي وي په خپلي لوني مرتبي. په دي كلماتو كښي واو قسميه دي.

**تسهيلات: قوله: لَا أَبْرَحُ أُغْوِي عِبَادَكَ:**

**د شيطان ترمرګه پوري انسان لره ګمراه کولو کوشش:** د شيطان نه مراد ابليس دي او ګمراه كولو نه مراد د بنه عقاندو او اعمالو نه محرومول دي يعني شيطان دا وائي چه د بني آدم د مرګ وخته پوري به زه په كوشش كښي يم چه دي بد عقيده او بدعمله شي او كه دا اونه كړي شم نو بيا به بني آدم لره د نيک اعمالو نه منع كوم يا لويه نيكي به ترې پاتې كوم او په وړه نيكي كښي به ئې اخته كوم

**اشكال:** په دي حديث او په دي آيت كښي څه مطابقت دي «وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ۝ إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ» او دغه شان دي آيت «لَمَنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكُمْ أَجْمَعِينَ» كښي څه مطابقت دي؟

**د اشكال جواب:** په آيت كښي مخلصين ناجين مراد دي او په حديث كښي غير مخلصين غير ناجين مراد دي د «ممن تبعک» په قيد سره به د ګناه نه استغفار كونكي خارج شي مرقات ج۵ ص۱۳۷)

**[۲۳٤۵] د توبې دروازه**

د ---[۲۲] ()①وَعَنْ صَفْوَانَ بْنِ عَسَّالٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② "«إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى جَعَلَ بِالْمَغْرِبِ بَابًا، ③عَرْضُهُ مَسِيرَةُ سَبْعِينَ عَامًا لِلتَّوْبَةِ، ④لَا يُغْلَقُ مَا لَمْ تَطْلُعِ الشَّمْسُ مِنْ قِبَلِهِ، ⑤ وَذَلِكَ قَوْلُ اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ ⑥ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ﴾ [الأنعام: ۱۵۸]». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ① صفوان ابن عسال ﷺ راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل ② الله تعالى ﷻ د مغرب طرف ته يوه دروازه جوړه كړيده. ③ چي د توبي د پاره ده. او د هغې عرض (پلنوالي) د اويا كالو د مسافت په اندازه دي ④ او دا دروازه تر هغه وخته پوري بند يږي نه. تر څو پوري چي نمر د مغرب د طرف څخه را ونه خيژي. يعني د مغرب د طرف څخه د نمر راختل د توبي د قبوليت مانع دي. ⑤ او د الله ﷻ د دي ارشاد په هغه ورځ چه ستا د پروردګار بعضي نښې نښاني به ښكاره شي ⑥ په داسي وخت كې به ايمان راوړل نفع ورنه كړي. چې د مخكي څخه يې ايمان نه وي راوړی. د دي دا مطلب دي (ترمذي ابن ماجه)

() اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۶۰۲ وابن ماجة في كتاب الفتن باب طلوع الشمس من مغربها (رقم ۴۰۷۰)

**تسهیلات**

**قوله** لِلتَّوْبَةِ

**د توبې قبلیدو آخري وخت:** علامه طیبي فرمائي چه د توبې دروازه بني آدم دپاره پرانستې ده تر څو چه شمس مغرب د طرفه نمر نه وي راختلې چه کله نمر د مغرب نه راوخیژي نو د توبې دروازه به بنده شي بیا به نه د چا ایمان راوړل قبلیږي او نه توبه کما في قوله تعالی: ((يَوْمَ يَأْتِي بَعْضُ آيَاتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا)) (أيضا)

**[۲۳۳] دتوبې دقبلیدو انقطاع**

۲۳۳۳—[۲۳] ( ) [۱] وَعَنْ مُعَاوِيَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] "«لَا تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ حَتَّى تَنْقَطِعَ التَّوْبَةُ، [۳] وَلَا تَنْقَطِعُ التَّوْبَةُ حَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا»". رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَأَبُو دَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] حضرت معاویه ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] هجرت (یعني د ګناهونو څخه د توبې طرف ته رجوع) به موقوف نه وي، تر څو پورې چې توبه موقوف شوی نه وي. [۳] او توبه به تر هغه وخته پورې موقوف نه وي تر څو پورې چې نمر د مغرب د طرف څخه راونه خیژي (ابوداؤد، احمد، دارمي)

**حل اللغات:** ① الْهِجْرَةُ: أَيْ: مِنَ الْمَعْصِيَةِ إِلَى التَّوْبَةِ: دلته د هجرت نه مراد ګناهونه پریښودل او توبې طرف ته رجوع کول دي

**تسهیلات:**

**قوله:** لَا تَنْقَطِعُ الْهِجْرَةُ:

**د هجرت د نه ختمیدوپه مفهوم کښې دوه اقوال:** په دې جمله باندې د پوهیدلودوه طریقې دي ① رومبې طریقه داده چه الهجرة د ګناهونونه شاته کیدو او دګناهونو د پریخودوپه معنی کښې واخستې شي نوعام شارحینو اوملاعلي قاري رحمه الله هم دې ته ترجیح ورکړې ده ددې مطلب به داشي چه د ګناهونونه جدا کیدل اوددې پریخودل اوددې نه خلاصې حاصلولو ګنجائش دهغه وخته پورې دې ترکومې چه د توبې د قبلیدو وخت موجود دې کله چه د توبې سلسله بنده شوه نود ګناهونونه هجران اوددې پریخودل به هم بې فائدې شي اوددې سلسله به منقطع شي اود توبې دروازه به ترهغه وخته پورې نه بندیږي ترکومې چه دمغرب نه د نمر راختل نه وي شوې کله چه نمردمغرب نه راوخیژي نودتوبه سلسله به هم منقطع شي ② ددې جملې دویم مطلب علامه طیبي داسې بیان کړې دې هغوی فرمائي چه دې خائې کښې د الهجرة نه مراد د ګناهونونه ځان ساتل نه دي ګنې ددې نه پس خویخپله دتوبه

[1]) اخرجه ابوداود في كتاب الجهاد/باب في الهجرة هل انقطعت؟(رقم-۲٤۷۹) واحمد في المسند ۳۱۲/۲

ذکر دې دا به تکرارشي يعنې توبه نه ده منقطع ترکومې چه توبه منقطع نه ده هغه فرماني چه الهجرة نه مراد هم هغه متعارف عام هجرت دې يعني هجرت به هم تر هغه وخته پورې جاري وي ترکومې پورې چه د توبې دروازه بنده نه وي او د توبې دروازه به هغه وخته پورې کولاؤوي ترکومې چه نمر د مغرب نه راختلې نه وي

**په حديث کښې يو اشکال:** اوس دا بحث دې چه د نمر د راختلو نه وروستو کوم خلق نابالغ وي او روستو توبه کول غواړي يا د نمر د راختلو نه پس ماشومان راپيدا شي نو د هغوی د توبې به څه کيږي؟

**د اشکال دوه جوابونه:** ① کوم حکم چې د حديث دې هم هغه شان به وي

② د دې حديث په حکم کښې به هغه خلق راځي کوم چه هغه وخت مکلف وي او کوم خلق چه هغه وخت مکلف نه وي د هغوی توبه به روستو قبليږي او دا هم ممکن ده چه د ماشومانو راپيدا کيدو سلسله بنده شي.

**[۲۳۳۷] په چا باندې د دوزخې حکم مه لګوئ**

> ۲۳۳۷-[ ۲۴ ] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: ② «إِنَّ رَجُلَيْنِ كَانَا فِي بَنِي إِسْرَائِيلَ مُتَحَابَّيْنِ، ③ أَحَدُهُمَا مُجْتَهِدٌ فِي الْعِبَادَةِ، ④ وَالْآخَرُ يَقُولُ: مُذْنِبٌ، ⑤ فَجَعَلَ يَقُولُ: أَقْصِرْ عَمَّا أَنْتَ فِيهِ، ⑥ فَيَقُولُ: خَلِّنِي وَرَبِّي. ⑦ حَتَّى وَجَدَهُ يَوْمًا عَلَى ذَنْبٍ اسْتَعْظَمَهُ. فَقَالَ: أَقْصِرْ،

**ترجمه** ① ابوهريره رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② په بني اسرائيلو کې دوه سړي وو چې په خپلو کې دوستان وو، ③ په هغوی کې يو خو په عبادت کې ډير رياضت کولو، ④ او دويم ګناه کوله، او ويل يې چې زه ګنهګار يم يعني هغه د خپلو ګناهونو اقرار کولو ⑤ عبادت کونکي هغه ته دا ويل شروع کړل چې په کوم شي کې ته اخته يې يعني په ګناه کې، د هغې څخه منع شه، ⑥ ګنهګار به په جواب کې ويل چې دا خبره ته زما په پروردګار باندې پريږده، (ځکه چې هغه غفور رحيم دې، هغه به ما معاف کړي) ⑦ تر دې چه يوه ورځ هغه عابد هغه په داسې ګناه کې اخته وليدلو چې هغه ډيره لويه ګناه ګڼله، هغه ورته او ويل چې ته د دې ګناه څخه منع شه،

**حل لغات:** ① مُتَحَابَّيْنِ: دوه کسان يو بل سره محبت کونکي، ② مُجْتَهِدٌ: أَيْ: مُبَالِغٌ: ډير کوشش او زياتوالي کونکي، ③ مُذْنِبٌ: ګناهونه کونکي، ④ فَجَعَلَ: أَيْ: طَفِقَ وَشَرَعَ: شروع شو، ⑤ أَقْصِرْ: د باب أَفْعَال نه د امر صيغه ده، أَيْ أَمْسِكْ وَامْتَنِعْ: بند شه، منع شه،

> ① فَقَالَ: خَلِّنِي وَرَبِّي، أَبُعِثْتَ عَلَيَّ رَقِيبًا؟ ② فَقَالَ: وَاللَّهِ لَا يَغْفِرُ اللَّهُ لَكَ أَبَدًا، ③ وَلَا يُدْخِلُكَ الْجَنَّةَ، ④ فَبَعَثَ اللَّهُ إِلَيْهِمَا مَلَكًا، ⑤ فَقَبَضَ أَرْوَاحَهُمَا، فَاجْتَمَعَا عِنْدَهُ، ⑥ فَقَالَ لِلْمُذْنِبِ: ادْخُلِ الْجَنَّةَ بِرَحْمَتِي، ⑦ وَقَالَ لِلْآخَرِ: أَتَسْتَطِيعُ أَنْ تَحْظُرَ عَلَى عَبْدِي رَحْمَتِي؟ ⑧ فَقَالَ: لَا يَا رَبِّ. قَالَ: اذْهَبُوا بِهِ إِلَى النَّارِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ.

(¹) اخرجه احمد في المسند: ۲/۳۲۳

**ترجمه** : ګ هګ ـ جواب ورکړو چې ته ما خپل پروردګار ته پريږده، آپ ته په ما نګهبان مقرر شوي يې [۲] عابد د دې په اوريدو سره ورته اوويل چې قسم په خداى الله ﷻ به تا هيڅ کله ونه بخښي، [۳] او نه به تا په جنت کې داخل کړي، [۴] د دې څخه روسته الله ﷻ هغه دواړو ته فرشته راوليږله [۵] او د هغوى روحونه يې قبض کړل، بيا چې د هغوى روحونه د الله ﷻ په حضور کې (په برزخ کې يا د عرش لاندې حاضر [جمع] شو، [۶] نو الله ﷻ ګنهګار ته خو وفرمايل چې زما د رحمت په سبب ته په جنت کې داخل شه، [۷] او دويم ته يې وفرمايل چې آيا ته د دې خبرې طاقت لرې چې زما بنده زما د رحمت څخه محروم کړې؟ [۸] هغه اوويل چې نه، پروردګاره! بيا الله ﷻ هغه فرشتو ته (چې په دوزخ باندې ما موره دي) وفرمايل چې دې د دوزخ طرف ته بوځي (احمد)

**حل اللغات**: ⑨خَلِّنِي وَرَبِّي: أي: اتْرُكْنِي مَعَه: ما پريږده زما رب سره، يعنې ته زما معامله زما رب ته پريږده. ⑥رَقِيبًا: أي: حَافِظًا: ساروونکي او حفاظت کوونکې. ⑧تَحْظُرَ: أي: تَمْنَعُ وَتُحْرِمُ: ته منع کوې، محرومه کوې

**تسهيلات**:

**قوله**: وَاللّٰهِ لَا يَغْفِرُ اللّٰهُ لَكَ أَبَدًا.. الخ:

**د چا په حق کښې د جنت او دوزخ فيصله کولو باندې دالله ناراضګي**: کيدې شي چه دې عبادت بندې خان خودونکي صوفي په خپل عبادت باندې غرور اوکړو تکبرنې اوکړو او دهوکه نې اوخوړله اويومسکين ګناهګار نې سپك ګنړلوسره په هغه دَ دوزخي کيدو قطعي حکم اونګولو لکه چه هغه دَ جنت او دوزخ فيصله پخپله کوله په کوم سره چه رب تعالى خفه شو اوهغه نې په دوزخ کښې واچولو دا جداصورت دې اودَ يوګناه په وجه څوك دوزخي ګنړلوصورت جدا دې هغه جائزدې خکه چه دا يوضابطه ده چه دَاول نه فيصله شوې ده چه څوك داسې کوى نو هم دغه شان به مومى

**[۲۳۳۸] د ټولو ګناهونو د مغفرت اعلان**

۲۳۳۹-[۲۵] ( )[۱] «وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا - قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقْرَأُ: [۲] يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ [۳] لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللّٰهِ [۴] إِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا" [۵] وَلَا يُبَالِي» ". [۶] رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ. [۷] وَفِي: "شَرْحِ السُّنَّةِ" "يَقُولُ" بَدَلَ: "يَقْرَأُ".

**ترجمه** [۱] بي بي اسماء بنت يزيد رضي الله عنها وايي چې ما واوريدل چې رسول الله ﷺ دا آيت ولوستو [۲] يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَى أَنْفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا مِنْ رَحْمَةِ اللّٰهِ إِنَّ اللّٰهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا اى زما

---

[۱] أخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۲۹۰

بنده ګانو چې د ګناه کولو په سبب مو، په خپل نفس زياتى کړى دى،[۳] د الله تعالى د رحمت څخه مه نا اميده کيږئ،[۴] ځکه چې الله تعالى ﷻ ټول ګناهونه بخښي [۵] او نبى کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي چه، الله تعالى ﷻ ته د دې پروا نشته اچې بندګان هر څومره ګناه کوي هغه ټول بخښيا،[۶] احمد، ترمذى، امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث حسن غريب دې،[۷] او په شرح السنه کې د لفظ يَقْرَأُ په ځای لفظ د يقول دې

**حل اللغات:** ① أَسْرَفُوا: أَيْ: بِالْمَعَاصِي: تاسو زياتي کړې دې (په وجه دګناهونو او نافرمانى کولو ② لَاتَقْنَطُوا: أَيْ لَاتَيْأَسُوا: مه نا اميده کيږئ

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا:

**دکافرانو د ګناهونو معاف کيدو طريقه:** د کفارو ګناهونه په توبې او د ... په ... سره معاف کيږى او د نيکانو ګناه په توبې او د الله په فضل سره معاف کيږى

**[۲۳۴۹] دانسان څخه د وړوکو ګناهونو کيدل**

٢٣٤٩-[ ٢٦ ] ( )[۱]«- وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمَا - فِي قَوْلِهِ تعالى: ﴿إِلَّا اللَّمَمَ﴾ [النجم: ٣٢]،[۲] قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: " إِنْ تَغْفِرِ اللَّهُمَّ تَغْفِرْ جَمًّا [۳] وَأَيُّ عَبْدٍ لَكَ لَا أَلَمَّا» "[۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما څخه د الله تعالى ﷻ د دې قول إِلَّا اللَّمَمَ د تفسير په ضمن کې روايت دى [۲] چې رسول الله ﷺ دا شعر اوونيلو

إِنْ تَغْفِرِ اللَّهُمَّ تَغْفِرْ جَمًّا وَأَيُّ عَبْدٍ لَكَ لَا أَلَمَّا

اى الهي که بخښي نو لوئ ګناه وبخښي [۳] او ستا کوم بنده دې چې هغه واړه ګناهونه نه وي کړي [۴] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل کړى دى، او ويلي يې دي چې دا حديث حسن صحيح غريب دې

**حل اللغات:** ① جَمًّا: أَيْ كَثِيرًا كَبِيرًا: لوئې ګناهونه ② أَلَمَّا: فعل ماضى مفرد دې، واړه ګناهونه مراد دى

**تسهيلات:**

**قوله:** وَأَيُّ عَبْدٍ لَكَ لَا أَلَمَّا:

**د نبى عليه السلام د اميه بن صلت اشعار اوريدل:** پوره ايت داسې دې ﴿الَّذِينَ يَجْتَنِبُونَ كَبَائِرَ الْإِثْمِ وَالْفَوَاحِشَ إِلَّا اللَّمَمَ﴾ (النجم ۳۲) په حديث کښې مذکوره شعر د اميه بن صلت دې چه د ايام جاهليت د مشهورو شعراو نه دې اميه ډير عبادت ګزار بنده وو او په قيامت باندې ئ

[۱]) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۲۸۴

اعتقاد وو د اسلام زمانه ني موندلي وه خو بيا هم دي مسلمان نه شو د ده د اشعار به د نصيحت نه ډک وو د دي وجي به نبي عليه السلام اوريدل او ځنې کله به ني لوستل هم

**د الله تعالى په دربار کښي د لويو ګناهونو د معاف کولو درخواست:** «اللمم» نه مراد صغيره ګناه دی ددي نه معلومه شوه چه صغيره ګناه د مومن نه صادريږي د حديث حاصل دا دي چه الله پاکه ته کريم ني ته د صغيره ګناه معاف کولو قيد مه لګوه ستا نه علاوه کوم دی دي چه هلته ګناه ګار بنده ګناه کبيره د بخښني دپاره يوسی لهذا تاسو صغيره ګناه هم معاف کړی او کبيره ګناه هم معاف کړی

**په الا اللمم کښي دوه احتمالات:** ① إلااللمم مستثني منقطع
② إلا په معنى د غير شي دي او د لمم صفت دي

**[۳۵] د بنده په چنګ چونګ کولو سره د خدائی په خدايئ کښي فرق نه راځي**

۳۵–[۲۷] ()[۱] وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] " «يَقُولُ اللَّهُ تَعَالَى يَا عِبَادِي كُلُّكُمْ ضَالٌّ إِلَّا مَنْ هَدَيْتُ، [۳] فَاسْأَلُونِي الْهُدَى أَهْدِكُمْ. [۴] وَكُلُّكُمْ فُقَرَاءُ إِلَّا مَنْ أَغْنَيْتُ، [۵] فَاسْأَلُونِي أَرْزُقْكُمْ، [۶] وَكُلُّكُمْ مُذْنِبٌ إِلَّا مَنْ عَافَيْتُ؛ [۷] فَمَنْ عَلِمَ مِنْكُمْ أَنِّي ذُو قُدْرَةٍ عَلَى الْمَغْفِرَةِ [۸] فَاسْتَغْفَرَنِي غَفَرْتُ لَهُ وَلَا أُبَالِي، [۹] وَلَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ وَآخِرَكُمْ، وَحَيَّكُمْ، وَمَيِّتَكُمْ، وَرَطْبَكُمْ، وَيَابِسَكُمْ [۱۰] اجْتَمَعُوا عَلَى أَتْقَى قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي،

**ترجمه** [۱] ابوذر ﷺ راوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله جل جلاله فرمايي اي زما بنده ګانو تاسو ټولو لار ورکه کړي ده علاوه د هغه سړي ځخه چي هغه ته ما هدايت کړي دي. [۳] نو تاسو ټول زما ځخه هدايت غواړئ، تاسو ته به هدايت کوم. [۴] تاسو ټول په ظاهر او باطن کي محتاج يي. علاوه د هغه سړي ځخه کوم چي ما غني کړو. [۵] نو تاسو ټول زما ځخه روزي غواړئ. زه به تاسو ته پاکه او حلاله روزي درکوم. [۶] تاسو ټول ګنهګاره يي يعني ټولو ځخه ګناه کيديشي، علاوه د هغه سړي ځخه کوم چي ما وساتلو يعني انبياء عليهم السلام [۷] نو په تاسو کي چي کوم سړي په دي پوهه شو چي زه په بخښلو باندي قادريم [۸] او بيا هغه زما ځخه بخښنه وغوښته نو زه به هغه ته د هغه ټول ګناهونه، وبخښم او ما ته د دي هيڅ پرواه نشته. [۹] او که ستاسو وروستني، مخکني، ستاسو ژوندي، ستاسو مړي، ستاسو لونده او ستاسو وچ ايعني ستاسو خوانان او بوډاګان يا ستاسو عالمان او جاهلان يا ستاسو فرمانبرداران او ګنهګاران غرض ټول مخلوقات [۱۰] زما د بنده ګانو ځخه د ټولو ځخه زيات متقي زړه والا يعني د حضرت محمد ﷺ په شان شي. نو په دي سره يعني د نورو مخلوقو عابد او متقي کيدو باندي

---

() أخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۲۶۱۳ وابن ماجة كتاب الزهد باب ذكر التوبة (رقم ۴۲۵۷) واحمد في مسند ۵: ۱۵۴

**حل اللغات** ① رَطْبُكُمْ: (لمده) ستاسو دذي نه مراد خوانان، فرمانبردار یا عالمان دي ② يَابِسُكُمْ وچ ستاسو دذي نه مراد بوډاگان، نافرمان یا جاهلان دي.

[۱] مَا زَادَ ذٰلِكَ فِي مُلْكِي جَنَاحَ بَعُوضَةٍ. [۲] وَلَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ، وَآخِرَكُمْ، وَحَيَّكُمْ، وَمَيِّتَكُمْ، وَرَطْبَكُمْ، وَيَابِسَكُمْ [۳] اجْتَمَعُوا عَلَى أَشْقَى قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي: [۴] مَا نَقَصَ ذٰلِكَ مِنْ مُلْكِي جَنَاحَ بَعُوضَةٍ. [۵] وَلَوْ أَنَّ أَوَّلَكُمْ، وَآخِرَكُمْ، وَحَيَّكُمْ وَمَيِّتَكُمْ، وَرَطْبَكُمْ، وَيَابِسَكُمْ [۶] اجْتَمَعُوا فِي صَعِيدٍ وَاحِدٍ، [۷] فَسَأَلَ كُلُّ إِنْسَانٍ مِنْكُمْ مَا بَلَغَتْ أُمْنِيَّتُهُ،

**ترجمه** [۱] زما په خدايي کې د يو ماشي د وزر برابر هم زياتوالی نه کيږي. [۲] او که ستاسو مخکني او وروستني، ستاسو ژوندي او مړه، ستاسو تر او وچ غرض ټول مخلوقات [۳] د بنده گانو څخه د ټولو څخه زيات (بدبخته مخلوق) د شيطان په شان شي. [۴] نو په دې سره زما په خدايي کې د يو ماشي د وزر برابر هم کمی نه کيږي [۵] او که ستاسو مخکني، وروستني، ستاسو ژوندي او مړه، ستاسو تر او وچ [۶] په يو ميدان کښې جمع شي [۷] او په تاسو کې هر سړی د خپل انتهايي ارزو او خواهش مطابق وغواړي يعني د هغه په زړه کې چې کوم آرزو او خواهش وي هغه زما څخه وغواړي.

**حل اللغات**: ③ جَنَاحَ: وزر. ④ بَعُوضَةٍ: ماشي (يعنی په اندازه د ماشي. ددې نه مراد که از کم مقدار دی ⑤ أَشْقَى: وَهُوَ إِبْلِيسُ: بد بدبخته (ددې نه مراد ابليس دی) ⑥ أَتْقَى: نيک بخته (ددې نه مراد حضور ﷺ دی) ⑦ صَعِيدٍ: أَيْ: مَحَلٍّ: صعيدې خاورې ته واني. مراد ترينه مقام او محل يعنی ځای دې ⑧ أُمْنِيَّتُهُ: أَيْ: مُشْتَهَاهُ: خواهش او آرزو د انسان (يعنی چه څه ئې هم په زړه کښې راځي.

[۱] فَأَعْطَيْتُ كُلَّ سَائِلٍ مِنْكُمْ: مَا نَقَصَ ذٰلِكَ مِنْ مُلْكِي [۲] إِلَّا كَمَا لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ مَرَّ بِالْبَحْرِ فَغَمَسَ فِيهِ إِبْرَةً، ثُمَّ رَفَعَهَا: [۳] ذٰلِكَ بِأَنِّي جَوَادٌ مَاجِدٌ أَفْعَلُ مَا أُرِيدُ، [۴] عَطَائِي كَلَامٌ، [۵] وَعَذَابِي كَلَامٌ، [۶] إِنَّمَا أَمْرِي لِشَيْءٍ إِذَا أَرَدْتُ [۷] أَنْ أَقُولَ لَهُ كُنْ، فَيَكُونُ.» رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [۱] او بيا زه په تاسو کې هر سړي ته (د هغه د خواهش مطابق ورکړم) نو په دې سره زما په خدايي کې هيڅ هم کمی نه کيږي [۲] (خو که بفرض محال کمی وي نو هم) دومره به وي مثلاً په تاسو کې يو سړی په درياب تيريږي. او هغه په هغې کې ستن واچوي. بيا هغه را وکاږي (يعنی که بالفرض محال د څه کمی تصور هم اوشي. نو هغه به دومره وي څومره چې د يوې ستنې سره اوبه ولگي. گيني په حقيقت کې د الله ﷻ په خدايي کې د کمي د هيڅ درجې هم څه سوال نه پيدا کيږي. هغه که هر څومره ورکړي. د هغه په نزد هيڅ کله کمی نه کيږي) [۳] او د دې سبب دا دې چې زه ډير سخي يم، ډير ورکړه کونکی يم. او څه چې غواړم کوم يې (يعني ټول سخاوت او کرم زما د ارادې او د اختيار لاندې دې په دې کې د يو بنده ارادې ته دخل نشته) [۴] زما ورکول يواځې حکم کول دي. [۵] او ځما عذاب يواځې حکم ورکول دي (يعني دا ټول څيزونه يواځې زما په يو حکم سره کيږي، زه د ذرائعو او اسبابو محتاج نه يم) [۶] او زه چې يو شی پيدا کول غواړم نو د هغې د پاره زما صرف دومره

حکم دی .[۷] چې زه اوو ايم وشه ،نو هغه وشي يعني موجود شي، احمد ، ترمذي، ابن ماجه.

**حل اللغات** ⑧نَفْسَ أي أدْخَلَ داخله کړی، ډوبه کړی. ⑩إِبرَةً: دګنډلو ستن. ⑪جَوَادٌ: أي كَثِيرُ الْجُودِ ډیر سخاوت کونکي. ⑫مَاجِدٌ: أي وَاسِعُ الْعَطَاءِ ډیر زیات ورکړه کونکي. ⑬عَطَائِي كَلَامٌ: عطاء معنی ورکړه کول. کلام نه مراد امر دې يعنی زما ورکول بواخی حکم کول دی.

**تسهيلات**:

**قوله**: اجْتَمَعُوا عَلَى أَتْقَى قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ عِبَادِي .. الخ:

**دحديث د بعضي جملو وضاحت**:

(۱)أَتْقَى قَلْبِ عَبْدٍ مِنْ: نه مراد دَ حضورپاك قلب اطهر دې

(۲)أَشْقَى قَلْبِ عَبْدٍ: دې نه مراد ابليس دې

**قوله**: عَطَائِي كَلَامٌ:

**دخزانې ختمه مراد**: يعنى دَالله تعالى خزانې په څه ګودام کښې نه دې چه خرچ کولوسره ګودام خالی شی بلکه دَ الله تعالى ذات خو پخپله خزانه ده دَدې تعلق دَ الله تعالى كلمه "كن" سره دې هم دَدې كلام نه عطاء دې اوهم دَدې كلام نه سزا ده لهذا څوك دې دا خيال نه كوی چه په دې خزانو كښې به كمي راشی

**[۲۲۵۱] دمتقيانو دپاره د مغفرت وعده**

| ۲۳۰۵—[۲۸] ( )⁽¹⁾ [۱] وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ قَرَأَ: [۲] ﴿هُوَ أَهْلُ التَّقْوَى وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ﴾ [المدثر: ۵۶] [۳] قَالَ: قَالَ رَبُّكُمْ: أَنَا أَهْلٌ أَنْ أُتَّقَى، [۴] فَمَنِ اتَّقَانِي فَأَنَا أَهْلٌ أَنْ أَغْفِرَ لَهُ» ". رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَابْنُ مَاجَهْ، وَالدَّارِمِيُّ. |
| --- |

**ترجمه** [۱] انس رضی الله عنه راوي دي چه رسول الله ﷺ دا آيت وويلو [۲] هُوَ أَهْلُ التَّقْوَى وَأَهْلُ الْمَغْفِرَةِ، هغه صاحب تقوى دى او صاحب بخشش دي.[۳] بيا نبى كريم صلى الله عليه وسلم اد دې د تفسير په سلسله كې! وفرمايل چې ستاسو پروردګار فرمايي چې زما د شان تقاضه دا ده چې خلق ما سره د چا د شريك كولو څخه پرهيز وكړي.[۴] نوكوم سړی چې شرك څخه خان ساتي. نو بيا زما لائق دا دی چې زه هغه وبخښم ترمذي، ابن ماجه، دارمي،

**حل اللغات**: ① أَهْلُ التَّقْوَى: صاحب تقوى ،چه خلق ني د شرک کولو نه بچ اوساتي، ② أَهْلُ الْمَغْفِرَةِ: صاحب بخشش ،چه د متقينو بخشش او معافى اوكړى، ③ أُتَّقَى: چه ما د شريک کولو نه اوساتی. چه زما نه ويره اوكړې شی

⁽¹⁾ اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۳۸۴ وابن ماجة فی كتاب الزهد /باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-۴۲۹۹)

**تسهيلات:**

**قوله فَمَنِ اتَّقَانِي فَأَنَا أَهْلٌ أَنْ أَغْفِرَ لَهُ:**

**په هيبت او خوف کښې فرق:** ① هيبت خوف هيبت په معني د يري سره نول مخلوق ته دي د انبياؤ و اوليؤ په زړه کښې هم هيبت په قدر د قرب خداوندی وی چه څومره د الله پاک سره قرب وی هم هغه هومره د الله هيبت زيات وی

② خوف خوف په معنی د عذاب ويره صرف گناه گارو ته وی او هم دغه شان خوف عتب صرف کافرانو ته وی لهذا په حديث الباب کښې د خواصو د پاره د هيبت ثبوت دي او أَلَآ إِنَّ أَوْلِيَآءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ کښې نفي د خوف عذاب ده

**[۲۳۵۲] په يو مجلس کښې سل ځله الله تعالى ته توبه ويستل**

۲۳۵۲—[ ۲۹ ] (١) [١] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: [٢] «إِنْ كُنَّا لَنَعُدُّ لِرَسُولِ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي الْمَجْلِسِ يَقُولُ: [٣] " رَبِّ اغْفِرْ لِي، وَتُبْ عَلَيَّ [٤] إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الْغَفُورُ " مِائَةَ مَرَّةٍ» ، رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] ابن عمر رضي الله عنهما وايي [٢] چې مونږ به دا شميرله چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم به په يو مجلس کې سل ځله دا ويل [٣] رَبِّ اغْفِرْ لِي وَتُبْ عَلَيَّ إِنَّكَ أَنْتَ التَّوَّابُ الْغَفُوْرُ . اې زما پروردگاره، ما وبخښې، او زما توبه قبوله کړه [٤] بيشکه ته بخښونکې او توبه قبلونکې يې (احمد ، ترمذي، ابوداؤد ، ابن ماجه)

**[۲۳۵۳] په استغفار سره د ګناهونو معاف کيدل**

۲۳۵۳—[ ۳۰ ] (٢) [١] وَعَنْ بِلَالِ بْنِ يَسَارِ بْنِ زَيْدٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- مَوْلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [٢] حَدَّثَنِي أَبِي، عَنْ جَدِّي أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُولُ: [٣] «مَنْ قَالَ: أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيَّ الْقَيُّومَ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ [٤] غُفِرَ لَهُ، وَإِنْ كَانَ قَدْ فَرَّ مِنَ الزَّحْفِ» . [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَأَبُودَاوُدَ، لَكِنَّهُ عِنْدَ أَبِي دَاوُدَ: هِلَالُ بْنُ يَسَارٍ [٦] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [١] د رسول الله ﷺ د آزاد شوی غلام د حضرت زيد رضي الله عنه نمسی حضرت بلال بن يسار رضي الله عنه وايي [٢] چې زما پلار زما د نيکه (حضرت زيد رضي الله عنه) د رسول الله ﷺ څخه اوريدلی وو [٣] چې کوم سړي دا وايي أَسْتَغْفِرُ اللّٰهَ الَّذِيْ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّوْمُ وَأَتُوْبُ إِلَيْهِ . زه د الله ﷻ څخه بخښنه غواړم، هغه الله ﷻ چې د هغه څخه علاوه بل معبود نشته ، چې ژوندی دی او د يرزيات تدبير کونکې دي. [٤] نو د هغه بخښنه کېږي اګر چې هغه د جهاد

(١) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب فی الاستغفار (رقم - ١٥١٦) والترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٨١٤ وابن ماجة فی کتاب الأدب/باب الاستغفار (رقم - ٣٨١٤) واحمد فی المسند :٢١/٢

(٢) اخرجه ابوداود فی کتاب الصلاة،باب فی الاستغفار (رقم - ١٥١٧) والترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٦٤٨

ځغه تښتیدلې وي ،چې یوه ډیره لویه ګناه ده،[۵] دا روایت ترمذي او ابوداؤد نقل کړې دې.
لیکن د ابوداؤد په نزد «د بلال ابن یسار» په ځای هلال ابن یسار دې [۶] او امام ترمذي
فرمایلي دي چې دا حدیث غریب دی

**حل اللغات:** ① فَرَّ: أي: هَرَبَ: تختیدلې وی. ② الزَّحْفِ: الْجَيْشُ الْكَثِيرُ: دخلقو ګنړې ته وانی مراد ترې
کفارو سره جنګ دې

**تسهیلات:**

**قوله:** وَإِنْ كَانَ قَدْ فَرَّ مِنَ الزَّحْفِ:

**په استغفار سره ټول ګناهونه معاف کیدل:** یعنی دَدې دعا په برکت سره دَ هغه سړی ټول ګناهونه
معاف کیږی سره دَدې چه هغه ګناهونه لوئی لوئی ولې نه وی تردې چه که په میدان جهاد
کښې عین دَ جنګ دوران کښې میدان پریخودوسره تختیدلې هم وی نودا لویه ګناه هم الله
تعالی معاف کوی

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۳۵۴] دَ خپلو مرو دَپاره استغفار کول ګټه رسوي

۲۳۵۴ـ[۳۱] ( ) [۱] عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: [۲] "«إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ لَيَرْفَعُ الدَّرَجَةَ لِلْعَبْدِ الصَّالِحِ فِي الْجَنَّةِ، [۳] فَيَقُولُ: يَا رَبِّ أَنَّى لِي هٰذِهِ؟ [۴] فَيَقُولُ: بِاسْتِغْفَارِ وَلَدِكَ لَكَ»". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] الله تعالی جل جلاله په جنت
کې د خپل نیك بخت او صالح بنده درجه اوچتوي، [۳] نو هغه پوښتنه کوي چې اې زما
پروردګاره! ماته دا درجه څرنګه حاصله شوه؟ [۴] الله تعالی جل جلاله فرمایي چې ستا د پاره
ستا د خوی د استغفار په وجه (احمد)

### [۲۳۵۵] مړي دژوندو دعا په انتظار کښې

۲۳۵۵ـ[۳۲] ( ) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَبَّاسٍ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمَا- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] "«مَا الْمَيِّتُ فِي الْقَبْرِ إِلَّا كَالْغَرِيقِ الْمُتَغَوِّثِ، [۳] يَنْتَظِرُ دَعْوَةً تَلْحَقُهُ مِنْ أَبٍ، أَوْ أُمٍّ، أَوْ أَخٍ، أَوْ صَدِيقٍ، [۴] فَإِذَا لَحِقَتْهُ كَانَ أَحَبَّ إِلَيْهِ مِنَ الدُّنْيَا وَمَا فِيهَا، [۵] وَإِنَّ اللّٰهَ تَعَالَى لَيُدْخِلُ عَلَى أَهْلِ الْقُبُورِ مِنْ دُعَاءِ أَهْلِ الْأَرْضِ أَمْثَالَ الْجِبَالِ، [۶] وَإِنَّ هَدِيَّةَ الْأَحْيَاءِ إِلَى الْأَمْوَاتِ الِاسْتِغْفَارُ لَهُمْ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي: "شُعَبِ الْإِيمَانِ»".

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن عباس رضي الله عنهما راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] په قبر کې د
مرده حالت داسې دې لکه څرنګه چې یو سړی دوبیږي او چاته فریاد کوي «چې څوك د هغه

( ) اخرجه ابن ماجة في كتاب الأدب /باب بر الوالدين (رقم- ۳۶۶۰) واحمد في المسند: ۲/۵۱۹
( ) اخرجه البيهقي في شعب الايمان رقم: ۷۹۰۴

لاس نيولو سره هغه د اوبو ځخه بهر راوباسي، [۳] نو هغه مړه هر وخت د دې خبرې منتظر وي چې د هغه د پلار د طرف ځخه يا د هغه د مور د طرف ځخه يا د هغه د ورور د طرف ځخه يا د هغه د دوست د طرف ځخه هغه ته دعا وررسي، [۴] نو هر کله چې هغه ته د چا طرف ځخه دعا ورسي، نو دا دعا د هغه د پاره د دنيا او د دنيا د ټولو څيزونو ځخه محبوب وي، [۵] او الله تعالى ﷻ د قبر والو ته د دنيا والا د طرف ځخه د دعا ثواب د غره په مثل (يعني ډير ثواب او رحمت او بخشش) رسوي [۶] او د ژوندو د طرف ځخه د مړه ګانو د پاره بهترينه هديه استغفار دی (بيهقي)

**حل اللغات:** ① الْغَرِيقِ: أَيِ: الْمُشْرِفِ عَلَى الْغَرَقِ: چه غرقيدو ته نزدې وی. ② الْمُتَغَوِّثِ: أَيِ: الْمُسْتَغِيثِ الْمُسْتَعِينِ: د مدد غوښتلو دپاره فرياد کونکي. ③ تَلْحَقُهُ: د مضارع صيغه ده، چه ورته رسيږي ④ هَدِيَّةً: تحفه، هديه

**[۳۳۵۶] ارکوی هغه سړی د چا چه استغفارچه زيات وی**

> ۲۳۵۶ – [۳۳] ( ) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ بُسْرٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «طُوبَى لِمَنْ وَجَدَ فِي صَحِيفَتِهِ اسْتِغْفَارًا كَثِيرًا». [۳] رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَرَوَى النَّسَائِيُّ فِي "عَمَلِ يَوْمٍ وَلَيْلَةٍ".

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن بسر ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] خوش بختي ده د هغه سړي د پاره چې هغه خپل نامۀ اعمال کې ډير استغفار (يعني مقبول استغفار) بيامومي [۳] ابن ماجه او نسائي دا روايت په خپل کتاب عمل يوم وليلة کې نقل کړې دې

**حل اللغات:** ① صَحِيفَتِهِ: اعمال نامه.

**تسهيلات: قوله: طُوبَى:**

**د طوبى په مصداق کښې دوه اقوال:**

① د طوبى ځخه مراد خوش بختي ښه حالت ښه ژوند دې

② د طوبى نه مراد په جنت کښې د يوې مشهوره ونه ده

**د طُوبَى لِمَنْ استغفر کثيرا ځخه د عدول وجه:** امام طيبى فرمائی د ((طوبى لمن استغفر کثيرا)) ځخه نې عدول په دې وجه اوکړو چې دا د نيت داخلاص نه کنايه ده خکه چه ددې په حاصلولو کښې چې تر څو په ده کښې اخلاص نه وی نو تر هغې دا پورې دا عبث دې او دې به په خپله صحيفه کښې به هيڅ اونه مومي (مرقات ج۵ ص۱۴۶)

**داستغفار فضائل:** هم دغه شان په يو حديث مبارک کښې دی چه کوم کس ته دا خوښه وی چه د ده په صحيفه کښې ده ته خوشحالي ملاؤ شي نو ده له پکاردی چه استغفار دې لولی هم دغه شان د حضرت انس رضي الله عنه نه په بزار کښې مرفوع روايت دې چه کله فرشتې

[۱] اخرجه النسائی فی عمل اليوم والليلة وابن ماجة فی کتاب الأدب /باب الاستغفار (رقم-۳۸۱۸)

عمل بوزنه اوري نو د صحيفې په اول او اخر كښې استغفار كتلو سره الله تعالى فرمائي چه ما د خپل بنده تول گناهونه كوم چې د دې عمل نامه په دواړو كنارو كښې دي يعني اسغفار، د هغې په وجه معاف كړل «ايضا».

**[۲۲۵۷] د مؤمن دوه صفتونه**

۲۲۵۷-[۳٤] (¹)[۱] وَعَنْ عَائِشَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهَا - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ: [۲] "اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ الَّذِينَ إِذَا أَحْسَنُوا اسْتَبْشَرُوا، [۳] وَإِذَا أَسَاءُوا اسْتَغْفَرُوا". رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي: "الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ".

**ترجمه** [۱] بي بي عائشه رضي الله عنها فرمايي چې رسول الله ﷺ به دا دعا كوله [۲] اللَّهُمَّ اجْعَلْنِي مِنَ الَّذِينَ إِذَا أَحْسَنُوا اسْتَبْشَرُوا وَإِذَا أَسَاءُوا اسْتَغْفَرُوا اى الله! ما د هغه خلقو څخه كړي چې نيكي كوي، نو خوشحاله شي، [۳] او كه بدي كوي نو استغفار كوي. «ابن ماجه بيهقي»

**حل اللغات:** ① أَحْسَنُوا: أي: العِلْمَ وَالعَمَلَ: نيكى اوكړى «علم حاصل كړى اوعمل پرې اوكړى»
② اسْتَبْشَرُوا: أي: فَرِحُوا: خوشحاليږى، ③ أَسَاءُوا: قَصَّرُوا: بدى اوكړى «څه كمې ترې اوشي»

**تسهيلات:**

**قوله:** إِذَا أَحْسَنُوا اسْتَبْشَرُوا:

**په نيكئ باندې فخر نه كول:** په حديث كښې د رسول كريم صلي الله عليه و سلم د دعا حاصل دا دې چه ما د هغې جماعت نه كړه چه هغوى په خپله نيكئ باندې فخر نه كوى بلكه د خير توفيق ملاويدو باندې ستا شكر ادا كوى او په گناهونو باندې لاپرواهي نه كوى بلكه د گناه دوه توري نښې په استغفار سره وينځى او دارنگ د فخر خوشحالى بغاوت دې او د شكر خوشحالى عبادت دې

**[۲۲۵۸] فاسق سړي گناه ذمې برابرهم نه گڼري**

۲۲۵۸-[۳۵] (²)[۱] وَعَنِ الْحَارِثِ بْنِ سُوَيْدٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: حَدَّثَنَا عَبْدُ اللهِ بْنُ مَسْعُودٍ حَدِيثَيْنِ: [۲] أَحَدُهُمَا عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَالْآخَرُ عَنْ نَفْسِهِ. [۳] قَالَ: إِنَّ الْمُؤْمِنَ يَرَى ذُنُوبَهُ كَأَنَّهُ قَاعِدٌ تَحْتَ جَبَلٍ [٤] يَخَافُ أَنْ يَقَعَ عَلَيْهِ، [۵] وَإِنَّ الْفَاجِرَ يَرَى ذُنُوبَهُ كَذُبَابٍ مَرَّ عَلَى أَنْفِهِ [٦] فَقَالَ بِهِ هَكَذَا - أَيْ بِيَدِهِ - فَذَبَّهُ عَنْهُ، [۷] ثُمَّ قَالَ: «سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ: [۸] "لَلَّهُ أَفْرَحُ بِتَوْبَةِ عَبْدِهِ الْمُؤْمِنِ مِنْ رَجُلٍ [۹] نَزَلَ فِي أَرْضٍ دَوِيَّةٍ مَهْلَكَةٍ مَعَهُ رَاحِلَتُهُ [۱۰] عَلَيْهَا طَعَامُهُ وَشَرَابُهُ [۱۱] فَوَضَعَ رَأْسَهُ فَنَامَ نَوْمَةً،

**ترجمه** [۱] حارث بن سويد رحمه الله وايي چې حضرت عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه ماته دوه

---

¹) اخرجه البخاري في كتاب الدعوات/باب التوبة (رقم-٦٣٠٨) ومسلم في كتاب التوبة/باب في الحض على التوبة والفرح بها(رقم-۳ - (۲۷٤٤) واحمد في المسند ۳۸۳/۱

²) ، أخرجه مسلم كتاب التوبة / باب في الحض على التوبة والفرح.... رقم الحديث ۷۱

حديثونه بيان كړل.[۲] يو خو هغه د رسول الله ﷺ څخه نقل كړو. او دويم يې د خپل طرف څخه بيان كړو.[۳] نو هغه وفرمايل چې مومن خپل ګناهونه داسې ويني. لكه چې هغه د يو غره لاندې ناست وي.[۴] او خوف زده وي چې غر را باندې راپرېوته نه شي.[۵] او فاسق او فاجر خپل ګناهونه داسې ويني. لكه چې مچ د هغه په پوزه والوځي.[۶] او هغه طرف ته په خپل لاس سره اشاره وكړي. او هغه والوځي [حاصل دا چې مومن د ګناه څخه ډير ير يږي. او د هغه سره د دې خبرې ويره وي چې چيرته د دې ګناه په بدله كې ونه نيول شم ځكه چې د هغه په نظر كې وړوكي ګناه هم لوئ اهميت لري. ليكن فاجر د خپلو ګناهونو هيڅ پروانه كوي د هغه په نظر كې لويه ګناه هم څه اهميت نه لري].[۷] بيا حضرت عبد الله ﷺ د نبي كريم صلى الله عليه وسلم حديث بيانولو سره اوويل چې ما د رسول الله ﷺ څخه واوريدل [۸] چې الله ﷻ د خپل مومن بنده په توبې سره د هغه سړي څخه زيات خوشحاليږي [۹] چې (د خپل سفر په دوران كې) په يو داسې هولناك ميدان كې ځكته شي. چې د شين ګيا او د ونې نوم او نښان پورې هلته نه وي او د هغه سره چې كومه سورلى وي.[۱۰] په هغې د هغه د خوراك څښاك سامان وي [۱۱] بيا (هغه د آرام د پاره هلته په ځمكه باندې سر اينښودلو سره اوده شي

**حل اللغات**: ① ذُبَابٍ: مچ، ② -فَذَبَّهُ: أَيْ: دَفَعَ: اوني شړي. لرې ني كړي، ③ دَوِيَّة: صحرا. بې آب وګيا ځنګل. شاړه. ④ مَهْلَكَة: د ويرې او خطرې نه ډک ځاې

[۱] فَاسْتَيْقَظَ وَقَدْ ذَهَبَتْ رَاحِلَتُهُ،[۲] فَطَلَبَهَا حَتَّى إِذَا اشْتَدَّ عَلَيْهِ الْحَرُّ وَالْعَطَشُ أَوْ مَا شَاءَ اللَّهُ،[۳] قَالَ: أَرْجِعُ إِلَى مَكَانِي الَّذِي كُنْتُ فِيهِ،[۴] فَأَنَامُ حَتَّى أَمُوتَ،[۵] فَوَضَعَ رَأْسَهُ عَلَى سَاعِدِهِ لِيَمُوتَ،[۶] فَاسْتَيْقَظَ: فَإِذَا رَاحِلَتُهُ عِنْدَهُ، عَلَيْهَا زَادُهُ وَشَرَابُهُ،[۷] فَاللَّهُ أَشَدُّ فَرَحًا بِتَوْبَةِ الْعَبْدِ الْمُؤْمِنِ مِنْ هَذَا بِرَاحِلَتِهِ وَزَادِهِ» "[۸] رَوَى مُسْلِمٌ الْمَرْفُوعَ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- مِنْهُ فَحَسْبُ،[۹] وَرَوَى الْبُخَارِيُّ الْمَوْقُوفَ عَلَى ابْنِ مَسْعُودٍ أَيْضًا.

**ترجمه** [۱] او د بيداريدو څخه روسته ورته معلوم شي چې د سامان څخه ډكه سورلى ځني وركه شويده.[۲] نو د هغې په تلاش كې مشغول شي. تر دې چې د ګرمۍ تاو او د تندې د شدت څخه علاوه نور تكليف او پريشاني چې الله ﷻ ته منظوره وي په هغه غلبه اومومي.[۳] نو هغه دا وايي چې زه به خپل ځاى ته واپس لاړ شم چيرته چې زه (سر اينښودلو سره اوده شوې وم) هلته اوده شم.[۴] چې د خوب په حالت كې زما خاتمه اوشي. [۵] نو هغه په خپل مټ (بازو) لګولو سره د مرګ په انتظار كې اوده وي.[۶] چې د هغه سترګې خلاصې شي او اچانك هغه ويني چې د هغه سورلى د هغه مخې ته ولاړه وي. چې په هغې د هغه د خوراك څښاك سامان موجود وو.[۷] نو الله ﷻ د خپل مومن بنده د توبې په وجه د هغه سړي څخه زيات خوشحاليږي چې خپله سورلى او د خوراك څښاك سامان پيدا كيدو سره خوشحاليږي [۸] مسلم په دې دواړو روايتونو كې يواځې دا روايت نقل كړې دې چې كوم

ابن مسعود رضی الله عنه د نبی کریم صلی الله علیه وسلم څخه نقل کړې دي او بس، د حدیث د صحت د پاره دومره کافي ده [۹] او بخاري هغه روایت هم نقل کړې دي کوم چې ابن مسعود رضی الله عنه د خپل طرف څخه بیان کړی دی، حاصل دا چې حدیث مرفوع خو بخاري او مسلم دواړو نقل کړی دی لیکن حدیث موقوف یواځې بخاري نقل کړې دي.

**تسهیلات:**

**قوله تحت جبل:**

**د بهترین ګناهګار تعارف:** یعنی نیک سړې معمولی ګناه هم دومره درنه ګڼړی لکه چه په هغه باندې غرمات شوې راپریوتلې وی لیکن فاسق فاجر ګناه دومره بې وزن ګڼړی لکه چه د چا په پوزه باندې مچ کینی او هغه نی د لاس په اشاره سره والوزوی. دا قسم خلق په ګناه باندې کلك شی تردې چه د کفر دحده پورې خان اورسوی بهترین ګناهګار هغه دې چاته چه د ګناه احساس وی

**[۲۳۵۱] توبه کونکی ګناهګار د الله محبوب جوړیږی**

| ۲۳۵۱-[۳۶] ()[۱] وَعَنْ عَلِيٍّ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ الْمُؤْمِنَ الْمُفَتَّنَ التَّوَّابَ». |
|---|

**ترجمه** [۱] حضرت علي رضی الله عنه راوي دې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] الله جل جلاله هغه بنده مؤمن ډیر دوست لري، چې په ګناه کې اخته کیږي او ډیره زیاته توبه او کاږي

**حل اللغات:** ① الْمُفَتَّنَ: أي: الْمُبْتَلَى كَثِيرًا: هغه کس چه ډیر زیات امتحانات او فتنو کښې مبتلا وی. ② التَّوَّابَ: أي: كَثِيرَ الرُّجُوعِ إِلَى اللَّهِ تَعَالَى: هغه سړې چه ډیرې توبې اوباسی. ډیره زیاته رجوع کوی

**تسهیلات:**

**قوله: الْمُفَتَّنَ:** یعنی په امتحاناتو فتنو ګناهونو کښې ککړ سړې چه کله بیه په ژړا زارو سره توبه کوی نو الله تعالی هغه خپل محبوب جوړوی

**د مفتن درې درجات:** ملاعلی قاری رحمه الله د المفتن درې درجات لیکلی دی

① داده چه په ګناهونو کښې راګیر شوې وی

② دا چه په غفلتونو کښې پریوتلې وی

③ دا چه د مشاهده په مقابله کښې په پردو کښې پروت وی نو یا خو د ګناهونو بنکار دې یا د غفلتونو بنکار دې او په دغه درجه کښې چه کله مؤمن وی نو هغه خپل خان ګناهګار ګڼړی نو د تکبر او غرور نه محفوظ پاتې کیږی او د ناز په ځائی په نیاز کښې اوسیږی

(۱) اخرجه احمد في المسند: ۸۰/۱

**قوله** التَّوَّابُ د برزیات توبه کونکې. کله دا توبه او رجوع د سیئات نه طاعات طرف ته وی کله دا رجوع د غفلتونونه د ذکرونو طرف ته وی او کله رجوع د حجابات نه مشاهدات طرف ته وی په دریوارو صورتونو کښې دا سړې دالله تعالی محبوب جوړیږی دلته د ګڼ هونو تلقین نشته دې بلکه د توبې او استغفار ترغیب دې په خوانئ کښې د توبه یو لوئی شان وی

درجوانی توبه کردن شیوهٔ پیغمبران وقت پیری گرگ ظالم ہم شود پرہیزگار

**[۳۳۶۰] په توبه کولو سره هره ګناه وبخلې کیږی**

۲۳۶۰-[۳۷] ()[۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ -رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ- قَالَ: سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللّٰهِ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُوْلُ: "[۲] «مَا أُحِبُّ أَنَّ لِي الدُّنْيَا بِهٰذِهِ الْآيَةِ: [۳] ﴿يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا﴾ [الزمر: ۵۳] اَلْآيَةَ [۴] فَقَالَ رَجُلٌ: فَمَنْ أَشْرَكَ؟ [۵] فَسَكَتَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: "أَلَا وَمَنْ أَشْرَكَ" ثَلَاثَ مَرَّاتٍ».

**ترجمه** [۱] حضرت ثوبان ﷺ وايي چې ما واوريدل چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] زه د دې آيت په مقابله کې د خان د پاره د ټولې دنيا حاصليدل هم نه خوښوم. [۳] يَا عِبَادِيَ الَّذِينَ أَسْرَفُوا عَلَىٰ أَنفُسِهِمْ لَا تَقْنَطُوا الْآيَةَ [۴] يو سړي پوښتنه وکړه چې کوم سړي شرک اوکړی؟ آيا هغه هم د دې آيت د بشارت مستحق دې؟ [۵] رسول الله ﷺ د څه وخت د پاره خاموشي اختيار کړه اچې د الله ﷻ د طرف څخه وحي راتلو څخه روسته يا غور او فکر کولو سره سم جواب ورکړي. بيا د وحي راتلو څخه روسته يا پخپله د خپل اجتهاد څخه کار اخستو سره نبي کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې پوهه شئ کوم سړي چې شرک اوکړی او په خپل ژوند کې د هغې څخه توبه اوکاږي او بيا د هغه توبه قبوله هم شي نو هغه هم د دې آيت د بشارت مستحق دې، دا خبره نبي کريم صلی الله عليه وسلم درې خله وفرمايله

**حل اللغات:** ① أَسْرَفُوا: أَيْ بِالْمَعَاصِي: تاسو زياتې کړې دې (په وجه دګناهونو او نافرمانۍ کولو. ② لَا تَقْنَطُوا: أَيْ لَا تَيْأَسُوا: مه نا اُميده کيږئ

**تسهيلات:**

**قوله:** أَلَا وَمَنْ أَشْرَكَ:

**د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د لږ شان خاموشئ نه پس جواب ورکول:** حرف تنبيه سره حضورپاك د لږ شان خاموشئ نه پس جواب کښې اوفرمائيل که د شرک په شان لوئی ګناه نه څوك توبه اوکړی نوشرك به هم معاف شی لکه چه دې آيت يوانسان نااميده پرينخودو هم دغه وجه ده چه دې آيت ته ارجى الآيات فى القرآن ونيلې شوې دې حضرت علی ﷺ فرمائی

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۵/۲۷۵

اې صاحب الذنب لاتقنطن فان الاله رؤف رؤف
ولا ترحلن بلا عدة فان الطريق مخوف مخوف
نومید هم مباش که رندان باده نوش ناګاه بیک خروش بمنزل رسیده اند

**په حدیث کښې یو اشکال:** ملاعلي قاري رحمه الله دلته اشکال کړې دې چه د مشرك مغفرت څنګه کیدې شي څکه چه د قرآن آیت ( إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ أَنْ يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذَٰلِكَ لِمَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُشْرِكْ بِاللَّهِ فَقَدِ افْتَرَىٰ إِثْمًا عَظِيمًا ) اعلان کوی چه د مشرك مغفرت به نه کیږی؟

**د اشکال درې جوابونه :**

① یوجواب دادې که مشرك هم توبه اوکړی نوهغه له هم د الله تعالی د رحمت نه نا امیده کیدل نه دی پکار بیا ملاعلی علی قاری رحمه الله داجواب رد کړې دې چه دا خویوهسې سوال جواب دې د دې صحابه کرامو ته ضرورت نه شو را تللې معامله څه بله ده.

② بیا علامه طیبی رحمه الله جواب ورکړې دې اولیکلی دی چه نا امیدی منع ده ملاعلی قاری رحمه الله داجواب هم رد کړې دې

③ په جواب کښې داسې وئیل ممکن دی چه د سائل په سوال کښې "فمن اشرك؟" نه مراد هغه وی چه هغه وخت په شرك باندې موجود وو د هغوی باره کښې صحابی پوښتنه اوکړه چه هغه دې هم نه نا امیده کیږی؟ حضور پاك په جواب کښې د ابهام نه کار واخستو اوونی فرمائیل چه یادساتئی چه کوم خلق هغه وخت په شرك باندې موجود وی د هغوی معامله تر اوسه پورې مبهم ده یاخو به هغه خلق د توبې په ذریعه معاف کړې شی اوکه توبه نی اونه کړه نو په عذاب کښې به راګیر کړې شی غرض دا چه توبه د هغه مشرکانو د پاره هم فائده ورکوی خو دا معلومه نه ده چه هغه خلق به توبه کوی اوکه نه لهذا د هغوی معامله مبهم ده

**[۲۳٦۱] د مشرك څخه علاوه مسلمان ته بخنه کیدل**

۲۳۳۰-[۳۸] ( )[۱]وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ-رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ-قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ-صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-:[۲]" «إِنَّ اللَّهَ تَعَالَى لَيَغْفِرُ لِعَبْدِهِ مَا لَمْ يَقَعِ الْحِجَابُ ".[۳]قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا الْحِجَابُ؟[۴]قَالَ: " أَنْ تَمُوتَ النَّفْسُ وَهِيَ مُشْرِكَةٌ» ".[۵]رَوَى الْأَحَادِيثَ الثَّلَاثَةَ أَحْمَدُ، وَرَوَى الْبَيْهَقِيُّ الْأَخِيرَ فِي كِتَابِ: " الْبَعْثُ وَالنُّشُورُ ".

**ترجمه** [۱] ابوذر رضی الله عنه راوي دي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] الله تعالی د خپل بنده (د ګناهونو څخه څه چې غواړي هغه بخښي، تر څو پورې چې د بنده او د الله په مينځ کې پرده حائل نه شي.[۳] صحابه کرامو رضی الله عنهم عرض وکړو چې يا رسول الله صلی الله علیه وسلم پرده څه ده؟ [۴] نبی کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل دا چې سړي شرك کوي (يعني مشرك مړ شي)[۵] مذکوره درې واړه روايتونه امام احمد رحمه الله نقل کړی دی، او دا آخري روايت امام بيهقي

( ) اخرجه احمد في المسند : ۵/۱۷۴

په کتاب البعث والنشور کې نقل کړې دي

**حل اللغات:** ① لَمْ يَقَعِ الحِجَابُ: چه پرده حائل نه شي، د پردې نه مراد شرک دی.

**[۲۳٦۲] دغیر مشرک دپاره د مغفرت وعده**

۲۳۳–[۳۹] (۱) ① وَعَنْهُ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَنْ لَقِيَ اللهَ لَا يَعْدِلُ بِهِ شَيْئًا فِي الدُّنْيَا، ③ ثُمَّ كَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ جِبَالٍ ذُنُوبٌ غَفَرَ اللهُ لَهُ». رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ: "الْبَعْثُ وَالنُّشُورُ".

**ترجمه** ① ابوذر رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم سړې چې د الله ﷻ سره په داسې حال کې ملاقات وکړې (يعني په داسې حال کې مړ شي) چې هغه په دنيا کې د الله ﷻ په شان هيڅوک نه وی بللي (يعني په شرک کې مبتلا نه وي) ③ نو که د مرگ څخه روسته دهغه د پاسه د غرونو په مثل هم گناهونه وي، نو الله ﷻ که وغواړي، د هغه ټول گناهونه به وبخښي (بيهقي)

**حل اللغات:** ① لَقِيَ اللهَ: أَيْ: مَنْ مَاتَ: د الله سره ملاقات اوکړي يعني مړ شي ② لَا يَعْدِلُ: أَيْ: لَا يُسَاوِي: چه برابر کړې ئې نه وی يعني شرک ئې ورسره نه وی کړې

**تسهيلات: قوله:** لَا يَعْدِلُ:

دَعدل (برابری) نه دلته شرک مراد دی لکه چه قرآن کښې ايت دی ﴿ بَلِ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ﴾ ای يشركون، مشرکان هم خپل معبود الله تعالى سره برابر راولی اودرَه وی

**[۲۳٦۳] چاچه توبه اوکړه لکه چه هغه گناه نه ده کړې**

۲۳۳–[٤۰] (۲) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ». ③ رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي: "شُعَبِ الْإِيمَانِ" ④ وَقَالَ: تَفَرَّدَ بِهِ النَّهْرَانِيُّ، وَهُوَ مَجْهُولٌ. ⑤ وَفِي "شَرْحِ السُّنَّةِ" رَوَى عَنْهُ مَوْقُوفًا. ⑥ قَالَ: "النَّدَمُ تَوْبَةٌ، وَالتَّائِبُ كَمَنْ لَا ذَنْبَ لَهُ".

**ترجمه** ① عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② د گناهونو څخه (صحيح او پخه) توبه کونکی د هغه سړي په شان دی چې هغه گناه نه وي کړې. ③ دا روايت ابن ماجه نقل کړې دې او بيهقي په شعب الايمان کښ نقل کړې دې ④ بيهقي ويلي دی چې دا روايت يواځې نهرواني نقل کړی دی، او هغه مجهول دې. ⑤ او بغوي رحمه الله په شرح السنه کې د عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه دا روايت موقوف نقل کړې دې. ⑥ چې هغه اوويل (په گناهونو باندې د شرمندگئ او، د پښيمانئ کولو مطلب توبه ده. او توبه کونکې د هغه سړي په شان دې چې هغه گناه نه وي کړې

(۱) البعث والنشور.... رقم الحديث ۳۰

(۲) اخرجه ابن ماجة في كتاب الزهد/باب ذكر التوبة (رقم-٤۲۵۰)

**تسهيلات**

**قوله**: التَّائِبُ مِنَ الذَّنْبِ:

**د امت محمدي صلى الله عليه وسلم يو لوئي فضيلت**: دا ددې امت لوئي فضيلت دې چه په ژبه سره توبه کول او د زړه نه د ګناه شوق ويستلوسره سرې داسې پاکيږي لکه چه هغه هيڅ ګناه نه وي کړې بلکه د يهودو اونصارى د توبه دپاره به ډيرزيات سخت شرطونه وو ددې امت دپاره صرف مضبوط عزم او د نيت د اخلاص ضرورت دې. دې نه بغيرتوبه داسې ده لکه چه شاعر وائي

سبحه بر کف توبه بر لب دل پُر از ذوقِ گناه معصیت را خنده می آید بر استغفار ما

# [۳] بَابُ (سِعَةِ رَحْمَةِ اللهِ)

**دالله تعالى د وسيع رحمت بيان**

**خلاصة الباب:**

**فيه ستة عشر حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① سعة رحمة الله : ۱، ۲، ۳، ۵، ۶، ۷، ۸، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۶۔

② الخشية من الله تعالى: ۴، ۷، ۸۔

③ مظاهر سعة رحمة الله تعالى: ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲۔

④ سبب حصول رحمة الله تعالى: ۱۵۔

قال الله تعالى ﴿ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلَى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ﴾ [سورت انعام: ۵۴. وقال الله تعالى ﴿ إِنَّ رَبَّكَ وَاسِعُ الْمَغْفِرَةِ ﴾ [سورت النجم: ۳۲.

د مشكوة شريف په اكثر نسخوكښې دلته صرف "باب" دې څه عنوان نشته دې. بعض شارحينو دغه پورتنې عنوان لګولې دې کوم چه ابواب الاستغفار سره ډيرمناسب دې

# اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۳۳] دالله تعالى رحمت دغضب په غضب باندې غالب دې**

۲۳۳-[۱] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «لَمَّا قَضَى اللهُ الْخَلْقَ كَتَبَ كِتَابًا ③ فَهُوَ عِنْدَهُ فَوْقَ عَرْشِهِ: ④ إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي. ⑤ وَفِي رِوَايَةٍ: "غَلَبَتْ غَضَبِي» ". مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

[۱] اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: ﴿ويحذركم الله نفسه﴾ [آل عمران: ۲۸](رقم-۷۴۰۴) ومسلم في كتاب التوبة/باب في سعة رحمة الله تعالى وأنها سبقت غضبه (رقم-۱۴ - (۲۷۵۱) وابن ماجة في كتاب الزهد/باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-۴۲۹۵) واحمد في المسند: ۴۳۳/۲

**ترجمه** [۱] ابو هريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] الله تعالى جل جلاله چې د ميثاق په ورځ د مخلوقاتو د پيدا كولو اراده وفرمايله ،يا دا چې مخلوقات پيدا كول يې شروع كړل نو يو كتاب يې وليكلو ،يعني فرشتو ته يې د هغه كتاب د ليكلو حكم وركړو . يا قلم ته يې د ليكلو حكم وركړو [۳] هغه كتاب د حق تعالى جل جلاله سره د عرش دپاسه دى .[۴] اپه دې كتاب كې ليكلي دي چې! بلاشبه زما رحمت زما په غضب سبقت وړې دې .[۵] په يو بل روايت كې دا الفاظ دي چې زما رحمت زما په غضب غالب دى .بخاري مسلم .

**حل اللغات:** ① قَضَى اللهُ: أي حِينَ خَلَقَ الْخَلْقَ يَوْمَ الْمِيثَاقِ: الله تعالى جل جلاله چې د ميثاق په ورځ د مخلوقاتو د پيدا كولو اراده وفرمائيله. يا دا چې مخلوقات پيدا كول يې شروع كړل ② كَتَبَ كِتَابًا: أَيْ: فِي اللَّوْحِ الْمَحْفُوظِ: يو كتاب يعنى لوح محفوظ كښې اوليكل ،يعنى فرشتو يا قلم ته ني دليكلو حكم وركړو ③ سَبَقَتْ: أَيْ غَلَبَتْ: وړاندې شوې دې يعنى غالب شوې دې زما رحمت په غضب زما باندې

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنَّ رَحْمَتِي سَبَقَتْ غَضَبِي...الخ:

**دالله تعالى د رحمت د غالب كيدو مطلب:** دَ الله تعالى رحمت ټول كائنات ته شامل دې كه چرې دَ الله تعالى رحمت دَ كائنات په روح كښې داخل نه وې نو دا نن چه كوم څيزونه فائده او نفع وركونكي ښكارى دا ټول به دَ انسان دپاره زهر قاتل جوړيدل چنانچه تركومې پورې د الله تعالى دَ رحمت نوم باقى پاتې وى قيامت به نه راځى ليكن چه كله دَ الله تعالى رحمت دَ دنيا نه اوچت شى اونه كعبه باقى پاتې شى اونه دَ قرآن حروف باقى پاتې شى اونه په دنيا كښې الله الله كونكې انسان باقى پاتې شى نو هغه وخت به بغيرد تاخيرنه دَ كائنات وجود ختم شى

دَ رحمان رحمت عامه دَ رحيم رحمت خاصه باندې غالب دې اودَ رب العالمين ربوبيت عامه دَ هغه دَ ربوبيت خاصه باندې زيات عام دې په كائنات كښې دَ سخت نه سخت ځناور ازمرې دې ليكن دَ ازمرې په زړه كښې چه كوم رحمت دَ خپلو بچو سره دې هغه د ليدو قابل دې حيرانتيا ده دَمار په شان زهرو والا ځناور ته اوگورئى اودَ سپى په شان خسيس ځناور ته اوگورئى هغه په خپلو بچو باندې څومره شفيق اومهربان دى پيشوته لږ شان اوگورئى چه هغه خپل واړه بچى دَ دښمن نه دَ بچ كولودپاره دَ حفاظت په غرض په خلوكښې څنگه اوچتوى اوگرځى اوهم دَ دغه رحمت دَ غلبې اثر دې چه الله تعالى اوبه خوږې يخې جوړې كړې ميوې ئى مزيدارې او ښكلې جوړې كړې په گلونوكښې خوشبوئى كيخودله اودَ دنيا ټول نعمتونه دَانسان اوځناور كافر اومسلمان ټولو دپاره عام كړل اوهم دَ دغه رحمت اثر دې چه دَ جنت دروازې او طبقات دَ دوزخ دَ طبقات نه زياتې دى

**په گناهگارو باندې د الله تعالى د رحمت اثر:** لږ شان نظر اوكړئى دَ انسان خطاگانوته په

کښلو سره د طاقت نه باوجود الله تعالى فورى توګه باندې راګيرول نه کوى دا هم د دغه رحمت اثر دې بيا د رحمت دغه عظيم پانړه الله تعالى خپل ځان سره د عرش دپاسه کيخودې دا دې دپاره چه د رحمت دا سمندر هروخت مخې ته وى بيا د مزې خبره داده چه د رحمت دا ټول مظاهره صرف د يو رحمت حصه ده د يوکم سل رحمتونو ظهور به په قيامت کښې وى

**[۲۳۶۵] د الله تعالى د رحمت وسعت**

۲۳۶۵ - [۲] (¹) ①وَعَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِنَّ لِلَّهِ مِائَةَ رَحْمَةٍ ③ أَنْزَلَ مِنْهَا رَحْمَةً وَاحِدَةً بَيْنَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ وَالْبَهَائِمِ وَالْهَوَامِّ ④ فَبِهَا يَتَعَاطَفُونَ وَبِهَا يَتَرَاحَمُونَ ⑤ وَبِهَا تَعْطِفُ الْوَحْشُ عَلَى وَلَدِهَا ⑥ وَأَخَّرَ اللَّهُ تِسْعًا وَتِسْعِينَ رَحْمَةً يَرْحَمُ بِهَا عِبَادَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل ② د الله تعالى جل جلاله سل رحمتونه دي. ③ په هغې کې يو رحمت خو يې په جناتو، انسانو، څاروو او زهريلا ځناورو نازل کړې دې. ④ هم په دې وجه مخلوق په خپل منځ کښې يوباندې مهرباني کول اورحم کوى ⑤ او د دې رحمت په سبب وحشي ځناور د خپلو بچيانو سره محبت کوي ⑥ او يو کم سل رحمتونه يې پريښې دي چې د هغې په ذريعه به هغه د قيامت په ورځ په خپلو مؤمنو بنده ګنو رحم کوي (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ① الْبَهَائِمِ: څاروى، ② الْهَوَامِّ: د هَامَّة جمع ده، وَهِيَ كُلُّ ذَاتِ سُمٍّ: هر يو زهريله ځناور ته وائى ③ يَتَعَاطَفُونَ: أَيْ يَتَمَايَلُونَ: محبت کوى د يوبل سره ④ تَعْطِفُ: أَيْ تُشْفِقُ: شفقت او مهربانى کوى ⑤ الْوَحْشُ: وحشى شلونکى، ماتونکى ځناور

**تسهيلات:**

**قوله: أَنَّ لِلَّهِ مِائَةَ رَحْمَةٍ**

**ايمان د خوف او رجا په مينځ کښې:** بنده دې د بين الخوف و الرجاء وى يعنى د الله د رحمت اميد دې ساتى او د الله د عذاب نه دې هم ويريږى د حضرت عمر رضي نه روايت دې چه د قيامت په ورځ که دا آواز اوشى چه جنت کښې به يو کس داخليږى نو اميد لرم چه هغه به زه يم او که اعلان اوشى چه جهنم ته به يو کس ځي نوويريږم چې هغه به هم زه يم

**د ويرې او اميد مناسب معلوله:** د دې وجې بعضو ونيلى دى چې په ژوند کښې د خوف ډير غالبيدلو په وجه عبادت ډير کول پکار دى او د مرګ په وخت کښې د الله د فضل او کرم او

---

(¹) اخرجه البخارى فى كتاب الأدب/باب: جعل الله الرحمة مائة جزء (رقم-۶۰۰۰) مسلم فى كتاب التوبة/باب فى سعة رحمة الله تعالى وأنها سبقت غضبه (رقم-۱۴ - (۱۷ - (۲۷۵۲) والترمذى فى كتاب الدعوات باب باب فى فضل التوبة والاستغفار وما ذكر من رحمة الله بعباده رقم ۳۵۴۱) وابن ماجة فى كتاب الزهد/ باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-۴۲۹۳) واحمد فى المسند: ۲/۵۱۵

د مغفرت امید لرل پکار دی په دې حدیث کښې د ۹۹ عدد د تحدید د پاره نه دې بلکه د زیادت مراد دې یا دا مقصد چه د یو قسم د رحمت ظهور خو په دنیا کښې کیږی او ۹۹ قسم رحمتونو ظهور به په آخرت کښې کیږی (مرقات ج۵ ص ۱۵۴)

۲۳۶۶ـ( )[۱] وَفِي رِوَايَةٍ لِمُسْلِمٍ عَنْ سَلْمَانَ نَحْوُهُ، [۲] وَفِي آخِرِهِ قَالَ: فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الْقِيَامَةِ أَكْمَلَهَا بِهَذِهِ الرَّحْمَةِ.

**ترجمه** [۱] او مسلم په یو بل روایت کې د حضرت سلمان رضي الله عنه څخه د دې په مثل نقل کړی دی، [۲] د هغې په آخر کې دا الفاظ هم دي چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل هر کله چې د قیامت ورځ شي نو الله تعالیٰ جل جلاله به دا یو کم سل رحمتونه په هغه رحمت سره (چې په دنیا کې نازل شوي دي) پوره کړي

**حل اللغات:** ① أَكْمَلَهَا: أي: أتمّ: یعنی پوره به کړی دغه یوکم سل رحمتونه په دې یو رحمت سره پوره کړی کوم ئې چه دنیا ته رالیږلي او تقسیم کړي دي

**[۲۳۶۷] دالله تعالی د رحمت لیدلو نتیجه**

۲۳۶۷ـ[۳] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[۲] «لَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ مَا عِنْدَ اللهِ مِنَ الْعُقُوبَةِ [۳] مَا طَمِعَ بِجَنَّتِهِ أَحَدٌ [۴] وَلَوْ يَعْلَمُ الْكَافِرُ مَا عِنْدَ اللهِ مِنَ الرَّحْمَةِ [۵] مَا قَنَطَ مِنْ جَنَّتِهِ أَحَدٌ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضي الله عنه وایي چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل [۲] که مومن په دې پوهه شي چې د الله جل جلاله سره څومره عذاب دی، [۳] نو بیا به یو سړې د هغه د جنت امید هم ونه ساتي (یعني د عذاب زیاتوالی به یې د جنت څخه نا امیده کړي) [۴] او که کافر په دې پوهه شي چې د الله تعالیٰ جل جلاله رحمت څومره دې، [۵] نو بیا به هیڅوک د هغه د جنت څخه نا امیده نشي (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① الْعُقُوبَة: عذابونه. ② مَا طَمِعَ: هیڅ طمع او امید به اونه لری مسلمان. ③ مَا قَنَطَ: ناأمیده به نه شي.

**تسهیلات:**

**قوله: لَوْ يَعْلَمُ الْمُؤْمِنُ مَا عِنْدَ اللهِ مِنَ الْعُقُوبَةِ**

**د ویرې او امید په مینځ کښې د اوسیدو مطلب:** ددې حدیث منشاء په حقیقت کښې د الله تعالی رحمت اودهغه د عذاب زیاتوالي ښکاره کول دی چه مؤمن دهغه په رحمت باندې اعتماد کولو سره نیک عمل پرې نږدی، او دهغه دعذاب نه بالکل بې ویرې کیدوسره زړه

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب التوبة/باب فی سعة رحمة الله تعالی وأنها سبقت غضبه (رقم-۲۱ - (۲۷۵۳)
[۲] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب الرجاء مع الخوف (رقم-۶۴۶۹) ومسلم فی کتاب التوبة/باب فی سعة رحمة الله تعالی وأنها سبقت غضبه (رقم-۲۳ - (۲۷۵۵) واحمد فی المسند: ۳۳۴/۲

وږ به شي. او که ډېر د هغه د رحمت نه نا اميدي اختيار نه کړي او توبه کول پرې نږدي

**په اميد او رجا کښې د حضرت عمر رضي الله عنه قول:** د حديث حاصل دا دې چه بنده له پکار دي چه هغه د خوف او رجا. يعني د ويرې او اميد په مينځ کښې اوسيږي يعني د الله تعالى د رحمت اميد هم اوساتي او د هغه د عذاب نه دې ويريږي هم. د حضرت عمر رضي الله عنه نه دې کښې نقل دي چه هغوي فرمائيلي دي چه که چرې د قيامت په ورځ دا اعلان اوکړې شي چه يو سړې به جنت ته داخليږي نو زه اميد لرم چه هغه سړې به زه يم. او دغه شان که د اعلان اوکړې شي چه يو سړې به دوزخ ته داخلولې شي نو زه به گمان کوم چه هغه سړې به زه يم

**[۲۳۶۸] په معمولي عمل سره د جنت او جهنم نزديکت**

۲۳۶۸-[۴] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -" [۲] «الْجَنَّةُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ مِنْ شِرَاكِ نَعْلِهِ، [۳] وَالنَّارُ مِثْلُ ذَلِكَ» " رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] ابن مسعود رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] جنت په تاسو کښې د هر سړي د څپلې د تسمې برابر هغه ته نزدې دې. [۳] او دوزخ هم دغه شان دې بخاري مسلم

**حل اللغات** ① شِرَاكِ: أَحَدُ سُيُورِ النَّعْلِ: د پيزار تسمه. وندنې. مزې ② نَعْلِهِ: نعل پيزار ته وائي

**تسهيلات:**

**قوله: الْجَنَّةُ أَقْرَبُ إِلَى أَحَدِكُمْ:**

**د جنت او جنهم د عمل په اعتبار سره نزديکت:** بنده که په دنيا کښې په نيک اعمال کولو کښې ډېر کوشش اوکړي نو د الله د طرف نه د جنت چه کومه وعده کړې شوې ده د هغې مستحق به اوگرځي او که بد اعمالو کښې لگيا وي نو د الله د طرف نه چې د وعيد مستحق گرځي

**[۲۳۶۹] د الله تعالى مهرباني**

۲۳۶۹-[۵] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -" [۲] «قَالَ رَجُلٌ لَمْ يَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ لِأَهْلِهِ، [۳] وَفِي رِوَايَةٍ أَسْرَفَ رَجُلٌ عَلَى نَفْسِهِ [۴] فَلَمَّا حَضَرَهُ الْمَوْتُ أَوْصَى بَنِيهِ [۵] إِذَا مَاتَ فَحَرِّقُوهُ ثُمَّ اذْرُوا نِصْفَهُ فِي الْبَرِّ، وَنِصْفَهُ فِي الْبَحْرِ، [۶] فَوَاللهِ لَئِنْ قَدَرَ اللهُ عَلَيْهِ لَيُعَذِّبَنَّهُ عَذَابًا لَا يُعَذِّبُهُ أَحَدًا مِنَ الْعَالَمِينَ [۷] فَلَمَّا مَاتَ فَعَلُوا مَا أَمَرَهُمْ، [۸] فَأَمَرَ اللهُ الْبَحْرَ فَجَمَعَ مَا فِيهِ، [۹] وَأَمَرَ الْبَرَّ فَجَمَعَ مَا فِيهِ، [۱۰] ثُمَّ قَالَ لَهُ لِمَ فَعَلْتَ هَذَا؟ [۱۱] قَالَ مِنْ خَشْيَتِكَ يَا رَبِّ وَأَنْتَ أَعْلَمُ، فَغَفَرَ لَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل [۲] يو سړي وو هغه هيڅ کله

---

(۱) اخرجه البخاري في كتاب الرقاق /باب: «الجنة أقرب إلى أحدكم من شراك نعله. والنار مثل ذلك» (رقم-۶۴۸۸)

(۲) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد.... رقم الحديث ۷۵۰۶ ومسلم في كتاب التوبة / باب في سعة الله رحمة الله تعالى... رقم الحديث ۷۱۵۶

نيکي نه وه کړي، [۲] او په يوه روايت کې دا دي چې هغه په خپل نفس باندې زياتې کړې وو، ايعنی ډير زيات گناهونه يې کړي ووا، [۳] کوم وخت چې د هغه د مرگ وخت نزدې شو، نو هغه خپلو خامنو ته وصيت اوکړو، [۵] چې کوم وخت زه مړ شم، نو ما وسوزوئ. [او بيا] نيمه ايره په ځنګل کې والوځوئ او نيمه ايره په درياب کې واچوئ، [۶] ځکه قسم په خداي که الله تعالی ﷻ د هغه ځخه مواخذه وکړي، او په حساب کې سختي وکړي نو هغه ته به داسې عذاب ورکړي چې تر ننه پورې به يې د عالم په خلقو کې هيچا ته نه وي ورکړې، [۷] هر کله چې هغه سړې مړ شو نو خامنو د هغه د وصيت مطابق عمل اوکړو، هغه يې وسوزولو، او نيمه ايره يې په ځنګل کې والوځوله، او نيمه يې په درياب کې وبهيوله، [۸] الله تعالی ﷻ درياب ته د هغه ايرو جمع کولو حکم اوکړو، نو هغه ايرې يې جمع کړې، [۹] او ځنګل ته يې حکم اوکړو هغه هم د هغه ايرې جمع کړې، [هر کله چې درياب او ځنګل هغه ايرې راجمع کړې، نو د هغه سړي اجزاء درست کولو سره د الله تعالی ﷻ په مخکې پيش کړل شوا، [۱۰] الله تعالی ﷻ ځني پوښتنه وکړه چې تا داسې ولې کړي وو؟ [۱۱] هغه جواب ورکړو چې اې پروردگاره! ستا د خوف ځخه او حقيقت حال خو تا ته معلوم دي. د دې په اوريدو سره، الله تعالی ﷻ هغه وبخښو. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① أَسْرَفَ: أَيْ: بَالَغَ: زياتې نې کړي دي (يعنی گناه نې کړي ده)، ② اذْرُوا: دا د ذَرْيٌ نه دي، په هوا کښې الوځولو ته وائی. أَيْ: فَرِّقُوا: اونې شيندئ يعنی وائې لوځوئ. ③ الْبَرِّ: اوچه يعنی صحرا

**تسهيلات:**

**قوله:** قَالَ رَجُلٌ لَمْ يَعْمَلْ خَيْرًا قَطُّ لِأَهْلِهِ..الخ:

**د مذکوره رجل په عقيده باندې د قياس کولو ممانعت:** دَ دغه سړی خيال وو چه عذاب صرف هم هغه ته کيږی څوك چه ځښولې شی چنانچه دَخپلې بدعملئ نه دهشت زده کيدو او ويريدو دَ وجې هغه غوښتل چه دَهغه وجود ختم شی دې کافر نه وو صرف بې حده گناهگار وو هغه وصيت اوکړو چه ما اوسيزئی او بيا هغه ايره په سمندر کښې لاهوکړئی او په صحرا گانو کښې ئی خوره کړئی نن صبا هندوان خلق په دې باندې عمل کوی ليکن هندوانو له په دې باندې پوهيدل پکاردی چه دا سړې هندو کافر نه وو بلکه يو گناهگار سياه کار مسلمان وو بيا دَ الله تعالی دَ ويرې نه دَهغه زړه ډك وو په دې باندې خپل ځان قياس کول حماقت دي

**قوله:** لَئِنْ قَدَرَ اللهُ عَلَيْهِ:

**اشکال:** دادې چه دې سړی داسې حرکت کولوسره داسې جمله هم اووئيله دکومې نه چه اندازه کيږی چه هغه دَ الله تعالی په قدرت کښې شك کولو داخوکفر دې؟

**د اشکال جواب:** دَدې جواب دادې چه "لئن قدرالله" مطلب دادې چه هغه دا وئيل غواړی چه که

جزئي ... يعني د هغه ژړا کړو وکړه او د الله تعالى په کرفت کښې راغلو نو د هغه خير ... ښه نه دي [illegible] هيڅ اشکال ښه نه دي ليکن که د غه سړي د الله تعالى په قدرت کښې شک کړي وي نو د دغه اشکال جواب دا دي چه دا سړي صرف د الله تعالى د ويرې د وجې نه مغلوب الحال او مغلوب العقل جوړ شوي وو په داسې صورت کښې دا خبرې د مواخذې قابل نه دي د بولونو نيوتوب وو د کوم چه قاعدې او ضابطې سره هيڅ تعلق نه وو

## [۱۳] د الله تعالى رحمت د مور د شفقت نه زيات دې

[۲۳۳۹] (۱) وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ: «قَدِمَ عَلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - سَبْيٌ، (۲) فَإِذَا امْرَأَةٌ مِنَ السَّبْيِ قَدْ تَحَلَّبَ ثَدْيُهَا تَسْعَى، (۳) إِذْ وَجَدَتْ صَبِيًّا فِي السَّبْيِ، (۴) أَخَذَتْهُ فَأَلْصَقَتْهُ بِبَطْنِهَا وَأَرْضَعَتْهُ، (۵) فَقَالَ لَنَا النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَتُرَوْنَ هَذِهِ طَارِحَةً وَلَدَهَا فِي النَّارِ؟ (۶) فَقُلْنَا: لَا، وَهِيَ تَقْدِرُ عَلَى أَنْ لَا تَطْرَحَهُ، (۷) فَقَالَ: لَلّٰهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ هَذِهِ بِوَلَدِهَا». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** (۱) حضرت عمر بن خطاب ﷺ راوي دي چې يو ځل رسول الله ﷺ ته څه قيديان راوستل شو، (۲) چې په هغې کې يوه ښځه هم وه، او د پيو د کثرت په وجه د هغې تي بهيدلو ځکه چې د هغې وړوکي د هغې سره نه وو چې د هغې شيدې يې يې څکلي وي هغه د خپلو شيدو څکلو د خاطره د يو وړوکي په تلاش کې اخوا ديخوا ځغليدله (۳) هغې چې په قيديانو کې يو وړوکي اوموندلو (۴) نو د خپل وړوکي په محبت کې د هغه اخستو سره به يې د خپلې سينې سره لګولو، او شيدې به يې ورکولو. (۵) د دې په ليدو سره رسول الله ﷺ مونږ ته وفرمايل چې ستاسو په خيال دا ښځه به خپل وړوکي په اور کې وغورځوي؟ يعني هر کله چې هغه د غير وړوکي سره دومره محبت کوي. نو آيا د دې خبرې خيال کيدی شي. چې دا به خپل وړوکي په اور کې وغورځوي؟ (۶) مونږ اوويل چې هيڅ کله به يې ونه غورځوي. په شرط د دې چې په نه غورځولو باندې قدرت لري، (۷) نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل دا ښځه چې څومره د خپل وړوکي سره مينه او محبت کوي الله تعالى ﷻ په خپل مؤمن بنده ګانو باندې د دې ښځه ډير زيات رحم او محبت کونکي دی (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ① سَبْيٌ: قيدي، کوم سړي يا ښځه چه په جهاد کښې قيد کښې راشي هغې ته سبي وائي. ② تَحَلَّبَ: د باب تَفَعُّل نه، أَيْ سَالَ. د حلب معنى ده پي لوشل خو دلته تري بهيدل مراد دی ③ تَسْعَى: أَيْ تَعْدُو منډې وهلې. ځغليده راځغليده ④ فَأَلْصَقَتْهُ: نو خپلې سينې سره ئې اولګولو هغه ماشوم ⑤ أَرْضَعَتْهُ: پي شيدې ئې ورته ورکول ⑥ طَارِحَةً: أَيْ مُلْقِيَةً: اوبه غورځوی

---

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الأدب باب رحمة الولد وتقبيله ومعانقته (رقم-۵۹۹۹) ومسلم فی کتاب التوبة باب فی سعة رحمة الله تعالى وأنها سبقت غضبه (رقم-۲۲ - (۲۷۵٤)

**تسهیلات:**

**قوله: تَحَلَّبَ:**

**نبی علیه السلام او بهترین معلم:** مطلب داچه دَ پیینود کثرت دَ وجې نه اودَ خپل بچې دَ جدا کیدودَ وجې نه پیئې په سینه کښې راتلوسره بهیدل په دې وجه به هغې زنانه دَ هرچا بچې خپلې سینې سره لګولو دَ دې دا عظیم شفقت او محبت، رحم او ترحم ته کتلوسره نبی کریم ﷺ اوفرمائیل الله تعالی په خپلو مؤمنانو بندګانو باندې دَدې نه زیات مهربان دې

[۲۳۷۱]دَ میانه روی اختیارولو حکم

۲۳۷۱-[۷] ()① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "② «لَنْ يُنْجِيَ أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ، ③ قَالُوا: وَلَا أَنْتَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ، ④ قَالَ: وَلَا أَنَا، إِلَّا أَنْ يَتَغَمَّدَنِي اللّٰهُ مِنْهُ بِرَحْمَتِهِ ⑤ فَسَدِّدُوا، وَقَارِبُوا، ⑥ وَاغْدُوا، وَرُوحُوا وَشَيْءٌ مِنَ الدُّلْجَةِ، ⑦ وَالْقَصْدَ الْقَصْدَ تَبْلُغُوا» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه:** ① ابوهریره رضی الله عنه راوی دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② په تاسو کې د چا عمل هغه ته د اور څخه نجات نشي ورکولی [یعني یواځې عمل نافع نه دی بلکه که د الله تعالی ﷻ فضل او د هغه رحمت شامل حال شي نو بیا عمل فائده ورکوي] ③ صحابه و رضی الله عنهم عرض وکړو چې آیا تاته هم؟ (ستا عمل هم باوجود د کامل کیدو خلاصی لاز نشي ورکولی؟) ④ نبی کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل چې نا، خو دا چې الله تعالی ﷻ ما د خپل رحمت په سایه (سورې) کې واخلي، ⑤ نو تاسو خپل اعمال د غشو په شان راست اودرست کړئ، په عمل کې میانه روی اختیار کړئ (یعني یو عمل د کمی او زیاتی سره مه کوئ) ⑥ او د ورځې په ابتدایي حصه کې هم عبادت کوئ او په آخري حصه کې هم عبادت کوئ، او د شپې په تیاره کې هم څه عبادت کوئ (یعني د تهجد مونځ کوئ) ⑦ او په عبادت کې میانه روی اختیار کړئ خپل منزل ته به ورسیږئ (بخاری مسلم)

**حل اللغات:** ① يَتَغَمَّدَنِي: أَيْ: يَسْتُرَنِي: پټ مې کړی ② فَسَدِّدُوا: أَيْ: بَالِغُوا فِي التَّسْدِيدِ: سیدها او صحیح ساتئ (یعني خپل اقوال او افعال درست کولو کښې ښه کوشش کوئ) ③ قَارِبُوا: دَ الله تعالی قرب حاصل کړئ (او دَ عبادت په کثرت کښې کوتاهي مه کوئ) ④ اغْدُوا: د ورځې په شروع کښې هم د الله عبادت کوئ ⑤ رُوحُوا: د ورځې په آخر کښې هم دالله تعالی ذکر وعبادت کوئ ⑥ الدُّلْجَةِ: أَيْ سَيْرُ اللَّيْلِ: دشپې تللو ته وائي دلته ترې دشپې عبادت مراد دې ⑦ الْقَصْدَ الْقَصْدَ: أَيْ: الْزَمُوا التَّوَسُّطَ فِي الْعِبَادَةِ: په عبادت کښې میانه روی اختیار کړئ (افراط تفریط مه کوئ) ⑧ تَبْلُغُوا: أَيْ: الْمَنْزِلَ: اوبه رسیږئ (خپل مقصد او منزل ته)

[1]) اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب القصد والمداومة علی العمل (رقم-۶۴۶۳) ومسلم فی کتاب صفة القیامة والجنة والنار/باب لن یدخل احد الجنة بعمله بل برحمة الله تعالی (رقم-۷۸ - (۲۸۱۸)

تشریح قوله وَلَا أَنَا:

**د صحابه کرامو د نبي کريم ﷺ نه تپوس کول:** صحابه کرامو چه کله واوريده چه حضور پاك د ير د شمو بندو اوفرمائيل چه يو سړي په خپل عمل سره جنت ته نه شي تلې په دې باندې هغوی د حضور پاك باره کښې پخپله هم د هغوی نه تپوس اوکړو نو حضور پاك اوفرمائيل چه معامله او ضابطه زما هم دغه ده ليکن زما رب به ما د خپل رحمت اوحفاظت په څادر کښې راغونډ کړي په دې وجه زما په معامله کښې خو يقين دې چه رحمت حاصل شوې دې هم ددې مفهوم په رڼا کښې ملاعلي قاري رحمه الله فرمائي چه دلته استثناء منقطع ده

قوله الدُّلجة: په دال باندې ضمه ده او لام ساکن دې. ددې آيت طرف ته اشاره ده ﴿وَأَقِمِ الصَّلوٰةَ طَرَفَيِ النَّهَارِ وَزُلَفًا مِّنَ الَّيْلِ﴾ (سورت هود الايه: ۱۱۴).

**[۲۳۷۲] جنت ته داخليدل دالله تعالى په رحمت**

۲۳۷۲ــ[۸] (۱) [۱] وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[۲] «لَا يُدْخِلُ أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ الْجَنَّةَ [۳] وَلَا يُجِيرُهُ مِنَ النَّارِ، [۴] وَلَا أَنَا إِلَّا بِرَحْمَةِ اللّٰهِ» " رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] جابر رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] په تاسو کې د هيچا عمل نه هغه په جنت کې داخلولې شي [۳] او نه هغه د دوزخ څخه ساتلې شي، [۴] او نه زما عمل ما په جنت کې داخلولې شي. مګر هله چې د الله تعالى ﷻ د رحمت سره وي. (مسلم)

**حل اللغات** ① لَا يُجِيرُهُ: أَيْ: لَا يُخَلِّصُهُ: بچ کولې نې نه شي يعنى خلاصې او نجات نه شي ورکولې

تشريحات:

قوله لَا يُدْخِلُ أَحَدًا مِنْكُمْ عَمَلُهُ الْجَنَّةَ:

**جنت ته داخليدل دالله په فضل:** د حديث مبارک څخه معلومه شوه چې جنت ته داخليدل محض دالله تعالى په فضل سره دی تردې چې نبي کريم ﷺ هم دالله تعالى په فضل جنت ته داخليږي دخپل عمل په وجه نه اوچې کله جنت ته داخل شي نو بيا هلته درجات به د اعمالو په اعتبار سره وي چې څومره دچا عمل ښه وي هغه هومره به د هغه درجه هم اوچته وي

**[۲۳۷۳] د يوې نيکۍ ثواب ډيرې درجې زيات دی**

۲۳۷۳ــ[۹] (۲) [۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "[۲] «إِذَا أَسْلَمَ الْعَبْدُ فَحَسُنَ إِسْلَامُهُ، [۳] يُكَفِّرُ اللّٰهُ عَنْهُ كُلَّ سَيِّئَةٍ كَانَ زَلَفَهَا، [۴] وَكَانَ بَعْدُ الْقِصَاصُ الْحَسَنَةُ بِعَشْرِ أَمْثَالِهَا إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ، [۵] وَالسَّيِّئَةُ بِمِثْلِهَا إِلَّا أَنْ يَتَجَاوَزَ اللّٰهُ عَنْهَا» ". رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

---

(۱) اخرجه مسلم في كتاب صفة القيامة والجنة والنار/باب لن يدخل أحد الجنة بعمله بل برحمة الله تعالى (رقم-۷۷-(۲۸۱۸)

(۲) اخرجه البخاري في كتاب الإيمان/باب حسن إسلام المرء (رقم-۴۱)

**ترجمه** ① ابوسعيد رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر کله چې يو بنده اسلام قبلوي او د هغه اسلام ښه وي (يعني د نفاق څخه پاك صفا وي چې د هغه ظاهر او باطن يو رنګه وي) ③ نو الله تعالیٰ جل جلاله د هغه هغه ټول ګناهونه لرې کوي چې هغه د اسلام څخه مخکې کړي وي، ④ او د اسلام څخه روسته هغه ته بدله ملاويږي (د هغه حساب دا دی چه) د يوې نيکۍ په بدله کې د لسو څخه تر اووه سوه پورې نيکي ليکل کيږي (يعني د اسلام راوړلو څخه روسته چې هغه څه عمل هم کوي) بلکه د اووه سوه څخه هم زيات ⑤ او د بدۍ بدله د هغه په شان ورکول کيږي (يعني څومره بدی چې کوي هغومره ليکل کيږي) مګر داکه الله تعالیٰ جل جلاله هغه هم معاف کړي (بخاري)

**حل اللغات:** ① زَلَفَهَا: زلف قُرب او تقديم ته وائی، أي: قَدَّمَهَا عَلَى الْإِسْلَامِ: يعنی کوم ئې چه د اسلام نه مخکښې کړی دی. ② الْقِصَاصِ: برابری کولو ته وائی. أي: الْمُجَازَاةُ عَلَى الْأَعْمَالِ: دلته ترې مراد د عمل بدله او اجر ملاويدل دی. ③ يَتَجَاوَزَ: چه معاف ئې کړی الله تعالی (توبه قبوله کړی يا ورته ګناه معاف کړی)

**تسهيلات:**

**قوله: الْقِصَاصِ:** دَمساوات او برابرئی په معنی کښې دي دلته مراد بدله او اجرملاويدل دی. دَدې اجر او بدلې تفصيل په وړاندې جمله کښې دي.

**د الله تعالی د رحمت وسعت:** دا هم دَ الله تعالی دَ رحمت کرشمه ده چه ترکومې پورې چه ئې بدی کړې نه وی صرف په اراده کولوسره نه شی ليکلې کيدې اوډکولونه پس ليکلې کيږی نودَ يوعمل يو بدی ده او په يوه بدئی باندې هم يوه سزا ده. په نيکوتر لسو پورې دَ زياتيدو ضابطه ده، اووه سوو پورې اضافه ده، يولاکهو پورې هم څی او تر اووه لاکهو پورې دَ تلو ذکر هم دَ يوضعيف حديث نه ملاويږی کوم چه دَمجاهدينو باره کښې دي باقی يوکم پنځوس کروړو پورې اوړل دَتبليغی جماعت په نيز دي کوم چه مستندنه دي.

باقی ﴿وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَآءُ﴾ [سورت بقره، ۲۶۱.] کښې دَ اجمالی تضعيف ذکر دي دَدې تعين څوك نه شی کولې اونه يقين کول پکاردی. شريعت مجمل ساتلې دي نوهم مجمل به استعمالولې شی دَتعين دَپاره دَ شارع عليه السلام نص ضروری دي.

[۲۳۷] دَ نيکئی ارادې کولوسره ثواب ملاويږی

۲۳۷-[۱۰] ( )[1] ① وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - " ② «إِنَّ اللّٰهَ كَتَبَ الْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ، ③ فَمَنْ هَمَّ بِحَسَنَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا ④ كَتَبَهَا اللّٰهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً ⑤ فَإِنْ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا

[1] اخرجه البخاری فی کتاب الرقاق/باب من هم بحسنة أو بسيئة (رقم-۶۴۹۱) اخرجه مسلم فی کتاب الايمان باب إذا هم العبد بحسنة كتبت، وإذا هم بسيئة لم تكتب رقم ۲۰۷)

اللهُ لَهُ عِنْدَهُ عَشْرَ حَسَنَاتٍ ٦ إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ ٧ وَمَنْ هَمَّ بِسَيِّئَةٍ فَلَمْ يَعْمَلْهَا ٨ كَتَبَهَا اللهُ لَهُ عِنْدَهُ حَسَنَةً كَامِلَةً ٩ فَإِنْ هُوَ هَمَّ بِهَا فَعَمِلَهَا كَتَبَهَا اللهُ لَهُ سَيِّئَةً وَاحِدَةً» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ١ ابن عباس ﷺ راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمایل ٢ الله تعالی ﷻ نیکي او بدي اولیکلې (یعني فرښتو ته یې حکم ورکړو چې هغه په لوح محفوظ کې د نیکیو او بدیو په باره کې دا تفصیل ولیکی) ٣ چې کوم سړي د یوې نیکي اراده وکړي، او په هغې عمل ونکړل شي (یعني د ارادي باوجود هغه د څه عذر په بنا د هغه نیکي په کولو باندي قادر نشي) ٤ نو الله تعالی ﷻ د هغه د پاره د خان سره په هغې اراده پوره یوه نیکي لیکي، ٥ او کوم سړي چې د نیکۍ اراده وکړي، او بیا هغه نیکي وکړي، نو الله تعالی ﷻ د هغه د پاره د خان سره د لس چنده څخه ٦ تر اووه سوه چنده پورې بلکه د دې څخه هم زیاتي نیکۍ لیکي (یعني د خپلو بنده ګانو څخه د چا د پاره چې غواړي خپل فضل وکرم سره د اخلاص او د شرائطو او آدابو د ادائیګۍ موافق د دې څخه زیات ثواب هم لیکي) ٧ او کوم سړي چې د څه بدۍ اراده وکړي او بیا د (الله تعالی ﷻ د خوف د وجې) په هغه بدۍ کې اخته هم نه شي، ٨ نو الله تعالی ﷻ د هغه د پاره د خان سره یوه پوره نیکي لیکي، ٩ او کوم سړي چې د څه بدۍ اراده وکړه، او بیا په هغه بدۍ کې اخته هم شو، نو الله تعالی ﷻ د هغه د پاره یوه بدي لیکي. (بخاري مسلم)

**حل اللغات:** ① هَمَّ: أَيْ: قَصَدَ: قصد یا اراده اوکړی.

**تسهیلات:**

**قوله: كَتَبَ الْحَسَنَاتِ وَالسَّيِّئَاتِ:**

**د حسنات او سيئات څخه مراد:** دنیکو نه مراد داسې اعمال دی چه د هغې په کولو سره ثواب ملاویږي او د بدو عملونو څخه مراد داسې اعمال دی چه د هغې په کولو سره د عذاب مستحق کیږي. چه کوم کس د نیکۍ اراده اوکړی خو عمل اونه کړې شي نو ده ته بیا هم یوه نیکي ملاویږي ځکه چه اصل نیت دې او عمل د دې نه پس وی او دا نیت د مؤمن د عمل نه بهتر دې ځکه چه په نیت کښې ریا نه راځي اوپه عمل کښې د ریا خطره شته او د عمل نه بغیر په نیت سره ثواب ورکولې کیږي اګرچه دا ثواب مضاعف نه وی خو د نیت نه بغیر په عمل ثواب نه ملاویږي.

**قوله: إِلَى سَبْعِمِائَةِ ضِعْفٍ إِلَى أَضْعَافٍ كَثِيرَةٍ:**

**د مضاعف الدلازه:** باقی د ثواب مضاعف کیدو مقدار د لسو نه اوو سوو پورې دې او د دې نه پورته فیضاعفه أضعافاً کثیرا ئې اوفرمائیل ددې آخرې حد چا ته هم نه دې معلوم هغه الله تعالی مبهم ساتلې دې ((لأن ذكر المبهم من باب الترغيب أقوى من ذكر المحدود)) یعنی د یو څیز طرف ته د ترغیب د پاره د معین په ځاې مبهم ذکر کول ډیر مؤثر وی کما في قوله: فَلَا تَعْلَمُ نَفْسٌ

مَآأُخْفِيَ لَهُمْ مِّنْ قُرَّةِ أَعْيُنٍ او هم دغه شان په حديث قدسي كښې د جنت د نعمتونو مبهم ذكر دې ((أعددت لعبادي الصالحين ما لاعين رأت ولا أذن سمعت ولا خطر على قلب بشر)) (مرقات: ج٥ص٠٠)

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

## [۲۳۷۵] دبدئ نه پس د نيكئ كونكي عجيبه مثال

۲۳۷۵-[۱۱] () ⑴ عَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ: قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "⑵ «إِنَّ مَثَلَ الَّذِي يَعْمَلُ السَّيِّئَاتِ ثُمَّ يَعْمَلُ الْحَسَنَاتِ ⑶ كَمَثَلِ رَجُلٍ كَانَتْ عَلَيْهِ دِرْعٌ ضَيِّقَةٌ قَدْ خَنَقَتْهُ ⑷ ثُمَّ عَمِلَ حَسَنَةً فَانْفَكَّتْ حَلْقَةٌ ⑸ ثُمَّ عَمِلَ أُخْرَى فَانْفَكَّتْ أُخْرَى ⑹ حَتَّى تَخْرُجَ إِلَى الْأَرْضِ» "رَوَاهُ فِي شَرْحِ السُّنَّةِ.

**ترجمه** ⑴ عقبه ابن عامر رضي الله عنه راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمايل ⑵ كوم سړې چې بدې كوي او بيا نيكي كول شروع كړي، ⑶ د هغه حالت د هغه سړي په شان دې چې د هغه په بدن تنګه زغره وي، او د هغه زغري كړو د هغه بدن دباؤ كړي وي [زور ئ وركړې وي]، ⑷ بيا هغه نيكي وكړي او د هغه زغري يوه حلقه خلاصه شي، ⑸ او هغه بيا دويمه نيكي وكړي، او دويمه حلقه خلاصه شي، ⑹ تر دې چې [دغه شان د هغه حلقي خلاصي شي، او دهغه كړو په سست كيدو سره] زمكي ته آزاد راشي (شرح السنه)

**حل اللغات:** ① دِرْعٌ: زغره (جنګي لباس) ② ضَيِّقَةٌ: تنګه، ③ خَنَقَتْهُ: أي: عَصَرَتْ: زورلې ئي وو، د زغري كړو ورله زور وركړې وو، ④ فَانْفَكَّتْ: أي: انحلّت: خلاصه شي، يعنې سسته او كهلاؤ شي. ⑤ حَلْقَةٌ: كړئ

**تسهيلات:**

**قوله:** كَمَثَلِ رَجُلٍ كَانَتْ عَلَيْهِ دِرْعٌ ضَيِّقَةٌ:

**په ګناه سره د زړه تنګيدل او د حديث حاصل:** دحديث حاصل دادې چه ګناه كولو سره سينه تنګيږي او تياره په كښې راځي او ګناه كونكې په خپلو ټولو كارونو كښې دصحيح فيصلې كولوځنه محروم وي. اوپه ټولو فكرى او عملى لارو باندې يقين او اعتماد كولوپه ځائې د حيرانتيا، ويرې او پريشانئ په تياروا وسيږي اوهغه دخلقو په نظرونو كښې سپک او بې عزته ګڼرلې شي، او ټول نيكان خلق هغه ته دغصې او په سپک نظرونو سره ګوري، او ددې بالعكس نيكي كولو سره سينه پرانستې كيږي او خوشحالي په كښې راځي او نيكى كونكې په خپل هر كار كښې آسانى، سهولت،سره مخامخ كيږي اود يقين اواعتماد اودسكون اثرات محسوسوي، اوهغه دخلقو په نظرونو كښې محبوب، خوښ او عزت دار ګڼرلې كيږي.

(١) اخرجه احمد في المسند: ١٤٥/٤

د تشبيه مقصد: په حديث باب کښې د دې خبرې مشابهت تنګې زغرې سره ورکړې شوې دې چه په تنګې زغرې اغوستلو سره بدن تنګې او بې ارامې کښې مبتلا کيږي او دده په بدن باندې کهلاؤ زغره د فراخئ او د زړه د خوشحالئ سبب وي

**[۲۳۷۶] دالله په ويره سره د دوو جنتونو وعده**

۲۳۷۶- [۱۲] ( )[۱] «وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّهُ سَمِعَ النَّبِيَّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَقُصُّ عَلَى الْمِنْبَرِ[۲] وَهُوَ يَقُولُ: " ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ [الرحمن: ۴٦] [۳] قُلْتُ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللهِ[۴] فَقَالَ الثَّانِيَةَ: ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ [الرحمن: ۴٦]، [۵] فَقُلْتُ الثَّانِيَةَ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللهِ[٦] فَقَالَ الثَّالِثَةَ: ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾ [الرحمن: ۴٦] [۷] فَقُلْتُ الثَّالِثَةَ: وَإِنْ زَنَى وَإِنْ سَرَقَ يَا رَسُولَ اللهِ[۸] قَالَ: وَإِنْ رَغِمَ أَنْفُ أَبِي الدَّرْدَاءِ» ". رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** [۱] ابو درداء ﷺ رواي دې چې هغه د رسول الله ﷺ څخه په منبر وعظ او نصيحت کولو سره واوريدل [۲] (ابودرداء ﷺ) وايي چې رسول الله ﷺ دا وفرمايل، وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ، کوم سړي چې (د قيامت په ورځ د حساب کتاب د پاره) د خپل پروردګار په مخکې د ودريدو څخه ووېريدو، د هغه د پاره دوه جنتونه دي،[۳] ما (د دې په اوريدو سره د تعجب په بنا) پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ که هغه (ويريدونکې) زنا کړې وي، او يا هغه غلا کړي وي؟ (بيا به هم هغه ته دوه جنتونه ملاويږي؟)[۴] نبی کريم صلی الله عليه وسلم بيا په دويم ځل دغه شان وفرمايل وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ ،[۵] ما بيا دويم ځل پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ! اګر که هغه زنا هم کړي وي، او اګر که هغه غلا هم کړي وي؟[٦] نبی کريم صلی الله عليه وسلم بيا په دريم ځل وفرمايل وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ،[۷] ما بيا په دريم ځل پوښتنه وکړه چې يا رسول الله ﷺ خواه که هغه زنا کړي وي او خواه هغه غلا کړي وي؟[۸] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې اګر چې د ابودرداء ﷺ پوزه په خاورو ککړه شي بيا هم (احمد)

**حل اللغات:** ① مَقَامَ رَبِّهِ: أَيْ: مَوْقِفَهُ: اودريدل خپل رب ته ،دقيامت په ورځ خپل رب ته د حساب کتاب دپاره پيش کيدل. ② رَغِمَ: أَيْ لَصِقَ بِالرَّغَامِ: رغام خاورو ته وائی، يعنی اګرچه په خاورو کښې ککړه اوګنده شی، د عربو په نزد دا محاوره ده دا په هغه وخت کښې ونيلې کيږي کله چې دچا مجبوری، تنګسيا ، ناخوښی يا ذلت ظاهرول وي خکه چې رغام خاورې ته وائی ،

[۱] اخرجه احمد فی المسند: ۶/۴۴۲

**تسهيلات:**

**قوله ﴿وَلِمَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ جَنَّتَانِ﴾:**

**د جنتان په مصداق كښې پنځه اقوال:**

① يو جنت داسې دې چه د هغې مكان، محل، لوښي، زيورات ټول په ټول د سرو زرو دى او يو جنت داسې دې چه په هغې كښې هر څه د سپينو زرو دي

② يو جنت د نيك عمل د وجه نه ملاويږي او دويم جنت د بد عمل پريخودو په وجه ملاويږي

③ عند البعض يو جنت د ثواب د پاره په طريقه د عدل اودويم جنت د تقرب د پاره بطريق فضل دي

④ يو جنت جسماني او دويم جنت روحاني او جناني دي

⑤ يوجنت په دنيا كښې په حضورمع المولى ملاويږي او دويم جنت په آخرت كښې بلقاء المولى و الدرجات العلى په صورت كښې ملاويږي.

**[۲۳۷۴] ذالله تعالى ذرحمت يو مثال**

۲۳۷۴-[۱۳] (¹)① وَعَنْ عَامِرٍ الرَّامِ قَالَ: «بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَهُ يَعْنِي عِنْدَ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② إِذْ أَقْبَلَ رَجُلٌ عَلَيْهِ كِسَاءٌ ③ وَفِي يَدِهِ شَيْءٌ قَدِ الْتَفَّ عَلَيْهِ ④ فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللهِ مَرَرْتُ بِغَيْضَةِ شَجَرٍ ⑤ فَسَمِعْتُ فِيهَا أَصْوَاتَ فِرَاخِ طَائِرٍ ⑥ فَأَخَذْتُهُنَّ فَوَضَعْتُهُنَّ فِي كِسَائِي ⑦ فَجَاءَتْ أُمُّهُنَّ فَاسْتَدَارَتْ عَلَى رَأْسِي ⑧ فَكَشَفْتُ لَهَا عَنْهُنَّ فَوَقَعَتْ عَلَيْهِنَّ ⑨ فَلَفَفْتُهُنَّ بِكِسَائِي فَهُنَّ أُولَاءِ مَعِي،

**ترجمه** ① عامر رامي ﷺ (تير انداز) وايي چې (يوه ورځ) مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو، ② اچانك يو سړي راغلو چې د هغه په بدن يوكمبله وه. ③ او د هغه په لاس كې يو شې وو. چې د هغې نه يې خپله كمبله را چاپيره كړي وه. ④ هغه عرض وكړو چې يا رسول الله ﷺ زه په ډيرو ونو تيريدم ⑤ ما په هغه كې د مارغانو د بچو آوازونه واوريدل. ⑥ نو ما هغه ونيول او خپل كمبل كې مې كيخودل ⑦ په دې كې د بچو مور راغله او زما په سر تاويدله، ⑧ ما د هغې په مخكې د بچو څخه كمبله لرې كړه (چې هغه يې ووينې) د بچو په ليدو سره هغه پرې راپريوته ⑨ نو ما يې مورهم او بچې هم په كمبله كې ونغښتل او اوس هغه ټول ما سره دي،

**حل اللغات:** ① كِسَاءٌ: أي: خِرْقَةٌ: پير څادر، ② الْتَفَّ: د باب افتعال نه د ماضي صيغه ده، راتاؤ كړي وو، راچاپيره كړي وو ③ بِغَيْضَةِ: وَهُوَ مُجْتَمَعُ الْأَشْجَارِ: كوم ځاى چه ډيرې ونې وى هغې ته غيضه يا غابه وائى يعنى ځنګل ④ فِرَاخِ: جمع تكثير ده، او افراخ جمع قلت ده، وَهُوَ وَلَدُ الطَّيْرِ: د مارغانو بچو

¹) اخرجه ابوداود فى كتاب الجنائز، باب الأمراض المكفرة للذنوب (رقم-۳۰۸۹)

نه وړی ⑤ انمازت تاوېدله. ⑥ فَكَشَفْتُ أَيْ: رَفَعْتُ الكِسَاءَ. ښکاره مې کړل يعنې د مارغانو د بچو نه مې څادر لرې کړو ⑦ فَلَفَفْتُهُنَّ: تلفيف د راغونډولو معنی کښې دې يعنې ټول مې په کمبل کښې راټول کړل

① قَالَ: ضَعْهُنَّ، فَوَضَعْتُهُنَّ، ② وَأَبَتْ أُمُّهُنَّ إِلَّا لُزُومَهُنَّ، ③ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: أَتَعْجَبُونَ لِرُحْمِ أُمِّ الْأَفْرَاخِ فِرَاخَهَا ④ فَوَالَّذِي بَعَثَنِي بِالْحَقِّ لَلّٰهُ أَرْحَمُ بِعِبَادِهِ مِنْ أُمِّ الْأَفْرَاخِ بِفِرَاخِهَا ⑤ ارْجِعْ بِهِنَّ حَتَّى تَضَعَهُنَّ مِنْ حَيْثُ أَخَذْتَهُنَّ ⑥ وَأُمُّهُنَّ مَعَهُنَّ، فَرَجَعَ بِهِنَّ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې دا دلته کېږده، ما هلته کېخودل. [او کمبله مې ځنې لرې کړه] ② مور په بچو ورپرېوتله [مونږ تولو د مور د بچو سره دا محبت ليدو سره تعجب کولو] ③ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې آيا تاسو خلق په دې تعجب کوئ؟ چې دا د بچو مور په خپلو بچيانو څومره رحم دله واقع شويده، ④ قسم دې په هغه ذات چې هغه زه د حق سره راليږلې يم، الله تعالی ﷻ په خپلو بنده ګانو باندې د دې ښځه هم ډېر زيات رحم کونکی (مهربانه) دی څومره چې يو مور په خپلو بچيانو باندې رحم کوي. ⑤ لاړشه دا بچې هلته پرېږده د کوم ځای ځخه چې دې نيولي وو، ⑥ او مور ورسره پرېږده. نو هغه ټول يې يوړل، [او د کوم ځای ځخه چې يې نيولي وو هلته يې پرېښودل] (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ⑧ أَبَتْ: أَيْ: امْتَنَعَتْ: انکارني اوکړو، منع شوه (يعنې جدا کېدل ئې اونه غوښتل) ⑨ لُزُومَهُنَّ: پيوست کېدل دخپلو بچو سره.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث کښې د واقعې ذکر دې څه مشکل په کښې نشته اوباقی چې کوم مشکل او ګران لغات وو دهغې معانی د حل اللغات په عنوان کښې ښودلی شوی دی

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

### [۲۳۷۸] ذيومورد حضورپاک عليه السلام نه عجيبه سوال

۲۳۷۸-[۱۴] () ① عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ: «كُنَّا مَعَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِي بَعْضِ غَزَوَاتِهِ ② فَمَرَّ بِقَوْمٍ فَقَالَ: "مَنِ الْقَوْمُ؟" ③ قَالُوا نَحْنُ الْمُسْلِمُونَ ④ وَامْرَأَةٌ تَحْضِبُ بِقِدْرِهَا وَمَعَهَا ابْنٌ لَهَا، ⑤ فَإِذَا ارْتَفَعَ وَهَجٌ تَنَحَّتْ بِهِ، ⑥ فَأَتَتِ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللّٰهِ؟ قَالَ: نَعَمْ، ⑦ قَالَتْ: بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي أَلَيْسَ اللّٰهُ أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ؟ قَالَ: بَلَى،

**ترجمه** ① عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما راوی دې چې (يو ځل) مونږ رسول الله ﷺ سره يوې غزا ته تلی وو، ② چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم د څه خلقو سره تېر شواو د هغوئ ځخه يې پوښتنه وکړه چې تاسو څوك يئ؟ ③ هغوئ عرض وکړو چې مونږ مسلمانان يو، ④ په هغوئ

[1] اخرجه ابن ماجة في كتاب الزهد /باب ما يرجى من رحمة الله يوم القيامة (رقم-۴۲۹۷)

کې يو داسې اعجيبه ا ښځه هم وه چې د خپلې کټوۍ لاندې يې اور بلولو (يعني څه يې پخول) د هغې سره يو وړوکې هم وو، ۵ چې د اور شغله به راپورته شوه. نو هغې به خپل وړوکي يو طرف ته کړو (چې د اور په تاؤ سره هغه ته تکليف ونه رسيږي) ۶ بيا هغه ښځه رسول الله ﷺ ته راغله او عرض يې وکړو چې ته د الله ﷻ رسول يې؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې هو، ۷ هغه ښځې اوويل چې زما مور او پلار دې تا نه قربان شي آيا الله تعالی ﷻ په خپلو بنده ګانو باندې د ټولو رحم کونکو څخه زيات رحم کونکی نه دې اخومره چې يوه مور په خپلو وړو باندې رحم کوي؟! نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې هو

**حل اللغات:** ① تَحْضِبُ: أَيْ: تُوقِدُ: اور نې بلولو، ② قِدْرٍ: کټوی، ③ وَهَجٌ: اى حَرُّ النَّارِ: د اور شغله، لمبه، ④ تَنَحَّتْ: أَيْ: تَبَعَّدَتْ: لرې به ئې کړو (خپل ماشوم)

١ قَالَتْ: أَلَيْسَ اللهُ أَرْحَمَ بِعِبَادِهِ مِنَ الْأُمِّ بِوَلَدِهَا؟ قَالَ: بَلَى، ٢ قَالَتْ: إِنَّ الْأُمَّ لَا تُلْقِي وَلَدَهَا فِي النَّارِ، ٣ فَأَكَبَّ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَبْكِي، ٤ ثُمَّ رَفَعَ رَأْسَهُ إِلَيْهَا فَقَالَ: ٥ إِنَّ اللهَ لَا يُعَذِّبُ مِنْ عِبَادِهِ ٦ إِلَّا الْمَارِدَ الْمُتَمَرِّدَ الَّذِي يَتَمَرَّدُ عَلَى اللهِ، ٧ وَأَبَى أَنْ يَقُولَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ» "رَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه:** ١ هغه ښځې اوويل چې آيا الله تعالی ﷻ په خپلو بنده ګانو باندې د دې څخه زيات رحم کونکې نه دې څومره چې يوه مور په خپلو وړو باندې رحم کوي؟ نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې هو. ٢ نو هغې ښځې اوويل چې مور خو خپل وړوکې په اور کې نه غورځوي؟ انو بيا الله تعالی ﷻ خپل بندګان د دوزخ په اور کې ولې غورځوي؟! ٣ نبی کريم صلی الله عليه وسلم (د دې په اوريدو سره) په ژړا شو او خپل سر مبارک يې ښکته کړو ٤ (او بيا لږ وخت وروسته يې) خپل سر مبارک د هغه ښځې طرف ته پورته کړو، او وې فرمايل ٥ چې الله تعالی ﷻ خپلو بنده ګانو ته (دهميشه دپاره) عذاب نه ورکوي، البته يواځې هغه خلقو ته عذاب ورکوي، ٦ چې سرکشه وي، هغه سرکشه چې د الله تعالی ﷻ څخه سرکشي کوي (يعني د هغه احکام نه مني) ٧ او د لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ څخه انکار کوي (ابن ماجه)

**حل اللغات:** ⑤ فَأَكَبَّ: أَيْ: شَرَعَ: شروع شو په ژړا باندې، ⑥ الْمَارِدَ: أَيْ: الْعَارِيَ: سرکش، د حد نه تيريدونکې. ⑦ الْمُتَمَرِّدَ: په مارد کښې مبالغه ده يعنی ډير زيات سرکشه، چه د خير نه بالکل خالی وی اود شر نه ډک وی

**تسهيلات: قوله:** فَقَالَتْ: أَنْتَ رَسُولُ اللهِ؟ قَالَ: نَعَمْ...الخ:

**دحديث د بعضې جملو وضاحت۔**

**قوله:** أَنْتَ رَسُولُ اللهِ: دلته همزه دَ استفهام محذوف دې. دې ښځې په تفصيل سره حضورپاك نه پيژندلو سره دَدې چه په اجمالی توګه مسلمانه وه.

**قوله** نُكْتُبُ اکاب د سرتیټولو په معنی کښې راځي یعنی حضور پاك سرمبارك ټیټ په ژړا شو ځکه چه د ښځې سوال هم عجیبه وو او د هغه وخت ماحول او منظر هم عجیبه وو

**قوله** لَا یُعَذِّبُ یعنی مسلمان همیشه په عذاب کښې نه ساتي بلکه د سزا ورکولونه پس ئې د اورنه راوباسي

**قوله**: اَلْمَرْءَةَ: حضورپاك دغه ښځې ته په دې اندازسره جواب ورکړو چه مورپلارته بچي خومره خوږ وي ځوکه دغه ماشوم لوئی شي اومورته اووائي ته زماموره نې اوته زما پلارنه نې نوبیا مور هغه بچي له څنګه څپیړه ورکوي کله چه یوبچي دمور پلاردپاره د سپي یا خنزیرپه شان جوړشي نومور دهغه نه خومره ویزاره شي هم دغه شان معامله داالله تعالی ده

## [۳۷۹] داالله تعالی د خوشحالی طلب کونکي بنده مقام

۲۳۷۹-[۱۵] ( )[۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ: [۲] «إِنَّ الْعَبْدَ لَيَلْتَمِسُ مَرْضَاةَ اللهِ فَلَا يَزَالُ بِذَلِكَ، [۳] فَيَقُولُ اللهُ -عَزَّ وَجَلَّ- لِجِبْرِيلَ إِنَّ فُلَانًا عَبْدِي يَلْتَمِسُ أَنْ يُرْضِيَنِي [۴] أَلَا وَإِنَّ رَحْمَتِي عَلَيْهِ، فَيَقُولُ جِبْرِيلُ: [۵] رَحْمَةُ اللهِ عَلَى فُلَانٍ وَيَقُولُهَا حَمَلَةُ الْعَرْشِ، [۶] وَيَقُولُهَا مَنْ حَوْلَهُمْ، حَتَّى يَقُولَهَا أَهْلُ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ، [۷] ثُمَّ تَهْبِطُ لَهُ إِلَى الْأَرْضِ» رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** [۱] ثوبان رضی الله عنه د رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم نیك بنده چې د طاعت د ادائیګی په ذریعه د الله تعالی جل جلاله رضا لټوي، او بیا همیشه د هغې په لټون کې وي، [۳] نو الله تعالی جل جلاله جبرائیل علیه السلام ته فرمایي چې زما فلانې بنده زما د رضا او خوښي په لټون کې دی، [۴] نو خبر شه چې په هغه زما رحمت کامله دی، نو جبرائیل علیه السلام وایي [۵] چې په فلانې سړي دې د الله جل جلاله رحمت وي، دا خبره د عرش اوچتونکي فرښتي هم کوي، [۶] بیا دغه خبره هغه فرشتي هم کوي چې د هغه تولو چاپیره وي، تر دې چې دا خبره د اوو آسمانونو فرښتي کوي، [۷] نو بیا د هغه سړي د پاره په زمکه رحمت نازلیږي (احمد)

**حل اللغات**: ① لَیَلْتَمِسُ: أَيْ يَطْلُبُ: لټون او تلاش کوی. ② حَمَلَةُ الْعَرْشِ: عرش اوچتونکي فرشتي.
③ تَهْبِطُ: راکوزیږی

**تسهیلات**: **قوله**: تَهْبِطُ:

**د الله تعالی بنده سره د محبت او عدم محبت معیار**: دا دهبوط نه دی د راکوزیدلوپه معنی کښې دې یعنی چه یوسړي دالله تعالی درحمت په لټون کښې وی آخرکارالله تعالی دخپل رحمت اعلان کوی بیا دغه اعلان جبرائیل امین علیه السلام په آسمانونوکښې دټولو فرښتو پورې عام کوی بیا د رحمت دغه چپه د زمکې طرف ته راکوزیږی ددې اثر داوی چه د زمکې والا

( ) اخرجه احمد في المسند: ۵/۲۷۹

ټول په ټول دغه سړی سره محبت کوی اودغه سړي مقبول خاص اوعام کیدوسره منظورالکل او محبوب الکل جوړیږی داحدیث په حقیقت کښي دَ مضمون اومفهوم په اعتبارسره دَ دغه حدیث په شان

دې په کوم کښي چه دَ محبت په حواله سره خبره کړې شوې ده چه الله تعالی کله یوبنده محبوب ساتی نو فرښتوکښي دَهغې اعلان کیږی دَ څه په وجه چه ټول دَ آسمانونو والا دغه سړی سره محبت کوی بیا دغه محبت او قبولیت دَ زمکي طرف ته راکوزیږی نوخلق هغه سره محبت کوی اوکه چرې یوسړی سره الله تعالی دښمنی کوی نوهغه جذبه هم دغه شان خوریږی دلته دا خبره ذهن کښي ساتل پکاردی چه دَ قبولیت اوعدم قبولیت معیار فساق فجار عوام نه دی بلکه دَ دغه معیار تله دَ اولیاء الله علماء او اتقیاء سره ده چه ددوی دَاکثریت فیصله دکوم سړی باره کښي وی هم هغه دَ آسمانونو فیصله وی

**[۳۸۰] مسلمانان ګناهګاران نیکوکاران دَالله تعالی دَ رحمت مستحق دی**

۲۳۸۰—[۱۶] (۱) ① وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ رضي الله عنهما عَنِ النَّبِيِّ -صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- فِي قَوْلِ اللّٰهِ -عَزَّ وَجَلَّ-: ②﴿فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ وَمِنْهُمْ مُقْتَصِدٌ③ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ﴾ [فاطر: ۳۲] ④قَالَ: "كُلُّهُمْ فِي الْجَنَّةِ". رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي كِتَابِ الْبَعْثِ وَالنُّشُورِ.

**ترجمه** ① اسامه بن زید ﷺ دَ رسول الله ﷺ څخه نقل کوي چي رسول الله ﷺ دَ الله تعالی ﷻ دَ دې ارشاد ② نو په هغوی کي بعضي دَ خپل نفس په حق کي ظالمان دی. او په هغوی کي بعضي میانه رو دی، ③ او په هغوی کي بعضي په نیکیو کي سبقت کونکی دی. ④دَ تفسیر په ضمن کي وفرمایل چي دا ټول جنتیان دي (بیهقي)

**حل اللغات**: ① مُقْتَصِدٌ: میانه رو. درمیانه (نیکی هم کوی او ګناهونه هم کوی) ② سَابِقٌ: سبقت کونکي. مخکښي کیدونکي (په طاعت او عباداتوکښي)

**تسهیلات**:

**قوله**: فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ:

**دَ مسلمانانو دری قسمونه اوهغې تفسیر** (په دې حدیث کښي دَ سورت فاطر آیت ۳۲ طرف ته اشاره کړې شوې ده په دې آیت کښي دَ مسلمانانودَ دریوقسمونو ذکرشوې دې او دَ درې واړو باره کښي نی داحکم لګولي دې

**قوله**: ثم اصطفينا من عبادنا یعنی مونږ په خپلو بندیګانو کښي دری قسم خلق خوښ کړل

① یو په خپل ځان باندي دَ ګناهونو په وجه ظلم کونکی دی

② دویم درمیانه چال باندي روان خلق دی

(۱) البعث والنشور... رقم الحديث ۵۷

③ دریم په اول پوزیشن کښې سفرکوی حسن بصری رحمه الله فرمائی ورانديوالې کونکی نه هغه سرې مراد دې د چانیکنی چه په بدوباندې غالبه وی درمیانه چال والا هغه سرې دې د چا نیکئ اوبدئی چه برابر وی اود ظالم نه هغه سرې مراد دې د چابدئی چه په نیکوباندې غالب وی د زیربحث حدیث نه معلومیږی چه دا دریواړه قسمه خلق د غوره بندیګانو نه دی لهذا دا به جنتی وی که په اول دخول سره وی اوکه په دویم دخول سره وی بل په جنت کښې به هم د درجو تفاوت وی خودې بشارت نه ثابتیږی چه مسلمان کلمه ویونکې هم د خیرنه خالی نه دې

# [۴] بَابُ مَا يَقُولُ عِنْدَ الصَّبَاحِ وَالْمَسَاءِ وَالْمَنَامِ

## سحر ماښام لوستونکې دعاګانې

**خلاصة الباب:**

**فيه ثلاثة وثلاثون حديثاً مشتملة على أربع مسائل:**

① أذكار الصباح والمساء: ۱، ۸، ۹، ۱۰، ۱۱، ۱۲، ۱۳، ۱۴، ۱۶، ۱۷، ۱۸، ۲۵، ۳۰، ۳۱.

② الأذكار عند النوم: ۲، ۳، ۴، ۵، ۶، ۷، ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲، ۲۳، ۲۴، ۲۶، ۲۷، ۲۸، ۲۹.

③ الأكار بعد صلوة الصبح والمغرب: ۱۵.

④ أذكار الصباح فقط: ۳۲، ۳۳.

قال الله تعالى ﴿ يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا اللَّهَ ذِكْرًا كَثِيرًا وَسَبِّحُوهُ بُكْرَةً وَأَصِيلًا ﴾

اسورت الاحزاب: ۴۲۴۱.

**د ترجمة الباب د اجزاء تشريح:**

د سحرماښام نه مراد د سحرماښام وختونه کیدې شی اوشپې ورځې هم مراد کیدې شی

**قوله:** وَالْمَنَامِ:

**د منام په مفهوم کښې دوه اقوال:** ① نه مراد د خوب ځائی هم کیدې شی

② یامنام مصدرمیمی دې کوم چه د خوب په معنی کښې دې د کوم نه چه د اوده کیدو د وخت دعاګانې مراد دی

**د مسلمان دوه دښمنان:** د مسلمان دوه دښمنان دی ① یو هغه دشمن چه ښکاری لکه کافران وغیره د دې په مقابله کښې د حفاظت د پاره اسلام د وسلې اوچتولو نظام قائم کړې دې ② دویم هغه دښمن چه په نظرنه راځي اوهغه د شیطان لښکر دې چونکه دا دښمن د نظر نه غیب وی په دې وجه اسلام د ده نه د حفاظت د پاره د روحانی پهرې انتظام کړې دې. هغه روحانی پهرې هم دغه دعاګانې دی چه د مختلفو وختونو د حملونه د بچ کیدو د پاره په مختلفو وختونو کښې لوستلې شی.

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ

[۲۳۸۱] سحر مابنام کښې د حضورپاک دعاګانې

۲۳۸۱ - [۱] (۱) عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَمْسَى قَالَ: " أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرِ مَا فِيهَا، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا، اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وَسُوءِ الْكِبَرِ وَفِتْنَةِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ وَإِذَا أَصْبَحَ قَالَ ذٰلِكَ أَيْضًا: أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ» وَفِي رِوَايَةٍ: " «رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ» " (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** ۱ عبد الله ابن مسعود رضی الله عنه راوي دي چې هر کله به مابنام شو نو د نبی کريم صلی الله عليه وسلم په ژبه مبارکه به دا دعا جاري کيدله ۲ أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرِ مَا فِيهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَالْهَرَمِ وسُوءِ الْكِبَرِ وَفِتْنَةِ الدُّنْيَا وَعَذَابِ الْقَبْرِ ۳ او هر کله چې به سحر شو، نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم به دغه شان ويل. ۴ اليکن په شروع کې به يې د أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلّٰهِ په ځای] أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ يعنې مونږ سحر کړو او هر شی سحر کړو چې د الله جل جلاله په ملك کې دي. ويل. ۵ په يو دويم روايت کې [وَسُوءِ الْكِبَرِ څخه روسته] دا الفاظ دي رَبِّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ [يعنی اې زما ربه! زه د هغه عذاب څخه چې په دوزخ کې دی، او د هغه عذاب څخه چې په قبر کې دی ستا پناه غوارم] (مسلم)

**حل اللغات:** ① أَمْسَى: مابنام. ② الْكَسَل: أي: التَّثَاقُل: دروندوالي، سستی (دنيکئ په کارونو کښې). ③ الْهَرَم: أي: كِبَرُ السِّنِّ: بوډاتوب، چه د زيات عمر شی

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ مِنْ خَيْرِ هٰذِهِ اللَّيْلَةِ

**د مذکوره دعا د په سحر وخت کښې د وئيلو طريقه:** کله چه مذکوره دعا دسحر په وخت کښې وئيلې شی نو په دې دعا کښې به د ((اللَّيلة)) په ځاې اليوم وئيلې شی، يعنی داسې ((هٰذِهِ اللَّيْلَةِ)) په ځاې به ((هٰذا اليوم)) وئيلی شی

او ورپسې چه په کومو ځايونو کښې د شپې (يعنی هٰذِهِ اللَّيْلَةِ) په رعايت سره د مؤنث ضميرونه استعمال شوی دی هلته به د ورځ يعنی ((هٰذا اليوم)) په رعايت سره د مذکر

---

۱) اخرجه البخاري في كتاب الدعوات/باب التعوذ من عذاب القبر (رقم - ۶۳۶۵) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم-۷۴ - (۲۷۲۳))

ضميرونه استعمالولې شي يعنې د ((هَا)) په ځاني به ((هٗ)) لوستلې شي، باقي عبارت به په خپل حل ونيلې شي

**[۲۳۸۲] د اوده کيدو د وخت دعا**

۲۳۸۲-[۲] ( )[۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ: "«كَانَ النَّبِيُّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ[۲] وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ خَدِّهِ،[۳] ثُمَّ يَقُولُ اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا،[۴] وَإِذَا اسْتَيْقَظَ قَالَ: الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُورُ» "رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** [۱] حذيفه ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ به د شپې خپلې بسترې ته تشريف وړلو او د اوده کيدو د پاره به پرېوتلو،[۲] نو خپل ښي لاس به يې د خپل ښي رخسار لاندې اېښودلو،[۳] او دا به يې فرمايل اللَّهُمَّ بِاسْمِكَ أَمُوتُ وَأَحْيَا، اې الله ﷻ! ستا په نوم مرم (يعني اوده کېږم) او ستا په نوم به ژوندى کېږم (يعنې بيداريږم)[۴] او کله چې به نبى کريم صلى الله عليه وسلم د خوب څخه بيداره شو، نو دا به يې فرمايل الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِيْ أَحْيَانَا بَعْدَ مَا أَمَاتَنَا وَإِلَيْهِ النُّشُوْرُ (بخاري، مسلم)

۲۳۸۳-( )[۱] وَمُسْلِمٌ عَنِ الْبَرَاءِ.

**ترجمه** [۱] مسلم [د حذيفه ﷺ په ځاى] د حضرت براء ﷺ څخه روايت کړې دې.

**حل اللغات**: ① أَخَذَ مَضْجَعَهُ: أَيْ: أَتَى فِرَاشَهُ: چه تشريف به ئې راوړو خپلې بسترې با د خوب ځاني ته، ② خَدِّهِ: رخسار، مخ مبارک د رسول الله ﷺ، ③ اسْتَيْقَظَ: چه رابيدار به شو د خوب نه، ④ النُّشُوْرُ: أَيِ الرُّجُوْعُ بَعْدَ الْمَوْتِ: د مرګ نه پس راپاڅيدل.

**تسهيلات: قوله: وَإِلَيْهِ النُّشُوْرُ:**

**دنشور په مفهوم کښې دوه اقوال:** د مرګ نه پس د حساب او د بدلې اولواب دپاره هم د د الله تعالى ذات طرف ته واپس کيدل دى

② دلته د نشور (رجوع) نه مراد دا دى چه: د اوده کيدو نه پس پاسيږه اود معاش په تلاش کښې او په خپل کار روزګار کښې دخپل ژوند په آبادولو کښې مشغول شه،،

**د اوده کيدو په وخت په ښى لاس پاندې د مخ کيښودو حکمت**:د مخ لاندې لاس ايږدل او اوده کيدو سره چونکه زيات غفلت نه پيدا کيږى په دې وجه به نبى عليه السلام دخپل ښى مخ مبارک د لاندې دخپل ښي لاس تلې اېښودلو بيا به اوده کېدلو. دغسې د اوده کيدو په وخت او پاڅيدو نه پس د ذکر اودعا کولو حکمت او وجه داده چه د اعمالو خاتمه هم په

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب السؤال بأسماء الله تعالى والاستعاذة بها (رقم-۷۳۹۴) والترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۱۷ وابن ماجة في كتاب الدعاء/باب ما يدعو به إذا انتبه من الليل (رقم-۳۸۸۰)واحمد في المسند:۱۵۴/۵

[۲]) اخرجه مسلم في صحيحه

عبادت او اطاعت باندې وي اود افعالو ابتداء هم عبادت سره وي

**[۲۳۸٤] بستره کښې د اوده کیدو په وخت مسنون عمل او دعا**

۲۳۸۴-[۳] (۱) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② "«إِذَا أَوَى أَحَدُكُمْ إِلَى فِرَاشِهِ فَلْيَنْفُضْ فِرَاشَهُ بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ ؛ ③ فَإِنَّهُ لَا يَدْرِي مَا خَلَفَهُ عَلَيْهِ ، ④ ثُمَّ يَقُولُ بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ، إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا، وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ»"

**ترجمه** ① ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② هر كله چې په تاسو كې څوك د اوده كيدو دپاره خپلې بسترې ته راشي، نو هغه ته پكار دى چې خپله بستره د خپل لنګ په دننه څاک [طرف] سره وځنډي، ③ ځكه چې هغه ته نه ده معلومه چې د هغه په غير موجودګۍ کې د هغه په بستره څه شي (مثلاً زهريله زنده سر لكه مار، لړم، يا ګرد او دوړه پريوځي، هغه دې لرې كړي) [د هغې نه وروسته پريوزي] ، ④ بيا دې دا كلمات اووائي بِاسْمِكَ رَبِّي وَضَعْتُ جَنْبِي وَبِكَ أَرْفَعُهُ إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَارْحَمْهَا وَإِنْ أَرْسَلْتَهَا فَاحْفَظْهَا بِمَا تَحْفَظُ بِهِ عِبَادَكَ الصَّالِحِينَ.

**حل اللغات:** ① أَوَى: أَيْ: نَزَلَ: قصراومد دواړه شان لوستلې شوي دي دخوب او آرام خانې ته د راتلو په معنى كښې دي. ② فَلْيَنْفُضْ: أَيْ: فَلْيُحَرِّكْ: اودې ځنډى يعنى حركت دې وركړى (بسترې ته) ③ إِزَار: لنګ، ④ وَضَعْتُ: زه ايږدم، ⑤ جَنْبِي: خپل اړخ، ⑥ أَمْسَكْتَ نَفْسِي: أَيْ: قَبَضْتَ رُوحِي: وادې خستلو روح زما، ⑦ أَرْسَلْتَهَا: بِأَنْ رَدَدْتَ الْحَيَاةَ إِلَيَّ: كه راودې ليږلو دا روح، يعنى زما د ژوند اراده دې اوكړه او زه دې دخوب نه رابيدار كړم.

① وَفِي رِوَايَةٍ " «ثُمَّ لِيَضْطَجِعْ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ ② ثُمَّ لِيَقُلْ بِاسْمِكَ» " مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ. ③ وَفِي رِوَايَةٍ «فَلْيَنْفُضْهُ بِصَنِفَةِ ثَوْبِهِ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ ④ وَإِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَاغْفِرْ لَهَا».

**ترجمه** ① او په يوه روايت كې دي، اچې نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل هر كله چې په تاسو كې څوك خپلې بسترې ته راشي نو هغه ته پكار دى چې مخكې خپله بستره وځنډي، بيا په ښي اړخ پريوزي ③ او بيا بِاسْمِكَ (يعني پورتنۍ دعا تر آخره پورې اووائي) بخاري مسلم. ③ په يو بل روايت كې دي چې هغه ته پكار دى چې خپله بستره د خپل پټو [كپړه] په څاک [ګوټ] درې خله وځنډي. ④ او [په يو روايت كې] إِنْ أَمْسَكْتَ نَفْسِي فَاغْفِرْ لَهَا [يعنى په پورتنۍ دعا كې د فَارْحَمْهَا په ځاي فَاغْفِرْ لَهَا] دى

**حل اللغات:** ⑧ شِقِّهِ الْأَيْمَنِ: ښي اړخ، ښي طرف، ⑨ بِصَنِفَةِ: أَيْ: بِطَرَفِهِ: يعنى په يو اړخ او طرف (د جامو سره)

(١) اخرجه البخاري في كتاب الدعوات/باب التعوذ والقراءة عند المنام (رقم-٦٣٢٠) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب ما يقول عند النوم وأخذ المضجع (رقم-٦٤ - (٢٧١٤)) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٦١ وابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما يدعو به إذا أوى إلى فراشه (رقم-٣٨٧٤) واحمد في المسند:٢/٢٩٥

**تسهيلات:**

**قوله: بِدَاخِلَةِ إِزَارِهِ:**

يعني چه کوم لنګ او پرتوګ هغه اغوستي دي د هغې د دننه حصې سره بستره اوځنډه دې دپاره چه څخه ضرري ځيزيه کښې پاتې نشي اوبستره صفا شي

**دبسترې ځنډلوحکمت:** دننه حصې سره ځنډلوکښې يوه فائده داده چه دا طريقه آسانه ده دويمه فائده داده چه صفائي به حاصله شي اود لنګ ظاهري حصه به پاکه اوصفا پاتې شي په دې باندې به څه خيرې پاتې نه شي که څه داغ اولګي هم نوهغه به د لنګ په دننه والا حصه لګيدلې وي يا مطلق لمن مراد ده

**قوله: مَا خَلَفَهُ:** يعني په بستره باندې د ځان نه پس څه ضرري زنده سر پريخودې وي يا څه خيرې وغيره د ځان نه پس په بستره باندې پريخودې شوې وي

**قوله: شِقِّهِ الْأَيْمَنِ:**

**په ښي طرف باندې د اوده کيدلو فوائد:** يعني په ښي طرف باندې اوده شني دې دپاره چه په ګس طرف زړه باندې بوج رانه شي زړه دې ډوب نه شي د سحر د مونځ پاسيدوکښې آساني وي او په سنت باندې عمل اوشي. په شروع کښې ښي طرف واخله بيا روستو ګس طرف ته واوړه داکټران وائي په ګس طرف باندې اوده کيدل پکاردي دې دپاره چه په زړه باندې دې بوج راشي او په زور خوب باندې اوده شي اوسحر دمونځ دپاره پا سيدې نه شي اود سنت خلاف ورزي هم اوشي. دا د دوو متضاد نظامونو دوه متضاد فيصلې دي مسلمانانو له په خپل نظام باندې عمل کول پکاردي

پسند اپنی اپنی　　نصيب اپنا اپنا
يعني خوښه خپله خپله او نصيب خپل خپل

**[۲۳۸۵] خپل ځان الله تعالى ته په حواله کولوسره اوده کيږه**

٢٣٨٥-[٤] (١) ① وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ: "«كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ نَامَ عَلَى شِقِّهِ الْأَيْمَنِ ثُمَّ قَالَ: ② " اللَّهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ، وَوَجَّهْتُ وَجْهِي إِلَيْكَ، وَفَوَّضْتُ أَمْرِي إِلَيْكَ، وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِي إِلَيْكَ، رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ، لَا مَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ، آمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِي أَنْزَلْتَ، وَنَبِيِّكَ الَّذِي أَرْسَلْتَ ③ وَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - "مَنْ قَالَهُنَّ ④ ثُمَّ مَاتَ تَحْتَ لَيْلَتِهِ مَاتَ عَلَى الْفِطْرَةِ»"،

**ترجمه** ① براء ابن عازب رضي الله عنه وايي چه رسول الله ﷺ چې به په خپله بستره څملاستلو په

---

[١]) اخرجه البخاري في كتاب التوحيد/باب قول الله تعالى: «أنزله بعلمه والملائكة يشهدون» [النساء: ١٦٦] (رقم-
٧٤٨٨) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٥٤ وابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما يدعو به إذا أوى إلى فراشه (رقم-
٣٨٧٦) واحمد في المسند: ٢٨٥/٤

بنې اړخ به څملاستلو او د اوده کيدو نه مخکې به يې دا دعاويله ② اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِيْ إِلَيْكَ وَوَجَّهْتُ وَجْهِيْ إِلَيْكَ وَفَوَّضْتُ أَمْرِيْ إِلَيْكَ وَأَلْجَأْتُ ظَهْرِيْ إِلَيْكَ رَغْبَةً وَرَهْبَةً إِلَيْكَ لَامَلْجَأَ وَلَا مَنْجَا مِنْكَ إِلَّا إِلَيْكَ اٰمَنْتُ بِكِتَابِكَ الَّذِيْ أَنْزَلْتَ وَبِنَبِيِّكَ الَّذِيْ أَرْسَلْتَ ③ او رسول الله صلى الله عليه وسلم اوفرمايل کوم سړې چې دا کلمات د اوده کيدو څخه مخکې اووائي، ⑤ او په هغه شپه مړ شي نو هغه په دين د اسلام مړ شو،

**حل اللغات**: ① فَوَّضْتُ: أَيْ تَوَكَّلْتُ: سپارم او حواله کوم زه، ② أَلْجَأْتُ: أَيْ أَسْنَدْتُ: تکيه لګوم، اعتماد کوم ③ رَغْبَةً: مينه او شوق، ④ رَهْبَةً: ويره، ⑤ لَامَلْجَأَ: أَيْ لَامَهْرَبَ وَلَامَلَاذَ: نشته ځائې دتختيدو، او ځائې دپناه ⑥ لَامَنْجَا: أَيْ لَامَخْلَصَ: نشته ځائې دنجات اودخلاصى. ⑦ الْفِطْرَةِ: فطرت يعنى دين اسلام.

**تسهيلات**:

**قوله**: وَوَجَّهْتُ وَجْهِيْ إِلَيْكَ:

**دخوب په وخت کښې الله تعالى ته متوجه کيدل**: دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه کله انسان اوده کيږي نو خپل ځان دې د الله طرف ته متوجه کوي. دې دپاره چه په دې وخت کښې هم مطيع او فرمانبردار اوده شي.

> ① وَفِي رِوَايَةٍ قَالَ: «قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - لِرَجُلٍ "يَا فُلَانُ ② إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَتَوَضَّأْ وُضُوءَكَ لِلصَّلَاةِ ③ ثُمَّ اضْطَجِعْ عَلَى شِقِّكَ الْأَيْمَنِ ④ ثُمَّ قُلِ اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِي إِلَيْكَ، إِلَى قَوْلِهِ أَرْسَلْتَ ⑤ وَقَالَ: فَإِنْ مِتَّ مِنْ لَيْلَتِكَ مِتَّ عَلَى الْفِطْرَةِ ⑥ وَإِنْ أَصْبَحْتَ أَصَبْتَ خَيْرًا» "مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① او په يو روايت کې براء رضي الله عنه وايي چې نبى کريم صلى الله عليه وسلم يو سړى ته وفرمايل اې فلاني سړيه ② هر کله چې ته خپلې بسترې ته راشې نو مخکې د مانځه په شان اودس اوکړه، ③ بيا په ښي اړخ باندې څمله ④ بيا د اللّٰهُمَّ أَسْلَمْتُ نَفْسِيْ څخه تر أَرْسَلْتَ پورې (يعني پورتنى) دعا اووايه ⑤ بيا نبى کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل که په هغه شپه ته مړ شې نو ته به په دين د اسلام مړ شې. ⑥ که په تا سحر شو نو د دنيا او آخرت خيرونه (يعني ښيګړې) به بيامومې (بخاري مسلم)

**حل اللغات** ⑧ أَوَيْتَ: أَيْ: قَصَدْتَ الْمَأْوَى: د ورتلو اراده دې اوکړه (دخوب ځائې ته)

**[۲۳۸۶] د اوده کيدو په وخت مسنون عمل**

> ۲۳۸۶ - [۵] (¹) ① وَعَنْ أَنَسٍ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ قَالَ: ② "الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي أَطْعَمَنَا وَسَقَانَا ③ وَكَفَانَا وَآوَانَا ④ فَكَمْ مِمَّنْ لَا كَافِيَ لَهُ ⑤ وَلَا مُؤْوِيَ» "رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** ① انس رضي الله عنه راوي دى چې رسول الله ﷺ به خپلې بسترې ته تشريف راوړو، نو دا

¹) اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب ما يقول عند النوم وأخذ المضجع (رقم-۶۴ - (۲۷۱۵) وابوداود فى كتاب الأدب /باب ما يقال عند النوم (رقم- ۵۰۵۳) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۴۵۶

کلمات به یې ویل [۲] تعریف دې هغه الله لره چې مونږ باندې ئې خوراک اوڅکاک اوکړو [۳] وزمونږ د ضروریاتو دپاره کافي کیږي [۴] ومونږ ته یې «داوسیدودپاره» ځائې راکړې دې [۵] ډیر داسې خلق شته چې نه ئې څوک کافي کیدونکې وي [۶] اونه ورته څوک ځائې ورکونکې وي (مسلم)

**حل اللغات**: ①کَفَانَا: أي کفی مهمَاتِنَا: کافي شوې زمونږ دمقاصدو دپاره، ②لاَکَافِيَ: کافي نه شو هغه یعنی الله کافران دشر نه محفوظ نه کړل، ③مُئوِي: د باب افعال نه د اسم فاعل صیغه ده. ځائې او پناه ورکونکې

**تسهیلات**:

**قوله**: لَاکَافِيَ لَهُ:

**د دشمنانو دشر څخه د الله تعالی کفایت**: یعنی الله تعالی زمونږ دپاره کافي شو اود دښمنانو د شرنه ئې محفوظ اوساتلو. څومره خلق دي چه ددښمنانو دشر په مقابله کښې دې الله تعالی هغوی پریخودی دي اوالله تعالی زمونږ دپاره کافي شوې دې. څومره خلق دي چه د قضاء اوقدر د وجې نه دالله تعالی د نعمتونونه محروم پاتې دي دهغوی د سرپټولو څه ځائې نه وي هغوی بازارونو کوڅو او فټ پاتهونو باندې خپل وخت تیره وي. نه هغوی ته د ګرمئ نه د بچ کیدو آرام نصیب وي اونه د یخنئ د تکلیف نه څه پناه لاوېږي

**[۲۳۸۷] حضرت علي او فاطمې ته د تسبیحاتو خودل**

۲۳۸۷-[۶] (۱) [۱] وَعَنْ عَلِيٍّ «أَنَّ فَاطِمَةَ أَتَتِ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَشْكُو إِلَيْهِ [۲] مَا تَلْقَى فِي يَدِهَا مِنَ الرَّحَى، [۳] وَبَلَغَهَا أَنَّهُ جَاءَهُ رَقِيقٌ، [۴] فَلَمْ تُصَادِفْهُ، [۵] فَذَكَرَتْ ذَلِكَ لِعَائِشَةَ، [۶] فَلَمَّا جَاءَ أَخْبَرَتْهُ عَائِشَةُ، [۷] قَالَ: فَجَاءَنَا وَقَدْ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا فَذَهَبْنَا نَقُومُ،

**ترجمه** [۱] حضرت علي رضي الله عنه فرمایي چې (زما زوجه محترمه او د رسول الله ﷺ لور) بي بي فاطمه رضي الله عنها رسول الله ﷺ ته د دې غرض د پاره حاضره شوه، چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته د دې شکایت اوکړي [۲] چې د میچن ورکولو په وجه د هغې لاسونه په تکلیف کې مبتلا وو. (او یو خادم اوغواړي) [۳] ځکه چې بي بي فاطمې رضي الله عنها ته معلومه شوې وه چې نبی کریم صلی الله علیه وسلم ته څه غلامان راغلي دي. [۴] خو هغه وخت یې د نبی کریم صلی الله علیه وسلم سره ملاقات نه وشو. [۵] نو د بي بي عائشې رضي الله عنها په مخکې یې د دې تذکره وکړه (یعني هغې ته یې اوویل چې کله نبی کریم صلی الله علیه وسلم تشریف

---

[۱]) اخرجه البخاري في كتاب النفقات /باب عمل المرأة في بيت زوجها (رقم-۵۳۶۱) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التسبيح أول النهار وعند النوم (رقم-۸۰ - (۲۷۲۷) وابوداود في كتاب الأدب /باب في التسبيح عند النوم (رقم-۵۰۶۲) واحمد في المسند: ۱/ ۸۰ والترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۶۹

راوړي، نو عرض ورته وکړه چې فاطمه رضي الله عنها د خپل مشقت پيش نظر يو غلام غوښتلو لره حاضره شوي وه،[۶] بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم چه کله تشريف راوړو نو بي بي عائشي رضي الله عنها نبي کريم صلى الله عليه وسلم ته د بي بي فاطمي رضي الله عنها پيغام ورسولو.[۷] حضرت علي رضي الله عنه وايي چې د دې څخه روسته نبي کريم صلى الله عليه وسلم زمونږ خواته تشريف راوړو ، هر کله چې مونږ په خپلو بسترو پراته وو (د نبي کريم صلى الله عليه وسلم په ليدو سره مونږ د اودريدو اراده وکړه)

**حل اللغات:** ① الرَّحَى: ميچن، ② رَقِيقٌ: أي المَملوك: غلام، ③ فَلَمْ تُصَادِفْهُ: أي: لَمْ تَجِدْ: يعني بي بي فاطمي نبي کريم صلى الله عليه وسلم بيانه موندلو (ملاقات ئې ورسره اونه شو) ④ أَخَذْنَا مَضَاجِعَنَا: أي: حَالَ كَوْنِنَا مُضْطَجِعِينَ: مونږ ملاست وو.

[۱] فَقَالَ: "عَلَى مَكَانِكُمَا". [۲] فَجَاءَ فَقَعَدَ بَيْنِي وَبَيْنَهَا [۳] حَتَّى وَجَدْتُ بَرْدَ قَدَمِهِ عَلَى بَطْنِي، [۴] فَقَالَ: "أَلَا أَدُلُّكُمَا عَلَى خَيْرٍ مِمَّا سَأَلْتُمَا؟ [۵] إِذَا أَخَذْتُمَا مَضْجَعَكُمَا فَسَبِّحَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، [۶] وَاحْمَدَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ، [۷] وَكَبِّرَا أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ [۸] فَهُوَ خَيْرٌ لَكُمَا مِنْ خَادِمٍ". (مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ).

**ترجمه** [۱] نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې په خپل ځای پراته اوسئ، [۲] بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم مونږ ته نزدې تشريف راوړو. او زما او د فاطمي رضي الله عنها په مينځ کې کيناستلو، [۳] تر دې چې ما په خپله خيټه د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د قدمونو مبارکو يخوالې محسوس کړو [۴] بيا نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل (چې ماته د فاطمي رضي الله عنها پيغام را رسيدلې دې) آيا زه تاسو ته هغه څيز ونه ښايم چې د هغه څيز (يعني د غلام) څخه بهتر دې؟ کوم چې تاسو غوښتې وو، [۵] او هغه دا دې چې کله تاسو خپلې بسترې ته راځئ نو (۳۳) خله سبحان الله وايئ [۶] او (۳۳) خله الحمد لله وايئ [۷] او (۳۴) خله الله اکبر وايئ، [۸] نو ستاسو لپاره د خادم څخه دا شي بهتر دې (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله:** فَسَبِّحَا ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ:

**د نبي عليه السلام د علي او فاطمي رضي الله عنهما سره محبت:** چونکه نبي کريم صلى الله عليه وسلم به حضرت فاطمه او حضرت علي رضي الله عنهما دواړو سره ډير زيات محبت کولو، او د نبي کريم صلى الله عليه وسلم ډير شفقت به هيڅ تکليف نه برداشت کولو، په دې وجه کله چه نبي کريم صلى الله عليه وسلم د هغوی کره راغې نو د کامل محبت او شفقت په وجه د هغوی په مينځ کښې کيناستلو، ځکه چه مينه ، محبت او شفقت د څه تکلف ورکولو پابند نه وی، په دې وجه ونيلې شوی دی چه اذا جاءت الألفة رُفعت الكلفة، **ترجمه** [۱] کله چه محبت راغې نو تکلف لرې کړې شو،

**ذکرونو په اول او روسته ونيلو کښې افضل:** د پورته الفاظو د ترتيب په سلسله کښې جزري رحمه

ته په شرح مصابيح کښې وئيلي دي چه بکسر مخکښې ذي. ابن کثير رحمه الله په فرمائيل چه د مونځونو نه پس خو اول سبحان الله وئيل بکار دي ددې نه پس الحمدلله او بيا الله اکبر. ليکن د اوده کيدو په وخت اول الله اکبر وئيل بکار دي. په دې سلسله کښې علماؤ ليکلي دي چه زيات ته صحيح خبره داده چه الله اکبر کله اول وئيل بکار دي او کله کله روستو. چه په دې باره کښې په رانقل شوو دواړو روايتونو باندې عمل اوشي. او همدا زيات غوره او بهتر دي

**[۲۳۸۸] هر مانځه پسې د تسبيحاتو وئيلو تعليم ورکول**

٢٣٨٨-[٧] ( )[١]وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ «جَاءَتْ فَاطِمَةُ رضي الله عنها إِلَى النَّبِيِّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- تَسْأَلُهُ خَادِمًا[٢] فَقَالَ: (أَلَا أَدُلُّكِ عَلَى مَا هُوَ خَيْرٌ مِنْ خَادِمٍ[٣] تُسَبِّحِينَ اللَّهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ،[٤] وَتَحْمَدِينَ اللَّهَ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ،[٥]وَتُكَبِّرِينَ اللَّهَ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ[٦]عِنْدَ كُلِّ صَلَاةٍ وَعِنْدَ مَنَامِكِ» )رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې بي بي فاطمه زهرا رضي الله عنها د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خدمت کې د دې مقصد د پاره حاضره شوه چې د نبی کريم صلی الله عليه وسلم څخه يو غلام وغواړي ليکن د نبی کريم صلی الله عليه وسلم سره يې ملاقات ونه شو. کوم وخت چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم ته دا معلومه شوه ، نو نبی کريم صلی الله عليه وسلم بي بي فاطمې رضي الله عنها کره تشريف راوړوا.[٢] او وي فرمايل چې آيا زه ته هغه څيز ونه ښايم چې د خادم څخه بهتر دی؟[٣] او هغه دا دی، چې سبحان الله [٣٣] خله وايه[٤] او الحمد لله [٣٣] خله وايه[٥] او الله اکبر [٣٤] خله وايه.[٦] د هر مانځه څخه روسته او د اوده کيدو په وخت مسلم.

**حل اللغات** ① أَلَا أَدُلُّكِ: آيا زه اونه ښانم تاته (يعني يو داسې عمل درته اونه ښانم)

**تسهيلات:**

**د مذکوره کلماتو دنياوی فائدې:** د اوده کيدو په وخت ددې تسبيحاتو وئيل د ټولې ورځې مشقت اومحنت او ستړې والې او هرقسم غم او خفگان لرې کوي

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٣٨٩] د سحر او ماښام دعاګاني**

٢٣٨٩-[٨] ( )[١]عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا أَصْبَحَ قَالَ:[٢](اللَّهُمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ أَمْسَيْنَا، وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ، وَإِلَيْكَ الْمَصِيرُ[٣] وَإِذَا أَمْسَى قَالَ:[٤] اللَّهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ أَصْبَحْنَا، وَبِكَ نَحْيَا وَبِكَ نَمُوتُ، وَإِلَيْكَ النُّشُورُ» )رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

---

) اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار باب التسبيح أول النهار وعند النوم (رقم ٨١ - (٢٧٢٨)

) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب باب ما يقول إذا أصبح (رقم-٥٠٦٨) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٥١ وابن ماجة في كتاب الدعاء باب ما يدعو به الرجل إذا أصبح وإذا أمسى (رقم-٣٨٦٨)

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې كله به صبا سحر، شو، نو د رسول الله ﷺ به ژبه مبارکه به دا دعائیه کلمات جاري شو [۲] اللّٰهُمَّ بِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ نَحْيٰى وَبِكَ نَمُوْتُ وَإِلَيْكَ الْمَصِيْرُ [۳] او هر كله چې به ماښام شو نو رسول الله ﷺ به دا دعا ويله [۴] اللّٰهُمَّ بِكَ أَمْسَيْنَا وَبِكَ أَصْبَحْنَا وَبِكَ نَحْيٰى وَبِكَ نَمُوْتُ وَإِلَيْكَ النُّشُوْرُ. (ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات**: ① النُّشُورُ: أي: الْبَعْثُ بَعْدَ الْمَوْتِ: د مرګ نه پس دوباره راپاڅيدل.

**[۲۳۹۰] ابوهريره ته د صبا ماښام وظيفه وركول**

۲۳۹۰- [۹] ([۱]) [۱] وَعَنْهُ «قَالَ أَبُوبَكْرٍ: قُلْتُ: [۲] يَا رَسُولَ اللهِ مُرْنِي بِشَيْءٍ أَقُولُهُ إِذَا أَصْبَحْتُ وَإِذَا أَمْسَيْتُ، [۳] قَالَ: (قُلِ اللّٰهُمَّ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ، فَاطِرَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ، رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ، أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي، وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ، [۴] قُلْهُ إِذَا أَصْبَحْتَ وَإِذَا أَمْسَيْتَ وَإِذَا أَخَذْتَ مَضْجَعَكَ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُودَاوُدَ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې حضرت ابوبكر رضي الله عنه فرمايي چې ما عرض وكړو [۲] چې يا رسول الله! ﷺ ماته يو داسې دعا راوښايه چې زه يې سحر او ماښام (د ورد په طور) وايم. [۳] نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې دا دعا وايه اللّٰهُمَّ عَالِمَ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ فَاطِرَ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ أَشْهَدُ أَنْ لَّا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ نَفْسِي وَمِنْ شَرِّ الشَّيْطَانِ وَشِرْكِهِ [۴] او نبى كريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ته دا دعا د سحر په وخت كې وايه او د ماښام په وخت كې يې وايه، او د اوده كيدو په وخت كې هم (ترمذي، ابوداؤد، دارمي)

**حل اللغات**: ① مَلِيكَهُ: د فعيل نه په معنى د فاعل سره، دمبالغې دپاره. مالک او اختيارمند. بادشاه. ② قُلْهُ: أي: قُلْ هٰذَا: دا وايه (دا كلمات وايه)

**[۲۳۹۱] د جسماني صحت دپاره عجيبه دعا**

۲۳۹۱- [۱۰] ([۲]) [۱] «وَعَنْ أَبَانَ بْنِ عُثْمَانَ قَالَ: سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ: قَالَ رَسُولُ اللهِ- صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- [۲] (مَا مِنْ عَبْدٍ يَقُولُ فِي صَبَاحِ كُلِّ يَوْمٍ وَمَسَاءِ كُلِّ لَيْلَةٍ [۳] بِسْمِ اللهِ الَّذِي لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهِ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ [۴] ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فَيَضُرَّهُ شَيْءٌ) [۵] فَكَانَ أَبَانُ قَدْ أَصَابَهُ طَرَفُ فَالِجٍ [۶] فَجَعَلَ الرَّجُلُ يَنْظُرُ إِلَيْهِ،

**ترجمه** [۱] ابان ابن عثمان رضي الله عنه وايي چې ما خپل پلار بزرګوار څخه واوريدل چې رسول الله

---

[۱]) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم-۵۰۶۷) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۴۵۲ واحمد فى المسند: ۱۹۶/۲

[۲]) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم- ۵۰۸۸) والترمذى فى السنن رقم الحديث ۳۴۴۸ وابن ماجة فى كتاب الدعاء /باب ما يدعو به الرجل إذا أصبح وإذا أمسى (رقم-۳۸۶۹) واحمد فى المسند: ۶۲/۱

ﷺ وفرمایل[۲] کوم بنده چې هره ورځ سحر او ماښام دا دعا اووائي [۳] بِسْمِ اللّٰهِ الَّذِيْ لَا يَضُرُّ مَعَ اسْمِهٖ شَيْءٌ فِي الْأَرْضِ وَلَا فِي السَّمَاءِ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ .[۴] او دا دري خله وايي، نو هغه ته هيڅ څيز نقصان نشي رسولې ابعني که يو سړی دا دعا دري دري خله وايي نو هغه ته هيڅ څيز ضرر او نقصان نشي رسولې او نه به په څه آفت او مصيبت کې اخته کيږي[۵] او دا اتفاقي خبره ده چې هغه وقت، ابان د فالج په يو قسم کې مبتلا وو .[۶] نو هغه سړي چې دا روايت يي اوريدلو، د ابان طرف ته يي اد تعجب په نظر سره ا کتل شروع کړل چې دلته دا وايي چې کوم سړی دا دعا وائي هغه ته به يو شې هم نقصان نشي رسولې. حال دا چې خپله د فالج په مرض کې راګير دې

**حل لغات:** ① طَرَفُ فَالَجٍ: أَيْ: نَوْعٌ: د فالج يو قسم ورته لګيدلې وو ② فَالَجٌ: دا يو بيماري ده چه بلغمي مواد د بدن يو طرف ته اورسيږي چه هلته د روح د رسيدو مسامات بند شي نو هغه طرف سست شي

[۱] فَقَالَ لَهُ أَبَانُ: مَا تَنْظُرُ إِلَيَّ أَمَا إِنَّ الْحَدِيثَ كَمَا حَدَّثْتُكَ، [۲] وَلٰكِنِّي لَمْ أَقُلْهُ يَوْمَئِذٍ لِيُمْضِيَ اللّٰهُ عَلَيَّ قَدَرَهُ». [۳] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَأَبُو دَاوُدَ، [۴] وَفِي رِوَايَةٍ " «لَمْ تُصِبْهُ فُجَاءَةُ بَلَاءٍ " . حَتّٰى يُصْبِحَ، [۵] وَمَنْ قَالَهَا حِيْنَ يُصْبِحُ لَمْ تُصِبْهُ فُجَاءَةُ بَلَاءٍ حَتّٰى يُمْسِيَ»).

**ترجمه** [۱] ابان هغه ته اوويل چې ته زما طرف ته څه په تعجب سره ګوري، په ښه شان پوهه شه چې دا حديث هم داسې دې، څرنګه چې ما بيان کړی دی (يعني بالکل صحيح دې)[۲] البته په کومه ورځ چې زه په دي مرض کې مبتلا شوم، په هغه ورځ ما دا دعا نه وه ويله، چې الله ﷻ زما په مقدر کې څه ليکلي وو، هغه پوره شي،[۳] ترمذي، ابن ماجه، ابوداؤد [۴] او د ابوداؤد په روايت کې دا الفاظ دي چې کوم سړی دا دعا د ماښام په وخت کې اووائي. هغه به تر صبا پورې په څه ناګهاني بلاء کې نه مبتلا کيږي.[۵] او کوم سړې يې چې سحر وخت کښې اووائي هغه به تر ماښام پورې په څه ناګهاني بلاء کې نه اخته کيږي

**حل اللغات:** ① لِيُمْضِيَ: چه پوره کړی الله. ② بَلَاءٍ: ناڅاپي مصيبت ته وائی

**تسهيلات:**

**قوله:** يَنْظُرُ:

**په حديث باندې يقين ساتل:** يعنی دغه سړی ته شك پيدا شو چه کله دَ دغه دعا دومره يقينی تاثير وو نوبيا حضرت ابان ته فالج ولې اوشو؟ حضرت ابان په دغه قصه باندې پوهه شو نوهغه په جواب کښې رومبې والې اوکړو او وئی فرمائيل په حديث کښې شك مه کوئی حديث په خپل ځائی ريښتوني دې ليکن ما هغه وخت دا وظيفه کول هير کړې وو.

**[٢٣٩٢] د صبا ماښام پله مسنون وظيفه**

٢٣٩٢ - [ ١١ ] ( ) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ إِذَا أَمْسَى [٢] (أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرَ مَا بَعْدَهَا، وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهَا، رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَمِنْ سُوءِ الْكِبَرِ، أَوِ الْكُفْرِ» )

**ترجمه** [١] عبد الله ابن مسعود رضي الله عنه وايي چې کله به ماښام شو نو رسول الله ﷺ به دا دعا نيه کلمات ويل [٢] أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلَّهِ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ رَبِّ أَسْأَلُكَ خَيْرَ مَا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَخَيْرَ مَا بَعْدَهَا وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِي هَذِهِ اللَّيْلَةِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهَا رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْكَسَلِ وَمِنْ سُوءِ الْكِبَرِ أَوِ الْكُفْرِ

**حل اللغات** ① الْكَسَلِ : أَيِ التَّثَاقُلِ: درونډوالي. سستي ، د نيکئ په کارونو کښې

[١] وَفِي رِوَايَةٍ ( [٢] «مِنْ سُوءِ الْكِبَرِ وَالْكِبْرِ، رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ. [٣] وَإِذَا أَصْبَحَ قَالَ ذَلِكَ أَيْضًا: [٤] أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّهِ» ) [٥] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ، وَفِي رِوَايَتِهِ لَمْ يَذْكُرْ مِنْ سُوءِ الْكُفْرِ.

**ترجمه** [١] او په يو روايت کې دا الفاظ دي [٢] مِنْ سُوءِ الْكِبَرِ وَالْكِبْرِ رَبِّ أَعُوذُ بِكَ مِنْ عَذَابٍ فِي النَّارِ وَعَذَابٍ فِي الْقَبْرِ. [٣] او کله چې به سحر شو نو نبي کريم صلى الله عليه وسلم به دا مذکوره پورته دعا ويله. [٤] البته د سحر په وخت کې به يې د أَمْسَيْنَا وَأَمْسَى الْمُلْكُ لِلَّهِ په ځای أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّهِ، ويل [٥] دا روايت ابوداؤد او ترمذي نقل کړې دې ليکن د ترمذي په روايت کې مِنْ سُوءِ الْكُفْرِ الفاظ نشته

**حل اللغات** ① الْكِبَرِ : أَيْ مِنْ سُقُوطِ الْقُوَى: چه د بدن طاقت ختم شي. عقل او بدن کمزوري شي يعنې بوډاتوب. ② وَالْكِبْرِ: أَيِ التَّكَبُّرِ عَنِ الْحَقِّ: لوني. تکبر ، د حق نه مخ اړول.

**[٢٣٩٣] د نبي عليه السلام خپلې لور ته د صبا ماښام وظيفه ورکول**

٢٣٩٣ - [ ١٢ ] ( ) [١] وَعَنْ بَعْضِ بَنَاتِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يُعَلِّمُهَا فَيَقُولُ: [٢] ( «قُولِي حِينَ تُصْبِحِينَ سُبْحَانَ اللَّهِ وَبِحَمْدِهِ، وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ، مَا شَاءَ اللَّهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ، أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، وَأَنَّ اللَّهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا [٣] فَإِنَّهُ مَنْ قَالَهَا حِينَ يُصْبِحُ [٤] حُفِظَ حَتَّى يُمْسِيَ، [٥] وَمَنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي حُفِظَ حَتَّى يُصْبِحَ» ) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [١] د رسول الله ﷺ د يوې لور څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ هغې ته تعليم

---

[١] اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل (رقم-٧٤ - ٢٧٢٣) وابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ٥٠٧١) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٥٠

[٢] اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم- ٥٠٧٥)

ورکړو. چې کله سحر شي. ۲ نو دا دعا وايه سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ مَا شَاءَ اللهُ كَانَ وَمَا لَمْ يَشَأْ لَمْ يَكُنْ أَعْلَمُ أَنَّ اللهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ وَأَنَّ اللهَ قَدْ أَحَاطَ بِكُلِّ شَيْءٍ عِلْمًا. ۳ نو کوم سړي چې د سحر په وخت دا دعا وايي. ۴ هغه به تر ماښامه پورې د بلاګانو او خطاګانو څخه محفوظ وي. ۵ او کوم سړی چې يې د ماښام په وخت کې اووائي. نو تر سحره به محفوظ وي. (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① أَحَاطَ: احاطه ئې کړې ده، راګير کړی ئې دی (هر څيز). ② حُفِظَ: محفوظ کړې شو (د هر قسم بلاګانو او مصيبتونو نه)

**[۲۳۹۴] د اورادو د کمې پوره کولو وظيفه**

---[۱۳] (¹) ۱ وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ۲ «مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ ۳ ﴿فَسُبْحَانَ اللهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ﴾ [الروم: ۱۷] ﴿وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ﴾ [الروم: ۱۸] إِلَى قَوْلِهِ ﴿وَكَذَلِكَ تُخْرَجُونَ﴾ [الروم: ۱۹] ۴ أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي يَوْمِهِ ذَلِكَ ۵ وَمَنْ قَالَهُنَّ حِينَ يُمْسِي أَدْرَكَ مَا فَاتَهُ فِي لَيْلَتِهِ» رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ۱ ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۲ کوم سړي چې د سحر په وخت دا کلمات وايي ۳ فَسُبْحَانَ اللهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ وَلَهُ الْحَمْدُ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَعَشِيًّا وَحِينَ تُظْهِرُونَ. او دا آيت وَكَذَلِكَ تُخْرَجُونَ. پورې اووائي ۴ نو هغه ته به هغه څيز حاصل شي، چې د هغې څخه په هغه ورځ محروم شوې وي (يعنی يو نيک کار، ورد او وظيفه وغيره په دی ورځ کې خينې پاتې شوی وی د هغې ثواب به ورته حاصل شي) ۵ او چا چې دا آيت ماښام اوونيلو نو هغه څيز به ورته حاصل شي، چې په هغه شپه کې ځنې محروم پاتې شوی وی (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① تُخْرَجُونَ: تاسو به راويستلی شئ (ژوندي د قبرونو نه دپاره د حساب کتاب)

**تسهيلات:**

**قوله** تُمْسُونَ:

**قرآن کريم له د پنځه مونځونو د وختونو ثبوت**: کښې دَ ماښام اوماسخوتن وخت بيان کړې شوې دې اود وَحِينَ تُصْبِحُونَ نه دَ سحرد مونځ وخت مراد دې عَشِيًّا: نه مراد دَمازيګرمونځ اودَ تُظْهِرُونَ نه دَ ماسپښين مونځ مراددې دَ پنځو مونځونودَ وختونو دَپاره دا آيت دَ ټولونه زيات واضح او جامع دې

---

¹) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۷۶)

**[۲۲۹۵] د صبا ماښام په وظيفه د لسو ګناهونو معاف کيدل**

۲۳۹۵-[۱۴] (۱) ۞ وَعَنْ أَبِي عَيَّاشٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: ۞ «مَنْ قَالَ إِذَا أَصْبَحَ: ۞ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، ۞ كَانَ لَهُ عِدْلَ رَقَبَةٍ مِنْ وَلَدِ إِسْمَاعِيلَ، ۞ وَكُتِبَ لَهُ عَشْرُ حَسَنَاتٍ، ۞ وَحُطَّ عَنْهُ عَشْرُ سَيِّئَاتٍ، ۞ وَرُفِعَ لَهُ عَشْرُ دَرَجَاتٍ، ۞ وَكَانَ فِي حِرْزٍ مِنَ الشَّيْطَانِ حَتَّى يُمْسِيَ،

**ترجمه** ۞ ابو عياش ﷺ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ۞ څوک چې سحر دا کلمات اووائي ۞ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ۞ نو هغه ته د حضرت اسماعيل ﷺ د اولاد څخه د يو غلام آزادولو د ثواب په قدر ثواب حاصليږي. ۞ او د هغه د پاره لس نيکۍ ليکل کيږي، ۞ او لس بدۍ يې لرې کولې شي. ۞ او لس درجې يې اوچتولې شي، ۞ او هغه تر ماښام پورې د شيطان د شر څخه په پناه کې وي

**حل اللغات** ① عَدْلَ: بِمَعْنَى الْمِثْلِ: برابر، مثل او اندازه مراد ده ② رَقَبَة: څټ ته وائي دلته ترې غلام او مرئي مراد دي ③ حُطَّ: أَيْ: وُضِعَ وَمُحِيَ: غورزيږي، ورانيږي ④ حِرْز: أَيْ: حِفْظ: پناه، حفاظت

۞ وَإِنْ قَالَهَا إِذَا أَمْسَى كَانَ لَهُ مِثْلُ ذَلِكَ حَتَّى يُصْبِحَ) ۞ فَرَأَى رَجُلٌ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فِيمَا يَرَى النَّائِمُ فَقَالَ: ۞ يَا رَسُولَ اللهِ إِنَّ أَبَا عَيَّاشٍ يُحَدِّثُ عَنْكَ بِكَذَا وَكَذَا، ۞ قَالَ: (صَدَقَ أَبُو عَيَّاشٍ» ) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** ۞ او کوم سړی چې دا کلمات، په ماښام کې ووېلي، نو هغه ته تر سحره پورې دا سعادت حاصليږي. ۞ د دې حديث يو راوي حماد ابن سلمه فرمايي چې بيا يو سړي رسول الله ﷺ په خوب کې وليدلو، او عرض يې وکړو ۞ چې يا رسول الله ﷺ ابو عياش ستاسو دا سې حديث (يعني مذکوره پورتني حديث) بيانوي. ۞ نبي کريم صلى الله عليه وسلم وفرمايل چې ابو عياش رښتيا وويل (ابوداؤد، ابن ماجه)

**[۲۲۹۶] د دوزخ نه د حفاظت يوه عجيبه دعا**

۲۳۹۶-[۱۵] (۲) ۞ وَعَنِ الْحَارِثِ بْنِ مُسْلِمٍ التَّمِيمِيِّ عَنْ أَبِيهِ «عَنْ رَسُولِ اللهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ۞ أَنَّهُ أَسَرَّ إِلَيْهِ، فَقَالَ: ۞ (إِذَا انْصَرَفْتَ مِنْ صَلَاةِ الْمَغْرِبِ فَقُلْ قَبْلَ أَنْ تُكَلِّمَ أَحَدًا: ۞ اللَّهُمَّ أَجِرْنِي مِنَ النَّارِ سَبْعَ مَرَّاتٍ. ۞ فَإِنَّكَ إِذَا قُلْتَ ذَلِكَ ثُمَّ مِتَّ فِي لَيْلَتِكَ ۞ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا، ۞ وَإِذَا صَلَّيْتَ الصُّبْحَ فَقُلْ كَذَلِكَ ۞ فَإِنَّكَ إِذَا مِتَّ فِي يَوْمِكَ كُتِبَ لَكَ جِوَارٌ مِنْهَا» ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ۞ حارث بن مسلم تميمي رحمه الله خپل پلار بزرګوار څخه او هغه د رسول الله ﷺ

[1] اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۷۷) وابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما يدعو به الرجل إذا أصبح وإذا أمسى (رقم -۳۸۶۷)

[2] اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۷۹)

څخه نقل کوي[۲] چې رسول الله ﷺ (مسلم تميمي ؓ)، ته په غوږ کې وفرمايل[۳] هر کله چې ته د ماښام د مانځه څخه فارغ شې، نو د چا سره د خبرو کولو څخه مخکې اووه خله دا کلمات وايه[۴] اَللّٰهُمَّ أَجِرْنِيْ مِنَ النَّارِ ، اې الله ﷻ ما ته د اور څخه نجات راکړې[۵] او که ته دا کلمات اووائې، او بيا په هغه شپه وفات شې[۶] نو ستا د پاره به د اور څخه نجات (د خلاصي لار) ليکل کېږي،[۷] او هر کله چې ته د سحر د مانځه څخه فارغه شې، او دغه شان اووائې (يعني د چا سره د خبرو کولو څخه مخکې اووه خله دا کلمات اووائې[۸] او بيا په هغه ورځ وفات شې، نو ستا د پاره به د اور څخه نجات ليکل کېږي (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① أَسَرَّ: أي: تَكَلَّمَ مَعَهُ سِرًّا: پټه خبره ئې ورته اوکړه (غوږ کښې ئې ورته د راز خبره اوکړه) ② أجِرْنِي: أي: خَلِّصْنِي: ما اوساتې، خلاص مې کړې. ③ جَوَازٌ: أي: خَلَاصٌ: نجات. خلاصون.

**تسهيلات:**

**قوله: جَوَازٌ مِنْهَا:**

**د مذکوره دعا کمال:** چونکه په دې دعاکښې دَ اجرنی په لفظ سره دعاغوښتې شوې ده دَ کوم ترجمه چه پناه او نجات دې په دې وجه دَ سوال په جواب کښې "کتب له جوار" دَ ثواب په توګه خودلې شوې دې چه دَدې سرې دپاره دَ دوزخ نه دَ خلاصی اودَ پناه پروانه به ليکلې کيږی دا يوه عجيبه دعاده بالکل مختصرده او په تعداد کښې هم مختصر "اللهم اجرنی من النار" ملاعلی قاری ؒ مرقات کښې ليکلی دی چه دا لفظ "جوار" هم منقول دې

**[۲۴۱۷] دَ سحر ماښام يو جامع دعا**

۲۴۰۳-[۱۶] (۱)[۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «لَمْ يَكُنْ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَدَعُ هَؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ حِينَ يُمْسِي وَحِينَ يُصْبِحُ[۲] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ،[۳] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِي دِينِي وَدُنْيَايَ وَأَهْلِي وَمَالِي،[۴] اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِي وَآمِنْ رَوْعَاتِي،[۵] اللّٰهُمَّ احْفَظْنِي مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِي وَعَنْ يَمِينِي وَعَنْ شِمَالِي وَمِنْ فَوْقِي[۶] وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِي يَعْنِي الْخَسْفَ» . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] ابن عمر ؓ وايي چې رسول الله ﷺ به د سحر او ماښام په وخت دا دعا ويله [۲] اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْعَافِيَةَ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ فِيْ دِيْنِيْ وَدُنْيَايَ وَأَهْلِيْ وَمَالِيْ اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِيْ وَآمِنْ رَوْعَاتِيْ اللّٰهُمَّ احْفَظْنِيْ مِنْ بَيْنِ يَدَيَّ وَمِنْ خَلْفِيْ وَعَنْ يَمِيْنِيْ وَعَنْ شِمَالِيْ وَمِنْ فَوْقِيْ وَأَعُوذُ بِعَظَمَتِكَ أَنْ أُغْتَالَ مِنْ تَحْتِيْ، ترجمه اې الله ﷻ زه ستا څخه د دنيا او آخرت عافيت

---

(۱) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب في التسبيح عند النوم (رقم-۵۰۷۴) وابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما يدعو به الرجل إذا أصبح وإذا أمسى (رقم-۳۸۷۱)

غواړم. [۳] يا الله ﷻ زه ستا څخه د ګناهونو معافي غواړم، او د خپل دين او دنيا په امورو کې د عيبونو او خرابو څخه او پخپل اهل وعيال او په مال کې سلامتي غواړم. [۴] اې پروردګاره! زما د عيبونو پرده پوښي وکړې، او ما د خوف د ځيزونو څخه په امن کې وساتې (يعني زما مصيبتونه او بلاګانې لرې کړې) [۵] او اې الله ﷻ ته ما د مخې څخه، د وروسته څخه، د ښي طرف څخه، ګس طرف څخه او د لوړې څخه محفوظ وساتې. [۶] او اې الله ﷻ زه ستا د عظمت او کبريايي په ذريعه د دې خبرې څخه پناه غواړم، چې اچانک هلاک شم د لاندې د طرف څخه يعنې په زمکه کې د غرقيدو څخه (ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الْعَفْوَ: أَيْ: التَّجَاوُزَ عَنِ الذُّنُوبِ: ګناهونه معاف کول. ② الْعَافِيَةَ: أَيْ: السَّلَامَةَ مِنَ الْعُيُوبِ: د عيبونو نه محفوظ ساتل. ③ عَوْرَاتِي: أَيْ: عُيُوبِي: عورت د کومو په ښکاره کيدو چه انسان شرميږي، ددې نه مراد يا عيبونه دي يا ګناهونه دي. ④ رَوْعَاتِي: أَيِ الْفَزْعَةُ: د ويرونکې ځيزونه. ⑤ أُغْتَالَ: أَيْ: أُوخَذَ بَغْتَةً: چه ناڅاپه اونيولې شم، يا ناګهانه په غفلت کښې هلاک شم ⑥ الْخَسْفَ: په زمکه کښې غرقيدل.

**تسهيلات:**

**قوله:** إِنِّي أَسْأَلُكَ الْعَفْوَ وَالْعَافِيَةَ:

**د عفو او عافيت په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① د عافيت معنى دا ده چه د آفاتو نه سلامتى او حفاظت، په آفاتو کښې دنياوى هم داخل دى لکه اچانک راتلونکى مصيبتونه او بيمارئ وغيره او د آخرت آفتونه هم داخل دى لکه په ګناهونو کښې مشغوليدل، د نيکو نه لرې کيدل، بې صبرى، ناشکرى وغيره ② د ګناهونو نه حفاظت د دنيا علفيت دې او د عذاب نه بچاؤ د آخرت عافيت دې يو عافيت دې او بل عفو ده د ګناه نه بچ کول عافيت او ګناه کيدو نه پس معاف کول عفو ده

**[۳۹۸] دورځې د ګناهونو معاف کيدو وظيفه**

۲۳۹۸-[۱۷] (۱) [۱] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ [۳] اللَّهُمَّ أَصْبَحْنَا نُشْهِدُكَ وَنُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلَائِكَتَكَ وَجَمِيعَ خَلْقِكَ [۴] أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ [۵] وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ [۶] إِلَّا غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا أَصَابَهُ فِي يَوْمِهِ ذَلِكَ مِنْ ذَنْبٍ [۷] وَإِنْ قَالَهَا حِينَ يُمْسِي [۸] غَفَرَ اللهُ لَهُ مَا أَصَابَهُ فِي تِلْكَ اللَّيْلَةِ مِنْ ذَنْبٍ». [۹] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] انس ﷺ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] څوک چې د سحر په وخت کې دا دعا اووائي [۳] اللَّهُمَّ أَصْبَحْنَا نُشْهِدُكَ وَنُشْهِدُ حَمَلَةَ عَرْشِكَ وَمَلَائِكَتَكَ وَجَمِيعَ خَلْقِكَ أَنَّكَ أَنْتَ اللهُ لَا إِلَهَ

---

(۱) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۷۸)

إِلَّا أَنْتَ وَحْدَكَ لَا شَرِيكَ لَكَ وَأَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُكَ وَرَسُولُكَ. ترجمه اې الله موږ سحر کړو. په داسې حال کې چې موږ ته سنا د عرش اوچتونکي فرښتې او ستا مخلوقات ګواه کوو. [۲] په دې خبره چې ته الله ﷻ یې. ستا څخه علاوه بل معبود نشته. نه په افعالو او صفاتو کې یکتا یې. ستا څوک شریک نشته [۵] او بیشکه رسول الله ﷺ ستا بنده او ستا رسول دی. [۶] نو الله ﷻ به د هغه ټول ګناهونه، علاوه د ګناه کبیره او حقوق العباد څخه وبخښي چې د هغه څخه به دغه ورځ کړي وي [۷] او کوم سړی چې دا کلمات ماښام اووايي. [۸] نو الله ﷻ د هغه ټول هغه ګناهونه بخښي. چې د هغه څخه په هغه شپه کې شوي وي. [۹] او امام ترمذي ویلی دی چه دا حدیث غریب دی

**حل اللغات** ① حَمَلَةَ عَرْشِكَ: ستا عرش لره اوچتونکي فرښتې

**تسهیلات:**

**قوله** مَنْ قَالَ حِينَ يُصْبِحُ

**د مذکوره جملې نحوی تحقیق:** په دې کښې لفظ من د معنی په اعتبار سره د نفیه په څیر استعمال شوي دي. او دا ممکن ده چه په إِلَّا غفر الله له، کښې لفظ إِلَّا زائد وي. او جمله وان قالها...الخ، سره د دې تائید کیږي چه لفظ إِلَّا زائد دي

**[۲۳۹۹] د قیامت په ورځ د الله تعالی د راضي کولو وظیفه**

[۱۸] (¹) [۱] وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ-: [۲] «مَا مِنْ عَبْدٍ مُسْلِمٍ يَقُولُ إِذَا أَمْسَى وَإِذَا أَصْبَحَ ثَلَاثًا [۳] رَضِيتُ بِاللهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا [۴] إِلَّا كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُرْضِيَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [۱] ثوبان ؓ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمایل [۲] کوم مسلمان بنده چې سحر او ماښام درې خله دا کلمات اووايي [۳] رَضِيتُ بِاللهِ رَبًّا وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا، ترجمه زه د الله ﷻ په رب کیدو، په اسلام په دین کیدو او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په نبي کیدو راضي شوم. [۴] نو په الله ﷻ، د هغه په فضل او کرم سره، دا لازمیږي چې هغه د قیامت په ورځ هغه بنده راضي کړي، یعني الله ﷻ هغه ته دومره ثواب ورکړي چې هغه راضي او خوشحاله شي، (احمد، ترمذي)

**حل اللغات:** ① حَقًّا عَلَى اللهِ: لازمیږی په الله باندې (په فضل او کرم د هغه سره)

¹) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۴۴۹ وابن ماجة فی کتاب الدعاء /باب ما یدعو به إذا أوی إلی فراشه (رقم-۳۸۷۷)

**تسهیلات:**

**قوله** وَبِالْإِسْلَامِ دِينًا وَبِمُحَمَّدٍ نَبِيًّا .. الخ:

**په نبیا او رسولاً کښې د اجتماع فضلیت:** په بعضې روایاتو کښې لفظ نبیاً دې او په بعضو کښې رسولاً. لهذا مستحب دا ده چه دواړه الفاظ اوونیلې شی یعنی داسې اوونیلې شی چه وبمحمد نبیاً ورسولاً.

**[۲۳۰۰] داوده کیدو مسنون طریقه**

---۲۳۰۰-[۱۹] (۱)[۱] وَعَنْ حُذَيْفَةَ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَنَامَ[۲] وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ رَأْسِهِ ثُمَّ قَالَ: [۳] (اللَّهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَجْمَعُ عِبَادَكَ[۴] أَوْ تَبْعَثُ عِبَادَكَ» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** [۱] حذیفه ﷺ وایې چه رسول الله ﷺ چې به د اوده کیدو اراده وکړه یعنې د خوب د پاره به پریوتلو، [۲] نو خپل لاس به یې د خپل سر لاندې ایښودلو. او دا دعا به یې کوله [۳] اللَّهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَجْمَعُ عِبَادَكَ أَوْ تَبْعَثُ عِبَادَكَ. ترجمه اې الله ﷻ ما د هغه ورځې د عذاب څخه وساتې، چې ته به خپل بندګان راجمع کوې، [۴] یا کله چې ته خپل بندګان راپورته کوې (یعنې د قیامت په ورځ یعنې راوي ته شك دی چې رسول الله ﷺ تَجْمَعُ عِبَادَكَ اوویل یا د دې په ځای یې تَبْعَثُ عِبَادَكَ وویل) (ترمذي)

**حل اللغات:** ① قِنِي: أي: احْفَظْنِي: اومې ساتې، حفاظت مې اوکړې. ② تَبْعَثُ: چه ته راپورته کوې. راجمع کوې

**تسهیلات:**

**قوله** وَضَعَ يَدَهُ تَحْتَ رَأْسِهِ:

**په روایاتو کښې تعارض:** په دې روایت کښې دی چه نبی علیه السلام به خپل لاس مبارك د سر لاندې کیخودو او په بل روایت کښې دی چه نبی علیه السلام به لاس مبارك د اننګو مبارکو لاندې کیخودلو نو په دې دواړو روایتونو کښې تعارض دې؟

**دتعارض دری جوابونه:**

① دا په مختلفو واقعاتو باندې محمول دې

② چه کوم راوی څنګه لیدلی ووهم هغه شان ئې نقل کړل ګویا دا د مختلف رواتو په اختلاف محمول دې

③ نبی علیه السلام لاس داسې ایخودو چه د اننګو او د سر دواړو لاندې به وو

---

۱) والترمذی فی کتاب الدعوات باب ما جاء فی الدعاء إذا أوی إلی فراشه رقم ۴۷۱)

...—( )(١) وَرَوَاهُ أَحْمَدُ عَنِ الْبَرَاءِ.

**ترجمه** (١) امام احمد دا روايت د براء رضی الله عنه څخه نقل کړی دی

**[۲۴۰۲] داوده کيدو په وخت بله مسنون دعا**

—[۲۰] ( ) (١) وَعَنْ حَفْصَةَ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَرْقُدَ (٢) وَضَعَ يَدَهُ الْيُمْنَى تَحْتَ خَدِّهِ ثُمَّ يَقُولُ: (٣) (اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ)». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** (١) بي بي حفصه رضی الله عنها وايي چه رسول الله ﷺ چې به د خوب اراده وکړه (٢) نو خپل ښي لاس به يې د خپل رخسار لاندې ايښودلو، او درې خله به يې ويل (٣) اللّٰهُمَّ قِنِي عَذَابَكَ يَوْمَ تَبْعَثُ عِبَادَكَ، اې الله جل جلاله ما د هغه ورځې د عذاب څخه وساتې کله چې ته خپل بندګان را اوچتوې (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① يَرْقُدَ: أَيْ: يَنَامَ: چه خوب اوکړی، اوده اوشی ② خَدِّهِ: رخسار، مخ مبارک د رسول الله ﷺ

**[۲۴۰۳] د حضرت علي په روايت د اوده کيدو په وخت مسنون دعا**

—[۲۱] ( ) (١) وَعَنْ عَلِيٍّ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ عِنْدَ مَضْجَعِهِ: (٢) (اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِوَجْهِكَ الْكَرِيمِ (٣) وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ، (٤) اللّٰهُمَّ أَنْتَ تَكْشِفُ الْمَغْرَمَ وَالْمَأْثَمَ (٥) لَا يُهْزَمُ جُنْدُكَ (٦) وَلَا يُخْلَفُ وَعْدُكَ (٧) وَلَا يَنْفَعُ ذَا الْجَدِّ مِنْكَ الْجَدُّ، (٨) سُبْحَانَكَ وَبِحَمْدِكَ») . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** (١) حضرت علي رضی الله عنه فرمايي چې رسول الله ﷺ به د اوده کيدو په وخت دا دعا ويله (٢) اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ..الخ. اې الله زه ستا په عزت مند ذات سره پناه غواړم (٣) او ستا په کاملو صفاتو سره د شر د هغه څيز نه چې د هغې تندې ستا په قبضه کښې دې (٤) اې الله ته تاوان اوګناه زما څخه لرې کړې (٥) اې الله ستا لښکرماتې نشی خوړلې (٦) اوستا په وعده کښې مخالفت نشی کيدې (٧) اوفائده نشی رسولې مالدارته د هغه مالداری ستا په مقابله کښې (٨) پاکی ده تا لره اوثناء ده تا لره (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① عِنْدَ مَضْجَعِهِ: په وخت د اوده کيدو کښې په مضجع کښې درې احتمالات دی يا اسم مکان دی. يا اسم زمان يا مصدر دی، ② بِوَجْهِكَ: د وَجْهُ نه تعبير کيږی په ذات دالله تعالی سره، ③ الْكَرِيمِ: أَيْ: الشَّرِيفِ: مهربانه اوعزت مند. ④ التَّامَّاتِ: أَيْ: الْكَامِلَاتِ: تمام، پوره (لکه اسماء حسنی. آيات قرآنی وغيره) ⑤ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ: نيونکې نې تندې دهغه، أَيْ: هُوَ فِي قَبْضَتِكَ: د تندی نيولو نه مراد قبضه او تصرف دالله تعالی دی، ⑥ الْمَغْرَمَ: أَي الذُّنُوبِ وَالْمَعَاصِي: ګناهونه او تول هغه څه مراد دی کوم چه الله تعالی نې بدګنړی ⑦ الْمَأْثَمَ: أَيْ: مَا يَأْثَمُ بِهِ الْإِنْسَانُ: کوم څيز سره چه

---

( ) اخرجه احمد فی المسند: ۲۸۱/۴

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب باب ما يقال عند النوم (رقم- ۵۰۴۵)

( ) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب باب ما يقال عند النوم (رقم- ۵۰۵۲)

انسان گناهگار يږي ⑧ لَا يُهْزَمُ: أَيْ: لَا يُغْلَبُ: نه مغلوب كيږي، ⑨ جُنْدَكَ: لښكر ستا. ⑩ ذَا الْجَدِّ: أَيْ ذَا الْغِنَى: جَد مال ته وائي نو ذاالجد نه مراد مالدار سړي دي

**تسهيلات:**

**نوټ**: د حديث مطلب آسان دي باقي د ګرانو لغاتو معاني د حل اللغات په عنوان سره واضح شوي دي.

**[۲٤٠٤] د اوده كيدو په وخت كښې لس ځله د استغفار ويلو فضيلت**

۲۳۳۳-[۲۲] ()[۱] وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: [۲] «مَنْ قَالَ حِينَ يَأْوِي إِلَى فِرَاشِهِ [۳] أَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ [۴] الْحَيُّ الْقَيُّومُ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ [۵] ثَلَاثَ مَرَّاتٍ غَفَرَ اللهُ لَهُ ذُنُوبَهُ [۶] وَإِنْ كَانَتْ مِثْلَ زَبَدِ الْبَحْرِ [۷] أَوْ عَدَدَ رَمْلِ عَالِجٍ [۸] أَوْ عَدَدَ وَرَقِ الشَّجَرِ [۹] أَوْ عَدَدَ أَيَّامِ الدُّنْيَا» ). [۱۰] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [۱] ابوسعيد ﷜ راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] كوم سړي چې خپلې بسترې ته راتلو سره [يعني د اوده كيدو په وخت] دا كلمات اووائي [۳] أَسْتَغْفِرُ اللهَ الَّذِي لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ وَأَتُوبُ إِلَيْهِ ، يعنى زه د الله ﷻ څخه بخشش (بخښنه) غواړم، داسې الله ﷻ چې د هغه څخه علاوه بل معبود نشته [۴] چې ژوندي دي او د مخلوق خير ګيري كونكي دي او زه د هغه په مخكې توبه كوم، [۵] [دغه دعا] درې ځله اووايي نو الله ﷻ د هغه ګناه بخښي، [۶] اګرچه هغه د درياب د ځګ برابر وي [۷] يا د عالج [ريګستاني علاقه] د ريګ (د ذرو) د تعداد برابر وي [۸] يا د و نو د پاڼو برابر وي [۹] يا د دنيا د ورځو د تعداد برابر ولې نه وي، [۱۰] امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړي دي او ويلي يي دي چې دا حديث غريب دي

**حل اللغات**: ① يَأْوِي: دَخوب او آرام خانې ته د راتلو په معنى كښې دي ② زَبَد: زګ (كوم چه په سندونو كښې د اوبو دپاسه وي.) ③ الْبَحْر: درياب (د سمندر زګ كنايه ده د زياتوالي نه ) ④ رَمْلِ عَالِجٍ: ددې جمع عَوَالِجُ ده. وَهُوَ مَوْضِعٌ بِالْبَادِيَةِ: په باندو كښې د يو ځاې نوم دي چه هلته شګې ډيرې زياتې وي چه د شګو ډيرى لګيدلي وي

**تسهيلات:**

**قوله**: رَمْلِ عَالِجٍ:

**د رمل او عالج تحقيق**: عالج چه كوم وخت دَ ځاې نوم اومنلې شي نو بيابه دَ رمل دَدې طرف ته اضافت كيږي په دې حديث كښې لفظ "او" دَ تنويع دَپاره دي.

[۱]) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳٤۵۷

[د۰۰۰] د اوده کیدو په وخت دَ قرآن دَ یو سورت وئیلو ثواب

د۰۰۰ - [۲۳] (۱) ① وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَأْخُذُ مَضْجَعَهُ بِقِرَاءَةِ سُورَةٍ مِنْ كِتَابِ اللهِ ③ إِلَّا وَكَّلَ اللهُ بِهِ مَلَكًا فَلَا يَقْرَبُهُ شَيْءٌ يُؤْذِيهِ ④ حَتَّى يَهُبَّ مَتَى هَبَّ» رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ① شداد ابن اوس رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② کوم مسلمان چې خپل خوب ګاه ته راتلو سره يعني د اوده کيدو په وخت، د قرآن کريم يو سورت وايي ③ نو الله ﷻ د هغه سره يوه فرشته مقرروي [او هغه فرشتې ته حکم ورکوي چې ضرر رسونکو خيزونو څخه د دې بنده حفاظت وکړل شي] نو ضرر رسونکې يو شې هم هغه ته نشي ورتلې ④ ترڅوچې هغه ويښ شوی نه وي، هغه که هر وخت راپاڅي [که زر يا نا وخته] ترمذي.

**حل اللغات** ① وَكَّلَ اللهُ: مقرر کوی الله تعالی (يعني فرشتې ته حکم کوی چه د ده حفاظت او نګراني کوه ② يَهُبَّ: د خوب نه راپيدارشی. ③ مَتَى هَبَّ: چه کله هم د خوب نه راپاسي

**تسهيلات:**

**قوله سُورَةٍ:**

يعنی چه کوم يو سورت هم وی تعين نشته لهذا دَ قرآن وړوکي سورت مثلاً سورت کوثر يا سورت اخلاص وغيره باندې هم دا عظيم فائده حاصليدې شی دا عجيبه برکت او لوئی نعمت دې کوم چه کم خرچ او بالانشين دَ قسم نه دې اودَ هرقسم پهره دار استفام اوشو

[۰۰۰] کم عمل او زيات ثواب

۰۰۰ - [۲۴] (۲) ① وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «خَلَّتَانِ لَا يُحْصِيهِمَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ إِلَّا دَخَلَ الْجَنَّةَ ③ أَلَا وَهُمَا يَسِيرٌ وَمَنْ يَعْمَلُ بِهِمَا قَلِيلٌ، ④ يُسَبِّحُ اللهَ فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ عَشْرًا ⑤ وَيَحْمَدُهُ عَشْرًا، وَيُكَبِّرُهُ عَشْرًا»)

**ترجمه** ① عبد الله ابن عمرو بن عاص رضي الله عنهما وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل ② دوه خيزونه داسې دي چې کوم مسلمان سړی يې په هميشه سره اختياروي. هغه په جنت کې داخليږي يعني هغه سړي به په جنت کې د نجات تر لاسه کونکو سره وي ③ او پوهه شئ. هغه دواړه خيزونه خو ډير آسانه دي په دي طور چې الله ﷻ په هغه خيزونو عمل کول د کومو خلقو د پاره آسانه کړي دی. د هغوی د پاره هغه هيڅ مشکل نه دی، خو په هغې عمل کونکی ډير کم دی يعني د الله ﷻ توفيق د نه ملاويدو په سبب په هغې هميشه سره عمل کول شاذ او نادر دی ④ [په هغې کې يو شې خو دا دی چې] په هر فرض مانځه پسې الله ﷻ په

(۱) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۴۱۸

(۲) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب باب فی التسبيح عند النوم (رقم-۵۰۶۵) والترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۴۷۱

په کې سره ياد کړې شي. يعنې سبحان الله اوويل شي لس ځله.[۵] او د الله حمد وکړل شي يعني الحمد لله اوويل شي، او لس ځله لس ځله الله اکبر اوويل شي

**حل اللغات** ① خلتان: أي خصلتان: دوه خويونه. دوه صفتونه

[۱] قَالَ: «وَأَنَا رَأَيْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَعْقِدُهَا بِيَدِهِ قَالَ: [۲] (فَتِلْكَ خَمْسُونَ، وَمِائَةٌ بِاللِّسَانِ [۳] وَأَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ، [۴] وَإِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ يُسَبِّحُهُ وَيُكَبِّرُهُ وَيَحْمَدُهُ مِائَةً [۵] فَتِلْكَ مِائَةٌ بِاللِّسَانِ وَأَلْفٌ فِي الْمِيزَانِ [۶] فَأَيُّكُمْ يَعْمَلُ فِي الْيَوْمِ وَاللَّيْلَةِ أَلْفَيْنِ وَخَمْسَمِائَةِ سَيِّئَةٍ؟ [۷] ! قَالُوا: وَكَيْفَ لَا نُحْصِيهَا؟! [۸] قَالَ: يَأْتِي أَحَدَكُمُ الشَّيْطَانُ وَهُوَ فِي صَلَاتِهِ فَيَقُولُ: [۹] اذْكُرْ كَذَا اذْكُرْ كَذَا حَتَّى يَنْفَتِلَ فَلَعَلَّهُ أَنْ لَا يَفْعَلَ، [۱۰] وَيَأْتِيهِ فِي مَضْجَعِهِ فَلَا يَزَالُ يُنَوِّمُهُ حَتَّى يَنَامَ» ) رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَالنَّسَائِيُّ،

**ترجمه** [۱] ابن عمر ﷺ وايي چې ما وليدل چه نبی کريم صلی الله عليه وسلم هغه په خپلو ګوتو شميرل، او وي فرمايل [۲] چې د پنځو مونځونو د مجموعي تعداد په اعتبار دا په ژبه سره په ويلو کې خو يو نيم سل دی.[۳] ليکن د اعمالو په ترازو تله، کې د دې تعداد به يو نيم زر وي (په دې طور چې په هري نيکۍ لس نيکۍ ليکل کيږي.[۴] او دويم ځيز دا دې چې خپل بسترې ته راتلو سره (يعني د اوده کيدو په وخت، سبحان الله، الحمد لله او الله اکبر سل خله اوواني، (يعني سبحان الله [۳۳] خله. الحمد لله [۳۳] خله. او الله اکبر [۳۴] خله اوويل شي)[۵] [د دې مجموعي تعداد سل جوړيږي] او دا په ژبه په ويلو کې خو سل خله وي. ليکن په ميزان اعمال کې به يو زر وي،[۶] نو په تاسو کې هغه ځوك دی چې په ورځ او شپه کې به دوه نيم زره بدۍ کوي؟[۷] صحابه ؓ عرض وکړو چې. هر کله چې خبره داسې ده نو بيا) مونږ به د دې ځيزونو محافظت ولې نه کوو.[۸] نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل چې هر کله په تاسو کې ځوك مونځ کوي نو هغه ته شيطان راځي او ورته وايي [۹] چې فلانې شې را ياد کړه، فلانی خبره رايادہ کړه (يعني هغه ته د لمانځه په حالت کې د دنيا خبر يا د آخرت خبري داسې چې د هغې تعلق د مانځه سره نشته وريادوي يې) تر دې چې هغه د مانځه کولو ځخه فارغه شي، نو کيدې شي چې هغه د دې کلماتو محافظت ونکړي[۱۰] او دغه شان شيطان د هغه خوابګاه ته راځي او هغه اوده کوي، تر دې چې هغه اوده شي (ترمذي، ابوداؤد، نسايي)

**حل اللغات:** ② يَعْقِدُهَا: أي العَشَرَاتِ: شميرل نې دا لس لس. ③ بِيَدِهِ: أي: بِأَصَابِعِهَا: دلته د لاس نه مراد ګوتې دی ④ يَنْفَتِلَ: أي: يَنْصَرِفَ: فارغ شي يعنی راوګرځي د مونځ نه. ⑤ يُنَوِّمُهُ: أي: يُلْقِي عَلَيْهِ النَّوْمَ: اوده کوي نې (يعنی د خوب غلبه پرې راولي نو اوده نې کړی)

[۱] وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ قَالَ: [۲] (خَصْلَتَانِ أَوْ خَلَّتَانِ لَا يُحَافِظُ عَلَيْهِمَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ) [۳] وَكَذَا فِي رِوَايَتِهِ بَعْدَ قَوْلِهِ: وَأَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ [۴] قَالَ: ( «وَيُكَبِّرُ أَرْبَعًا وَثَلَاثِينَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ [۵] وَيَحْمَدُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ [۶] وَيُسَبِّحُ ثَلَاثًا وَثَلَاثِينَ» ) [۷] وَفِي أَكْثَرِ نُسَخِ الْمَصَابِيحِ عَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عُمَرَ.

**ترجمه** [۱] او د ابوداؤد په روايت کې !په بعضو الفاظو کې اختلاف دي. د هغه په روايت کې داسې! دي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل [۲] چې دوه خصلتونه داسې دي يا دوه خيزونه داسې دي،يعنی راوي ته شك دي چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم لفظ خصلتين فرمايلی وو يا خلتين، هسې د دواړو معنی يوه ده، چې هغه کوم مسلمان بنده اختيار کړي ،يعني په دي روايت کې لَا يُحْصِيهِمَا رَجُلٌ مُسْلِمٌ په ځاى لَا يُحَافِظُ عَلَيْهِمَا عَبْدٌ مُسْلِمٌ دي.[۳] دغه شان د ابوداؤد په روايت کې د وَأَلْفٌ وَخَمْسُمِائَةٍ فِي الْمِيزَانِ، څخه روسته دا الفاظ دي [۴] چې تکبير اووائي ۳۴ خله هر کله چې خپل بستر ته راشي.[۵] او حمد اووائي ۳۳ خله [۶] او تسبيح اووائي ۳۳ خله.[۷] او د مصابيح په اکثرو نسخو کې دا روايت د عبد الله ابن عمر رضي الله عنه څخه منقول دي !يعنی مؤلف د مشکوٰة خو دا روايت د عبد الله ابن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه نقل کړي دي، خو د مصابيح په اکثرو نسخو کې د دې حديث راوي عبد الله ابن عمر رضي الله عنه دي!

**تسهيلات:**

**قوله:** خَصْلَتَانِ:

**د دوو څيزونو په مواظبت جنت ته داخليدل:** يعنی دوه خصلتونه اودوه څيزونه داسې دی چا چه دهغې حفاظت او پابندی اوکړه نوهغه سړې به جنت کښې داخلیږی "الا" داکلمه حرف تنبيه ده

**قوله:** فِي دُبُرِ كُلِّ صَلَاةٍ:پنځومونځونوپسې دَدې کلماتو تعداد يونيم سل جوړيږی په دې حديث کښې دی چه دا يونيم سل کلمات په وزن او ثواب کښې دَ پنځلسو سوو برابر دی اوکه چا دغه کلمات دَ اوده کيدو په وخت سل خل اووئيل نو په وزن او ثواب کښې به دَدې تعداد دَ يو زر برابر شی اوس په مجموعی اعتبارسره ونيلې شوې کلماتو تعداد دوه نيم زره جوړشو اوس حضورپاك دَ استفهام په توګه دَ صحابه کرام رضي الله عنهم نه تپوس اَوکړو چه په تاسوکښې داسې څوك دې چه په څليږش ګهنټوکښې ترددوه نيم زره ګناهونوارتکاب کوی په دې جمله سره الله تعالی دَدې خبرې طرف ته اشاره اوکړه چه دَ قرآن دَ ضابطې مطابق په يوه نيکئی سره ګناه وينځلې کيږی نو په دوه نيم زره نيکوسره به دوه نيم زره ګناهونه معاف شی نوتاسوکښې داسې څوك دې چه په ورځ اوشپه کښې دَدوه نيم زره ګناهونو ارتکاب کوی؟

دَدې په جواب کښې صحابه کرامو رضي الله عنهم "وکيف لانحصيها" ونيلې دي

**يو اشکال:** اوس سوال دادې چه دا جواب دکومې خبرې دې. دَدې نه دَ مخکښنې خبرې خودا جواب نه شی جوړيدې؟

**داشکال جواب:** ددې جواب ملاعلي قاري رحمه الله داسې ورکړې دې په حقیقت کښې د جملې محذوف عبارت په جواب کښې راغلې ده په کوم کښې چه استفهام انکاري دې او هغه محذوف عبارت داسې دې "فمالكم لاتأتون بهما ولاتحصونهما" یعنی په تاسو څه شوي دي چه په دې کم خرچ بالانشین باندې عمل نه کوئ اودا دوه خصلتونه نه پوره کوئ؟ صحابه کرامو په جواب کښې اوفرمائیل داخو آسان دی ددې کول څه مشکل دی موږ به ددې حفاظت ولې نه کوو ددې دپاره آخر منع کونکې څه څیز دې؟ د دې په جواب کښې حضورپاك اوفرمائیل شیطان په مونځ کښې وسوسه اچوی مونځ گذار چه کله د مانځه نه فارغ شي نو هغه د غفلت ښکار کیږي دغه شان هغه داکلمات نه شي وئیلې دغه شان شیطان سړی له د اوده کیدو په وخت راځي او هغه سست جوړولو سره اوده کوي نو داکلمات پاتې کیږي

**[۲۴۰۷] د ورځې او شپې شکر اداکولو وظیفه**

۲۴۰۷-[۲۵] ( )[۱] وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ غَنَّامٍ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -[۲] «مَنْ قَالَ حِيْنَ يُصْبِحُ: [۳] (اَللّٰهُمَّ مَا أَصْبَحَ بِيْ مِنْ نِعْمَةٍ أَوْ بِأَحَدٍ مِنْ خَلْقِكَ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ، فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ [۴] فَقَدْ أَدّٰى شُكْرَ يَوْمِهِ،[۵] وَمَنْ قَالَ مِثْلَ ذٰلِكَ حِيْنَ يُمْسِيْ [۶] فَقَدْ أَدّٰى شُكْرَ لَيْلَتِهِ)». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن غنام رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] کوم سړي چې د سحر په وخت کې دا دعا وايي [۳] اَللّٰهُمَّ مَا أَصْبَحَ بِيْ مِنْ نِعْمَةٍ أَوْ بِأَحَدٍ مِنْ خَلْقِكَ فَمِنْكَ وَحْدَكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ فَلَكَ الْحَمْدُ وَلَكَ الشُّكْرُ، [۴] نو هغه د ورځې شکر ادا کړو او چا چې دا کلمات د ماښام په وخت کې اوويل [۵] نو هغه د هغه شپې شکر ادا کړو (ماښام وخت چې دا دعا ويل کيږي نو د أَصْبَحَ په ځاې به أَمْسٰى ونيلې شي (ابوداؤد)

**تسهیلات:**

**قوله: فَقَدْ أَدّٰى شُكْرَ يَوْمِهِ:**

- **د نعمتونو اعتراف اود الله شکر:** نقل دی چه يوه ورځ حضرت داؤد علیه السلام عرض اوکړو چه اې پروردگاره ستا دیر زیات نعمتونه ماته حاصل دی زه د هغې شکر څرنګه اداکړم؟ پروردگار ورته اوفرمائیل اې داؤد! که تا دا اومنله چه تاته کوم نعمتونه حاصل دی هغه ټول زما د طرفه دی نو ته پوهه شه چه تا شکر ادا کړو

[۱] اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب /باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۷۳)

## [۲۴۰۸] داوده کیدو په وخت کښې جامع دعا

۲۴۰۸-[۲۶] (۱) وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ «عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - أَنَّهُ كَانَ يَقُولُ إِذَا أَوَى إِلَى فِرَاشِهِ: [۲] (اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ وَرَبَّ الْأَرْضِ وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوَى مُنْزِلَ التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِي شَرٍّ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ، أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ، وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُونَكَ شَيْءٌ، اقْضِ عَنِّي الدَّيْنَ وَأَغْنِنِي مِنَ الْفَقْرِ)». [۳] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ وَالتِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ وَرَوَاهُ مُسْلِمٌ مَعَ اخْتِلَافٍ يَسِيرٍ.

**ترجمه** [۱] ابوهریره رضی الله عنه وايي چه رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به خپلې بسترې ته تشریف وړلو. نو دا دعا به یې کوله [۲] اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمٰوٰتِ وَرَبَّ الْأَرْضِ وَرَبَّ كُلِّ شَيْءٍ فَالِقَ الْحَبِّ وَالنَّوٰى مُنْزِلَ التَّوْرَاةِ وَالْإِنْجِيلِ وَالْقُرْآنِ أَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ كُلِّ ذِيْ شَرٍّ أَنْتَ آخِذٌ بِنَاصِيَتِهِ أَنْتَ الْأَوَّلُ فَلَيْسَ قَبْلَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْآخِرُ فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الظَّاهِرُ فَلَيْسَ فَوْقَكَ شَيْءٌ وَأَنْتَ الْبَاطِنُ فَلَيْسَ دُوْنَكَ شَيْءٌ اقْضِ عَنِّي الدَّيْنَ وَأَغْنِنِيْ مِنَ الْفَقْرِ په حصن حصين کې دی چې دا دعا اوده کیدو په وخت په ملاسته ویل پکار دی [۳] ابوداؤد، ترمذي، ابن ماجه، امام مسلم دا روایت په لږ فرق سره نقل کړې دی

**حل اللغات:** ① فَالِقَ: بِمَعْنَى الشَّقِّ: شلونکې، څیرونکې. ② الْحَبّ: دانه. ③ النَّوَى: د نَوَاةٍ جمع ده. وَهِيَ عَظْمُ النَّخْلِ: دکجوری هډوکی ته وائی ④ أَنْتَ الْآخِرُ: أَيِ الْبَاقِي: ته آخری نې یعنی ته به باقی نې تاره انتهاء نشته (او نور هرڅه به فناء شی) ⑤ الظَّاهِرُ: أَيِ الْكَامِلُ فِي الظُّهُوْرِ: ښکاره یعنی په ظهور او په افعالو او صفاتو کښې کامل. ⑥ الْبَاطِنُ: أَيْ بِاعْتِبَارِ الذَّاتِ: پټ په اعتبار د ذات سره ⑦ دُوْنَكَ: په معنی د غیرهم راځی او په معنی د قریب هم راځی. یعنی ستا نه بغیر څوک زیات پټ نه دی. او ستا نه زیات څوک نژدې نشته.

**تسهیلات: قوله:** فَلَيْسَ بَعْدَكَ شَيْءٌ:

**د بعدک په مفهوم کښې دوه احتمالات:**

① یعنی په آخرت کښې به د الله نه سوا یو څیز هم باقی پاتې نشی

② بعدك په معنی د غیرك دې نو بیا معنی دا شوه چه ستا نه علاوه به څوک هم ژوندي پاتې نه شی لقوله تعالى: كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ او كُلُّ مَنْ عَلَيْهَا فَانٍ.

**دا جملو په بلره کښې د معتزلو عقیده:** لبید شاعر دا سې بیان کړې ده: أَلَا كُلُّ شَيْءٍ مَا خَلَا اللَّهَ بَاطِلٌ. هم دې وجې بعضې معتزله وائی چه د مرګ نه پس به ټول بدنونه فنا شی او بالکیه به د دې اختتام اوشی د دوی به هیڅ حساب کتاب نه وی او د اهل سنت و الجماعت مسلک د دې عکس دی

---

[۱] اخرجه مسلم فی کتاب الذکر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب ما یقول عند النوم واخذ المضجع (رقم -۶۱ - (۲۷۱۳) وابوداود فی کتاب الأدب/باب ما یقال عند النوم (رقم - ۵۰۵۱) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۵۰۵

**[۲۴۰۹] د اوده کيدو په وخت کښې بله مسنون دعا**

[۲۷] (۱) وَعَنْ أَبِي الْأَزْهَرِ الْأَنْمَارِيِّ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ: (۲) (بِاسْمِ اللهِ وَضَعْتُ جَنْبِي (۳) اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِي ذَنْبِي، (۴) وَاخْسَأْ شَيْطَانِي (۵) وَفُكَّ رِهَانِي، (۶) وَاجْعَلْنِي فِي النَّدِيِّ الْأَعْلَى»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** (۱) ابي ازهر انماري ﷺ وايي رسول الله ﷺ چې به د شپې خپلې بسترې ته راتلو نو دا دعا به يې کوله (۲) د الله تعالى په نوم زه د الله تعالى د پاره خپل اړخ اږدم. (۳) ې الله زما ګناه معاف کړه (۴) وزما شيطان رسوا کړه (۵) وزما ځټ (د جهنم د اور څخه) خلاص کړه (۶) واوګرځوه ما په غوره مجلس کښې. (ابوداؤد)

**حل اللغات:** (۱) وَضَعْتُ: زه ايږدم، (۲) جَنْبِي: خپل اړخ، (۳) اخْسَأْ: أَيْ: أَبْعِدْهُ: اوشړه، لرې کړه، (۴) فُكَّ: أَيْ: خَلِّصْ: آزاد کړې، خلاص کړې، (۵) رِهَانِي: أَيْ: رَقَبَتِي: ځټ زما، (۶) النَّدِيِّ: وَهُوَ الْمَجْلِسُ الْمُجْتَمَعُ: جمع شوی مجلس ته وائي (۷) الْأَعْلَى: ددې نه مراد د مَلَأَ الْأَعْلَى يعنې د فرشتو مجلس دې

**تسهيلات:**

**قوله:** وَفُكَّ رِهَانِي:

**د ځټ د آزادۍ مفهوم:** يعنې د هر چا د حقوقو اداکولو په ذريعه زما ځټ آزاد کړه دلته د رهن نه مراد نفس انساني دې ځکه چه هغه د خپل عمل سره مرهون دې لقوله: كُلُّ امْرِئٍ بِمَا كَسَبَ رَهِينٌ او لقوله: عليه السلام نفس المؤمن مرتهنة بدينه مطلب دا چه زما نفس د بندګانو د حق نه آزاد او بري الذمه کړه او زما لغزشونه معاف کړه او د عذاب نه مې بچ کړه

**قوله:** فِي النَّدِيِّ الْأَعْلَى:

**د ندى اعلى په مصداق کښې دوه اقوال:**

(۱) ندى اعلى نه مراد يا خو درجۀ رفيعه او مقام وسيله دې چه د هغې باره کښې نبي عليه السلام فرمائي ((إنه لا يكون إلا لعبد وأرجو أن أكون أنا هو أي ذلك العبد)) چه هغه مقام اعلى د يو بنده د پاره کيدې شي او زه اميد لرم چه هغه بنده به هم زه يم

(۲) علامه توربشتي فرمائي چې د ندى اعلى څخه مراد ندى أهل الجنه دى او دا خلق به د مرتبې او رتبې په لحاظ سره د جهنميانو څخه اوچت وى كما في قوله: تعالى وَنَادَىٰ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ أَصْحَابَ النَّارِ أَن قَدْ وَجَدْنَا مَا وَعَدَنَا رَبُّنَا حَقًّا او ندي اسفل ندي اهل النار دي كما ورد في القرآن أَنْ أَفِيضُوا عَلَيْنَا مِنَ الْمَاءِ أَوْ مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ (مرقات ج۵ ص۱۸۸)

---

[۱] اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقال عند النوم (رقم- ۵۰۵۴)

[۲۴۱۰] د ابن عمر په روایت سره د اوده کیدو مسنون دعا

۲۴۰۰ - [۲۸] (۱) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ: «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا أَخَذَ مَضْجَعَهُ مِنَ اللَّيْلِ قَالَ: «الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَفَانِي وَآوَانِي وَأَطْعَمَنِي وَسَقَانِي، وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ، وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ، الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ، اللَّهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ، وَإِلَهَ كُلِّ شَيْءٍ، أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ»». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن عمر رضي الله عنهما راوي دی چه رسول الله ﷺ چې به د شپې خپلې بسترې ته راتلو، نو دا دعا به یې ویله [۲] الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي كَفَانِي وَآوَانِي وَأَطْعَمَنِي وَسَقَانِي وَالَّذِي مَنَّ عَلَيَّ فَأَفْضَلَ وَالَّذِي أَعْطَانِي فَأَجْزَلَ الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ اللَّهُمَّ رَبَّ كُلِّ شَيْءٍ وَمَلِيكَهُ وَإِلَهَ كُلِّ شَيْءٍ أَعُوذُ بِكَ مِنَ النَّارِ (ابوداؤد)

**حل اللغات** ① كَفَانِي أَيْ: أَغْنَانِي: کافي شو ماله، چه زه یې د خلقو نه مستغنی کړم ② آوَانِي أَيْ جَعَلَ لِي مَسْكَناً: د استوګنې ځاې یې راکړو

**تسهیلات:**

**قوله:** كَفَانِي

**د کفاني مطلب:** یعنی ما لره یې داسې سکونت راکړو چه هغه زما نه ګرمی او یخنی لری کړه او زما د دشمنانو نه ماله پناه راکړه

**قوله:** الْحَمْدُ لِلَّهِ عَلَى كُلِّ حَالٍ:

**په هر حال باندې دالله تعالی تعریف کول:** په دې کښې دې خبرې ته اشاره ده چه مؤمنانو لره د مصیبت په حالاتو کښې هم شکر کول پکار دی ځکه چه مصیبت سره یا خو ګناه معاف کیږي او یا یې درجات اوچتیږي او جهنمیان په دنیا کښې هم په مصیبت کښې وی او په آخرت کښې به هم په مصیبت کښې وی

[۲۴۱۱] د بې خوابۍ دعا

۲۴۰۱ - [۲۹] (۲) [۱] وَعَنْ بُرَيْدَةَ قَالَ: «شَكَا خَالِدُ بْنُ الْوَلِيدِ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۲] يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا أَنَامُ اللَّيْلَ مِنَ الْأَرَقِ، [۳] فَقَالَ نَبِيُّ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: (إِذَا أَوَيْتَ إِلَى فِرَاشِكَ فَقُلْ: [۴] اللَّهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَمَا أَظَلَّتْ، وَرَبَّ الْأَرَضِينَ وَمَا أَقَلَّتْ، وَرَبَّ الشَّيَاطِينِ وَمَا أَضَلَّتْ، كُنْ لِي جَارًا مِنْ شَرِّ خَلْقِكَ كُلِّهِمْ جَمِيعًا أَنْ يَفْرُطَ عَلَيَّ أَحَدٌ مِنْهُمْ أَوْ أَنْ يَبْغِيَ، عَزَّ جَارُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ وَلَا إِلَهَ غَيْرُكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ)» [۴] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ لَيْسَ إِسْنَادُهُ بِالْقَوِيِّ، [۵] وَالْحَكَمُ بْنُ ظُهَيْرٍ الرَّازِيُّ قَدْ تَرَكَ حَدِيثَهُ بَعْضُ أَهْلِ الْحَدِيثِ.

**ترجمه** [۱] حضرت بریده رضي الله عنه وایې چې یو ځل خالد بن ولید رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په

(۱) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب /باب ما يقال عند النوم (رقم - ۵۰۵۸)
(۲) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۵۸۹

خدمت کې شکايت وکړو[۲] چې يا رسول الله ﷺ د بې خوابۍ په وجه د شپې ماته خوب نه راځي.[۳] نبی کريم صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل هر کله چې ته خيلې بسترې ته راشې نو دا دعا وايه [۴] اللّٰهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَمَا أَظَلَّتْ وَرَبَّ الْأَرَضِيْنَ وَمَا أَقَلَّتْ وَرَبَّ الشَّيَاطِيْنِ وَمَا أَضَلَّتْ كُنْ لِيْ جَارًا مِنْ شَرِّ خَلْقِكَ كُلِّهِمْ جَمِيْعًا أَنْ يَفْرُطَ عَلَيَّ أَحَدٌ مِنْهُمْ أَوْ أَنْ يَبْغِيَ عَزَّ جَارُكَ وَجَلَّ ثَنَاؤُكَ وَلَا إِلٰهَ غَيْرُكَ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ، [۴] ترمذي دا روايت نقل کړې دې. او ويلې يې دي چې د دې روايت اسناد قوی نه دی.[۵] په دې حديث کې يو راوي د حکم ابن ظهير روايت بعضو محدثينو ترک کړې دې

**حل اللغات:** ① الْأَرَقِ: أَيْ: مِنْ أَجْلِ السَّهَرِ: بې خوابی (چه د شپې د سوچونو او غمونو په وجه خوب نه ورځي، ② أَوَيْتَ: أَيْ: قَصَدْتَ الْمَأْوَى: د ورتلو اراده دې اوکړه (دخوب ځائې ته. ③ أَظَلَّتْ: أَيْ: وَمَا أَوْقَعَتْ ظِلَّهَا: چه په څه باندې ددې آسمانونو سورې دې. ④ أَقَلَّتْ: أَيْ: حَمَلَتْ وَرَفَعَتْ: چه څه پورته کړې يعنی په ځان نې د هرقسم مخلوقاتو نه په ځان بوج کړې دی ⑤ أَضَلَّتْ: چه ګمراه کړې دی. دې شيطانانو دانسانانو اوجناتو نه. ⑥ جَارًا: ګاونډی. ⑦ يَفْرُطَ: چه د حد نه زياتې اوکړی. ⑧ يَبْغِيَ: أَيْ: يَظْلِمَ سرکشی يا ظلم اوکړی ⑨ عَزَّ جَارُكَ: أَيْ: غَلَبَ مُسْتَجِيْرُكَ: ستانه پناه غوښتونکې غالب شو ⑩ جَلَّ: أَيْ: عَظُمَ: لويه ده

**تسهيلات:**

**قوله:** اللّٰهُمَّ رَبَّ السَّمَاوَاتِ السَّبْعِ وَمَا أَظَلَّتْ:

**د مذکوره دعا په کلماتو کښې اختلاف:** په حصن حصين کښې دی چه دا روايت طبرانی په اوسط کښې او ابن ابی شيبه نقل کړې دې خو ددوی په روايتونو کښې د لفظ جميعًا په ځائې أجمعين دې، اود لفظ يَبْغِيَ په ځائې يَطْغَى دې او دغسې د وجل ثناؤك..نه تر آخره پورې الفاظ دهغوی په روايت کښې نشته، بلکه د عزجارك نه پس وَتبارَكَ اسمكَ الفاظ دی. اوهم په دې جمله باندې روايت ختم شوې دې

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

**[۲٤۱۲] د ابن مالک په روايت د صبا ماښام مسنون دعا**

۲۴۱۲-[۳۰] (¹)[۱] عَنْ أَبِي مَالِكٍ «أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [۲] «إِذَا أَصْبَحَ أَحَدُكُمْ فَلْيَقُلْ أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ، اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هٰذَا الْيَوْمِ فَتْحَهُ وَنَصْرَهُ وَنُوْرَهُ وَبَرَكَتَهُ وَهُدَاهُ، وَأَعُوْذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيْهِ وَمِنْ شَرِّ مَا بَعْدَهُ، [۳] ثُمَّ إِذَا أَمْسَى فَلْيَقُلْ مِثْلَ ذٰلِكَ»». رَوَاهُ أَبُوْ دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] ابو مالک رضي الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې سحر شي نو په

¹) اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۸۴)

ته سو کي هر سري نه پکار دي چي دا دعا وايي أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هَذَا الْيَوْمِ فَتْحَهُ وَنَصْرَهُ وَنُورَهُ وَبَرَكَتَهُ وَهُدَاهُ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّ مَا فِيهِ وَشَرِّ مَا بَعْدَهُ. [۳] او بيا چي ماښام شي نو دغه شان دغه دعا دي وائي (ابوداؤد)

**تسهيلات:**

**قوله: فَتْحَهُ وَنَصْرَهُ وَنُورَهُ وَبَرَكَتَهُ وَهُدَاهُ:**

**دحديث د بعضي جملو وضاحت:**

① نَصْرَهُ: په دشمن باندي د غلبې حاصلولو مدد.

② نُورَهُ: نه مراد د علم او عمل توفيق دي

③ بَرَكَتَهُ: نه مراد حلال او پاکيزه رزق دي

④ وَهُدَاهُ: نه مراد په هدايت باندي ثابت قدمي او د خواهشاتو مخالفت دي

امام طيبي فرمائي چه په حديث کښي د وفَتْحَهُ نه پس جمله بيانيه ده

⑤ خَيْرَ هَذَا الْيَوْمِ فَتْحَهُ نه مراد کاميابي حاصلول په تسلط سره او يا په زبردستي سره

**[۲٤۱۲] دابي بكره په روايت سره د صبا ماښام مسنون دعا**

[۳۱] ( ) [۱] «وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ: قُلْتُ لِأَبِي: [۲] يَا أَبَتِ أَسْمَعُكَ تَقُولُ كُلَّ غَدَاةٍ: [۳] اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَدَنِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي، اللَّهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، [۴] تُكَرِّرُهَا ثَلَاثًا حِينَ تُصْبِحُ وَثَلَاثًا حِينَ تُمْسِي، [۵] قَالَ: يَا بُنَيَّ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَدْعُو بِهِنَّ [۶] فَأَنَا أُحِبُّ أَنْ أَسْتَنَّ بِسُنَّتِهِ». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] عبد الرحمن ابن ابي بكره ﷺ وايي چي ما خپل پلار صاحب ته اوويل [۲] چي باباجانه! زه اورم چي ته هره ورخ دا دعا وايي [۳] اللَّهُمَّ عَافِنِيْ فِيْ بَدَنِيْ اللَّهُمَّ عَافِنِيْ فِيْ سَمْعِيْ اللَّهُمَّ عَافِنِيْ فِيْ بَصَرِيْ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ. [۴] او ته دا دعا دري خله په سحر کي او دري خله په ماښام کي وائي [۵] نو هغه اوويل چي اي زما خويه! ما د رسول الله ﷺ څخه د دي کلماتو په ذريعه دعا غوښتل اوريدلي دي. [۶] نو زه دا خوښوم چي د نبي كريم صلى الله عليه وسلم د سنتو پيروي وکړم (ابوداود)

**حل اللغات** ① عَافِنِي: عافيت راكړي ماته. ② فِي سَمْعِي: په اوريدو زما کښي يعني زما په غوږونو کښي د اوريدو طاقت محفوظ اوساتي، ③ أَسْتَنَّ: أَيْ أَقْتَدِي: چه تابعداري اوکړم. طريقه اختيار کړم ④ بِسُنَّتِهِ: د سنتو طريقو اود سيرت د رسول الله ﷺ

( ) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب باب ما يقول إذا أصبح (رقم - ۵۰۹۰)

**تسهيلات**

**قوله** اَللّٰهُمَّ عَافِنِي فِي سَمْعِي، اَللّٰهُمَّ عَافِنِي فِي بَصَرِي،

**د سمع او بصر د ذکر کولو وجه:** دلته ئې سماعت او بصارت خاص کړل ځکه چه د بصر په ذريعه د الله تعالى د قدرتونو ادراک کيږي او په سماعت سره د الله تعالى د نازل شوى آيتونو ادراک کيږي لهذا دا دواړه د ادلهٔ نقليه اوعقليه د ادراک دپاره جامع دي

**د سمع په بصر باندې د مقدم کولو دوه وجوهات:**

① سماعت ته په بصارت باندې فضيلت حاصل دې.

② اکثر ادعيه کښې سمع مقدم کړې شوې ده اَللّٰهم متعنا باسماعنا وابصارنا وقوتنا ما احييتنا و اجعلها الوارث منا. د هغه د موافقت د وجې ئې سمع په بصر باندې مقدم کړو

**[۳۳۴] د عبدالله بن ابى اوفى په روايت سره د صبا ماښام مسنون دعا**

۲۳۳۴ - [۳۲] (۱) ① وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: ② «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَصْبَحَ قَالَ: ③ (أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ، ④ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ، وَالْكِبْرِيَاءُ وَالْعَظَمَةُ لِلّٰهِ، ⑤ وَالْخَلْقُ وَالْأَمْرُ وَاللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَمَا سَكَنَ فِيهِمَا لِلّٰهِ ⑥ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ أَوَّلَ هَذَا النَّهَارِ صَلَاحًا ⑦ وَأَوْسَطَهُ نَجَاحًا وَآخِرَهُ فَلَاحًا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ)». ⑧ ذَكَرَهُ النَّوَوِيُّ فِي كِتَابِ الْأَذْكَارِ بِرِوَايَةِ ابْنِ السُّنِّيِّ.

**ترجمه** ① عبد الله ابن ابي اوفى رضي الله عنه وايي ② هرکله چې به سحر شو نو رسول الله ﷺ به دا دعا کوله ③ أَصْبَحْنَا وَأَصْبَحَ الْمُلْكُ لِلّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَالْكِبْرِيَاءُ وَالْعَظَمَةُ لِلّٰهِ وَالْخَلْقُ وَالْأَمْرُ وَاللَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَمَا سَكَنَ فِيهِمَا لِلّٰهِ اَللّٰهُمَّ اجْعَلْ أَوَّلَ هٰذَا النَّهَارِ صَلَاحًا وَأَوْسَطَهُ نَجَاحًا وَآخِرَهُ فَلَاحًا يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ، ترجمه سحر کړو مونږ. او سحر کړو ملك د الله جل جلاله د پاره ④ ټول تعريفونه الله جل جلاله لره دي. او بزرګي د ذات وصفات الله جل جلاله لره ده. ⑤ پيدا کول، حکم کول. ورځ او شپه او هغه څيزونه چه په ورځ او په شپه کې آرام کوي. ټول الله جل جلاله لره دي. ⑥ اې الله جل جلاله د دې ورځې ابتدائي حصه د نيکۍ جوړه کړې. ايعنى دا چې مونږ دا په طاعت کې صرف کړو ⑦ او د دې درمياني حصه د حاجاتو د پوره کيدو او د دې آخري حصه د نجات سبب جوړه کړې. اې په رحم کونکو کې د ټولو ښخه زيات رحم کونکيه ⑧ دا حديث نووي رحمه الله د ابن سني په روايت سره په کتاب الاذکار کې نقل کړې دې

**حل اللغات:** ① الْكِبْرِيَاءُ: العَظَمَةُ وَالتَّجَبُّرُ: لويي، برتري، بزرګي ② الْخَلْقُ: أَيِ الإِيجَادُ التَّدْرِيجِيُّ: په ترتيب او تدريج سره پيدا کول ③ الْأَمْرُ: د دې نه مراد حکم اوتصرف کول دى ④ سَكَنَ: چه آرام او سکون حاصلوى ⑤ صَلَاحًا: صلاحيت او قابليت لرونکې، د دين او دنيا د فائدې د کارونو، ⑥ نَجَاحًا: أَيْ: فَوْزًا: کاميابى. ⑦ فَلَاحًا: أَيْ: ظَفَرًا: کاميابى

(۱) اخرجه النووى فى الاذكار ص/۱۵۵ رقم: ۱۹۲ وابن السنى فى علم اليوم والليلة ص/۲۳ رقم:۳۸

**تسهيلات**

**قوله** وَالْكِبْرِيَاءُ وَالْعَظَمَةُ لِلّٰهِ:

**دکبرياء او عظمت مصداق:** دکبرياء نه مراد صفات ذاتيه او عظمت لله نه مراد صفات فعليه دي ((ما ورد في الحديث القدسي الكبرياء ردائي والعظمة إزاري.))

**قوله** يَا أَرْحَمَ الرَّاحِمِينَ:

**په ياارحم الراحمين سره دده قبليدل:** ملا علي قاري ليکلي دي چه کومه دعا په ياأرحم الراحمين سره ختمه کړې شي هغه زر قبليږي لکه چه مستدرک حاکم کښې دي هم دغه شان حضرت ابو امامه نه مرفوعا منقول دي چه الله تعالى باأرحم الرحمين ويونکو د پاره فرشته متعين کوي نوچې يو کس دا جمله درې ځله اوائي نو هغه فرشته ده ته وائي چه أرحم الرحمين تا ته متوجه شو چه څه غواړې نو هغه ذات نه ئې اوغواړه

**د درې ځله وئيلو فائده:** د مستدرک حاکم په روايت کښې ئې د درې ځله وئيلوقيد د دې وجې ذکولې دې چه عموما څوک درې ځل باأرحم الرحمين اوائي نو د ده زړه د الله طرف ته حاضر شي او الله تعالى هم په ده مهربانه شي (مرقات ج۵ص ۱۹۲)

[د۳۳] دعبدالرحمن بن ابزى په روايت سره د صبا مابنام مسنون دعا

د---[۳۳] ()[۱] وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبْزَى قَالَ: [۲] «كَانَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ إِذَا أَصْبَحَ: [۳] (أَصْبَحْنَا عَلَى فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ وَكَلِمَةِ الْإِخْلَاصِ [۴] وَعَلَى دِينِ نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - وَعَلَى مِلَّةِ أَبِينَا إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا [۵] وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ)». رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالدَّارِمِيُّ.

**ترجمه** [۱] عبد الرحمن ابن ابزي ﷺ وايي [۲] چې رسول الله ﷺ به د سحر په وخت کې دا دعا ويله [۳] أَصْبَحْنَا عَلَى فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ وَكَلِمَةِ الْإِخْلَاصِ وَعَلَى دِينِ نَبِيِّنَا مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَآلِهِ وَسَلَّمَ وَعَلَى مِلَّةِ أَبِينَا إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ، ترجمه سحر کړو مونږ په دين اسلام او په کلمهٔ توحيد چې هغه لا اله الا الله محمد رسول الله ده، [۴] او د خپل نبي محمد ﷺ په دين او د خپل پلار ابراهيم په دين چې د باطل څخه بيزاره کيدو سره دين حق طرف ته متوجه وو، [۵] او ابراهيم ﷺ د شرک کونکو څخه نه وو (ترمذي)

**حل اللغات** ① فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ أَيْ: خِلْقَتُهُ: په خونې او عادت د اسلام ② حَنِيفًا: أَيْ: مَائِلًا عَنِ الْأَدْيَانِ الْبَاطِلَةِ. چه د باطل دين نه مخ اړونکې او حق طرف ته راګرځيدونکې وي.

() اخرجه الدارمي في السنن رقم ۲۶۸۸

**تسهيلات:**

**قوله: أَصْبَحْنَا عَلَى فِطْرَةِ الْإِسْلَامِ:**

**د فطرت څخه مراد:** دلته د فطرت نه مراد خلقت دې كما ورد في القرآن: فَأَقِمْ وَجْهَكَ لِلدِّينِ حَنِيفًا ۚ فِطْرَتَ اللَّهِ الَّتِي فَطَرَ النَّاسَ عَلَيْهَا ۚ لَا تَبْدِيلَ لِخَلْقِ اللَّهِ ۚ او هم دغه شان حديث فطرت كل مولود يولد على الفطرة

**قوله: وَكَلِمَةِ الْإِخْلَاصِ:**

**د كلمه طيبه دوه كلوناسې:** دا كلمه په دنيا كښې د محرماتو نه بچ كول كوى او په آخرت كښې د سزا نه بچ كول كوى

**قوله: وَعَلَى دِينِ نَبِيِّنَا:**

**په اسلام سره د امت محمدي تلقب:** نبي عليه السلام د پاره ني دين خالص كړو خكه چه د ما قبل انبياؤ امتونه هم په دې نوم (اسلام) سره مشهور وو لقوله تعالى: إِنَّ الدِّينَ عِندَ اللَّهِ الْإِسْلَامُ ۗ او د حضرت ابراهيم عليه السلام دا قول هم دې ((أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ)) او حضرت يعقوب عليه السلام هم خپلو خامنو ته دا وصيت كړې وو ((فَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ)) الله تعالى په دغه سلسله كښې په اوه خايونو كښې د اسلام ذكر كړې دې ① وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ ② أُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ ③ إِذْ قَالَ لَهُ رَبُّهُ أَسْلِمْ ۖ ④ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسْلِمُونَ ⑤ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ ⑥ أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ⑦ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِّنْهُمْ وَنَحْنُ لَهُ مُسْلِمُونَ

د دې نه معلومه شوه چه د ټولو انبياؤ مذهب اسلام وو امم سابقه كښې چه كوم خلقو اطاعت كولو نو د هغوى صفت هم دغه اسلام وو خو د امت مسلمه نوم او لقب هم د نبي عليه السلام امت له وركړې شو پخوانى امتونو كښې اګرچه اسلام راوړونكى تير شوى دى خو اسلام لقب د هغوى نه وو صرف صفت وو (معارف القرآن كاندهلوى)

**قوله: وَعَلَى مِلَّةِ أَبِينَا إِبْرَاهِيمَ:**

**ابراهيم عليه السلام ته د اب په نسبت كولو كښې اقوال:**

① ابراهيم عليه السلام ابوالعرب وو دلته ئ ددې وجه نه ابينا اووئيل حالانكه نبي عليه السلام د حضرت اسماعيل عليه السلام په اولاد كښې وو

② د حضرت ابراهيم عليه السلام نوم په آباؤ كښې تغليبا دې خكه چه انبياء په منزله د آباء وى لكه چه الله تعالى په قرآن پاک كښې فرمائى النَّبِيُّ أَوْلَىٰ بِالْمُؤْمِنِينَ مِنْ أَنفُسِهِمْ ۖ وَأَزْوَاجُهُ أُمَّهَاتُهُمْ ۗ او يو قراءت شاذه دې أي أب لهم

**قوله حَنِيفً**

**د حنيف په مفهوم کښې درې اقوال:**

① د اديان باطله نه اديان ثابته عادله طرف ته رجوع کونکې

② په دين اسلام باندې قائم او مستقيم مسلمان

③ هغه فرمانبردار مسلمان چه د الله نه غير طرف ته بالکل متوجه نه وی

**قوله وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ:**

**په قولې باطلو باندې رد:** په مشرکين عرب باندې رد مقصود دې ځکه چه هغوی به وئيل ((نحن على دين ابراهيم))او هم دغه شان يهوديانو به وئيل چه ابراهيم يهودی وو نصارې به وئيل چه ابراهيم نصراني وو الله تعالى دوی باندې رد کوی کما في قوله: تعالى مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلَا نَصْرَانِيًّا وَلَكِن كَانَ حَنِيفًا مُّسْلِمًا وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ۝

# [ ۵ ]بَابُ الدَّعَوَاتِ فِي الْأَوْقَاتِ

**د مختلف وختونو دعاګانې**

**خلاصة الباب:**

**فيه أربعون حديثاً مشتملة على الأذكار**

① الدعاء وقت الجماع: ۱.

② الذكر وقت الكرب: ۲، ۳۱، ۳۸.

③ الذكر وقت الغضب: ۳.

④ الدعاء وقت صياح الديك والحمار: ۴.

⑤ الذكر والدعاء وقت الركوب: ۵، ۱۸.

⑥ الدعاء وقت النزول في المنزل: ۶.

⑦ الدعاء وقت المساء: ۸.

⑧ الذكر والدعاء وقت السفر: ۵، ۶.

⑨ الذكر وقت السحور في السفر: ۹.

⑩ الذكر وقت الرجوع من السفر: ۱۰.

⑪ الدعاء وقت القتال: ۱۱، ۲۴، ۳۹.

⑫ الدعاء وقت اختتام طعام الدعوة: ۱۲.

⑬ الدعاء وقت رؤية الهلال: ۱۳، ۳۵.

⑭ الدعاء وقت رؤية المبتلى: ۱۴.

⑮ الذكر وقت اختتام المجلس: ۱۷، ۳۴.

⑯ الذكر وقت دخول السوق: ۱۵، ۴۰.

⑰ الذكر وقت إقبال الليل في السفر: ۲۴.
⑱ الدعاء وقت الوداع: ۱۹، ۲۰، ۲۱، ۲۲.
⑲ الذكر وقت النزول والصعود: ۲۲، ۳۷.
⑳ الدعاء للمتزوج بعد التزويج: ۲۹.
㉑ الذكر وقت الدخول في البيت: ۲۸.
㉒ الدعاء وقت خوف العدو: ۲۵.
㉓ الذكروالدعاء وقت الخروج من البيت: ۲۶، ۲۷.
㉔ الدعاء وقت التزوج والشراء: ۳۰.
㉕ الدعاء لرفع الدين: ۳۲، ۳۳.
㉖ الذكر وقت الفراغ من المجلس أوالصلوة: ۳۵.
㉗ الدعاء وقت الهموم: ۳۶.
㉘ فضيلة بعض الأدعية والمنع عن بعضها: ۱۶.

**ددعا اهميت:** کله چه دعاګانې دَ شارع عليه السلام دَ طرف نه يووخت سره مقيد وی نوهغه هم په هغه وخت په ځانی راوړل ضروری دی دې دَ پاره چه دَ هغې خاص تاثيروی الحزب الاعظم کوم چې د ملا علی قاری تاليف دې د د دنيا اوآخرت څومره د خيردعاګانې دی هغه ټولې مسنون دعاګانې په دې کتاب کښې راجمع دی زه چې کله هم حرمينو شريفينوته تلې يم نود دې کتاب دعاګانې زما معمول پاتې شوې دې اودبار بار ونيلوڅخه روسته به زما يقين راغلو چې دا ټولې دعاګانې خوقبولې شوی دی دا خوتحصيل حصل دې خوبيا به مې هم ددې کتاب د دعاګانو التزام کولوځکه چې مونږ ټول محتاج شو اودعا خودعبادت مغز دې دعبادت سلسله ترمرګه پورې نه ختميږی دغه شان مناجات مقبول کوم چه حضرت تهانوی رحمه الله رايوځانی کړې دی يوه بهترينه کتابچه ده په کوم کښې چه دَ هفته وار دعاګانودَپاره جدا جدا منزلونه کيخودې شوی دی يوښکلې څيزدې دېرجامع دې هرعالم اوهرطالب علم سره پکاردې

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ

**[۲۳۱۶] دَ جماع په وخت کښې دعا**

۲۳۱۶–[۱] (۱) ① عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- ② «لَوْ أَنَّ أَحَدَكُمْ إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْتِيَ أَهْلَهُ قَالَ: ③ بِسْمِ اللهِ، اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ، وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا، ④ فَإِنَّهُ إِنْ يُقَدَّرْ بَيْنَهُمَا وَلَدٌ فِي

[۱] اخرجه البخاری فی کتاب بدء الخلق/باب صفة إبليس وجنوده (رقم: ۳۲۷۱) ومسلم فی کتاب النکاح/ باب ما يستحب أن يقوله عند الجماع (رقم-۱۱۶ - (۱٤۳٤)) وأبوداود فی کتاب النکاح/باب فی جامع النکاح (رقم-۲۱۶۱) والترمذی فی السنن رقم الحديث ۱۰۹۸ وابن ماجة فی کتاب النکاح/ ما يقول الرجل إذا دخلت عليه أهله (رقم-۱۹۱۹)

ذُبِتَ [۵] لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطَانٌ أَبَدًا» ) . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر كله چې په تاسو كې څوك خپلې ښځې يا وينځې ته د صحبت د پاره راشي، نو دا دعا دي وائي [۳] بِسْمِ اللهِ اللَّهُمَّ جَنِّبْنَا الشَّيْطَانَ وَجَنِّبِ الشَّيْطَانَ مَا رَزَقْتَنَا . (د الله د نوم په مدد سره، اي الله مونږ نه شيطان لرې كړې او اي الله! ﷻ ته چې زمونږ كوم اولاد نصيب كړې هغه د شيطان څخه او شيطان د هغه څخه لرې وساتې) [۴] كه هغه وخت د هغه دواړو يعنى د سړي او ښځې د جماع په نتيجه كې خوى وركول مقدر وي (يعني وړوكي پيدا شي) [۵] نو هغه وړوكي ته شيطان كله هم ضرر نشي رسولې (بخاري و مسلم)

**حل اللغات**: ① جَنِّبْنَا: أَيْ بَعِّدْنَا: لرې اوساتې مونږ (دشيطان نه) ② إِنْ يُقَدَّرْ: كه په تقدير كښې ليكلي شوى وى

**تسهيلات**:

**قوله**: إِذَا أَرَادَ أَنْ يَأْتِيَ أَهْلَهُ:

**د ذكرپه مصداق كښې دوه اقوال**: د جماع په حالت كښې په ژبې سره ذكر الله كول مكروه دى په حديث كښې چه د كوم ذكر بيان دې ددې نه قلبي ذكر دې

② د جماع د ارادې په وخت كښې په ابتدا كښې ذكر مراد دې دارنګ دا دعا ستر ښكاره كولو نه مخكښې لوستل پكار دى او په حلال صحبت باندې ونيل پكار دى

**قوله**: لَمْ يَضُرَّهُ شَيْطَانٌ أَبَدًا:

**په جماع كښې د شيطان شركت**: دارنګ واضحه دې وى لكه څنګه چه د خوراك څكاك په خيزونو كښې شيطان زمونږ سره شريكيږى نو هم دغه شان د صحبت په وخت كښې هم شريكيږى. او څنګه چه د شيطان په شركت سره د خوراك څكاك نه بركت ختميږى هم دغه شان په صحبت كښې د شيطان د شركت په وجه اولاد هم نالائق او د شيطان په قبضه كښې كير وى

**اشكال**: كه يو كس دا دعا اووائى نو د هغه اولاد به دشيطان د تصرف نه محفوظ وى حالانكه اكثر خلق د شيطانى تصرف نه محفوظ نه دى؟

**داشكال څلور جوابونه**: ①د دې مطلب دا دې چه شيطان به كله ضرر نشى رسولې يعنى دوى به د اسلام نه كفر طرف ته نشى بوتلې لهذا مطلب دا شو چه د صحبت د ارادې په وخت كښې ذكر الهى كولو سره د اولاد خاتمه بالخير نصيب كيږى

② شيطان به دوى ته د سيورى. جادو وغيره په ذريعه دوى ته د مصبيت په رسولو باندې قادر نه وى

③ امام جوزي فرمائي د حديث مطلب دا دې چې شيطان به د دې كس د اولاد په دين او اعتقاد باندې غلط اثر نشي كولې

④ شيطان د ماشوم پيدا كيدو وخت كښې كومه تونګه وركوي چه په هغې سره ماشوم ژاړي نو د دې دعا په بركت سره هغه په زوره تونګه نشي وركولې مرقات ج۵ ص ۱۹۳

**[۲۴۱۷] د سخت غم په وخت كښې دعا**

۲۴۱۷—[۲] ( ) ① وَعَنْهُ «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْكَرْبِ: ② (لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ، ③ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ، ④ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَرَبُّ الْأَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابن عباس رضي الله عنهما راوي دي چې رسول الله ﷺ به د سخت فكر او غم په وخت دا دعا ويله ② لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ الْعَظِيمُ الْحَلِيمُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيمِ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ رَبُّ السَّمٰوٰتِ وَرَبُّ الْأَرْضِ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ، **ترجمه**: نشته څوك معبود ماسوا د الله جل جلاله څخه چې بزرګ او بردبار دی. ③ نشته څوك معبود ماسوا د الله جل جلاله څخه چې د عرش عظيم پروردګار دی. ④ نشته څوك معبود ماسوا د الله جل جلاله څخه چې د آسمانونو او زمكو پروردګار دی، او د عرش عظيم پروردګار دي (بخاري، مسلم)

**تسهيلات:**

**قوله**: كَانَ يَقُولُ عِنْدَ الْكَرْبِ:

**د كرب څخه مراد**: د دې نه مراد غم دې چه نفس ته لاحق كيږي بعضو ويلي دي چه كرب شديد غم ته ويلي كيږي

**قوله**: الْعَظِيمُ:

**د عظيم په معنى كښې دوه اقوال**: ① داسې ذات چه د هغه د پاره ذاتي او صفاتي طور سره د سوال او حاجت پوره كول معمولي خبره وي

② هغه ذات چه هغه د سوال كولو د وجه نه په غضب كښې نه راځي

**قوله**: الْحَلِيمُ:

**د حليم معنى**: هغه ذات چه هغه په سزا وركولو كښې جلدي نه كوي بلكه د خپل رحمت په وجه د كوتاهي كونكي نه تكليف هم لرې كوي

---

[1] اخرجه البخاري في كتاب الدعوات/باب الدعاء عند الكرب (رقم-۶۳۴۵) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب دعاء الكرب (رقم-۸۳-(۲۷۳۰) والترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۹۶ وابن ماجة في كتاب الدعاء باب الدعاء عند الكرب (رقم-۳۸۸۳)

## [۲۴۱۸] د غصې کمولو ترکیب

۲۴۱۸ - [۳] (۱) وَعَنْ سُلَيْمَانَ بْنِ صُرَدٍ قَالَ: [۲] «اسْتَبَّ رَجُلَانِ عِنْدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۳] وَنَحْنُ عِنْدَهُ جُلُوسٌ وَأَحَدُهُمَا يَسُبُّ صَاحِبَهُ مُغْضَبًا، قَدِ احْمَرَّ وَجْهُهُ، [۴] فَقَالَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: إِنِّي لَأَعْلَمُ كَلِمَةً لَوْ قَالَهَا لَذَهَبَ عَنْهُ مَا يَجِدُ، أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ [۵] فَقَالُوا لِلرَّجُلِ: لَا تَسْمَعُ مَا يَقُولُ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -؟ [۶] قَالَ: إِنِّي لَسْتُ بِمَجْنُونٍ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] سليمان بن صرد رضي الله عنه وايي [۲] چې (يوه ورځ) د نبي کريم صلی الله عليه وسلم په مجلس کې دوو سړو يو بل ته بد رد ويل شروع کړه. [۳] او مونږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو. په هغوی کې يو سړي دويم ته ډير بد رد ويل او د غصې څخه ډک وو. د هغه مخ سور شوی وو. [۴] نو رسول الله ﷺ (دي کيفيت په ليدو سره) وفرمايل چې ماته يوه کلمه معلومه ده. که دا سړی هغه کلمه اووائي، نو د هغه غصه به ختمه شي. چې په هغه سوړه ده. او هغه کلمه دا ده أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ، د شيطان رټل شوي څخه د الله جل جلاله پناه غواړم. [۵] صحابه و رضي الله عنهم (چې دا وليدل چې هغه سړي دا کلمه ونه ويله نو) هغه ته يې اوويل چې آيا ته نه اوري چې رسول الله ﷺ څه فرمايي؟ [۶] هغه سړي اوويل چې زه څه ليونی خو نه يم. بخاري، مسلم،

**حل اللغات**: ① اِسْتَبَّ: افتعال دي د سَبّ نه. أَيْ: شَتَمَ أَحَدُهُمَا الْآخَرَ: يوبل ته ئې کنځل کول. ② مُغْضَبًا: د غصې نه ډک وو ③ مَجْنُون: ليونی

**تسهيلات**:

**قوله** يَسُبُّ صَاحِبَهُ مُغْضَبًا، قَدِ احْمَرَّ وَجْهُهُ:

**په غصه کښې بل ته کنځلې کول**: د يعنی تعوذ من الشيطان د مجنونانو کار دي زه مجنون نه يم دا سړي څوك منافق وو يا بالکل جنې سړي وو چه د معاشرې د آدابونه خبر نه وو حالانکه چه کومه رويه هغه اختيار کړه هغه پخپله ښائي چه دي مجنون وو په غصې کښې د خپل ځان نه بهرکيدل دا هم د جنون او ليونتوب يوه شعبه ده

**قوله**: أَعُوذُ بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ:

**د غصې لرې کولوډپاره تعوذ**: د دي حديث نه معلومه شوه چه غصه لرې کولو د پاره تعوذ لوستل پکار دی او دا حديث د دي آيت نه مقتبس دي وَإِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطَانِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ إِنَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ۝

[1] اخرجه البخاري في كتاب الأدب/باب الحذر من الغضب (رقم-۶۱۱۵) ومسلم في كتاب البر والصلة والآداب/باب فضل من يملك نفسه عند الغضب وبأي شيء يذهب الغضب (رقم-۱۰۹ - (۲۶۱۰) وابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقال عند الغضب (رقم-۴۷۸۰) والترمذي في السنن رقم الحديث ۳۵۱۶ واحمد في المسند:۵/۲۴۰

**قوله إِنِّي لَسْتُ بِمَجْنُونٍ**

**د غصې د ګناه خطرناکي:** یعنې نبي علیه السلام په وینا سره دې کس اوونیل چه زه مجنون یم لیونې نه یم چه تعوذ اووایم ده ته معلومه نه وه چه غصه د شیطان د حیلو نه یوه حیله ده د دې په وجه انسان د خپل اصلي حالت نه اوځي او ګنده خبرې او مذموم حرکات شروع کړي دي وجه نبي علیه السلام د هغه کس (چه بار بار نې ونیل أوصني. په جواب کښې اوفرمائیل لاتغضب (غصه مه کوه) دا نې ورته څو ځلې اوونیل دا ددې خبرې دلیل دې چه غصه ډیره لویه مفسده ده

**د رجل په مصداق کښې دوه اقوال:** ① امام طیبي فرمائي کیدی شي چه دا کس منافق وي ② دا هم کیدې شي چې دا کس بانډیچي وي کوم چه د مجلس اود نبوت د آدابو نه خبر نه وو

**اشکال:** ملا علي قاري فرمائي چه د ابو داؤد په روایت کښې دی چې دا صحابي حضرت معاذ رضي الله عنه وو په دې صورت کښې اشکال دا دې چه دې جلیل القدر صحابي څنګه کلمات څخه ونیلي دي؟ دا خود دوی د شان سره نه بنائي

**د اشکال دوه جوابونه:** ① کیدې شي دا د ابتداء د اسلام واقعه وي ② دا واقعه د شدت غضب وي او ده ته پته نه وي لګیدلې چه ما ته څوک دا خبره کوي لکه چه مخکښې تیر شو چه په ډیره خوشحالۍ کښې أنت عبدي وأنا ربك په ظاهر دا کفریه کلمه ده ددې توجیهات هم مخکښې تیر شوي دي دلته به هم داسې شوي وي

[۲۳۸] د چرګ آذان ولې او د خر هینګ ولې؟

۲۳۸ — [ ٤ ] (¹) ① وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -: ② «إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَسَلُوا اللهَ مِنْ فَضْلِهِ ③ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا ④ وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ ⑤ فَتَعَوَّذُوا بِاللهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيمِ فَإِنَّهُ رَأَى شَيْطَانًا» . مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ① ابوهریره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل ② هر کله چې تاسو د چرګ اذان واورئ. نو د الله تعالی څخه د هغه فضل غوارئ. ③ څکه چې هغه فرښتې ویني. ④ او هر کله چې د خره آواز واورئ. ⑤ نو د شیطان رټل شوي څخه د الله تعالی پناه غوارئ څکه چې هغه شیطان ویني (بخاري، مسلم)

**حل اللغات:** ① صِيَاحَ: آواز. ② الدِّيَكَةِ. د دیك جمع ده، چرګ. ③ نَهِيقَ الْحِمَارِ: أَيْ: صَوْتَهُ: د خر آواز

¹) اخرجه البخاري في كتاب بدء الخلق /باب خير مال المسلم غنم يتبع بها شعف الجبال (رقم -۳۳۰۳) ومسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب استحباب الدعاء عند صياح الديك (رقم-۸۲ - (۲۷۲۹) وابوداود في كتاب الأدب /باب ما جاء في الديك والبهائم (رقم-۵۱۰۲) والترمذي في السنن رقم الحديث ۳۵۲۴

**تسهیلات:**

**قوله** فَسَلُوا اللهَ مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا:

**د چرګ د بانګ په وخت دعا غوښتل:** ددې حدیث مطلب دا دې چه چرګ کله فرښته اووینی او بانګ اووانی نو دغه وخت کښې تاسو د الله نه دعا غواړئ په روایاتو کښې دی چه د نبی علیه السلام په کور کښې یو چرګ وو د هغه په آواز به نبی علیه السلام پیشمنې او تهجد کولو

**قوله** وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ:

**د خره آواز په اوریدو تعوذ وئیل:** دا حدیث په دې خبره دلالت کوی چه کافرانو منافقانو باندې غضب الهی او عذاب نازلیږی نو دوی سره د تیریدو وخت کښې تعوذ وئیل پکار دی د دې خوف په وجه چې ماته د دوی شر راونه رسی.

**په ذاکرینو حناورو کښې د چرګ مقام:** امام طیبی فرمائی چه د چرګ اواز په ذکر کونکو خناورو کښې د الله قرب زیات حاصلوی خکه چه دا د مونځونو وختونه ډیر یاد ساتی او تولو آوازونو کښې چه کوم آواز د الله نه د لری والی سبب دې هغه د خر آواز دې لکه چه قرآن کښې دی إِنَّ أَنكَرَ الْأَصْوَاتِ لَصَوْتُ الْحَمِيرِ ددې نه معلومه شوه چه کفار او منافقین د غضب الهی او د عذاب په وخت کښې چه کوم آواز اوباسی هغه د خر د آواز سره مشابه دی لقوله تعالی لَهُمْ فِيهَا زَفِيرٌ وَشَهِيقٌ. (مرقات ج۵ ص ۱۹۶)

**[۲۴۲۰] د سفر دعا**

۲۴۲۰ - [۵] (۱) [۱] وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا اسْتَوَى عَلَى بَعِيرِهِ خَارِجًا إِلَى السَّفَرِ [۲] كَبَّرَ ثَلَاثًا ثُمَّ قَالَ: [۳] ﴿سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ - [۴] وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ﴾ [الزخرف: ۱۳-۱۴] [۵] اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ فِي سَفَرِنَا هَذَا الْبِرَّ وَالتَّقْوَى [۶] وَمِنَ الْعَمَلِ مَا تَرْضَى [۷] اللَّهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هَذَا وَاطْوِ لَنَا بُعْدَهُ، [۸] اللَّهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ [۹] وَالْخَلِيفَةُ فِي الْأَهْلِ وَالْمَالِ، [۱۰] اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ [۱۱] وَكَآبَةِ الْمَنْظَرِ [۱۲] وَسُوءِ الْمُنْقَلَبِ فِي الْمَالِ وَالْأَهْلِ، [۱۳] وَإِذَا رَجَعَ قَالَهُنَّ وَزَادَ فِيهِنَّ [۱۴] آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] ابن عمر رضی الله عنه راوي دی چې رسول الله ﷺ به د سفر د پاره وتلو. او په اوښ به سوریدلو. [۲] نو مخکې به یې درې خله الله اکبر وئیلو او بیا به یې دا دعا وئیله [۳] سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هَذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ اللَّهُمَّ إِنَّا نَسْأَلُكَ فِي سَفَرِنَا هَذَا الْبِرَّ وَالتَّقْوَى وَمِنَ الْعَمَلِ مَا تَرْضَى اللَّهُمَّ هَوِّنْ عَلَيْنَا سَفَرَنَا هَذَا وَاطْوِ لَنَا بُعْدَهُ اللَّهُمَّ أَنْتَ الصَّاحِبُ فِي السَّفَرِ وَالْخَلِيفَةُ فِي الْأَهْلِ

---

(۱) اخرجه مسلم فی کتاب الحج /باب ما یقول إذا رکب إلی سفر الحج وغیره (رقم-۴۲۵ - (۱۳۴۲) وابوداود فی کتاب الجهاد، باب ما یقول الرجل إذا رکب (رقم-۲۶۰۲)

اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَعُوْذُبِكَ مِنْ وَّعْثَاءِ السَّفَرِ وَكَآبَةِ الْمَنْظَرِ وَسُوْءِ الْمُنْقَلَبِ فِي الْمَالِ وَالْأَهْلِ، ترجمه پاك دې هغه ذات چې هغه دا سورلۍ زمونږ تابعداره جوړه کړه، حالانکه مونږ د هغې طاقت نه لرو. [۴] او بيشکه مونږ خپل پروردګار طرف ته واپس ورتلونکي يو. [۵] اې الله! مونږ ستا څخه په دې سفر کې نيکي او تقوٰی غواړو. [۶] او داسې عمل، چې په هغې ته راضي کېږې يعني هغه قبول کړې [۷] اې پرودګاره! زمونږ د پاره دا سفر آسانه کړې، او د دې اوږدوالی زمونږ د پاره راونغاړې (يعني د سفر اوږد والی زر ختم کړې) [۸] اې الله ته په سفر کښې زما ملګرې شه [۹] او (زما) په اهل وعيال کښې اومال کښې زما نائب شه [۱۰] اې الله! زه ستا پناه غواړم د سفر د مشقت څخه [۱۱] او د خراب حالت د ليدو څخه. ايعنی د دې خبرې څخه پناه غواړم چې په خپل اهل وعيال او په خپل مال او اسباب کې نقصان ليدو سره غمجن شم، او په هغه سره مو خراب حالت شي] . [۱۲] او د واپس راتلو د خرابۍ څخه په خپل کوروالو او خپل مال کې (يعني د دې څخه هم پناه غواړم چې د سفر څخه واپس په خپل کورو الاو په خپل مال کې څه نقصان ووينم، او د هغې په وجه زه رنځ او غم پورته کړم) [۱۳] کوم وخت چې نبی کريم صلی الله عليه وسلم به د سفر څخه واپس راتلو، نو دا دعا به يې ويله. او په هغې کې به يې دا الفاظ اضافه کول [۱۴] آيِبُوْنَ تَائِبُوْنَ عَابِدُوْنَ لِرَبِّنَا حَامِدُوْنَ، مونږ د سفر څخه واپس تلونکي يو په سلامتۍ سره خپل وطن ته، توبه کونکي يو د خپل رب عبادت کونکي يو او تعريف کونکی يو. (مسلم)

**حل اللغات**: ① اسْتَوٰي: أَيْ: اسْتَقَرَّ: ښه برابر به شو، خان به نې مضبوط کړو ② سَخَّرَ: أَيْ: ذَلَّلَ: قابو يعنی تابع نې کړه. ③ مُقْرِنِيْنَ: أَيْ: مُطِيْقِيْنَ: قابو کونکی، خپل قابو کښې راوستونکی ④ لَمُنْقَلِبُوْنَ: أَيْ: رَاجِعُوْنَ: واپس کيدونکی ⑤ الْبِرَّ: أَيْ: الطَّاعَةَ: نيکي (دلته د نيکئ نه مراد تابعداری ده) ⑥ هَوِّنْ: أَيْ: يَسِّرْ: آسان کړې. ⑦ وَاطْوِ: دا امر دې د الطَّيّ نه. أَيْ: قَرِّبْ: نزدې کړې، راټول کړې (يعنی ددې سفر اوږدوالې او مشقت په ده باندې آسان کړې) ⑧ الْخَلِيْفَةُ: أی مَنْ يَقُوْمُ مَقَامَ أَحَدٍ: څوک چه دچا قائم مقام شی هغې ته خليفه وائی ⑨ وَعْثَاء: أَيْ: مَشَقَّةٍ: شدت اومشقت ته وعثا وائی خاص کرکله چه په چقړوکښې تګ مشکل شی ⑩ كَآبَةِ: أَيْ: سُوْءِ الْحَالِ: (دباب سمع نه داسې ناقابل برداشت غم ته وائی چه ملا ماته کړی ⑪ الْمَنْظَرِ: مصدر ميمی دې د نظر په معنی کښې دې يعنی ناقابل برداشت غم يا مرض په وجه چه مخ باندې اثرات ښکاری ⑫ سُوْءِ الْمُنْقَلَبِ: مُنْقَلَب هم مصدرميمی دې د انقلاب او واپس کيدوپه معنی کښې دې، أَيْ: مِنْ سُوْءِ الرُّجُوْعِ: کورته داسې واپس راتلل چه څه غم يا مرض راته رسيدلې وی ⑬ آيِبُوْنَ: د آبَ يَئُوْبُ نه اسم فاعل دې، أَيْ: رَاجِعُوْنَ: واپس تلونکی يو د سفرنه ⑭ تَائِبُوْنَ: توبه ويستونکی يو، ګرځيدونکی يو د ګناه نه نيکئ طرف ته ⑮ حَامِدُوْنَ: حمد او تعريف کونکی يو د الله.

**تسهيلات:**

**نوټ:** په حديث کښې د د سفر د دعا ذکر دې څه مشکل په کښې نشته اوباقي چې کوم مشکل او ګران لغات وو د هغې معانی د حل اللغات په عنوان کښې ښودلی شوی دی

**[٢٣٣١] په سفر کښې مسنون دعا**

٢٣٣١-[٦] ( )[١] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ سَرْجِسَ قَالَ:[٢] («كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا سَافَرَ[٣] يَتَعَوَّذُ مِنْ وَعْثَاءِ السَّفَرِ،[٤] وَكَآبَةِ الْمُنْقَلَبِ،[٥] وَالْحَوْرِ بَعْدَ الْكَوْرِ،[٦] وَدَعْوَةِ الْمَظْلُومِ،[٧] وَسُوءِ الْمَنْظَرِ فِي الْأَهْلِ وَالْمَالِ»). (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [١] عبد الله ابن سرجس ﷺ وايي [٢] رسول الله ﷺ چې به سفر کولو،[٣] نو پناه به يي غوښتله، د سفر د مشقت او محنت څخه،[٤] د واپس راتلو سره د خراب حالت څخه،[٥] دمظلوم دبد دعا څخه،[٦] او واپس راتلو سره د اهل ومال د خراب حالت په ليدو څخه (مسلم).

**حل اللغات:** ① اَلْحَوْر: حَور دَ پټکی د وَل دَ کولاويدلو په معنی کښې دې ② اَلْکَوْر: په اصل کښې کور پټکي ترلو او ول ته وائي، (دلته دَ ترقئ نه دَ تنزل طرف ته دَ تللو نه پناه غوښتلې شوې ده.

**تسهيلات: قوله:** وَكَآبَةِ الْمُنْقَلَبِ:

**په دعا کښې د الفاظو اختلاف:** په دې حديث کښې داکلمه داسې ده مګر دې نه وړاندې حديث نمبر: ٢٣٣١ کښې داکلمه دَ کآبة المنظر په الفاظو سره ذکر ده. اودَ سوءالمنقلب الفاظ هم دی ليکن دا ټول الفاظ دَ معنې په اعتبارسره نيزدې نيزدې دی څه فرق نشته دې دَهغه ځائی اودې ځائی وضاحت هم يوشان دې

**قوله:** وَالْحَوْرِ بَعْدَ الْكَوْرِ:

**د لفظ حور او کور تحقيق:** دواړو لفظونو کښې په حاء اوکاف باندې فتحه ده او واؤ ساکن دې کور دَ زيادت او اصلاح دپاره استعمال کړې شوې دې اوحور دَ فساد اونقصان دَ پاره استعمال کړې شوې دې دا چه دَ زيادت دَ طرف نه دَ نقصان طرف ته اودَ اصلاح طرف نه دَ فساد طرف ته راتللونه ستا پناه غواړم

**[٢٣٣٢] په سفر کښې په يوځائې کښې د پړاو اچولو دعا**

٢٣٣٢-[٧] ( )[١] عَنْ خَوْلَةَ بِنْتِ حَكِيمٍ قَالَتْ: سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - يَقُولُ:[٢] («مَنْ نَزَلَ مَنْزِلًا فَقَالَ:[٣] أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ،[٤] لَمْ يَضُرَّهُ شَيْءٌ[٥] حَتَّى يَرْتَحِلَ مِنْ مَنْزِلِهِ

---

) اخرجه مسلم فى كتاب الحج /باب ما يقول إذا ركب إلى سفر الحج وغيره (رقم-٤٢٦ - (١٣٤٣) وابن ما جة فى كتاب الدعاء /باب ما يدعو به الرجل إذا سافر(رقم-٣٨٨٨) واحمد فى المسند:٨٢/٥

) اخرجه مسلم فى كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب فى التعوذ من سوء القضاء ودرك الشقاء وغيره (رقم-٥٤ - (٢٧٠٨) وابوداود فى كتاب الجهاد/باب فيمن مات غازيا (رقم-٢٤٩٩) وابن ما جة فى كتاب الطب/باب الفزع والأرق وما يتعوذ منه (رقم-٣٥٤٧) واحمد فى المسند:٢٩٠/٢

ذٰلِكَ»). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** (۱) بي بي خوله بنت حكيم وايي چه ما واوريدل چې رسول الله ﷺ فرمايل [۲] كوم سړي چې يو نوي ځاي ته (كه د سفر په حالت كې او كه په حضر كې) راشي او بيا دا كلمات اووائي، [۳] أَعُوْذُ بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ، ترجمه پناه غواړم د الله ﷻ د كاملو كلماتو (يعني د هغه د اسماء او صفات يا د هغه د كتابونو) په ذريعه د هغه څيز د بدى څخه چې پيدا كړى يې دى، [۴] نو هغه ته هيڅ څيز نقصان نشي رسولي [۵] تر دي چې د هغه ځاي څخه كوچ وكړي (مسلم)

**حل اللغات**: ① نَزَلَ: ښكته شي، راشى، ② مَنْزِلًا: نوى ځاني ته، ③ يَرْتَحِلَ: أَيْ يَنْتَقِلَ: كوچ اوكړى يعنى واپس شي

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت خوله بنت حكيم** ﵂: نوم خوله كنيت ام شريك اوقبيله سليم سره ئى تعلق وو د رسول الله ﷺ ترور كيږى دَ هغې نكاح حضرت عثمان بن مظعون صحابى ﵁ سره شوې وه په ۲ﻫ كښې حضرت عثمان بن مظعون ﵁ وفات شونوبيا حضرت خوله بله نكاح اونه كړه. علامه ابن اثير ﵀ فرمائى "كانت امراة صالحة" هغه يوه نيكه بى بى وه مسند احمد كښې راځى "تصوم النهار وتقوم الليل" دَ ورځې به ئى روژه وه او دَ شپې به ئى عبادت كولو

**مرويات**: دَ هغې نه ۱۵ احاديث نقل دى. دَنورو حالاتو دپاره اوګورئى مسند احمد ۶:۴۰۹ ② تهذيب التهذيب ۲۱۵/۲ ③ اصابة ۸: ۷۰

**تسهيلات**:

**قوله** بِكَلِمَاتِ اللهِ التَّامَّاتِ:

**د كلمات په مصداق كښې پنځه اقوال**:

① هغه كاملې كلمات چه په هغې كښې نقص او عيب نه وى
② ددې نه مراد هغه كلمات دى چه نافع هم وى او شافع هم وى
③ ددې نه مراد قرآن دې
④ امام نووى فرمائى چه اظهر دا دې ددې نه مراد اسماء او صفات دى
④ ددې نه مراد د الله كتابونه دى چه قديم دى او نقص په كښې نشته
⑤ ددې نه مراد كلام نفسى د الله دې

**قوله**: حَتّٰى يَرْتَحِلَ:

**د جاهليت د زمانې په يو فعل باندې رد**: په ددې كښې د جاهليت په فعل باندې رد دې چه كله به

د سفر دوران کښې په يو خوړ دره ،وادي، کښې کوزيدل نو ونيل به ئې چه مونږ د وادي د سردار پناه غواړو ددې نه به لوئې جن مراد ووکما في قوله: تعالى وَأَنَّهُ كَانَ رِجَالٌ مِّنَ الْإِنسِ يَعُوذُونَ بِرِجَالٍ مِّنَ الْجِنِّ فَزَادُوهُمْ رَهَقًا :حالانکه د الله نه علاوه بل هيڅ څوک د نفع او نقصان. موت او حيت او نشور مالک نشته

**[۲۴۲۳] د ماښام په وخت کښې د ضررى څيز څخه د حفاظت دعا**

۲۴۲۳-[۸] ( )[۱] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - فَقَالَ: [۲] يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا لَقِيتُ مِنْ عَقْرَبٍ لَدَغَتْنِي الْبَارِحَةَ: [۳] قَالَ: (أَمَا لَوْ قُلْتَ حِينَ أَمْسَيْتَ: [۴] أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ لَمْ تَضُرَّكَ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [۱] ابوهريره رضي الله عنه وايي چې (يوه ورځ) يو سړې د رسول الله ﷺ په خدمت کې حاضر شو او عرض يې وکړو[۲] چې يا رسول الله ﷺ زه د يو لړم د وجهې په تکليف کې مبتلا شوی يم. چې تيره شپه يې خوړلي وم،[۳] نبی کريم صلی الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې پوهه شه. که تا

ماښام دا کلمات ويلي وي،[۴] أَعُوذُ بِكَلِمَاتِ اللَّهِ التَّامَّاتِ مِنْ شَرِّ مَا خَلَقَ، يعنى زه دالله تعالى په پوره صفتونوسره دشرد هرمخلوق څخه پناه غواړم نولړم په تاته ضرر اونه رسوى (مسلم)

**حل اللغات:** ① عَقْرَبٍ: لړم. ② لَدَغَتْنِي: چيچلې ئې يم ③ الْبَارِحَةَ: أي: اللَّيْلَةَ الْمَاضِيَةَ: تيره شپه.

**تسهيلات:**

**قوله: مَا لَقِيتُ:**

**د ما په کلمه کښې درې احتمالات؛**

① ما استفهاميه په معنى د أي شئ لقيت چه د کوم څيز د وجې په اذيت کښې مبتلا يم أي لقيت وجعا شديدا

② ما تعجب د پاره أي أمرا عظيما.

③ ما موصوله ده او خبر ئې محذوف دې اي الذي لقيته لم أصفه لشدة.

**د مذکوره کلماتوپه وجه د پنده حفاظت؛** د ترمذي شريف په يو روايت کښې دى چه کوم کس دا کلمات لولى نو ده سره اويه (۷۰)زره فرشتې متعين کړې شى چه هغوى د ده دپاره د ښښنې دعا کوى او که دا کس مړ شى نو ده ته د شهيد مرتبه ملاويږى

---

[۱] اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار/باب في التعوذ من سوء القضاء ودرك الشقاء وغيره (رقم-۵۵ - (۲۷۰۹)

**[٢٣٣٣] په سفر کښې د صبا په وخت کښې مسنون دعا**

٢٣٣٣-[٩] ()[١]وَعَنْهُ «أَنَّ النَّبِيَّ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ إِذَا كَانَ فِي سَفَرٍ وَأَسْحَرَ يَقُولُ:[٢](سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللَّهِ[٣]وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا[٤]رَبَّنَا صَاحِبْنَا[٥]وَأَفْضِلْ عَلَيْنَا عَائِذًا بِاللَّهِ مِنَ النَّارِ» ). رَوَاهُ مُسْلِمٌ.

**ترجمه** [١] ابوهريره رضي الله عنه وايي، رسول الله ﷺ چې به سفر کولو، نو د سحر په وخت کې به يې دا دعا کوله [٢] سَمِعَ سَامِعٌ بِحَمْدِ اللَّهِ وَحُسْنِ بَلَائِهِ عَلَيْنَا رَبَّنَا صَاحِبْنَا وَأَفْضِلْ عَلَيْنَا عَائِذًا بِاللَّهِ مِنَ النَّارِ، اوريدونکي د الله ﷻ تعريف واوريدو، [کوم چې ما اوکړو] ،[٣] او د هغه د نعمتونو د خوبي اقرار چې ما اوکړو [٤] اې زمونږ پروردګاره! زمونږ نګهبان شي،[٥] او په مونږ فضل اوکړې او مونږ د دوزخ د اور څخه ستا پناه غواړو (مسلم)

**حل اللغات:** ①أَسْحَرَ: أَيْ: دَخَلَ فِي وَقْتِ السَّحَرِ: صبا به شو. د صبا په وخت کښې به داخل شو ②حُسْنِ بَلَائِهِ: د بلاء نه مراد نعمتونه دي، أَيْ: بِاعْتِرَافِنَا بِحُسْنِ إِنْعَامِهِ: دهغه د نعمتونو د خوبي اوفضيلت اقرار کوو. ③صَاحِبْنَا: دامر صيغه ده، أَيْ: أَعِنَّا وَحَافِظْنَا: يعنى زمونږ امداد اوکړه او زمونږ حفاظت اوکړه ④أَفْضِلْ عَلَيْنَا: أَيْ: تَفَضَّلْ بِإِدَامَةِ النِّعْمَةِ مَزِيدِهَا: د نعمت په هميشه ساتلو کښې په مونږ باندې احسان اوکړه (او ددې دحقوقو اداکولو توفيق راکړه). ⑤عَائِذًا: داحال واقع دې او د کلام رسول ﷺ نه دی "اى اقول عائذا بالله من النار" يعنى مونږ د دوزخ د اور نه د الله تعالى پناه غواړو

**تسهيلات:**

**قوله: سَمِعَ سَامِعٌ:**

**ماضي د امر په معنى:** دا صيغه د ماضى ده ليکن د امر په معنى کښې ده اى ليسمع سامع يعنى پکاردى چه اوريدونکې دې واورى اوچاچه واوريده هغه دې ګواه شى چه مونږ د الله تعالى تعريف اوکړو

## د حديث د بعضې جملو وضاحت:

①بِحَمْدِ اللَّهِ: اى بحمد الله يعنى مونږ چه کوم تعريف د الله تعالى اداکړو

②ربنا: دامنادى واقع دې حرف ندا محذوف دې "اى يا ربنا "صاحبنا"

**[٢٣٣٥] د حج عمرې يا جهاد نه د واپسۍ دعا**

٢٣٣٥-[١٠] ()[١]وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا قَفَلَ مِنْ غَزْوٍ أَوْ حَجٍّ أَوْ عُمْرَةٍ [٢]يُكَبِّرُ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ مِنَ الْأَرْضِ ثَلَاثَ تَكْبِيرَاتٍ ثُمَّ يَقُولُ:[٣](لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ[٤] لَهُ الْمُلْكُ

[١] اخرجه مسلم في كتاب الذكر والدعاء والتوبة والاستغفار /باب التعوذ من شر ما عمل ومن شر ما لم يعمل(رقم -٦٨ - (٢٧١٨).

[٢] اخرجه البخاري في كتاب الحج /باب ما يقول إذا رجع من الحج أو العمرة أو الغزو (رقم-١٧٩٧) ومسلم في كتاب الحج /باب ما يقول إذا قفل من سفر الحج وغيره (رقم-٤٢٨ - (١٣٤٤) وابوداود في كتاب الجهاد /باب في التكبير على كل شرف في المسير(رقم--٢٧٧٠ ) والترمذى في السنن رقم الحديث ٩٥٧ واحمد في المسند:٥/٢

وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ، ٥ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ، ٦ صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ ٧ وَنَصَرَ عَبْدَهُ ٨ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ». مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** ١ ابن عمر رضي الله عنهما وايي چه رسول الله ﷺ چې به د جهاد يا عمرې څخه په واپسۍ کې په سفر کې وو ٢ نو هر اوچت ځاې (مثلاً غونډۍ وغيره) باندې ختو سره مخکې به يې درې ځله تکبير (الله اکبر) ويلو بيا به يې دا کلمات ويل ٣ لَا إِلٰهَ إِلَّا اللَّهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ آيِبُونَ تَائِبُونَ عَابِدُونَ سَاجِدُونَ لِرَبِّنَا حَامِدُونَ صَدَقَ اللَّهُ وَعْدَهُ وَنَصَرَ عَبْدَهُ وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ، ترجمه د الله ﷻ څخه علاوه بل معبود نشته. هغه ايکې يو دې. د هغه هيڅوک شريک نشته. ٤ د هغه د پاره ملك دی. د هغه د پاره حمد دی. او هغه په هر څيز قادر دې ٥ مونږ (د خپل وطن طرف ته) واپس تلونکي يو. توبه کونکي يو. د الله ﷻ عبادت کونکي يو (د الله ﷻ په مخکې) سر خکته کونکي يو. او د خپل پروردګار تعريف کونکي يو. ٦ الله ﷻ (د دين خورولو) خپله وعده پوره کړه. ٧ او د خپل بنده (نبی کريم صلی الله عليه وسلم) مدد يې وکړو. ٨ او د کفارو ډلو لره يې تنها شکست ورکړو. (بخاري. مسلم)

**حل اللغات:** ① قَفَلَ: أَيْ رَجَعَ: چه واپس به شو (د سفرنه). ② هَزَمَ: شکست ئې ورکړو. ③ الْأَحْزَابَ: ډلې او لښکرې د کافرانو

**تشريحات:**

**قوله: وَهَزَمَ الْأَحْزَابَ وَحْدَهُ:**

**په مذکوره جملې کښې مشاراليه:** دلته د غزوهٔ خندق په موقع نصرت الهي طرف ته اشاره کول مقصود دی چه قبيله بنو قريظه او بنو نضير نه علاوه دولس زره کفار په مدينه حمله آور شول او تقريباً د يوې مياشتې پورې دا سلسله جاری وه د قتل او غارت څه خاص موقع نه وه راغلې صرف تيرونه او کانړی ويشتل او کافرانو دا ګنړل چه مسلمانان مونږ سره د جنګ کولو طاقت نه لری الله تعالی دوی باندی تيزه سيلۍ راوليږله چه دې آيت کښې ورته اشاره ده يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ إِذْ جَاءَتْكُمْ جُنُودٌ فَأَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيحًا وَجُنُودًا لَمْ تَرَوْهَا (الاحزاب:٩) چه په هغې سره د دوی ډيوې مړې شوې او کټوی واوريدې د دوی خيمې اوشليدې الله تعالی د دوی په زړونو کښې رعب واچولو چه په هغې سره دوی شکست اوخوړو او د شپې شپې ناکامه مکې ته واپس شول

**[٢٤٣٦] په غزوه خندق کښې مشرکانو ته خیرې کول**

٢٤٣٦- [۱۱] (١) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ: [۲] «دَعَا رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ فَقَالَ: [۳] (اللَّهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيعَ الْحِسَابِ، [۴] اللَّهُمَّ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ [۵] اللَّهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ» ). مُتَّفَقٌ عَلَيْهِ.

**ترجمه** [۱] عبد الله ابن ابي اوفی ﷺ وایي [۲] چې سردار دو عالم ﷺ د جنګ احزاب په ورځ د مشرکینو په حق کې بد دعا وکړه او په بارګاه حق دا سې عرض کونکې شو [۳] اللّٰهُمَّ مُنْزِلَ الْكِتَابِ سَرِيعَ الْحِسَابِ اللّٰهُمَّ اهْزِمِ الْأَحْزَابَ اَللّٰهُمَّ اهْزِمْهُمْ وَزَلْزِلْهُمْ ای الله جل جلاله د کتاب نازل کونکیه او حساب زر اخستونکیه [۴] اي الله جل جلاله د کفارو ډلې ته شکست ورکړې. [۵] اې الله جل جلاله دوی ته شکست ورکړې، او دوی اوجړ قوې (یعنې په مقابله کې یې پښې ونښویږي (بخاري، مسلم)

**تسهیلات: قوله:** يَوْمَ الْأَحْزَابِ عَلَى الْمُشْرِكِينَ:

**په غزوه احزاب کښې د نبی علیه السلام خیرې:** نبی علیه السلام په غزوه احزاب کښې هغه مشرکانو ته خیرې کړې وی کومو چه د مسلمانانو خلاف لشکر کشی اوکړه او مدینې ته راغلی وو

**[٢٤٣٧] دَ میلمه نه دَ دعا غوښتنه کول**

٢٤٣٧- [۱۲] (٢) [۱] وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ بُسْرٍ قَالَ: [۲] «نَزَلَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- عَلَى أَبِي [۳] فَقَرَّبْنَا إِلَيْهِ طَعَامًا وَوَطْبَةً، [۴] فَأَكَلَ مِنْهَا ثُمَّ أُتِيَ بِتَمْرٍ فَكَانَ يَأْكُلُهُ [۵] وَيُلْقِي النَّوَى بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ [۶] وَيَجْمَعُ السَّبَّابَةَ وَالْوُسْطَى، [۷] وَفِي رِوَايَةٍ فَجَعَلَ يُلْقِي النَّوَى عَلَى ظَهْرِ أُصْبُعَيْهِ السَّبَّابَةِ وَالْوُسْطَى، [۸] ثُمَّ أُتِيَ بِشَرَابٍ فَشَرِبَهُ، [۹] فَقَالَ أَبِي وَأَخَذَ بِلِجَامِ دَابَّتِهِ: [۱۰] ادْعُ اللَّهَ لَنَا فَقَالَ: [۱۱] اللَّهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُمْ [۱۲] وَاغْفِرْ لَهُمْ وَارْحَمْهُمْ» ). (رَوَاهُ مُسْلِمٌ).

**ترجمه** [۱] عبد الله بن بسر ﷺ وایي [۲] چې (یوه ورځ) نبی کریم صلی الله علیه وسلم زما پلار ته د میلمه په طور تشریف راوړو ، [۳] نو مونږ طعام او هغه کجوری چې هډوکي یې ویستل شوي وی او د پنیرو وغیره څخه جوړ شوې ځیزونه پکی اینبودل شوی وو د نبی کریم ﷺ په خدمت کې پیش کړل. [۴] نبي کریم ﷺ هغه وخوړل، بیا وچې کجوري پیش

(۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسیر /باب الدعاء علی المشرکین بالهزیمة والزلزلة (رقم-۲۹۳۳) ومسلم فی کتاب الجهاد والسیر /باب استحباب الدعاء بالنصر عند لقاء العدو (رقم-۲۱ - (۱۷٤۲)) وابوداود فی کتاب الجهاد/باب فی کراهیة تمنی لقاء العدو (رقم-۲۶۳۱) وابن ماجة فی کتاب الجهاد/باب القتال فی سبیل الله سبحانه وتعالی (رقم-۲۷۹۶)

(۲) اخرجه مسلم فی باب استحباب وضع النوی خارج التمر. واستحباب دعاء الضیف لأهل الطعام. وطلب الدعاء من الضیف الصالح وإجابته لذلک (رقم-۱٤۶ - (۲۰٤۲)) وابوداود فی کتاب الجهاد . باب ما یؤمر من انضمام العسکر وسعته (رقم-۲۶۲۹)

کړې شوي، نو نبي کريم ﷺ به کجوري خوړلې،[٥] او د هغې هډوکي به يې د چپ لاس د ګوتو په مينځ کې غورځول [٦] او د دې د پاره نبي کريم ﷺ خپله د شهادت او د منځ ګوته يو ځاى کړې وې،[٧] او د يو بل روايت الفاظ دا دي چې نبي کريم ﷺ به د چپ لاس خپلو دواړو ګوتو يعنى د شهادت ګوته او د مينځ ګوته د دې، په شاه هډوکي غورځول.[٨] بهر حال د دې ځنه روسته اوبه پيش کړل شوي، چې نبي کريم ﷺ وڅکلي،[٩] بيا زما پلار چې د نبي کريم ﷺ د سوارلۍ واګې يې نيولې وې،[١٠] عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ د الله ﷻ ځنه زما د پاره دعا وغواړه، نو نبي کريم ﷺ دا دعا وکړه [١١] اللّٰهُمَّ بَارِكْ لَهُمْ فِيمَا رَزَقْتَهُمْ وَاغْفِرْ لَهُمْ وَارْحَمْهُمْ اى الله ﷻ دوى له چې دې څه روزي رزق ورکړې دې په هغې کې برکت واچوې،[١٢] دوى وبخښې او په دوى رحم وکړې (مسلم)

**حل اللغات**: ① وَطْبَةٌ: وَهُوَ الْخَيْسُ بِجَمْعِ التَّمْرِ الْبَرْنِي وَالْأَقِطِ الْمَدْقُوقِ وَالسَّمْنِ: د کهجورو، پنير او غوړو نه جوړه شوې حلوه، ② النَّوَى: د نَوَاةٍ جمع ده، وَهِيَ عَظْمُ النَّخْلِ: دکجورى هډوکى ته وائى

**تسهيلات**: **قوله**: بَيْنَ أُصْبُعَيْهِ:

**د تعارض دفع کول**: په دوو روايتونوکښې جدا جدا انداز بيان کړې شوې دې چه کله به حضورپاك دَ کهجورى هډوکى په دوو ګوتوکښې کلك نيولې ساتل اوکله به ئې دَ دوو ګوتوپه شاباندې دکهجورى هډوکى کيخودل. نو په جدا وختونوکښې ئې جدا جدا کار کړې دې تعارض نشته دې

**د مذکوره طريقې اختيارولو وجه**: باقى داطريقه حضورپاك ځکه اختيارکړه چه کيدې شى دَ هډوکو غورزولو ځائى نه وو اوکه چرې حضورپاك په تلى کښې کيخودل نو پوره لاس به دَ لعاب آلود کيدلو

**قوله**: بِلِجَامِ:

**داکابرينوسره د بې تکلفى جواز**: يعنى دَ بې تکلفئى په خاطر صحابى واګه نيولوسره دَدعادرخواست اوکړو حضورپاك دعا اوکړه داټول امور مسنون دى

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي

**[٢٣٢٨] دَمياشتې ليدو دَ وخت دعا**

٢٣٢٨-[١٣] ()[١] عَنْ طَلْحَةَ بْنِ عُبَيْدِ اللهِ «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ قَالَ: [٢] (اللّٰهُمَّ أَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالْأَمْنِ وَالْإِيمَانِ [٣] وَالسَّلَامَةِ وَالْإِسْلَامِ رَبِّي وَرَبُّكَ اللهُ») .[٤] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

[١] اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٥١٥ واحمد في المسند: ١٦٢/١

**ترجمه** ① طلحه بن عبد الله ﷺ وايي چه نبي كريم ﷺ چې به مياشت وليده نو دا دعا به يې كوله ② اللَّهُمَّ أَهِلَّهُ عَلَيْنَا بِالْأَمْنِ وَالْإِيمَانِ وَالسَّلَامَةِ وَالْإِسْلَامِ رَبِّي وَرَبُّكَ اللَّهُ، اې الله ﷻ راو خيژوې (دا مياشت) په مونږ باندې (او وښايي مونږ ته دا مياشت) د امن او ايمان سره ③ او د سلامتيا او اسلام سره (اې مياشتې!) زما او ستا پروردگار الله ﷻ دې. ④ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړې دې او ويلي يې دي چې دا حديث حسن غريب دی.

**حل اللغات:** ① الْهِلَالَ: داسلام مياشتې رومبو دريو ورځو پورې سپوږمۍ ته هلال وائي. ② أَهِلَّهُ: دا د إِهْلَال نه امر دې، أَيْ: أَطْلِعْهُ: راوخيژوې دا مياشت.

**تسهيلات:**

**قوله:** كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ...الخ:

**د هلال، قمر او د بدر اطلاق:** داسلامي مياشتې اول دويم اودريم تاريخ سپوږمۍ ته هلال وائي دې نه پس د قمر اطلاق كيږي او د ديارلسم څوارلسم اوپنځلسم شپې سپوږمۍ ته بدر ونيلي شي دې نه پس ورته بيا قمر وائي. اسلام چونكه د توحيد علمبردار مذهب دې په دې وجه دې په هره موقع باندې د توحيد درس وركړې دې. شپوږمۍ يو آب وتاب والا كره ده ډير زيات خلق د دې عبادت كوي. اسلام د رومبنۍ شپې د سپوږمۍ په موقع د توحيد اقرار كړې دې.

**[۲۳۲۹] په مصيبت كښې راګير سړي ته په كتو سره لوستونكې دعا**

> ۲۳۲۹—[۱۴] (¹) ① وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ وَأَبِي هُرَيْرَةَ قَالَا: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - ② «مَا مِنْ رَجُلٍ رَأَى مُبْتَلًى فَقَالَ: ③ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي عَافَانَا مِمَّا ابْتَلَاكَ بِهِ ④ وَفَضَّلَنِي عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيلًا ⑤ إِلَّا لَمْ يُصِبْهُ ذَلِكَ الْبَلَاءُ كَائِنًا مَا كَانَ» .. رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ① حضرت عمر ابن خطاب او ابوهريره ﷺ دواړه وايي چې نبي كريم ﷺ وفرمايل ② چې كوم سړي څوك په مصيبت كې گرفتار ووينې، او د هغه په ليدو سره دا دعا وكړي. ③ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي عَافَانِي مِمَّا ابْتَلَاكَ بِهِ وَفَضَّلَنِي عَلَى كَثِيرٍ مِمَّنْ خَلَقَ تَفْضِيلًا (يعني ټول تعريفونه هغه الله ﷻ لره دي چې هغه زه د دې شي څخه ساتلی یم، چې په هغې كې يې ته اخته كړي. ⑤ او په خپل ډير مخلوقاتو يې فضيلت راكړيدي ⑥ نو هغه به په هغه مصيبت كې نه اخته كيږي، هر څنګه مصيب چې هغه وي. (ترمذي)

**حل اللغات:** ① مُبْتَلًى: چه مبتلا وی (په څه دنياوی يا دينی بيماری كښې). ② عَافَانَا: عافيت راكړې دې مونږته، ساتلي ئې يو مونږ. ③ الْبَلَاءُ: مصيبت، آزمائش. ④ كَائِنًا مَا كَانَ: كه دغه مصيبت يا آزمائش د هرڅه وی (كه غټ وی او كه وروكې، دينی وی او كه دنياوی).

---

(¹) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ۳۴۹۲

**تسهيلات:**

**قوله مَا مِنْ رَجُلٍ رَأَى مُبْتَلًى فَقَالَ:**

**فوائد:** بيمار او په مصيبت كښې راګير سړي سره نيزدې دا دعا ونيلې شي دې د پاره چه انسان د خپل صحت او عافيت شكر اداكړې شي ليكن علماؤ ليكلي دي چه بيمار وغيره سره نيزدې دا دعا په مزه ونيلى شي چه بيمار ته تكليف تنګى نه وى

٢٣٣٠- (١)[١](وَرَوَاهُ ابْنُ مَاجَهْ) عَنِ ابْنِ عُمَرَ[٢] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ[٣] وَعَمْرُو بْنُ دِينَارٍ الرَّاوِي لَيْسَ بِالْقَوِيِّ.

**ترجمه** [١] ابن ماجه رحمه الله دا روايت د ابن عمر رضي الله عنه څخه نقل كړى دى. [٢] او امام ترمذي رحمه الله فرمايلي دي چې دا حديث غريب دې، [٣] او د دې يو راوي (عمرو ابن دينار) قوي نه دي

**[٢٣٣١] په بازار كښې لوستونكې دعا**

٢٣٣١-[١٥] (٢)[١] وَعَنْ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- قَالَ:[٢] «مَنْ دَخَلَ السُّوقَ فَقَالَ:[٣] لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ،[٤] لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ،[٥] يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ[٦] بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ[٧] كَتَبَ اللهُ لَهُ أَلْفَ أَلْفِ حَسَنَةٍ،[٨] وَمَحَا عَنْهُ أَلْفَ أَلْفِ سَيِّئَةٍ،[٩] وَرَفَعَ لَهُ أَلْفَ أَلْفِ دَرَجَةٍ،[١٠] وَبَنَى لَهُ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ»).[١١] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَابْنُ مَاجَهْ،[١٢] وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ،[١٣] وَفِي شَرْحِ السُّنَّةِ "مَنْ قَالَ فِي سُوقٍ جَامِعٍ يُبَاعُ فِيهِ" بَدَلَ مَنْ دَخَلَ السُّوقَ.

**ترجمه** [١] حضرت عمر رضي الله عنه وايي چې رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل [٢] كوم سړي چې بازار ته رسيدو سره دا دعا اووايي، [٣] لَا إِلَهَ إِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ يُحْيِي وَيُمِيتُ وَهُوَ حَيٌّ لَا يَمُوتُ بِيَدِهِ الْخَيْرُ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (يعني د الله تعالى څخه ماسوا بل معبود نشته . هغه ايكى يو دې. د هغه سره څوک شريک نشته . [٤] د هغه بادشاهت دې. او د هغه د پاره تعريف دې. [٥] هغه ژوندی كول كوي او وژل كوي. هغه (د هميشه هميشه د پاره) ژوندي دې . د هغه د پاره مرګ نشته . [٦] د هغه په لاس كې خير دې. او هغه په هر څيز قادر دې[٧] نو الله جل جلاله د هغه د پاره لس لكه نيكۍ ليكي. [٨] او د هغه څخه لس لكه بدۍ لرې كوي. [٩] د هغه د پاره لس لكه درجې اوچتوي [١٠] او د هغه د پاره په جنت كې كور جوړوي. [١١] ترمذي وابن ماجه، [١٢] امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث غريب دى. [١٣] او په شرح السنه كې (من دخل السوق) په ځاى دا الفاظ دي (من قال في سوق جامع يباع فيه) كوم سړي چې په هغه بازار كې چيرته چې خريد او فروخت (اخستل او خرڅول) كيږي يعنى هلته اكثر څيزونه خرڅيږي.

**حل اللغات:** ① مَحَا: ورانوى. ختموى

(١) اخرجه ابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما يدعو به الرجل إذا نظر إلى أهل البلاء (رقم-٣٨٩٢)

(٢) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٢٨ وابن ماجة في كتاب التجارات/ باب الأسواق ودخولها (رقم-٢٢٣٥)

**تسهيلات:**

**قوله: كَتَبَ اللهُ لَهُ أَلْفَ أَلْفِ حَسَنَةٍ**

**په بازار کښې د ذکر الله د فضیلت وجه:** چونکه بازار د لهو لعب، د دروغو او د دهوکه بازۍ ځای دې او هلته د شیاطینو کثرت هم وی په دې وجه په داسې ځای کښې الله یادول ډیر ثواب لري

علامه طیبی فرمائی چه په بازار کښې دعا په دې وجه ده چه بازار د الله د یاد نه د غفلت او په تجارت کښې د مشغولیدو ځای دې کوم کس چه په بازار کښې الله یاد کړی نو هغه د شیطان مقابله کوی او هغه ته شکست ورکوی او ثواب حاصلوی ددې وجې الله تعالی په هر وخت او هره لمحه کښې په خپلو بندګانو د رحمت نظر کوی دارنګ بعضې خلق په بازار کښې په تجارت کښې د مشغولتیا د وجې د الله د یاد نه غافله کیدو په وجه د الله د رحمت نه محرومه وی او چه څوک د الله د یاد نه غافله نه وی نو هغوی د الله رحمت حاصلوی

[۲۳۲۳] مصیبت راتلو نه مخکښې صبر غواړه

٢٣٢٣ - [ ١٦ ] ( ) ① وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ ② «سَمِعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلًا يَدْعُو يَقُولُ: ③ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ تَمَامَ النِّعْمَةِ ④ فَقَالَ: (أَيُّ شَيْءٍ تَمَامُ النِّعْمَةِ؟) ⑤ قَالَ: دَعْوَةٌ أَرْجُو بِهَا خَيْرًا ⑥ فَقَالَ: (إِنَّ مِنْ تَمَامِ النِّعْمَةِ دُخُولَ الْجَنَّةِ وَالْفَوْزَ مِنَ النَّارِ) ⑦ وَسَمِعَ رَجُلًا يَقُولُ: يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ ⑧ فَقَالَ: (قَدِ اسْتُجِيبَ لَكَ، فَسَلْ) ⑨ وَسَمِعَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - رَجُلًا وَهُوَ يَقُولُ: ⑩ اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الصَّبْرَ ⑪ فَقَالَ: (سَأَلْتَ اللهَ الْبَلَاءَ فَاسْأَلْهُ الْعَافِيَةَ)». رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ① معاذ ابن جبل رضی الله عنه وايي، ② يو سړي دعا کوله چه نبی ﷺ واوریدل چې داسې يې ويل ③ اې الله! ﷻ زه ستا څخه پوره نعمت غواړم، ④ نبی کريم ﷺ ځني پوښتنه وکړه چې پوره نعمت څه شي دي؟ ⑤ هغه سړي اوويل چې دا دعاده چې د هغې په ذريعه زه د زيات ما ل د حصول اميد لرم، ⑥ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چې نادانه! پوهه شه، په جنت کې داخليدل او د دوزخ څخه نجات مو ندل پوره نعمت دی، ⑦ بيا نبی کريم ﷺ د يو سړي څخه په دعا کې واوريدل چې دالله په درباركې يې (د دې الفاظو په ذريعه) عرض کولو يَا ذَا الْجَلَالِ وَالْإِكْرَامِ (يعني اې د بزرګۍ او د بخښش مالکه!) ⑧ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چې ستا دعا قبوله شوه ، نو څه چې غواړې وي غواړه، ⑨ او نبی کريم ﷺ واوريدل چې يو سړي دا دعا غوښتله ⑩ اې الله! ﷻ زه ستا څخه صبر غواړم، ⑪ نبی کريم ﷺ ورته وفرمايل چې تا د الله ﷻ څخه بلاء [ازميښت] وغوښتلو، اوس ته د هغه څخه عافيت وغواړه (ترمذي)

) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٥٩٥

**حل اللغات:** ① تَمَامَ النِّعْمَةِ: پوره نعمت، ② دَعْوَةٌ: دعا، ③ خَيْرًا: أَيْ مَالًا كَثِيرًا: ډير مال، ④ الْفَوْزَ: النَّجَاةَ: نجات او خلاصي، د اورنه، ⑤ الْبَلَاءَ: مصيبت، آزمائش، ⑥ الْعَافِيَةَ: أَيْ السَّلَامَةَ مِنَ الْعُيُوبِ: دعيبونو نه پاكول

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت معاذ** رضي الله عنه: نوم معاذ ابوعبدالرحمن كنيت امام الفقهاء نزيل العلماء او عالم رباني القاب اود قبيله خزرج سره ئې تعلق وو. د ١٨ كاله په عمر كښې د مصعب بن عمير رضي الله عنه په لاس باندې مسلمان شو. دحضورپاك ﷺ هغه سره ډيره مينه وه د حضور ﷺ سره په ټولو غزواتوكښې شريك شوې وو. حضور ﷺ چه كله هغه يمن ته روان كړو نو د يمن خلقوته ئې اوليكل انى بعثت لكم خير اهلي: زه په خپلوخلقو كښې بهترين كس تاسو ته درليكم.

حضرت عمر رضي الله عنه چه كومه مجلس شورى جوړه كړې وه د هغې يو ركن ئې حضرت معاذ رضي الله عنه جوړكړو[1] رسول الله ﷺ د حضرت معاذ رضي الله عنه باره كښې فرمائيلى وو اعلمهم بالحلال والحرام معاذ بن جبل: زمونږ په صحابه كرامو كښې د حلالو اوحرامو د ټولونه لوئ عالم معاذبن جبل رضي الله عنه دې.او حضرت عمر رضي الله عنه په يوه موقع باندې اوفرمائيل: لولا معاذ لهلك عمر كه معاذ نه وو نوعمربه هلاك شوې وو. په يوبله موقع حضرت عمر رضي الله عنه اوفرمائيل من اراد الفقه فليات معاذا: څوك چه فقه زده كول غواړي هغه دې معاذ رضي الله عنه له لاړشي

**وفات:** طاعون عمواس كښې وفات شو. هغه وخت د هغوى عمر ٣٦ كاله وو په ١٨ هجرى هغه په هغه ځائ كښې خښ كړې شو د كوم ځائ نه چه نيزدې حضرت عيسى عليه السلام آسمان ته اوچت كړې شوې وو.

**مرويات:** دهغه نه ټول ١٥٧ احاديث نقل دى په دې كښې په دوو باندې بخارى اومسلم دواړه متفق دى.

**تسهيلات:**

**قوله:** اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ الصَّبْرَ..الخ:

**د عافيت په وخت كښې د صبر غوښتلو دعا كولو ممانعت:** د مصيبت راتلونه مخكښې چه كوم سړې دا دعا غواړي چه اې الله ماته صبر راكړه نودې مطلب دادې چه هغه مصيبت غواړي ځكه چه هم د مصيبت نه پس د صبر ضرورت پيښيږي په دې وجه دې نه منع كړې شو اكثر خلق دخپلو نومونو سره په آخره كښې صابر لګوي په دې كښې هم نقصان دې.

[1] طبقات ابن سعد)

[۲۳۳۳] د مجلس کفاره

۲۳۳۳—[۱۷] (١) [١] وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٢] «مَنْ جَلَسَ مَجْلِسًا فَكَثُرَ فِيهِ لَغَطُهُ [٣] فَقَالَ قَبْلَ أَنْ يَقُومَ: سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ [٤] أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ. [٥] إِلَّا غُفِرَ لَهُ مَا كَانَ فِي مَجْلِسِهِ ذٰلِكَ» ). [٦] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَالْبَيْهَقِيُّ فِي الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ.

**ترجمه** [١] ابوهريره رضي الله عنه راوي دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [٢] کوم سړي چې په يو مجلس کې شريک شي اووده بې فائدې خبرې ډيرې شي، [٣] او د هغه ځاې څخه د اودريدو څخه مخکې دا دعا ووائي، سُبْحَانَكَ اللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِكَ أَشْهَدُ أَنْ لَا إِلٰهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ .
يعنى ته پاك يې اې الهي (اې زما الله) او ستا د تعريف سره ستا پاکي بيانوم. [۴] زه ګواهي ورکوم چې ستا څخه ماسوا بل معبود نشته . زه ستا څخه بخشش (بخښنه) غواړم، او زه ستا مخکې توبه کوم، [۵] نو په هغه مجلس کې چې څه شوي وي، د هغه د پاره بخښل کيږي. [٦] ترمذي، او بيهقي په دعوات کبير کښې دا روايت نقل کړې دي

**حل اللغات:** ① لَغَطُهُ: أَيْ: تَكَلَّمَ بِمَا فِيهِ إِثْمٌ: دګناه او عبث خبري

**تسهيلات:**

**قوله: فَكَثُرَ فِيهِ لَغَطُهُ:**

**د لغط په مصداق کښې دوه اقوال:** ① ابن الملک وائي چه ددې نه مراد داسې الفاظ دي چه دهغې معنى باندې څوک نه پوهيږي،
② ددې نه مهمل کلام مراد دې الحاصل چه په کوم مجلس کښې دا دعا اولوستلې شي نو د دغه مجلس خطاګانې معاف کولې شي

[۲۳۳۴] په سورلۍ د سوريدو دعا

۲۳۳۴—[۱۸] (٢) [١] «وَعَنْ عَلِيٍّ أَنَّهُ أُتِيَ بِدَابَّةٍ لِيَرْكَبَهَا [٢] فَلَمَّا وَضَعَ رِجْلَهُ فِي الرِّكَابِ قَالَ: بِاسْمِ اللّٰهِ [٣] فَلَمَّا اسْتَوَى عَلَى ظَهْرِهَا قَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ [٤] ثُمَّ قَالَ: ﴿سُبْحَانَ الَّذِي سَخَّرَ لَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهُ مُقْرِنِينَ﴾ [الزخرف: ١٣] ﴿وَإِنَّا إِلَى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُونَ﴾ [الزخرف: ١٤] [٥] ثُمَّ قَالَ: الْحَمْدُ لِلّٰهِ ثَلَاثًا وَاللّٰهُ أَكْبَرُ ثَلَاثًا [٦] سُبْحَانَكَ إِنِّي ظَلَمْتُ نَفْسِي فَاغْفِرْ لِي فَإِنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ إِلَّا أَنْتَ [٧] ثُمَّ ضَحِكَ فَقِيلَ: مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ؟ [٨] قَالَ: رَأَيْتُ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - صَنَعَ كَمَا صَنَعْتُ ثُمَّ ضَحِكَ [٩] فَقُلْتُ: مِنْ أَيِّ شَيْءٍ ضَحِكْتَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ [١٠] قَالَ: إِنَّ رَبَّكَ لَيَعْجَبُ مِنْ عَبْدِهِ إِذَا قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي ذُنُوبِي [١١] يَقُولُ: يَعْلَمُ أَنَّهُ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوبَ غَيْرِي» ). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَالتِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

---

(١) اخرجه الترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٤٩٤ واحمد فى المسند: ٣/٤٥٠
(٢) اخرجه ابوداود فى كتاب الجهاد . باب ما يقول الرجل إذا ركب(رقم-٢٦٠٢) والترمذى فى السنن رقم الحديث ٣٥١١ واحمد فى المسند: ١/٩٧

**ترجمه** [١] د حضرت علي رضي الله عنه په باره کې منقول دی چې يو ځل، د هغه په خدمت کې د سورلی يو څاروی راوستل شو چې په هغې سور شي [٢] نو هغه خپله پښه په رکاب کې کېخودله. يعنې د سوريدو د پاره يې په رکاب کې د پښې ايښودلو اراده وکړه، نو هغه وويل بسم الله. [٣] بيا چې د هغې په شا کيناستلو، نو هغه وويل الحمد لله. [يعنی د سوارلي په نعمتونو او د دې څخه علاوه په نورو نعمتونو د الله ﷻ شکر دې] [٤] بيا دا کلمات يې وويل سُبْحَانَ الَّذِيْ سَخَّرَلَنَا هٰذَا وَمَا كُنَّا لَهٗ مُقْرِنِيْنَ وَاِنَّآ اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ ، يعنی پاك دی هغه ذات چې هغه دا څاروی زمونږ تابعدار کړو، حالانکه مونږ ته د هغه طاقت حاصل نه وو، او بيشکه مونږ د خپل پروردګار طرف ته ضرور واپس ورتلونکي يو. [٥] د دې څخه روسته يې درې خله الحمد لله او درې خله يې الله اکبر ويلو سره دا کلمات وويل [٦] سُبْحَانَكَ اِنِّيْ ظَلَمْتُ نَفْسِيْ فَاغْفِرْلِيْ فَاِنَّهٗ لَا يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ يعنی اې پروردګاره! ته پاك يې. بيشکه ما په خپل نفس ظلم کړې دې نو ته ما وبخښې بيشکه ګناهونه ستا څخه بغير څوك بخښلې نشي. [٧] بيا حضرت علي وخندل نو د هغه څخه پوښتنه وشوه چې اې امير المؤمنينه! ته ولې وخندل؟ [٨] حضرت علي رضي الله ورته وفرمايل چې ما نبی کريم ﷺ و ليدلو، چې دغه شان يې وکړه، څرنګه چې ما وکړه، او بيا نبی کريم ﷺ وخندل. [٩] ما عرض وکړو چې يا رسول الله! ﷺ تا د څه شي په وجه وخندل؟ [١٠] نبی کريم ﷺ وفرمايل چې ستا سو پروردګار د خپل بنده څخه راضي کيږي، کله چې هغه دا وايي چې اې زما پروردګاره! زما د پاره زما ګناهونه وبخښې. [هر کله چې بنده د خپل پروردګار څخه بخښنه غواړي]. [١١] نو پروردګار فرمايي چې دا بنده پوهيږي چې ګناهونه زما څخه سوا بل څوك نشي بخښلی (ترمذي، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① الرِّكَابُ: پاندان (سورلۍ ته د ورختلو دپاره د خپو ايخودو ځاني ته رکاب وائي) ② سَخَّرَ: أَيْ: ذَلَّلَهٗ: قابو يعنی تابع نې کړل ③ مُقْرِنِيْنَ: أَيْ: مُطِيْقِيْنَ: قابو کونکی، خپل قابو کښې راوستونکی ④ لَمُنْقَلِبُوْنَ: أَيْ: رَاجِعُوْنَ: واپس کيدونکی

**تسهيلات:**

**قوله: ثُمَّ ضَحِكَ:**

**د نبی عليه السلام او حضرت علی د خندا وجوهات:**

① نبی عليه السلام ددې دعا د قبليدو په وجه په خندا شو

② حضرت علی رضي الله عنه هم اوخاندل د نبی عليه السلام د اتباع د وجه نه او هم دا عمل د هر امتی د پاره مسنون دې

[٢٣٣٥] د رخصت کولو د وخت دعا

٢٣٣٥-[١٩] (١٧) وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا وَدَّعَ رَجُلًا [٢] أَخَذَ بِيَدِهِ فَلَا يَدَعُهَا حَتَّى يَكُونَ الرَّجُلُ هُوَ يَدَعُ يَدَ النَّبِيِّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٣] وَيَقُولُ: (أَسْتَوْدِعُ اللَّهَ دِينَكَ وَأَمَانَتَكَ وَآخِرَ عَمَلِكَ)». [٤] وَفِي رِوَايَةٍ: "وَخَوَاتِيمَ عَمَلِكَ" [٥] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ وَابْنُ مَاجَهْ وَفِي رِوَايَتِهِمَا لَمْ يُذْكَرْ وَآخِرَ عَمَلِكَ.

**ترجمه** [١] ابن عمر رضي الله عنهما وايي چه نبی کريم ﷺ چې به يو مسافر سړی رخصت کولو. [٢] نو نبی کريم ﷺ به د هغه لاس په خپل لاس کې نيولو. او د هغه لاس به يې تر هغه وخته نه پريښودلو تر څو چې هغه به د نبی کريم ﷺ مبارك لاس نه وو پريښی يعني نبی کريم ﷺ به د حسن اخلاق او تواضع په سبب داسې کول [٣] او بيا به يې فرمايل أَسْتَوْدِعُ اللَّهَ دِينَكَ وَأَمَانَتَكَ وَآخِرَ عَمَلِكَ. يعنی زه ستا دين او ستا امانت او ستا آخری عمل الله جل جلاله ته سپارم. يعنی زه ستا د دين او ستا د امانت د حفاظت طلب ګار يم او الله جل جلاله دې وکړي چې ستا خاتمه په خير شي)، [٤] او په يو بل روايت کې [وَآخِرَ عَمَلِكَ په ځای] وَخَوَاتِيمَ عَمَلِكَ، دی. يعنی ستا آخري اعمال هم الله جل جلاله ته سپارم (د دواړو مطلب يو دې [٥] دا روايت ترمذي. ابوداؤد او ابن ماجه نقل کړې دي، خو د ابوداؤد او ابن ماجه په روايتونو کې د وَآخِرَ عَمَلِكَ . الفاظ نشته

**حل اللغات:** ① وَدَّعَ: رخصت کولو به نې (مسافر). ② أَسْتَوْدِعُ: أَيْ: أَسْتَحْفِظُ: زه د حفاظت طلب ګار يم د الله تعالی نه. ③ خَوَاتِيمَ: د خاتم جمع ده. أَيْ: مَا يُخْتَمُ بِهِ عَمَلُكَ: څه باندې چه ستا عمل ختميږي هغې ته وانی يعنی آخری عمل

**تسهيلات: قوله:** وَأَمَانَتَكَ:

**دامانة په مصداق کښې درې اقوال:**

① د دی نه مراد اهل او اولاد دی کوم چه انسان د سفر په وخت کښې په کور کښې پريږدی

② دامانت نه مراد اموال دی

③ دامانت نه مراد هغه احکام دی چه د هغې انسان مکلف دې کما ورد فی القرآن إِنَّا عَرَضْنَا الْأَمَانَةَ عَلَى السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَالْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَنْ يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا الْإِنْسَانُ إِنَّهُ كَانَ ظَلُومًا جَهُولًا

**قوله:** وَآخِرَ عَمَلِكَ:

**د آخری عمل په مصداق کښې دوه اقوال:** ① د دی نه مراد د سفر آخری عمل دې

② اظهره دا ده چه د دې نه حسن خاتمه مراد ده ځکه چه په دې باندې د آخرت د امورو مدار دې

---

) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد/باب فی الدعاء عند الوداع (رقم-٢٦٠٠) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٥٠٥ وابن ماجة في كتاب الجهاد/باب تشييع الغزاة ووداعهم (رقم-٢٨٢٦) واحمد في المسند:٧/٢

**[٢٤٣٦] د جهادي لښکر د رخصتولو په وخت کښې مسنون دعا**

٢٤٣٦–[٢٠] (١) [١] وَعَنْ عَبْدِ اللهِ الْخَطْمِيِّ قَالَ [٢] «كَانَ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا أَرَادَ أَنْ يَسْتَوْدِعَ الْجَيْشَ قَالَ: [٣] (أَسْتَوْدِعُ اللهَ دِينَكُمْ وَأَمَانَتَكُمْ وَخَوَاتِيمَ أَعْمَالِكُمْ)». رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [١] عبد الله خطمي ﷛ وايي [٢] نبی کريم ﷺ چې به د لښکر رخصت کولو اراده وکړه، نو دادعا به يې ورته کوله. [٣] زه ستاسو دين، ستاسو امانت او ستاسو آخري عمل الله ﷻ ته سپارم (ابوداؤد)

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت عبدالله بن يزيد الخطمي ﷛:** نوم عبدالله کنيت ابوموسی دوی قبيله اوس سره تعلق لرلو اودَ پلار نوم ئې يزيد وو. دَ خپل پلار يزيدسره مسلمان شو. په بيعت رضوان کښې ئې شرکت کړې وو هغه وخت دَدوی عمر ١٧ کاله وو. دَحضرت عبدالله بن زبير ﷛ په دورخلافت کښې دَ يوڅو ورخو دپاره مکه معظمه ۶۵ھ کښې امير هم وو حضرت عبدالله بن زبير ﷛ هغه دَ کوفې امير جوړکړې وو. دَ هغوی باره کښې حافظ ابن حجر ﷫ فرمائی "كان من اكثر الناس صلاة وكان لايصوم الا يوم عاشوراء" په خپلو ملګروکښې په کثرت سره مونځونو کښې ممتازوو اودَ عاشورې دَ ورځې روژه به ئې ساتله (دَ رمضان نه علاوه)

**وفات:** هم په کوفه کښې انتقال شو.

**مرويات:** دَ هغوی نه ٢٧ احاديث نقل دی کومو کښې چه بعضې ئې بلاواسطه دَ رسول الله ﷺ نه اوريدلې دی او بعضې دَحضرت ابوايوب انصاری ﷛، ابن مسعود ﷛ حذيفه بن اليمان ﷛ اوحضرت عمر ﷛ وغيره نه ئې اوريدوسره نقل کړی دی. دَ نورومعلوماتودپاره اوګورئی ① اصابة١/١٤٣ ② اسدالغابة٢/٢٧٤ ③تهذيب التهذيب. سراعالام النبلاء وغيره.

**[٢٤٣٧] مسافرته په سفر باندې د تلو په وخت کښې دعا کول**

٢٤٣٧–[٢١] (٢) [١] وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] يَا رَسُولَ اللهِ إِنِّي أُرِيدُ سَفَرًا فَزَوِّدْنِي [٣] فَقَالَ: (زَوَّدَكَ اللهُ التَّقْوَى) [٤] قَالَ: زِدْنِي قَالَ: (وَغَفَرَ ذَنْبَكَ) [٥] قَالَ: زِدْنِي بِأَبِي أَنْتَ وَأُمِّي [٦] قَالَ: (وَيَسَّرَ لَكَ الْخَيْرَ حَيْثُ مَا كُنْتَ)». [٧] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ غَرِيبٌ.

**ترجمه** [١] حضرت انس ﷛ وايي چې يو سړی د نبی کريم ﷺ په خدمت کې حاضر شو، او عرض وکړو [٢] چې يا رسول الله ﷺ زه په سفر باندې د روانيدو اراده لرم، ماته توښه

---

١) اخرجه ابوداود فی کتاب الجهاد /باب فی الدعاء عند الوداع (رقم-٢٦٠١)
٢) اخرج الترمذی فی السنن رقم الحديث ٣٥٠٧ والدارمی فی ٢/٣٧٢ رقم-٢٦٧١

راكړه ايعني زما د پاره دعا وكړه چې د هغې بركت د سفر د توښې په شان ما سره وي.٣ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل چې الله ﷻ دې تقوی ستا توښه جوړه كړي يعني الله ﷻ دې ستا پرهيزګاري نصيب كړي چې دا د آخرت توښه ده.٤ هغه عرض وكړو چې زما د پاره نوره دعا وكړه. نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل چې الله ﷻ دې ستا ګناه وبخښي. ٥ هغه عرض وكړو چې زما مور پلار دې په تا قربان وي. زما د پاره نوره دعا وكړه.٦ نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل چې چيرته يې الله ﷻ دې د دين او دنيا خير ستا د پاره آسانه كړي او د هغې توفيق دې دركړي.٧ امام ترمذي رحمه الله دا روايت نقل كړی دی او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دی.

**حل اللغات:** ① زَوِّدْنِي: دا د تزويد نه دی. وَهُوَ الْمُدَّخَرُ الزَّائِدُ عَلَى مَا يُحْتَاجُ إِلَيْهِ: زياتې توښه كوم ته چه ضرورت پيښيږي ددې نه مراد د سفر د بركت دعا او اصول او هدايات دي. ② يَسَّرَ: أَيْ سَهَّلَ آسان دې كړی

**تسهيلات:**

**قوله:** أُرِيدُ سَفَرًا فَزَوِّدْنِي

**د توښه څخه مراد:** ددې مطلب دا دې چه ما د پاره دعا اوكړه ځكه چه دعا بهترينه توښه ده نبي عليه السلام اوفرمائيل زادك الله التقوى چه الله دې تا د مخلوق نه بې نيازه كړی او د ماموراتو پابندي دې درته نصيب كړي او د منهياتو نه دې بچ كړي دا ددې آيت نه اقتباس دي وَتَزَوَّدُوا فَإِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوَى[1]

**[٢٤٣٨] د سفر شروع كولو په وخت كښې مسافر ته وصيت او مسنون دعا كول**

٢٤٣٨-[٢٢] (١) ١ وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: «إِنَّ رَجُلًا قَالَ: ٢ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أُرِيدُ أَنْ أُسَافِرَ فَأَوْصِنِي ٣ قَالَ: (عَلَيْكَ بِتَقْوَى اللَّهِ وَالتَّكْبِيرِ عَلَى كُلِّ شَرَفٍ) ٤ فَلَمَّا وَلَّى الرَّجُلُ قَالَ: ٥ (اللَّهُمَّ اطْوِ لَهُ الْبُعْدَ ٦ وَهَوِّنْ عَلَيْهِ السَّفَرَ»). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ.

**ترجمه** ١ ابوهريره رضي الله عنه وايي چې يو سړي عرض وكړو ٢ چې يا رسول الله ﷺ زه په سفر د وتلو اراده لرم. ماته څه نصيحت وفرمايه. ٣ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل چې د الله ﷻ څخه ويره كوه. او (د سفر په لار كې) په هر پورته ځاي الله اكبر ويل په ځان لازم كړه. ٤ بيا چې هغه سړی د رسول الله ﷺ څخه روان شو نو رسول الله ﷺ وفرمايل ٥ چې اې الله ﷻ د ده د پاره د سفر اوږدوالي رالنډ كړي (يعني د ده اوږد مسافت مختصر كولو سره د سفر مشقتونه ختم لرې كړي) ٦ او د ده د سفر تول كارونه په ده اسانه كړي (ترمذي)

**حل اللغات:** ① شَرَفٍ: أَيْ مَكَانٍ عَالٍ: اوچت او پورته ځاي. ② اطْوِ: دا امر دې د الطي نه، أَيْ: قَرِّبْ.

---

١) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٥٠٨

بردي کړي. راتول کړي (يعني د دې سفر اوږدوالې او مشقت په ده باندې آسان کړې) ⑨الْبُعْدَ: لرې والې، اوږدوالې ⑩هَوِّنْ: أَيْ يَسِّرْ آسان کړې

**تسهيلات:**

**قوله عَلَيْكَ بِتَقْوَى اللهِ:**

**دالله تعالى څخه د ويرې مطلب:** د دې مطلب دادې چه د الله تعالى نه ويره اختيار کړئ. يعنى دالله تعالى نه اويرېږئ، د شرک، ګناه او مشتبه څيزونه پرېږدئ او داسې څيزونه هم مه اختياروئ کوم چه د ضرورت او حاجت نه زيات وي، په عبادت او ذکر الله کښې غفلت او د ماسوى الله د توجه نه بچ شئ، اود الله تعالى نه علاوه بل هيڅوک حاجت پوره کونکې او مشکل کشا مه ګڼرئ اوپه غير الله باندې اعتماد مه کوئ

**[٢٣٣٩] په سفر کښې د شپې د حضورﷺ دعا**

٢٣٣٩—[٢٣] (١) ①وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- إِذَا سَافَرَ فَأَقْبَلَ اللَّيْلُ قَالَ: ② (يَا أَرْضُ رَبِّي وَرَبُّكِ اللهُ ③ أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ شَرِّكِ وَشَرِّ مَا فِيكِ ④ وَشَرِّ مَا خُلِقَ فِيكِ ⑤ وَشَرِّ مَا يَدِبُّ عَلَيْكِ، ⑥ وَأَعُوذُ بِاللهِ مِنْ أَسَدٍ وَأَسْوَدَ ⑦ وَمِنَ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ ⑧ وَمِنْ شَرِّ سَاكِنِ الْبَلَدِ ⑨ وَمِنْ وَالِدٍ وَمَا وَلَدَ» ) . رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① ابن عمر ﷺ وايي چه رسول الله ﷺ چې به سفر کولو، او شپه به راغله، نو دا دعا به يې کوله ② يَا أَرْضُ رَبِّي وَرَبُّكِ اللهُ أَعُوذُ بِاللهِ مِنْ شَرِّكِ وَشَرِّ مَا فِيكِ وَشَرِّ مَا خُلِقَ فِيكِ وَمِنْ شَرِّ مَا يَدِبُّ عَلَيْكِ وَأَعُوذُ بِاللهِ مِنْ أَسَدٍ وَأَسْوَدَ وَمِنَ الْحَيَّةِ وَالْعَقْرَبِ وَمِنْ شَرِّ سَاكِنِ الْبَلَدِ وَمِنْ شَرِّ وَالِدٍ وَمَا وَلَدَ، ترجمه اې زمکې: زما او ستا پروردګار يوالله دې. ③ د الله ﷻ پناه غواړم ستا (د ذات) د بدى څخه (مثلاً خسف يعنى په زمکه کې د غرقيدو وغيره څخه) او د هغه څيز د بدى څخه چې په تاکې دننه دى (يعني اوبه يا ستا څخه پيدا کيدونکى داسې بوټې وغيره چې څوک هلاک کړي) ④ او د هغه څيز د بدى څخه چې په تاکې پيدا شويدى (لکه زهرجن خاروى او هلاکونکې څيزونه) ⑤ او د هغه څيزونو د بدى څخه، چې په تا ګرځي (لکه حشرات الارض او خاروى چې ضرر رسوي) ⑥ او د الله ﷻ پناه غواړم د زمري څخه، د تورمار څخه. ⑦ د نور قسم مارانو څخه او لړم څخه ⑧ او په ابادى کې د اوسيدونکو د بدى څخه (بعضې حضرات وايي چې د دې څخه مراد جنات دي چې به هري آبادى او زمکه کې اوسيږي) ⑨ او د خيږونکى د بدى څخه او د هغه څيز د بدى څخه چې خيږولې يې دي (يعني د ابليس لعين او د هغه د اولاد د شر څخه يا د هر خيږونکې او د هغه د اولاد د شر څخه پناه غواړم) (ابوداؤد).

---

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الجهاد، باب ما يقول الرجل إذا نزل المنزل (رقم-٢٦٠٣) واحمد في المسند: ٢/ ١٣٢

**حل اللغات** ① يَدِبُّ أَيْ يَمْشِي وَيَتَحَرَّكُ: چه ګرځي راګرځي په ځمکه باندې حيوانات او حشرات وغيره. ② أَسَد: زمری. ③ أَسْوَد: وَهُوَ الْحَيَّةُ الْكَبِيرَةُ الَّتِي فِيهَا سَوَادٌ: تور غټ مار. ④ الْحَيَّة: مار، دا تعميم بعد التخصيص دې يعنې عام ماران مراد دي، ⑤ الْعَقْرَب: لړم، ټول زهريله حشرات مراد دي،

**تسهیلات:**

**قوله**: وَشَرِّ مَا يَدِبُّ عَلَيْكِ..الخ:

**د حديث د بعضې جملو وضاحت:**

① يَدِبُّ عَلَيْكِ: يعنې كوم څيزونه چه په تا باندې چليدونكي دي

② أَسْوَدَ: تور لونې مارته وائي چه ډيرزيات خبيث وي. اسود تور غل ته هم ونيلى شي كوم چه افريقي اوسودانيان وي يادَ غل لباس تور وي په دې وجه ئې ورته اسود اووئيل

③ سَاكِنِ الْبَلَدِ: په ښاركښې اوسيدونكوته ساكن البلد وائي او ښارونوكښې اوسيدونكونه انسان يا جنات مراد دي ځكه چه دا په ښارونوكښې اوسيدونكى خلق دى جنات مراد اخستل ډير بهتردي

⑤ وَالِدٍ: ونيلى شي چه دې نه يا آدم عليه السلام مراد دي اويا ابليس مراد دي ابليس مراد اخستل زيات بهتردى دې دپاره چه دَ ساكن البلد نه جنات مراد اخستلو موافق شي

**قوله**: وَمَا وَلَدَ:

**د وما ولد په مصداق كښې دوه اقوال:** ① دې د حضرت آدم عليه السلام اولاد مراد دي

② دې څخه د ابليس اولاد مراد دى اودويم احتمال اخستل زيات بهتردى دې دپاره چه په ټولو جملوكښې توقف برقرار پاتې شي يعنى په علاقه كښې اوسيدونكى جناتونه خاص كر دَ ابليس او دهغه دَ ذريت دَ شرارت نه دَ الله تعالى پناه غواړم

**[۲۴۴۰] دانس رضي الله په روايت سره مسنون دعا**

۲۴۴۰-[۲۴] (¹) ⑴ وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ: «كَانَ رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا غَزَا قَالَ: ⑵ (اللَّهُمَّ أَنْتَ عَضُدِي وَنَصِيرِي ⑶ بِكَ أَحُولُ وَبِكَ أَصُولُ وَبِكَ أُقَاتِلُ» ). رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ⑴ انس رضي الله عنه وايي چه رسول الله صلى الله عليه وسلم چې به جهاد ته تلو، نو دا دعا به يي كوله ⑵ اللَّهُمَّ أَنْتَ عَضُدِي وَنَصِيرِي بِكَ أَحُولُ وَبِكَ أَصُولُ وَبِكَ أُقَاتِلُ، اي الله جل جلاله ته زما معتمد عليه يي (يعني زما په هره معامله كې په تا بروسه ده) او ته زما مددګار يي ⑶ د كفارو د مكر وفريب د لرې كولو د پاره زه ستا د ذات سره حيله كوم (يعني د هغوئ طرف ته د جنګ د پاره متوجه يم) او ستا په قوت سره د دين په دښمنانو حمله كوم او ستا په مدد سره د دين د دښمنانو سره جنګيږم (ترمذي، ابوداؤد)

---

(¹) اخرجه ابوداود في كتاب الجهاد، باب ما يقول الرجل إذا نزل المنزل (رقم-۲۶۰۳) واحمد في المسند: ۳/۱۳۲

**حل اللغات** ① غَزَا: چه جهاد ته به تلو، دجهاد اراده به ئې اوكړه ② عَضُدِي: أَيْ مُعْتَمَدِي: عضد مټ ته وائي دلته ترې مراد مدد كونكې دې يعني زما اعتماد او بهروسې والا ذات الله دې په هيڅوك نه دې ③ نَصِيرِي: دا عطف تفسيري دې د عضد دپاره، أَيْ مُعِيني: يعني زما مدد كونكې او فرياد رس ته تعالى دې. ④ أَحُولُ: أَيْ أَحْتَالُ لِدَفْعِ مَكْرِ الْعَدُوِّ: يعني د دشمن د مكر او فريب لرې كولو دپاره ستا په د ت حيله كوم ⑤ أَصُولُ: أَيْ أَحْمِلُ عَلَى الْعَدُوِّ: حمله كوم په دشمن باندې (په مدد ستاسره)

**تسهيلات:**

**قوله عَضُدِي**

**د عضد څخه مراد:** ددې نه مراد هغه څيز دې چه په هغې اعتماد اوكړې شي يعني په ټولو معاملاتو كښې په الله باندې اعتماد پكار دې

**[٢٤٤١] د دښمن نه د ويرې د وخت دعا**

٢٤٤١- [٢٥] ( )[١] وَعَنْ أَبِي مُوسَى «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا خَافَ قَوْمًا قَالَ[٢] (اللَّهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِي نُحُورِهِمْ[٣] وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شُرُورِهِمْ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ وَأَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [١] ابوموسى رضي الله عنه وايي چه د نبى كريم ﷺ چې به د يو دښمن قوم څخه ويره وه نو دا دعا به يي ويله [٢] اللَّهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِي نُحُورِهِمْ وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شُرُورِهِمْ ترجمه اي الله جل جلاله مونږ تا دښمن ته مقابل كوو [يعني تاته د دې خبري درخواست كوو چې د هغوى د شر څخه مو محفوظ وساتي، او د هغوئ او زمونږ په منځ كې حائل شي] [٣] او مونږ د هغوى (يعني د دښمنانو) د شر څخه ستا پناه غوارو. (احمد، ابوداؤد)

**حل اللغات:** ① نُحُورِهِمْ: د نَحْر جمع ده، سينې ته وائی، مراد ترې مقابل او مخامخ اودرول دی

**تسهيلات:**

**قوله:** اللَّهُمَّ إِنَّا نَجْعَلُكَ فِي نُحُورِهِمْ:

**د نحر څخه مراد او د دې تخصيص وجه:** دا د نحر جمع ده مراد ترينه سينه ده او نحر ئې ځكه خاص كړو چه عموما په سينې سره د دشمن مقابله كيږي.

**قوله:** وَنَعُوذُ بِكَ مِنْ شُرُورِهِمْ:

**د مذكوره جملې جامعيت:** ددې مطلب دا دې چه اي الله مونږ تا نه سوال كوو چه ته د هغوى سينې منع كړې او د هغوى شر زمونږ نه دفع كړې او د هغوى په امورو كښې زمونږ كفايت اوكړې او زمونږ او زمونږ د دشمنانو په مينځ كښې ته حائله شې دې د پاره چه ته هغوى زمونږ نه دفع كړې.

[١] ) اخرجه ابوداود في كتاب الجهاد . باب من قال إنه يأكل مما سقط(رقم-٢٦٢٢) واحمد في المسند: ٤/٤١٤

**د دشمن څخه د حفاظت عمل:** علماء كرامو دا دعا مجربه ګرځولې ده او دا ئې هم ونيلي دي چه كوم كس ته د دشمن وغيره نه سخته يره وي نو هغه دې سورت قريش تلاوت كړي دا هم مجربه ده

**[٢٣٣٣] ذكور نه دوتلو د وخت دعا**

٢٣٣٣ ـ [٢٦] (١)١ وَعَنْ أُمِّ سَلَمَةَ ـ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا ـ ٢ «أَنَّ النَّبِيَّ ـ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ كَانَ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ قَالَ: ٢ (بِسْمِ اللَّهِ، تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ، ٣ اللَّهُمَّ إِنَّا نَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ نَزِلَّ أَوْ نَضِلَّ ٤ أَوْ نَظْلِمَ أَوْ نُظْلَمَ، ٥ أَوْ نَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيْنَا» ) ٦ رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَالنَّسَائِيُّ، وَقَالَ التِّرْمِذِيُّ: هَذَا حَدِيثٌ حَسَنٌ صَحِيحٌ.

**ترجمه** ١ ام المؤمنين بي بي ام سلمه رضي الله عنها وايي ٢ نبي كريم ﷺ چې به د خپل كور څخه وتلو، نو دا دعا به يې كوله ٣ بِسْمِ اللَّهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ اللَّهُمَّ إِنَّا نَعُوذُ بِكَ مِنْ أَنْ نَزِلَّ أَوْ نَضِلَّ أَوْ نَظْلِمَ أَوْ نُظْلَمَ أَوْ نَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيْنَا ترجمه د الله جل جلاله په نامه د كور څخه وځم. ما په الله جل جلاله بروسه وكړه ٣ اې الله جل جلاله مونږ ستا پناه غواړو د دې څخه چې وښويږو (يعني بلا قصد په ګناه كې اخته شو) يا مونږ ګمراه شو (يعني قصداً ګناه وكړو) ٤ يا مونږ ظلم وكړو يا په مونږ باندې ظلم وكړل شي. ٥ يا مونږ بل په جهالت كې اخته كړو، يا مونږ په جهالت كې اخته كړل شو. ٦ احمد، ترمذي، نسائي، او امام ترمذي رحمه الله فرمايي چې دا حديث حسن صحيح دی.

**حل اللغات:** ① نَزِلَّ: دا د زَلَّة نه دي، وَهِيَ ذَنْبٌ مِنْ غَيْرِ قَصْدٍ: بغير د قصد نه ګناه كيدلو ته وائي ② نَضِلَّ: دا د ضَلَالَة نه دي، د هدايت نه اوړيدلو ته وائي يعني ګمراهي او بې لارې كيدل

١ وَفِي رِوَايَةِ أَبِي دَاوُدَ وَابْنِ مَاجَهْ، «قَالَتْ أُمُّ سَلَمَةَ: ٢ مَا خَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ ـ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ـ مِنْ بَيْتِي قَطُّ إِلَّا رَفَعَ طَرْفَهُ إِلَى السَّمَاءِ، ٣ فَقَالَ " اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ ٤ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ» ".

**ترجمه** ١ د ابوداؤد او ابن ماجه په روايت كې دا الفاظ دي چې بي بي ام سلمه رضي الله عنها اووېل ٢ نبي كريم ﷺ چې به كله زما د كور څخه وتلو نو د آسمان طرف ته به يې خپل نظر اوچتولو. ٣ او دا سې به يې فرمايل اللَّهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أَضِلَّ أَوْ أُضَلَّ أَوْ أَظْلِمَ أَوْ أُظْلَمَ أَوْ أَجْهَلَ أَوْ يُجْهَلَ عَلَيَّ. ترجمه زه د دې خبرې څخه ستا پناه غواړم چې زه ګمراه شم يا ګمراه كړل شم (يعني ما څوك ګمراه كړي) ٤ يا زه ظلم وكړم. يا په مابانددې ظلم وكړل شي، يا زه په جهالت كې اخته شم يا زه په جهالت كښې اخته كړې شم

**د راوي مختصر تعارف:**

**ام المومنين ام سلمه:** نوم هند، كنيت ئې ام سلمه، د قريشو د مخزوم خاندان سره ئې تعلق

(١) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقول إذا خرج من بيته (رقم-٥٠٩٥) والترمذي في السنن رقم الحديث ٣٤٨٧ وابن ماجة في كتاب الدعاء /باب ما يدعو به الرجل إذا خرج من بيته (رقم-٣٨٨٤) واحمد في المسند: ٣٠٦/٦

سره تلو د پلار نوم ئې ابوامیه وو هغه ډیر سخي وو

**نکاح:** اولنۍ نکاح ئې د عبدالله بن عبدالاسد سره شوې وه هغه د ابوسلمه په نوم سره مشهور وو هغه د دې د ترۀ خوئې وواود نبی کریم رضاعی ورور وو دې د نبوت په شروع کښې دخپل خاوند سره اسلام قبول کړې وو اوحبشو ته ئې هجرت هم کړې وو په غزوه احد کښې د دې خاوند څو ځایه زخمی شوې وو د هغه زخم زیات شواو هم د هغې په وجه وفات شو [۱]

**نبی کریم ﷺ سره نکاح:** د هغې د وفات نه پس نبی کریم ① دې ته اوفرمائیل ته صبر کوه او دهغه د مغفرت دعا کوه اودا دعا کوه چه د ده نه راته ښه جانشین راکړه ام سلمې ته روستو حضرت ابوبکر ﷺ د نکاح پیغام اولیږلو خو هغوی دا پیغام رد کړلو ددې نه پس حضرت عمر ﷺ د نبی کریم ﷺ د نکاح پیغام یوړلو چه نبی کریم ﷺ تاسو سره نکاح کول غواړی نو دې اووئیل په ما کښې څو خبرې دی ① یوداچه زه ډیره غیرتی یم ② زما بال بچ هم دی ③ زما عمرزیات دې خونبی کریم ﷺ دا ټولې خبرې قبولې کړې او بیا ئې د نبی کریم ﷺ سره نکاح اوشوه [۳] دا نکاح په شوال ۴ هجرئ کښې شوې وه

**د نبی کریم ﷺ دې سره محبت:** د نبی کریم ﷺ دې سره ډیر محبت وو خکه چه دې به د هغوی د آرام ډیر خیال ساتلو په بعضی غزاګانو کښې ئې هم د نبی کریم ﷺ سره شرکت کړې دې په ۱۱ هجرئ کښې کله چه د نبی کریم ﷺ طبیعت په بیمارئ کښې زیات خراب شو او دې اولیدلو نو دوی چغه کړه نبی کریم ﷺ منع کړه چه دا د مسلمانانو شان نه دې [۴]

**وفات:** په کوم کال چه د حرې واقعه پیښه شوې وه یعنی ۶۳ هجری کښې نو هم په دغه کال دوی وفات شوې وه او په دغه وخت کښې د دوی عمر ۸۴ کاله وو حضرت ابوهریره ﷺ ئې د جنازې مونځ کړې وو او په جنت البقیع کښې دفن شوې وه [۵]

**مرویات:** د دوی نه ۳۷۸ روایتونه نقل دی ۱۳ احادیث متفق علیه دی بخاری په ۳ کښې او مسلم په ۳ کښې منفرد دی

**[۲۴۴۴] شیطان لره عاجزکونکې دعا**

۲۴۴۴—[۲۷] ( [۱] )[۱]وَعَنْ أَنَسٍ -رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ- قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ -صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- :[۲] "«إِذَا خَرَجَ الرَّجُلُ مِنْ بَيْتِهِ،[۳] فَقَالَ: بِسْمِ اللَّهِ، تَوَكَّلْتُ عَلَى اللَّهِ،[۴] لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللَّهِ،[۵] يُقَالُ لَهُ حِينَئِذٍ: هُدِيتَ وَكُفِيتَ، وَوُقِيتَ[۶] فَيَتَنَحَّى لَهُ الشَّيْطَانُ. وَيَقُولُ شَيْطَانٌ آخَرُ:[۷] كَيْفَ لَكَ بِرَجُلٍ قَدْ هُدِيَ وَكُفِيَ، وَوُقِيَ» ".[۸] رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ. وَرَوَى التِّرْمِذِيُّ إِلَى قَوْلِهِ: "لَهُ الشَّيْطَانُ".

**ترجمه** [۱] حضرت انس ﷺ راوي دې چې رسول الله ﷺ وفرمایل[۲] هر کله چې یو سړې د

---

[۱] زرقانی (۳\۲۷۳)_(۳)نسائی ص،۱۱۵)_ (۴) طبقات ابن سعد (۱۳۱۲)_ (۵)زرقانی (۳\۲۷۶)-

[۲] اخرجه ابوداود فی کتاب الأدب/باب ما یقول إذا خرج من بیته (رقم-۵۰۹۵) والترمذی فی السنن رقم الحدیث ۳۴۸۶ وابن ماجة فی کتاب الدعاء /باب ما یدعو به الرجل إذا خرج من بیته (رقم-۳۸۸۶)

کور ځخه وځي [٣] او دا کلمات اووائي بِسْمِ اللّٰهِ تَوَكَّلْتُ عَلَى اللّٰهِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ. يعنې زه د الله ﷻ په نامه وځم. ما په الله ﷻ بروسه وکړه. [٤] د ګناهونو ځخه د حفاظت طاقت او د عبادت کولو قوت د الله ﷻ د طرف ځخه دی. [٥] نو هغه ته ويل کيږي يعني فرشته هغه ته وايي چه اې د الله ﷻ بنده! تاته نيغه لار وښودل شوه ته په جميع مهماتو او ټولو امورو کي د غير ځخه مستغني کړل شوې. او ته د ټول بدو (يعني د خرابيو ځخه) محفوظ شوی [٦] په دې اوريدو سره، شيطان د هغه ځخه لرې کيږي. او دويم شيطان (د هغه شيطان د تسلی د پاره) هغه ته وايي [٧] چې ته په هغه سړي ځرنګه قابو موندلې شې، چې هغه ته سيده لار وښودل شوه او چې هغه د غير ځخه مستغني کړې شو. او د ټولو بديو خرابيو ځخه محفوظ شو [٨] ابوداؤد. امام ترمذي رحمه الله دا روايت تر لفظ لَهُ الشَّيْطَانُ پورې نقل کړی دی

**حل اللغات:** ① هُدِيتَ: نيغه دحق لار درته اوښودلې شوه ② كُفِيتَ: کافي کړې شو د مقصد وسته يعنې ته مستغنی کړې شوې ستا ضروريات الله تعالى پوره کړل. ③ وُقِيتَ: أَيْ حُفِظْتَ: ته بچ اوساتې شوې او محفوظ کړې شوې (د دښمن نه يا دټولو خرابو نه). ④ فَيَتَنَحَّى: أَيْ يَتَبَعَّدُ: لرې کيږي شيطان

**تسهيلات:**

**قوله:** قَدْ هُدِيَ وَكُفِيَ وَوُقِيَ:

**د هدي په مصداق کښې دوه اقوال:** ① دَمجهول صيغه ده يعنى تاته نيغه لار اوخودلې شوه په دې وجه چه تا دومره ښه دعاګانې اوغوښتلې

② دومره ښه دعاګانې غوښتلو سره تاته نيغه لار اوخودلې شوه اوس شيطان يا دَ هغه اولاد تاګمراه کولې نه شي

**قوله:** وَيَقُولُ شَيْطَانٌ آخَرُ:

**د دعا عظمت د شيطان په ژبه:** يعنى دَ دغه تختيدونکى شيطان حوصله زياتول اودَ طمع پيداکولودپاره دويم شيطان وائى چه روره ويريږه مه حوصله مه بيله که چرته ته عاجز شوې اوتا په مکمل توګه باندې ماتې اوخوړله نو په دې کښې دَ شرم هيڅ خبره نشته ځکه چه ستا مقابله يوداسې سړى سره وه چه دَ دعاګانو په روحانى وسلې سره مسلح وو دَداسې سړى مقابله تاچرته کولې شوه اوهغه تاګمراه کولې چرته شو چاته چه دَ دغه دعاګانو په ذريعه نيغه لار خودلې شوې وه اودَ الله تعالى پوره حفاظتى نظام دَ هغه په حفاظت کښې لګيا وو

[۳۳۳۴] کورکښې د داخلیدو د وخت دعا

۳۳۳۴ـ[۲۸] (۱) [۱] وعَنْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [۲] «إِذَا وَلَجَ الرَّجُلُ بَيْتَهُ، فَلْيَقُلْ: [۳] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلِجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ، [۴] بِسْمِ اللّٰهِ وَلَجْنَا وَعَلَى اللّٰهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا، [۵] ثُمَّ لِيُسَلِّمْ عَلَى أَهْلِهِ» ) رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] ابومالک اشعري ﷜ وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] هر کله چې يو سړی په خپل کور کې داخليږي، نو هغه ته پکار دی چې هغه دا دعا اووائي [۳] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ الْمَوْلِجِ وَخَيْرَ الْمَخْرَجِ بِسْمِ اللّٰهِ وَلَجْنَا وَعَلَى اللّٰهِ رَبِّنَا تَوَكَّلْنَا يعنی اي الله ﷻ زه ستا څخه په کور کې د داخليدو او د کور څخه د وتلو خير غوارم (يعني چې کورته راتلل او د کور څخه وتل د خير او برکت سره وي) [۴] د الله ﷻ په نامه مونږ په کور کې داخل شو، او مونږ په الله ﷻ چې هغه زمونږ رب دی، بهروسه وکړه، [۵] د دې څخه روسته هغه ته پکار دی، چې هغه خپل کور والاته سلام وکړي، (ابوداؤد)

**حل لغات:** ① وَلَجَ: أَيْ: أَدْخَلَ: داخليږي، ② الْمَوْلِجِ: داخليدل ③ الْمَخْرَجِ: بهرته وتل (دا دواړه ظرف دي يا مصدر ميمي دي) ④ يُسَلِّمْ: سلام دې واچوي (دخپل کور په خلقو باندې)

**تسهيلات:**

**قوله:** ثُمَّ لِيُسَلِّمْ:

**د سلام څخه وړاندې د دې مسنونيت بيانول:** يعنی کوروالوته دې سلام کوی خو مناسب دادی چه اول دې سړي په کورکښې دَسلام ماحول جوړکړی ماشومان دې پوهه کړی اوښځې ته دې اووائی چه دا مسنون طريقه ده په دې سره کورکښې برکت راځی دې دپاره چه دَ ښځې په زړه اودماغو کښې دَ خاوندقدر په ځائی پاتې شی اوهغه دادَ خاوندپه کمزورتی سره محمول نه کړی اودا خيال دې نه کوی چه نن خو سړی راته سلام اوکړو صوبه زما په مخکښې سرتيټې وی صوبه سرحدکښې په کورونوکښې دَ سلام رواج نشته دې داسنت ژوندی کول پکاردی

[۳۳۳۵] دَ ناوې اوزلمی دپاره دعا

۳۳۳۵ـ[۲۹] (۲) [۱] وعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - [۲] «أَنَّ النَّبِيَّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا رَفَّأَ الْإِنْسَانَ إِذَا تَزَوَّجَ، قَالَ [۳] (بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ، وَبَارَكَ عَلَيْكُمَا، [۴] وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِي خَيْرٍ» ). رَوَاهُ أَحْمَدُ، وَالتِّرْمِذِيُّ، وَأَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

[1] اخرجه ابوداود في أبواب الإجارة /باب في ثمن الخمر والميتة (رقم-۳٤۸٦)
[2] اخرجه ابوداود في كتاب النكاح /باب ما يقال للمتزوج (رقم-۲۱۳۰) والترمذي في السنن رقم الحديث ۱۰۹۷ وابن ماجة في كتاب النكاح / تهنئة النكاح (رقم-۱۹۰۵)

**ترجمه** [١] ابو هريره رضي الله عنه راوي دي [٢] هر کله چې يو سړي به نکاح کوله. او نبي کريم ﷺ به هغه ته دعا کوله، نو دا دعا به يې کوله [٣] بَارَكَ اللّٰهُ لَكَ وَبَارَكَ عَلَيْكُمَا وَجَمَعَ بَيْنَكُمَا فِيْ خَيْرٍ، يعنى الله جل جلاله دي تاسو مبارك کړي او تاسو دواړو (يعني ښځي خاوند) له دي برکت درکړي يعنى په تاسو دي خپل رحمت نازل کړي، او اولاد او د رزق وسعت او فراخي سره دي برخمند کړي، [٤] او تاسو دواړه دې په خير جمع کړي (يعني تاسو ته دي د طاعت او عبادت توفيق درکړي چې د صحت او عافيت سره ستاسو ژوند تير شي، په تاسو دواړو کې دي مينه او محبت او حسن سلوك هميشه قائم وساتي، او ستاسو اولاد دي نيك او صالح جوړ کړي) (احمد، ترمذي، ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات**: ① رَفَّأَ: دا د تَرْفِئَة نه مهموز اللام دې د باب تفعيل نه. په معنى د تَهْنِئَة يعنى مبارکبادي سره، د واده په وخت د برکت دعا کول

**تسهيلات**:

**قوله**: إِذَا رَفَّأَ:

**د اسلام څخه وړاندې د خوشحالۍ په موقعه د مبارکبادۍ الفاظ**: دَ اسلام نه مخکښې دَ واده خادئې په موقع به دَمبارکئې دَپاره ترفئة جمله داسې وئيلې کيدله "بالرفاء والبنين" رفو دَ يوخائې کولو او جوړولو په معنى کښې دې اهل جاهليت به دَ جوړدَپاره دعا کوله ليکن دَ جينکوسره دَ بغض دَ وجې نه به ئې دَ بنين لفظ استعمالولو اسلام داسې دَ مبارکئې دَ الفاظونه منع کړې ده اودَې نعم البدل ئې ورکړو کوم چه په دې حديث کښې دې "بارك الله وبارك عليكما وجمع بينكما بخير"

**[٢٣٣٦] دَ شب زفاف خصوصي دعا**

٢٣٣٦–[٣٠] ()[١] وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: [٢] «إِذَا تَزَوَّجَ أَحَدُكُمُ امْرَأَةً، [٣] أَوِ اشْتَرَى خَادِمًا، فَلْيَقُلْ: [٤] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا، وَخَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ، [٥] وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا، وَشَرِّ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ، [٦] وَإِذَا اشْتَرَى بَعِيرًا، فَلْيَأْخُذْ بِذِرْوَةِ سَنَامِهِ، وَلْيَقُلْ مِثْلَ ذٰلِكَ» ). [٧] وَفِي رِوَايَةٍ فِي الْمَرْأَةِ وَالْخَادِمِ: [٨] (ثُمَّ لِيَأْخُذْ بِنَاصِيَتِهَا وَلْيَدْعُ بِالْبَرَكَةِ). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ، وَابْنُ مَاجَهْ.

**ترجمه** [١] عمرو بن شعيب د خپل پلار (شعيب رحمه الله) څخه او هغه دخپل نيکه يعنى د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه او عبد الله بن عمرو رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ څخه روايت کوي چې نبي کريم ﷺ وفرمايل [٢] هر کله چې په تاسو کې يو سړې د يوې ښځي سره نکاح وکړي [٣] يا يو غلام واخلي، نو دا دعا دي وکړي [٤] اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا وَخَيْرَ مَا جَبَلْتَهَا عَلَيْهِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ

[١] اخرجه ابوداود في كتاب النكاح/باب في جامع النكاح (رقم-٢١٦٠) وابن ما جة في كتاب النكاح/ ما يقول الرجل إذا دخلت عليه أهله (رقم-١٩١٨)

مَا جُبِلَتْ عَلَيْهِ. اې الله! ﷻ زه ستا ځخه د دې (د ذات) خير غواړم او خير د هغه څيز چې په هغې تا دې پيدا کړي ده (يعني ښه اخلاق)[۵] او زه ستا پناه غواړم د دې د بدۍ ځخه او د هغه څيز د بدۍ ځخه چې په هغې تا دې پيدا کړي ده (يعني خراب اخلاق او افعال)[٦] او هر کله چې اوښ واخلي نو د هغه د قب اوچت والي نيولو سره دغه شان دې وايي (يعني پورته ذکر شوي دعا دې واني)[۷] په يو بل روايت کې د ښځې او غلام په باره کې دا الفاظ هم دي چې بيا دې د ښځې ياد غلام د تندي وېښتان نيولوسره د خير او برکت دعا وکړي (ابوداؤد، ابن ماجه)

**حل اللغات:** ① جَبَلْتَهَا: أَيْ خَلَقْتَهَا: چه تا پيدا کړې دې هغه (يعنى ښه اخلاق). ② بِذِرْوَةِ: أَيْ بِأَعْلَاهُ اوچت خانې. ③ سَنَامِهِ: قُب د اوښ. ④ وَلْيَدْعُ: او دعا دې اوغواړي (د برکت دعا کومه چه اوس تيره شوه)

**تسهيلات:**

**قوله:** اللَّهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَهَا:

**په هرڅيز کښې د خير اوبرکت دعا:** دا پورته دعا د خير اوبرکت ددعاګانو نه ده لکه چه د حصن حصين نه مفهوم معلوميږي يعنى د ښځې يا د غلام د تندى وېښته اونيولې شي اودا دعا اووئيلې شي، علامه جزرى رحمه الله فرمائى چه صرف په اوښ باندې منحصر نه ده بلکه چه کوم څاروې هم واخستلې شى دا دعا دې اووئيلې شى الله تعالى به په هغه څاروى کښې برکت او ترقى پيدا کړى.

**[۲۴۲۷] دغم لرې کولودعا**

۲۴۲۷-[۳۱] (¹)[۱] وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: قَالَ: رَسُولُ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ -:[۲] «دَعَوَاتُ الْمَكْرُوبِ:[۳] اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو[۴] فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ[۵] وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ») رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** [۱] ابو بکرة رضي الله عنه وايي چې رسول الله ﷺ وفرمايل [۲] د غمزده دعا چې د هغ په ويلو سره غم خې (ختميږي) دا ده [۳] اللَّهُمَّ رَحْمَتَكَ أَرْجُو فَلَا تَكِلْنِي إِلَى نَفْسِي طَرْفَةَ عَيْنٍ وَأَصْلِحْ لِي شَأْنِي كُلَّهُ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، اې الله! ﷻ زه ستا د رحمت طلب ګاريم.[۴] ما د يوې لمحې د پاره هم زما نفس ته حواله مه کړې (ځکه چې هغه زما لوی دښمن دّ او عـاجزه دی، هغـه په دي قـادر نه دّ چې حاجت روايي وکړي)[۵] او زما ټول کارونه درست کړې، ستا ځخه علاوه بـل معبود نشته (ابوداؤد)

¹) اخرجه ابوداود فى كتاب الأدب باب ما يقول إذا أصبح (رقم- ٥٠٩٠)

**حل اللغات:** ① دَعَوَاتُ الْمَكْرُوبِ: أَيِ: الْمَغْمُومِ: دغم خپلي دعا ،دعوات نې د جمعې صيغه خکه ذکر کړه چه دا دعا په ډير معانيو مشتمل ده، ② فَلَاتَكِلْنِي: أَيْ: لَاتَتْرُكْنِي: مه مې حواله کوه. مه مې پريږده. ③ طَرْفَةَ عَيْنٍ: أَيْ: لَحْظَةً وَلَمْحَةً: د سترګو رپ يعنى يو لحظه، لږساعت. ④ شَأْنِي: أَيْ: أَمْرِي: زما کارونه

**تسهيلات:**

**نوټ:** د دعا مطلب واضح دي اود ګرانو ټکو معانى په حل اللغات کښې کتلې شي.

**[۳۳۸] د قرض ادا کولو دعا**

۲۳۳۸ - [۳۲] ( )① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «قَالَ رَجُلٌ: هُمُومٌ لَزِمَتْنِي وَدُيُونٌ يَا رَسُولَ اللهِ! ③ قَالَ: (أَفَلَا أُعَلِّمُكَ كَلَامًا إِذَا قُلْتَهُ أَذْهَبَ اللهُ هَمَّكَ، ④ وَقَضَى عَنْكَ دَيْنَكَ؟) ⑤ قَالَ: قُلْتُ: بَلَى. قَالَ ⑥ (قُلْ إِذَا أَصْبَحْتَ وَإِذَا أَمْسَيْتَ: ⑦ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ، وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ غَلَبَةِ الدَّيْنِ وَقَهْرِ الرِّجَالِ) ⑧ قَالَ: فَفَعَلْتُ ذٰلِكَ، فَأَذْهَبَ اللهُ هَمِّي، ⑨ وَقَضَى عَنِّي دَيْنِي»، رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

**ترجمه** ① ابوسعيد خدري رضي الله عنه وايي ② چې يو سړي عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ زه فکر او غم راګير کړې يم، او قرض رانيولې يم، ③ نبى کريم ﷺ ورته وفرمايل چې آيا زه تاته يوه داسې دعا ونه ښايم، که ته هغه وايې نو الله جل جلاله به ستا فکر لرې کړي، ④ او د قرض په باره کې به تاته نجات درکړي، ⑤ ابوسعيد رضي الله عنه وايي چې هغه سړي اووئيل چې ما عرض وکړو. هو ضرور يې راوښايه، ⑥ نو نبى کريم ﷺ وفرمايل چې سحر او ماښام دواړه وخته دا دعا کوه ⑦ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ مِنَ الْهَمِّ وَالْحُزْنِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْعَجْزِ وَالْكَسَلِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنَ الْبُخْلِ وَالْجُبْنِ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ غَلَبَةِ الدَّيْنِ وَقَهْرِ الرِّجَالِ ⑧ د هغه سړي بيان دي چه ما داسې وکړل ،يعني دا دعا به مې کوله، نو الله جل جلاله زما فکر او غم لرې کړو، ⑨ او زما د قرض بوج يې لرې کړو ،ابوداؤد،

**حل اللغات:** ① هُمُومٌ: دا د هَمٌّ جمع ده. غمونه اوفکرونه. ② لَزِمَتْنِي: ترلې شوى دى ما پورې يعنى زه نې راګير کړې يم. ③ الْحُزْنِ: غم ،هَمٌّ هغې غم ته وائى چه واقع کيدونکې وى. او حُزن کوم چه تيرشى يا کوم چه واقع شوې وى، ④ الْعَجْزِ: دا د عَجْز نه ماخوذ دي. مُؤَخَّرُالشَّيْءِ ته وائى، خو ددې استعمال د قدرت په مقابله کښې مشهور دي. يعنى د يوڅيز وس اوطاقت نې چه نه وى هغې ته عجز وائى. عاجزه چه د مصيبت برداشت کولو وس نې نه وى ⑤ الْكَسَلِ: أَيِ: التَّثَاقُلِ: دروندوالې، سستى ،دنيکئ په کارونو کښې سره ددې چه قدرت نې وى، ⑥ الْبُخْلِ: کنجوسى ،په کومو ځايونو کښې چه د مال خرچ کولو حکم دې هلته مال نه خرچ کولو ته بخل وائى، ⑦ الْجُبْنِ: دا د شَجَاعَة

---

( ) اخرجه ابوداود في كتاب الصلاة باب في الاستعاذة (رقم-١٥٥٥)

ضد دي. وَهُوَ الْخَوْفُ عِنْدَ الْقِتَالِ په جهاد كښې ويره كول يعنې بزدلي ⑧ غَلَبَةِ الدَّيْنِ: أَيْ كَثْرَتِهِ: ډير ربت قرض چه د برداشت نه بهر وي، ⑨ قَهْرِ الرِّجَالِ: أَيْ غَلَبَتِهِمْ: غلبه او زور د خلقو، ددې نه مراد ي د بادشاه ظلم وستم دي يا د قرض غوښتونكو زبردستي ده،

**تسهيلات:**

**قوله: وَأَعُوذُبِكَ مِنَ الْعَجْزِ:**

**دعجز نه مراد:** عجز نه مراد د طاعت او عبادت نه پوره كول دي او د مصيبت د برداشت كولو همت او توفيق راكره وأعوذبك من البخل: بخل دي ته وئيلې شي چه زكات، كفارات او باقي ماليات واجبه نه ادا كول

**قوله: وَالْجُبْنِ:**

**د جبن په مصداق كښې دوه اقوال:** ① د جبن د شجاعت ضد دې يعنې د جنګ په وخت كښې بزدلي اختيارول يا د رزق په معامله كښې توكل على الله پريخودل دي

② ددې نه مراد امر بالمعروف او نهي عن المنكر باندې جرأت نه كول دي

**قوله: وَقَهْرِ الرِّجَالِ:**

**د قهر الرجال په مفهوم كښې درې اقوال:** ① ددې نه مراد غلبه ده

② ددې نه مراد د بادشاه ظلم دي.

③ ددې نه مراد هغه مقروض خلق دي چه هغوى خپل قرض نشي ادا كولي (مرقات)

**[٢٣٣٩] داسې دعا چه د غر برابر قرض به هم ختم شي**

**—[٣٣] ()[١] «وَعَنْ عَلِيٍّ - رَضِيَ اللهُ عَنْهُ - أَنَّهُ جَاءَهُ مُكَاتَبٌ فَقَالَ: [٢] إِنِّي عَجَزْتُ عَنْ كِتَابَتِي فَأَعِنِّي. [٣] قَالَ: أَلَا أُعَلِّمُكَ كَلِمَاتٍ عَلَّمَنِيهِنَّ رَسُولُ اللهِ - صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - [٤] لَوْ كَانَ عَلَيْكَ مِثْلُ جَبَلٍ كَبِيرٍ دَيْنًا أَدَّاهُ اللهُ عَنْكَ. [٥] قُلِ: (اللَّهُمَّ اكْفِنِي بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ [٦] وَأَغْنِنِي بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ)». [٧] رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَالْبَيْهَقِيُّ فِي: (الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ). [٨] وَسَنَذْكُرُ حَدِيثَ جَابِرٍ: "إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلَابِ" فِي بَابِ: "تَغْطِيَةِ الْأَوَانِي" إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى.**

**ترجمه** [١] د حضرت علي رضي الله عنه په باره كې منقول دي چې هغه ته يو مكاتب راغلو، او وې ووېل [٢] چې زه په خپل بدل كتابت ادا، كولو قادر نه يم (يعني د مال كتابت ادا، كولو وخت راغلې دې خو ما سره مال نشته)، نو تاسو (په مال او دعا سره) زما مدد وكئ. [٣] حضرت علي رضي الله عنه ورته وفرمايل چې آيا زه تاته هغه دعا ونه ښايم چې نبي كريم ﷺ ماته ښودلې وه؟ [٤] (چې د هغې د بركته) كه په تا د غره برابر هم قرض وي،

١) اخرجه الترمذي في السنن رقم الحديث ٣٥٦٣

نو الله ﷻ به تا ځني خلاص کړي [۵] نو واوره چې هغه دعا دا ده، ته دا وايه اَللّٰهُمَّ اكْفِنِي بِحَلَالِكَ عَنْ حَرَامِكَ وَأَغْنِنِي بِفَضْلِكَ عَمَّنْ سِوَاكَ، ترجمه اې الله ﷻ ما د خپل حلال مال په ذريعه د حرام مال څخه بې پرواه کړي، يعنې ماته حلال رزق راکړي چې د هغې په وجه د حرام مال څخه بې نيازه شم، [٦] او د خپل فضل او کرم په ذريعه د خپل ماسوا څخه ما مستغني کړي. [٧] ترمذي، بيهقي او بيهقي په دعوات کبير کښې نقل کړي دي [٨] او حديث د جابر [إِذَا سَمِعْتُمْ نُبَاحَ الْكِلَابِ] به مونږ په باب تَغْطِيَةِ الْأَوَانِي کښې ذکر اوکړو ان شاء الله

**حل اللغات** ① مُكَاتَبٌ: مکاتب غلام، هغه غلام چه په څه عوض ادا کولو نې د مالک سره د ځان آزادولو خبره کړې وي ② عَجَزْتُ: عاجز شوې يم يعنې بدل کتابت نه شم اداکولې ③ فَأَعِنِّي: زما مدد اوکړه، په مال سره يا د برکت دعا راته اوکړه چه قرض مې خلاص شي

**تسهيلات:**

**قوله جَاءَهُ مُكَاتَبٌ:**

**د مکاتب تعريف:** هغه غلام ته وائي چه هغه ته آقا اووائي چه ته ما له دومره رقم راکړه نو ته آزاد نې دې ته بدل کتابت هم وائي

**قوله أَلَا أُعَلِّمُكَ كَلِمَاتٍ:**

**د الا په کلمه کښې دوه احتمالات:** ① ألا حرف تنبيه ده نو معنى دا شوه چه واوره آيا تا ته داسې کلمات اوښايم يا داسې دعاګانې چه نبى عليه السلام ماته ښودلې دي

② ألا حرف استفهام دې او لا نفى ده نو معنى دا شوه چه آيا تا ته داسې کلمات اونه ښايم يا داسې دعاګانې چه ما د نبى عليه السلام نه اورېدې کړي دي

**قوله: أَدَّاهُ اللّٰهُ عَنْكَ:**

**د پيسو ورکولو په ځائې د کلماتو د تعليم ورکولو دوه وجوهات:**

① دډې وجې نې ورته پيسې ورنکړې چې هغه سره مال نه وو چه هغه له نې ورکړې وې نو ځکه نې داسې ښه الفاظو سره هغه واپس کړو کما في قوله تعالى ((قَوْلٌ مَعْرُوفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ)) الآية

② دډې وجې نې ورته څه ورنکړلو چې غوره هم دا ده چې دډې کلماتو په ذريعه باندې خپل قرض خلاص کړې او د الله تعالى په ذات نې يقين پيدا شي

# اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ

## [٢٣٥٠] د مجلس د کفارې دعا

٢٣٥٠- [٣٤] (١) ١ عَنْ عَائِشَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهَا-، قَالَتْ، ٢ «إِنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ إِذَا جَلَسَ مَجْلِسًا أَوْصَلَّى تَكَلَّمَ بِكَلِمَاتٍ، ٣ فَسَأَلْتُهُ عَنِ الْكَلِمَاتِ ٤ فَقَالَ: (إِنْ تُكُلِّمَ بِخَيْرٍ كَانَ طَابِعًا عَلَيْهِنَّ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ، ٥ وَإِنْ تُكُلِّمَ بِشَرٍّ كَانَ كَفَّارَةً لَهُ: ٦ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ، لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ، أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ»). رَوَاهُ النَّسَائِيُّ.

**ترجمه** ١ د مؤمنانو مور بي بي عائشه رضي الله عنها وايي ٢ چې نبی کریم ﷺ چې به په يو مجلس کې کیناستلو یا مونځ به یي کولو نو (د هغه مجلس څخه د ودریدو یا د مانځه د فراغت څخه پس) څو کلمات به یي ویل، ٣ یو وخت ما د نبی کریم ﷺ څخه پوښتنه وکړه چې د دې کلمات د ویلو څه فائده ده؟ ٤ نو نبی کریم ﷺ وفرمایل چې که دې کلماتو څخه مخکې په مجلس کې نیکې خبرې شوي وي نو دا کلمات به (په هغه نیکو خبرو) تر قیامته پورې مهر شي (یعني د دې نیکو کلماتو ویلو سره به هغه نیکې خبرې تر قیامته پورې محفوظې وي، د هغې ثواب به نه ضائع کېږي) ٥ او که د دې کلماتو څخه مخکې په مجلس کې خرابې خبرې شوي وي، نو دا کلمات به د هغه خرابو خبرو د معافی او بخشش ذریعه جوړه شي، او هغه کلمات دا دی ٦ سُبْحَانَكَ اللَّهُمَّ وَبِحَمْدِكَ لَا إِلَهَ إِلَّا أَنْتَ أَسْتَغْفِرُكَ وَأَتُوبُ إِلَيْكَ، اې الله ﷻ ته پاك يي، او ستا تعريف سره ستا پاکي بيانيږي، ستا څخه ماسوا بل معبود نشته. زه ستا څخه بخښنه غواړم، او ستا په مخکې توبه کوم (نسائي)

**حل اللغات:** ① طَابَعًا: وَهُوَ الْخَتْمُ: مهر (دلته ترې مراد اثر د مُهر دې يعنی مهر لګولې شوې) ② كَفَّارَةً دګناهونو معاف کونکې ده

**تسهيلات:** **قوله:** وَإِنْ تُكُلِّمَ بِشَرٍّ كَانَ كَفَّارَةً لَهُ:

**د حديث مطلب:** دا دعا د مجلس په اختتام کښې وئيلو سره د مجلس د کوتاهيانو کفاره جوړيږي

## [٢٤٥١] د سپوږمۍ ليدلو په وخت کښې مسنون دعا

٢٤٥١- [٣٥] (٢) ١ وَعَنْ قَتَادَةَ -رَضِيَ اللهُ عَنْهُ- بَلَغَهُ ٢ «أَنَّ رَسُولَ اللهِ -صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ- كَانَ إِذَا رَأَى الْهِلَالَ قَالَ: ٣ (هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ، هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ، هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ ٤ آمَنْتُ بِالَّذِي خَلَقَكَ) ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، ٥ ثُمَّ يَقُولُ: (الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا ٧ وَجَاءَ بِشَهْرِ كَذَا»). رَوَاهُ أَبُو دَاوُدَ.

---

(١) اخرجه النسائي في كتاب السهو/باب نوع آخر من الذكر بعد التسليم (رقم- ١٣٤٤) واحمد في المسند

(٢) اخرجه ابوداود في كتاب الأدب/باب ما يقال عند النوم (رقم- ٥٠٥٢)

**ترجمه** [۱] د ابوقتاده رضي الله عنه څخه روايت دي چې هغه نه دا حديث رسيدلي دی.[۲] چې نبی کريم ﷺ به نوې مياشت وليده، نو دا دعا به يې کوله [۳] هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ، يعنی د خير او هدايت مياشت ده، د خير او هدايت مياشت ده، د خير او هدايت مياشت ده.[۴] د دې سره به يې دا ويل، آمَنْتُ بِالَّذِي خَلَقَكَ يعنی ای مياشتې زه په هغه پاك ذات ايمان لرم چې هغه ته پيدا کړې، دا به يې درې ځله فرمايل. [۵] د دې څخه روسته به يې دا ويل الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي ذَهَبَ بِشَهْرِ كَذَا وَجَاءَ بِشَهْرِ كَذَا، ترجمه ټول تعريفونه هغه الله ﷻ لره دي چې هغه فلانکی مياشت ختم کړه، او د دې انوې مياشتې ابتداء يې وکړه. اد كذا په ځای به يې د تيري او آئنده مياشتې نوم اخستو] [ابوداود].

**حل اللغات:** ① رُشْدٍ: هدايت

**د راوي مختصر تعارف:**

**حضرت ابوقتاده الحارث بن ربعی رضي الله عنه:** نوم حارث ابوقتاده کنيت فارس رسول الله لقب د قبيله خزرج خاندان سلمه سره نی تعلق وو.

**ولادت** دَ هجرت نه لس کاله وړاندې مدينه منوره کښې پيداشو د غزوه بدر نه علاوه نی په ټولو غزواتوکښې شرکت کړې حضرت علی رضي الله عنه هغه د مکې امير جوړکړې وو حضرت قتاده ډير ميلمستيا والا وو په دې وجه دَ هغه دوستان ډير وو په حديبيه کښې رسول الله ﷺ سره مکې ته روان وو نو په لاره به دوستانو اوملګرو خنداګانې او ټوقې کولې اوتلل به.(۱) په غزوه حنين کښې دَ لويو لويو بهادرانو خپې اوخوزيدې او په دې موقع حضرت قتاده رضي الله عنه کلك ولاړ وو.دَ حديث په بيانولو کښې ډير محتاط وو اوچه دَ کله نه هغه دحضور ﷺ نه من كذب علي متعمدًا: والا حديث واوريدو نونور ډير محتاط شو (۲)

**وفات** دَ هغه په وفات کښې اختلاف دې بعضو ونيلی ۴۰ هـ کښې کوفه کښې شوې خود اکثرو په نيز دَ ۵۰هـ او ۵۰ هـ په مينځ کښې شوې دې.

**مرويات** دَ هغه نه د روايتونوشمير ۱۷۰ دې ۱۱ کښې بخاری اومسلم متفق دی بخاری کښې ۱۲ اومسلم کښې ۸ منفرد دی.

**تسهيلات: قوله:** هِلَالُ خَيْرٍ وَرُشْدٍ:

**د مذکوره جملې په مفهوم کښې دوه اقوال:**

① ددې جملې باره کښې داهم ونيلې شی چه دعائيه جمله ده، يعنی ددې معنی داده چه ای الله دا سپوږمۍ د خير اوهدايت پيغام سره راغلې وی..

② يا بيا داهم کيدې شی چه دا جمله د نيک فال په طور جمله خيريه ده

---

(۱) مسنداحمد ۳۰۱/۵). (۲)مسنداحمد۷۹۲/۵).(۳) مسلم في البر باب تحريم الظلم).

[٢٤٥٢] د غم او فکر لرې کولو دعا

٢٤٥٢ - [٣٦] (١) وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - قَالَ: (٢) (مَنْ كَثُرَ هَمُّهُ فَلْيَقُلْ: (٣) اللّٰهُمَّ إِنِّي عَبْدُكَ، وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ أَمَتِكَ (٤) وَفِي قَبْضَتِكَ، نَاصِيَتِي بِيَدِكَ، (٥) مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ، عَدْلٌ فِيَّ قَضَاؤُكَ، (٦) أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ، سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ، (٧) أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ، (٨) أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ، (٩) أَوْ أَلْهَمْتَ عِبَادَكَ، (١٠) أَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي مَكْنُونِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ، (١١) أَنْ تَجْعَلَ الْقُرْآنَ رَبِيعَ قَلْبِي، وَجِلَاءَ هَمِّي. (١٢) مَا قَالَهَا عَبْدٌ قَطُّ إِلَّا أَذْهَبَ اللّٰهُ غَمَّهُ وَأَبْدَلَهُ فَرَحًا»). رَوَاهُ رَزِينٌ.

**ترجمه** (١) ابن مسعود رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل (٢) کوم سړي چې ډیر زیات فکرونو راګیر کړې وي. هغه ته پکار دی، چې دا دعا وایي (٣) اللّٰهُمَّ إِنِّي عَبْدُكَ وَابْنُ عَبْدِكَ وَابْنُ أَمَتِكَ وَفِي قَبْضَتِكَ نَاصِيَتِي بِيَدِكَ مَاضٍ فِيَّ حُكْمُكَ عَدْلٌ فِيَّ قَضَاؤُكَ أَسْأَلُكَ بِكُلِّ اسْمٍ هُوَ لَكَ سَمَّيْتَ بِهِ نَفْسَكَ أَوْ أَنْزَلْتَهُ فِي كِتَابِكَ أَوْ عَلَّمْتَهُ أَحَدًا مِنْ خَلْقِكَ أَوْ أَلْهَمْتَ عِبَادَكَ أَوِ اسْتَأْثَرْتَ بِهِ فِي مَكْنُونِ الْغَيْبِ عِنْدَكَ أَنْ تَجْعَلَ الْقُرْآنَ رَبِيعَ قَلْبِي وَجِلَاءَ هَمِّي وَغَمِّي ترجمه اې الله ﷻ زه ستا بنده یم. ستا د بنده خوی یم. ستا د وینځې خوی یم. (٤) ستا په قبضه کې یم (یعني ستا په ملك او ستا تصرف کې یم زما د تندي ویښتان ستا په لاس کې دی (ستا مدد څخه بغیر ما ته د حرکت او سکون قوت هم حاصل نه دی) (٥) زما په حق کې ستا حکم جاري دی (یعني ستا حکم لره څوك منع کونکې نشته څه چې ته وایې او غواړې. هغه کېږي. زما په باره کې ستا فیصله عدل او انصاف دی یعني زما په مقدر کې چې تا څه لیکلي دي هغه عین انصاف دی (٦) زه ستا څخه ستا د هر نوم په وسیله غواړم چې تا د خپل ذات د پاره اختیار کړیدي (٧) یا هغه دي په خپل کتاب کې نازله کړیدي. (٨) یا هغه دي د خپل مخلوقاتو څخه چا ته ښودلي دي. یعني په کتاب کې د ذکر کولو بغیر انبیاؤ علیهم السلام ته دي الهام کړې دی (٩) یا دې د خپل ځان سره په پرده غیب کې اختیار کړیدي. یعني هغه ستا څخه ماسوا بل چا ته معلوم نه دی (١١) دا چې دا قرآن زما د زړه پسرلی. زما د سترګو نور او زما فکر او غم لرې کونکې جوړ کړې. (١٢) دا دعا چې کوم بنده وایي. الله ﷻ د هغه هر غم لرې کوي. او د هغې په بدله کې ورته خوشحالي ورکوي. رزین.

**حل اللغات** (١) مَاضٍ: أَيْ ثَابِتٌ وَنَافِذٌ. چلیدونکې او نافذ دی. (٢) أَلْهَمْتَ: چه تا الهام کړې دی (په زړه کښې دالله د طرفه سره خبره اچولو ته الهام وائی. (٣) اسْتَأْثَرْتَ: أَيْ اخْتَرْتَ: تا اختیار کړې ده. (٤) مَكْنُونِ الْغَيْبِ: أَيْ مَسْتُورِهِ. یعنی په پرده د غیب کښې نې پټ ساتلی دی (چه صرف الله تعالی ته معلوم دی) (٥) رَبِيعَ: أَيْ رَاحَتَهُ. بهار او پسرلي. ددې نه مراد د زړه راحت او خوشحالی ده. (٦) جِلَاءَ: أَيْ إِزَالَتَهَا: لرې کونکې ددې دواړو (یعنی د غم او فکر ختمونکې)

(١) رواه رزين

تسهیلات: **نوټ**: د حدیث مطلب آسان دي باقي د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی

**[۲٤۵۳] په اوچت ځائې د ختلو او ښکته ځائې د کوزیدو دعا**

۲۴۵۳-[۳۷] () ١ وَعَنْ جَابِرٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - قَالَ: ٢ كُنَّا إِذَا صَعِدْنَا كَبَّرْنَا ٣ وَإِذَا نَزَلْنَا سَبَّحْنَا. رَوَاهُ الْبُخَارِيُّ.

**ترجمه** ١ جابر ﷺ وايي ٢ مونږ چې به په لوړه (پورته) ختلو، نو الله اکبر به مو ويلو، ٣ او کله چې به راښکته کيدو، نو سبحان الله به مو ويله (بخاري)

**حل اللغات**: ① صَعِدْنَا: أَيْ: طَلَعْنَا: چه ختلوبه په اوچت ځائې باندې. ② كَبَّرْنَا: أَيْ: قُلْنَا: اللَّهُ أَكْبَرُ: تکبير يعنی الله اکبر به مو وئيلو ③ نَزَلْنَا: أَيْ: هَبَطْنَا: چه راکوزيدو به د اوچت ځائې نه. ④ سَبَّحْنَا: أَيْ: قُلْنَا: سُبْحَانَ اللَّهِ: مونږ به تسبيح يعنی سبحان الله وئيلو

تسهیلات: **نوټ**: د حدیث مطلب آسان دي باقي د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی.

**[۲٤۵٤] د میدان جنګ دعا**

۲۴۵۴-[۳۸] () ١ وَعَنْ أَنَسٍ - رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ - «أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ - صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - كَانَ إِذَا كَرَبَهُ أَمْرٌ يَقُولُ: ٢ (يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ بِرَحْمَتِكَ أَسْتَغِيثُ)». ٣ رَوَاهُ التِّرْمِذِيُّ، وَقَالَ: هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ، وَلَيْسَ بِمَحْفُوظٍ.

**ترجمه** ١ انس ﷺ وايي چه نبی کريم ﷺ چې به په څه معامله غمجن شو، نو دا کلمات به يې فرمايل: ٢ يَا حَيُّ يَا قَيُّومُ بِرَحْمَتِكَ أَسْتَغِيثُ، يعنی اي ژونديه! اي د مخلوق تدبيرکونکيه. زه ستا د رحمت په ذريعه فرياد رسي غوارم، ٣ دا روايت امام ترمذي رحمه الله نقل کړې دې، او ويلي يې دي چې دا حديث غريب دي محفوظ نه دي.

**حل اللغات**: ① كَرَبَهُ: أَيْ: أَصَابَهُ كَرْبٌ: څه غم يا مصيبت به ورته پيښ شو،

② أَسْتَغِيثُ: أَيْ: أَطْلُبُ الْإِغَاثَةَ: فرياد رسی کوم يعنی مدد غوارم

**تسهیلات:**

**قوله**: إِذَا كَرَبَهُ أَمْرٌ يَقُولُ:

**په سجده کښې مسنون دعا**: دا روايت حاکم او ابن سنی دحضرت ابن مسعود رضی الله عنه نه نقل کړې دې، اوحاکم اونسائی دحضرت علی رضی الله عنه نه مرفوع سند سره نقل کړې دې په هغې کښې دا الفاظ هم دی چې ((ويكرروهو ساجد يا حي يا قيوم)) يعنی نبی کريم ﷺ به په سجده کښې يا حي يا قيوم بار بار وئيل.

---

۱) اخرجه البخاری فی کتاب الجهاد والسير باب التسبيح إذا هبط واديا (رقم-۲۹۹۳) واحمد فی المسند: ۳/۳۳۳

۲) اخرجه الترمذی فی السنن رقم الحديث ۳۵۹۳

**[۲۴۵۵] د ويرې په وخت کښې مسنون دعا**

مد—[۳۹] ()① وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: ② «قُلْنَا يَوْمَ الْخَنْدَقِ»: يَا رَسُولَ اللّٰهِ ③ هَلْ مِنْ شَيْءٍ نَقُولُهُ ④ فَقَدْ بَلَغَتِ الْقُلُوبُ الْحَنَاجِرَ. ⑤ قَالَ: (نَعَمْ، اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا، وَآمِنْ رَوْعَاتِنَا). ⑥ قَالَ: فَضَرَبَ اللّٰهُ وُجُوهَ أَعْدَائِهِ بِالرِّيحِ ⑦ وَهَزَمَ اللّٰهُ بِالرِّيحِ»). رَوَاهُ أَحْمَدُ.

**ترجمه** ① ابوسعيد خدري ﷺ وايي ② چې د خندق په ورځ مونږ عرض وکړو چې يا رسول الله ﷺ ③ آيا څه ذکر او دعا شته چې مونږ يې وايو؟ (او کامياب شو) ④ ځکه چې زمونږ زړونه تر غاړو رارسيدلي دي (انتهايي سختيو او مشقتونو راګير کړي يو) ⑤ نبي کريم ﷺ وفرمايل چې هو، او هغه دا ده اللّٰهُمَّ اسْتُرْ عَوْرَاتِنَا وَآمِنْ رَوْعَاتِنَا. يعني اې الله ﷻ زمونږ د عيبونو پرده پوشي وکړې، او مونږ د خوف څخه په امن کې اولرې. ⑥ ابوسعيد ﷺ وايي، نو الله ﷻ د دښمنانو مخونه د هوا په څپېړو ووهل. ⑦ او د هوا په ذريعه يې هغوی ته شکست ورکړو (ماته يې ورکړه) (احمد)

**حل اللغات:** ① اَلْحَنَاجِرَ: د حنجرة جمع ده. اَلْحَنْجَرَةُ فَوْقَ الْحُلْقُومِ: د حُلقوم يعنی د مرۍ د ترټي نه حلق طرف ته حصې ته حنجرة وائی ② اُسْتُرْ: پټ اوساتې. ③ عَوْرَاتِنَا: د عورة جمع ده. عورت د کومو په ښکاره کيدو چه انسان شرميږي، ددې نه مراد عزت او حيا ده ④ رَوْعَاتِنَا: روعة جمع ده. خوف او ويره ⑤ هَزَمَ: شکست ئې ورکړو.

**تسهيلات:**

**قوله:** قُلْنَا يَوْمَ الْخَنْدَقِ:

**د خندق په ورځ د مسلمانانو سره غيبي مدد:** ددې نه مراد غزوه خندق دې، دې ته غزوه احزاب هم وائی، په دې موقع باندې الله تعالی مسلمانانو سره ډېر مدد او نصرت په داسې طريقه سره اوکړو چه د هوا تيزې چپې راغلې او د دين د دشمنانو کټوئ ئې په بل طرف واړولې، دهغوی خيمې ئې اوويستلې، اوهغوی ئې په قسم قسم تکليفونو او مصيبتونو کښې مبتلاکړل ترديې چې مايوسه او نامراده مکې ته واپس شول

**[۲۴۵۶] بازار کښې د حضورپاک دعا**

۲۴۵۶—[۴۰] (۲) ① وَعَنْ بُرَيْدَةَ - رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ - قَالَ: «كَانَ النَّبِيُّ - صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ - إِذَا دَخَلَ السُّوقَ قَالَ: ② (بِسْمِ اللّٰهِ، اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هٰذِهِ السُّوقِ، وَخَيْرَ مَا فِيهَا ③ وَأَعُوذُ بِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا، ④ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُ بِكَ أَنْ أُصِيبَ فِيهَا صَفْقَةً خَاسِرَةً»). رَوَاهُ الْبَيْهَقِيُّ فِي (الدَّعَوَاتِ الْكَبِيرِ).

[۱] اخرجه احمد في المسند ۳/۳

[۲] الدعوات الكبير، باب ما يقول اذا دخل السوق... رقم الحديث ۱۶۵

**ترجمه** [۱] حضرت بريده ﷺ وايي چه نبی کريم ﷺ چې به بازار ته راغلو ، نو دا دعا به يې ويله [۲] بِسْمِ اللّٰهِ اللّٰهُمَّ إِنِّي أَسْأَلُكَ خَيْرَ هٰذِهِ السُّوقِ وَخَيْرَ مَا فِيهَا وَأَعُوذُبِكَ مِنْ شَرِّهَا وَشَرِّ مَا فِيهَا اللّٰهُمَّ إِنِّي أَعُوذُبِكَ أَنْ أُصِيبَ فِيهَا صَفْقَةً خَاسِرَةً»زه د الله ﷻ په نامه داخل شوم، اې الله ﷻ ستا څخه غوارم خير د دې بازار (چې حلال رزق راته ميسر وي او په هغې کې نفع او برکت وي) او د هغه څيز خير چې په دې کې دی (يعني خلق)[۳] او زه ستا پناه غوارم د هغه بدو خبرو څخه او د هغه څيز د بدو خبرو څخه چې په دې کې دي (يعني فاسد خرڅول اغستل، نقصان او فاسد خلق)[۴] اې الله! ﷻ زه ستا پناه غوارم د دې خبرې څخه چې په دې بازار کې د څه نقصانی معاملې سره مخ شم. (بيهقی)

**حل اللغات:** ① أُصِيبَ: أَيْ: أُدْرِكَ: راته راؤرسيږي، راګيرشم. ② صَفْقَةً: أَيْ: بَيْعَةً: معامله. لين دين (د اخستونکی او خرڅونکی خپل مينځ کښې بيع کولو ته صفقه وائی). ③ خَاسِرَةً: نقصان، تاوان.

**تسهيلات:**

**نوټ:** د حديث مطلب آسان دې باقی د ګرانو لغاتو معانی د حل اللغات په عنوان سره واضح شوی دی.

(الحمد لله ! پنځم جلد ختم شو )